يُسقون من رحيق مختوم

مکمل او مدلل

# سیرت النبی ﷺ

# الرحیق المختوم

پہ کندهاری پښتو

تالیف

مولانا صفی الرحمن مبارکپوری

پښتو ژباړه

مولوی عبدالباری مزمل

مکتبہ سلطانیہ الہاشمیہ

کانسی روڈ۔ کوئٹہ

بسم الله الرحمن الرحيم

يُسْقَوْنَ مِن رَّحِيقٍ مَّخْتُومٍ

# سيرة النبى صلى الله عليه وآله وسلم

# الرحيق المختوم

## په قندهاری پښتو

تأليف

حضرت علامه مولانا صفي الرحمن مباركپوري رحمه الله

الناشر

المكتبة السلطانية الهاشميه

تحت اداره اغاصاحب

فون نمبر ۰۳۲۱۸۰۳۱۷۳۵

# دکتاب پیژندنه:

دکتاب نوم..........................رحیق المختوم
مؤلف........................مولناصفی الرحمن مبارک پوري
کمپوزر..........................مولوی عبدالباری مزمل
تصحیح کوونکی..................مولناعبدالباري مزل ابو طلحه

## سمون او ترتیب

مولوي عبدالديان (حليم) فاضل جامعه
محمدیه منان چوک کوټه

## دعلماء اوطلباء دخدمت دپاره پرمخ تللی اداره

## المكتبة السلطانية الهاشميه
کاسی روډ کوټه



# دمصنف حالاتوته کتنه

الحمدلله والصلاة والسلام علی سيدالانبياء محمد ﷺ خاتم النبيين وعلی اله واصحابه طيبين الطاهرين

**امابعد:** لکه چي دا په اول کي لامعلومه سوه چي هغه اسلامي والاوو مقاله ليکو نکورابطه باندي پابندي لګولي وه چي دوی به خپل حالات اوزندګی هم نوشته کوي دهمدي وجي په خاطرباندي په اخرنيو کرښوکي يوڅو غټې غټې خبري ليکم:

**اول دنسب سلسله:** صفی الرحمن بن عبدالله، بن محمدعلي، بن عبدالمؤمن، بن فقيرالله مبارک پوري اعظمي.

**زوکړه:** په سندکي زمادپيداکيدلو تاريخ دجون (۶) (۱۹۴۳) ليکل سوي ده ليکن داتخمين داټکل څخه معلوم سوی دی اود تحقيق څخه معلومه ده چي د(۱۹۴۲) په مينځ کی دی. **دزوکړي ځای:** حسين اباد چي هغه دمبارکپور شمال ته يوميل فاصله باندي يوکوچنی کلی دی چي هغه دمبارکپور ضلع اعظم ګړه يوه معروفه علمي اوصنعتي علاقه ده. **تعليم اوتعلم:** ماپه وړوکوالي کی قران کريم څه حصه دخپل نيکه اوداکا څخه ويلي ده بياپه سنه (۱۹۸۴) کي په مدرسه دارالتعليم مبارک پور کي داخل سوم هلته زه شپږ کاله هلته پاته سوم ترپرائمري اوماډرن درجوپوري مي کورس مکمل کړيوه اندازه فارسي مي هم وويله د دي څخه وروسته دجون دمياستی سنه (۱۹۵۴) کي مدرسه احياء العلوم مبارک پور کي داخل سوم هلته مي دعربي ژبي قواعد نحو اوصرف اوبعضي نور فنونو تعليم مي هم حاصل کړ له دي څخه وروسته فيض عام مئو ته ولاړم وهمدي مدرسي ته په هغه علاقه کي ديواهمی اوديني درسګاه حيثيت حاصل وو مئونات بهجن دقصبهٔ مبارک پور څخه (۳۵) کيلو متره ليري دی په فيض عام کي زمادا خله دمی دمياستي په سنه (۱۹۵۶) کي وسوه هلته مي پنځه کاله تيرکړل دعربي ژبي قواعد شرعي علوم اوفنون يعني

تفسیر، حدیث، اصول حدیث، فقه اوداسي نور تعلیم حاصل کړپه تاریخ جنور
سنه (۱۹۶۱) کي زما تعلیم مکمل سو وماته باقاعده شهادة التخریج یعني سن
تکمیل راکړل سو سند فضیلت فی الشریعة او فضیلت فی العلوم راکړل سو د درس
او تدریس او افتاء په اجازت باندي شامل وو دا زما خوش قسمتي وه چي په ټول
امتحانونو کي هغه امتیازي نمبرونه راته حاصل شول دتعلیم حاصلولو په دورا
کي ما داله اباد بورډ په امتحاناتو کي هم شرکت وکړ په سنه(۱۹۹۵) دفروري
میاست کي مي لوی امتحان ورکړ اوپه سنه(۱۹۶۰) کي مي عام امتحان ورکړ
دواړو کي په اول ډویژن باندي کامیاب سوم بیاډیر وخت څخه وروسته دمدرسې
سره دهغه متعلق حدیث حالاتو دوجی څخه په سنه (۱۹۷۶) کي دعلم ادب امتح
ورکړ په سنه (۱۹۷۸) کي مي د دینیات امتحان ورکړ په دواړو کي په اول نمبرس
کامیاب سوم.

**د ده علمي اودژوند کارنامې**: کله چي په سنه (۱۹۶۱) دفروري په میاست ک
دهغه فیض عام څخه فارغ سوم ده دهغه څخه وروسته په ضلع اله باد شاه ناګپور ک
په درس، اوتدریس، تقریر، اوخطابت شروع کړ دوه کاله وروسته مادرعلمي ناظ
اعلی فیض عام مدرسي ته درس اوتدریس دپاره دعوت کړل سو دوه کاله په هلته
مشکل سره تیر کړل دحالات تقاضاهم داوه چي زه یه په جدا والي باندي مجبور کړ
وم راتلونکی کال دجامعة الرشاد اعظم ګړه نذرشوو اوفروري مدرسه دارالحدی
مئوپه دعوت باندي په هغه ځای کي مدرس شوم دري کاله مي هلته تیرک
دتدریس او درس کولو څخه علاوه دنائب صدر په حیثیت نائب صدرمدرس
تعلیمي کارونو باندي هلته بوخت سوم اوخپل نظرمي پرهغه داخله انتظامات
باندي هم شامل حال وو په اخرنیو ورځوکي دمدرسي انتظامیې په مابین کي زیاد
له حد څخه دباندي اختلافات موجود سول داختلافاتو څخه داسي ښکاریدله چي پ
اینده کال کي به مدرسه قلف سي هیڅوک به هم نه وي پکي زماسره نوره داسي
حوصله نه وه اختلافات راباندي بوج سول خاص داخترپه ورځ باندي مي استعف
ورکړه لنډي ورځي وروسته دهغه مدرسي د دارالحدیث څخه رخصت او مستعفي
سوم په دي وخت کي دمدرسي فیض العلوم سیونی خدمت ته مأمورسوم چي هغ

کوم دمئونات بهجن ځخه اوه کلومتره مدهیه پردیش په حدودو باندي موقعیت لري په سیوني کي زماتقرر په سنه (۱۹۶۹) دجنوري په میاست کي وسو هلته مي د درس اوتدریس دلړې ځخه بغیر دصدرمدرس په حیث باندي هم مأمورکړل سوم دمدرسي هغه داخلي اوخارجي مجموعه مسئولیتونه راته وسپارل سول حتي دجمعي خطبه په کلو کي هغه زیاته اندازه باندي تلل اوهغه ددعوت کارونه هم زماپه هغه عمده مسئولیتونو کي وو ځلور کاله مي هلته تدریس وکړ دهغه ځخه وروسته درخصت په شپوکي چي مدرسي رخصت وي اخري هغه سالانه تعطیلات وو نوهغه دمدرسه دارالتعلیم مسئولینوهمکارانو په زیاته اندازه باندي پر ما اصرار وکړ چي زموږ تعلیمي انتظامات را سنبال کړه ماته هم دا دعوت قبلول یوه اندازه دمجبوریت حالت وو اوس ماهغه خپل مادرعلمي نوي ذمه واري قبولي کړې دوه کاله وروسته دجامعیه سلفیه ناظم اعلی دهغه د دارالتعلیم دمدرسي دهغه سرپرست سره خبره وکړه زه یه بیاوجامعه سلفیه ته نقل کړم دجامعه دخیرخواهی اودهغوی دقلبي خواهشاتوپه خاطرباندي خبره وسوه بیازه په سنه (۱۹۷۴) د اکتوبر په میاسته کي جامعه سلفیه ته راغلم دهغه وخت ځخه بیاترهمدي ساعت پوري دلته مشغول یم دخپل زندګۍ اوکارنامي دبیانولو وروسته وُس مقصدته ځم ومن الله التوفیق.

## دعربانو سپیځلې موقعیتونه او قوام

هغه ښائسته معلوم دار نبوي سیرت په حقیقت کي دهغه عربي قومونو او ددوی موقعیت درسالت ځخه عبارت دی کوم چي سیدالبشر ﷺ درڼا اوروشنائي په طورباندي را رسولی اوبشري ټولنه یه ورباندي روښانه کړي ده اوقومونه یه هم د توروشپو اوتارکیو ځخه رڼاته رابللي دي اومخلوق چي به د ډیرو خدایانو عبادتونه کول هغه یه دیوو الهی رب جل جلاله وعبادت ته رابللي دي دهمدي روښانه سیرت هغه حقانه خیره ترهغه پوري نه سي ځرګندیدلای ترځوچي دهمدي رسالت دنښانو او اثارو رڼاورسره دهغه ځخه په هغه مخکنیو شیانو کي اوحالاتوسره نه وي مقایسه شوی نوسبب هم دا وو چي دکتاب په شروع کي موږ دعربي قومونو هغه تراسلام هم هغه اولین حالات اودهغه بدلون په باره باندي خبرې کوو په کوم کي چي دانبیاؤ سترسالار او دبشري ټولني هغه عالي مخکش محمد ﷺ په نبوت سره مشرف سوی وو.

# عرب او دهغوی موقعیت

لغوي معنی: العرب: په لغت کي دښتو اوداسي ډاګونو او دهغوي وهغه بي اوبو
ځمکوته ویل کیږي چي په هغوی کي نه اوبه او نه هم خاشاک بوټي وي.

**ؤس عربي جزیره اودهمدي علاقي ؤسیدونکي:** زیات وخت څخه راهیسي په
همدي نامه باندي یادیږي لویدیځ ته یه سره بحیره، او دسیناټاپووزمه، اوختیځ ته
یه خلیج او دعراق جنوبي زیاتي برخې، وجنوب ته یه عربي بحیره چي هغه د بحر
الهند څخه هغه امتدادپیداکوي، وشمال طرف ته یه شام اوهم عراق پروت دی، د
دي مساحت دیومیلیون متره مربع اویومیلیون درې سوه زره میله مربع ترمابین
اندازه کړل سوي ده، ذکر سوي جزیره دطبعي اوجغرافیائي موقعیت له نګاه څخه
ډیره قیمتناکه ده دهمدي جزیرې شاوخواه داسي ازاد دښتونه اوریګستانونه دي
چي دا دهمدي جزیري دپاره دیوي پخي کلا په اندازه دي دا دیوه داسي حفاظتي
کلا په شکل ده چي ځوک په اساني اوسهولت سره قبضه اوتسلط نه سي ورباندي را
وستلای دلیل هم داده چي دهمدي جزیري ؤسیدونکي اشخاص دقدیمه زماني
څخه په خپلو زندګیو او کارونو کي خودمختاره دي که دهمدي ریګونو اودښتو
سبب نه وي نودعربانو سره همداسي توان اوطاقت چیري چي دوی دخپلو پرتو پولو
څخه اخواته دوه لوی امپراتوران موجود اودوی دي دهغوی حملي اوتیریاني
پرشاکړي اویادي ورباندي دغه امپراتوران تسلط پیدانکړي دبل طرف څخه
داجزیره دنړۍ دهغه مشهورو وچو په مابین کي پروته ده دهغوی ټولو سره دوچي او
اوبولارې تړل سوي دي په همدي معنا باندي چي شمال کي دافریقا، اوشمال ختیځ
کي داروپ، اوهغه لویدیځ کي له عجمو، اومنځني اونږدي ختیځ اوهمداسي دهند
اود چین سره هم لارې لري، همدارنګه داوبو دلارې څخه دهمدي ټولووچو څخه
کښتئ اوهغه دریابي بیړۍ څخه مخامخ سیده دهمدي جزیري بندرونو ته راتګ
کیدلای سي اودهمدي جغرافیائي موقعیت دبرکت په خاطرباندي دعربي جزیري
شمالي اوجنوبي طرفونو په تیره سوي زمانه کي دمختلفو اولسونولارې اوهغه
تجارتي پرمختګونو، تجارتي کارنامو، دیانت، فرهنګ، فن، هنر، اوداسي دعلم
دیوه عالي مرکزپه حیثیت باندي نومول سوی وو.

## عربي قومونه په درې برخو ويشل سوي ده

تاريخ دانانو داخبره ښکاره کړي ده چي عربي قومونه اودهغوى دنسلي او نسبي اساس په خاطرباندي دوى په دريو برخو باندي ويشل سوي دي:

(۱) **هغه دمابينه تللي عرب**: داهغه اولين عرب دي چي د دوى په باره باندي مکمل تاريخي معلومات نسته هغه نو عاد، ثمود، جديس، عملاق، او ددوى په رقم باندي داسي نور قومونه. (۲) **عاربه عرب**: دغه عربان ديعرب بن يشجب بن قحطان، داولادي ځخه دي او دوى ته قحطاني عرب هم ويل کيږي. (۳) **هغه مستعرب عرب دي**: دوى داسماعيل عليه السلام اولاده دي دوى ته عدناني عربان هم ويل کيږي دعاربه عربو هغه (قحطان حصه) د دوى اصلي ځاى يمن دى ډيرې قبيلې لري په دي قبيلو کي دوې قبيلې يه زياتي مشهوري دي: (۱) هغه (حمير) قبيله ده چي دهغي هغه مشهورې کورنۍ زيدالجمهور، قضاعنه، او هغه سکاسک دي. (۲) (کهلاني) قبيله ده چي مشهورې کورنۍ يه انمار، طبي، مزجح، کنده، لخم، جزام، ازد، اوس، خزرج، اونور دشام دبادشاهانو اولاده ده او همدا په آل غسان سره مشهوردى.

عام قبائلو يمن ايله کړ او دجزيره عرب په هغه مختلفو برخوکي خپاره سول د دوى عمومي وطن ايله کيدل او همدا واقعه دعرم ترسيلاب هم مخته وه هغه وخت کي ديمن ځخه ووتل او کله چي روميانو بيا مصر اوشام ونيوى او هغه ديمن پرتجارتي هغه بحري لارو باندي يه هم قبضه وکړه هغه وچي لاري يه هم سره ورمختلطي کړي او دهمدي قبيلولکه کهلان، او حميرخپل مابيني جنګونه هم په دي سبب باندي وو دايه يو عمده سبب سو بيا هغه دکهلان قبيلې وطن ايله کړ او دحمير قبيله پرهغه خپل ځاي باندي پاته سوه.

## کهلان قبيله او دهغي مهاجرين پر ځلورو برخو باندي

(۱) ازد: داد کهلان قبيلي هغه برخه ده چي دوى دخپل مشرعمران بن عمرو مزيقباء په امر باندي خپل وطن ايله کړ دوى اولين په يمن کي دننه ديوو ځاى ځخه وبل ځاى ته تلونکي وو او په ورستوکي دشمال پرطرف باندي ووتل چي ثعلبه بن عمرو په حجاز کي دثعلبيه اوذي قار ترمابين يه واړول کله چي د دوى اولادونه لويان سول

تعداد یه هم زیات سو بیا و مدیني منوري ته ننوتل په هغه ځای کي یه واړول ؤسنی.
دخزرج او حارثه بن ثعلبه اولاده هم د (ثعلبه) قبیلي څخه دی.
حارثه بن عمرو (خزاعه) او د ده اولاده په ظهران کي ځای پرځای سول دهغه وروسته یه پرمکه معظمه باندي حمله وکړه هغه اصلي دمکي مکرمي ؤسیدونکي یه دمکي څخه خارج کړل دوی په هغه ځای کي داخل سول.
عمران بن عمرو او دده هغه اولاده وعمان ته ولاړل هغه ؤس دعمان ازدیان دي دلفربن ازد دکورنی. په تهامه کي ځاي په ځای سول ودوی ته ازد شنؤة ویل کیږي.
جغنه بن عمرو او دهغه اولاده وشام ته ورسیدل هلته ځاي پرځای سول جغنه په شام کي دهغه غساسنه بادشاهانو پلار وو ؤس نو دوی ته چي غساسنه وویل سول ځکه چي دوی دهمدي څخه مخکي چه شام ته ولاړسي په حجاز کي یه دغسان په نامه باندي دهغه مشهورو چینو په څنګ کي واړول او دهمدي غسان چنو په خاطر باندي دوی ته غساسنه وویل سول.(۳) بنوطی: دازد دکورنی. دخروج څخه وروسته بنوطی دشمال وطرف ته ولاړل ترداسي حالته چي داجا، او سلمی، په نامه باندي غرونو ترمابین هستوګن شي چي دهغه وروسته دا دواړه غرونه دطبي غرونو په نامه باندي یاد سول شهرت یه په همدي وجه باندي پیدا کړ.(۴): کنده: دوی اول بحرین ته ولاړل دهغه څخه وروسته مجبور سول چي وحضرموت ته ولاړسي په هغه ځای کي یه هم ګذاره او هستوګنه ونه سوه بیا و نجد ته ولاړل هلته یه یو عظیم حکومت جوړکړ هغه هم ډیر ژر دمابینه ولاړل دهغه اولین حمیره هم یوه قبیله (قضاعه) دیمن څخه ولاړل دعراق دهغه سرحدي برخو په السماوه نومي کلي کي ځاي په ځاي سول ؤس په دي کي اختلاف موجود ده چي (قضاعه) له حمیره قبیلي څخه دي او که نه دي.

## دمستعرب عربانو یونیکه

دهغه مستعربه عربانو یونیکه حضرت ابراهیم عليه السلام اصل کي دعراق د ار نومي ښار کي ؤسیدونکی وو. ار: دا دفرات سند په هغه لویدیځه غاړه کي له کوفي سره نژدي پروت دی په موجوده وخت کي دمځکي دهغه کندلو او ښیړلو څخه وروسته دهغه ذکرسوي ښار او دابراهیم عليه السلام دکورنی. او د دوی دتهولنیز او هغه دیني وضعي په باره باندي زیات معلوما په لاس باندي راغلی دی.

دامعلومه خبره ده چي ابراهیم علیه السلام دعراق دهغه «ار» نومي علاقي څخه حاران یا حران ته اودهغه ځای څخه بیا وفلسطین ته تللی وو په همدي محل کي یه دخپل دعوت دپاره ځای انتخاب کړ دلته یه دعوت شروع کړ له دي ځای څخه یه داخلي او هم خارجي سفرونه کړي دي دوخت په تیریدلو سره یو وخت مصرته تللی وو (۱) هلته له هغه مشهور دوخت دفرعون سره مخ شو فرعون په دي اراده باندي وو چي دهمدي نبي ابراهیم علیه السلام وکوروالابي بي ساره رضي الله عنها ته یوه اندازه ضرر ورسوي لکن الله جل جلاله د همدي فرعون فریبونه دخاورو سره خاوري کړل دا مبارکه له همدي فرعوني فریبو نو څخه محفوظه کړه فرعون ته دامعلومه سوه چي بي بي ساره رضي الله عنها دخپل رب جل جلاله سره ټینګي اونژدي اړیکي لري نتیجه هم داسوه چي خپله لور (۲) هاجره یه بي بي ساري رضي الله عنها ته دخادمي په توګه باندي ورکړه دهغه څخه وروسته هاجره بي بي ساري رضي الله عنها حضرت ابراهیم علیه السلام ته په نکاح باندي ورکړه[۳].

ابراهیم علیه السلام دهغه ځای څخه بیرته مخ پر فلسطین باندي روان سو په فلسطین کي دبي بي هاجري څخه الله جل جلاله زوی ورکړ په دي وخت کي دبي بي ساري سره یوه اندازه طبعي تکر راغلی خو دي ته یه اړ کړ چي دی خپل کوروالا هاجره اوهغه خپل نازولی زوی اسماعیل علیه السلام له همدي محل څخه وباسي نو ابراهیم علیه السلام دوی دواړه له خپل ځان سره روان کړل دبیت الله شریفي پر طرف باندي ولاړل دبیت الله شریفي سره نژدي یه ترهغه درخته لاندي دوی واړول هغه یوه اندازه لوړه غونډۍ اوهغه شاوخوا ظرفونه یه سیلابونو وهلي وو هغه درخته هلته ولاړه وه په هغه عصر کي په مکه مکرمه کي یو څوک هم نه ؤ سیدل دلیل همدا وو چي دا ځای نه اوبه درلودي اونه یه هیڅ خورکي شیان درلودل.

ابراهیم علیه السلام دوی دواړو ته یوه اندازه اوبه اولږ څه خورکه ورپیدا کړل دوی یه دلته پریښوول دی مبارک بیرته وفلسطین ته ولاړی په لنډو ورځو کي د دوی هغه خورکي شیان ټول ختم سول اوبه هم نه وي په دي وخت کي دالله جل جلاله په هغه عظیم

---

(۱) تفهیم القران ۱/ ۱۰۸.

(۲) دشهرت وړ خبره همداده چي هاجره مینځه وه لکن په دي باره باندي هغه عالي محقق لیکوال قاضي محمدسلیمان المنصوردامعلومه کړي ده چي هاجره دفرعون لوروه اوحره وه. رحمة اللعلمین ۲/ ۳۶ - ۳۷.

(۳) صحیح البخاري کتاب الانبیاء ۱/ ۵/ ۴۷۴.

راوخوځېدله په همدي شکل اوترتيب سره فضل اورحم سره دزمزم چينه پيداسوه اندازه طوالت لري وروسته الله جل جلاله دوی ته خوراک اوڅښناک ورکړل داقصه يوه دمور مبارکي په اجازه باندي دهغه څخه ديمانيه قبيلې خلک راغلل داسماعيل عليه السلام په مکه مکرمه کي واړول ويل سوي دي چي دوی تردي مخته دمکي مکرمي د درو په شاوخواکي ؤسيدل دبخاري شريف دروايت څخه معلوميږي چي يمانيان تراسماعيل عليه السلام وروسته لکن مخته تردي چي اسماعيل عليه السلام ځوان سي په مکه مکرمه کي ؤسيدل په داسي حال کي چي له همدي څخه وړاندي به هم دوي پرهمدي دره باندي تيريدل[۴].

ابراهيم عليه السلام به کله کله داسماعيل عليه السلام اوبي بي هاجري دملاقات دپاره راتلی ومکي ته به يه تشريف راووړ خودامعلومه نه ده چي دی مبارک څو واره ومکي ته دهغه ځای څخه راغلی دی تاريخونه پردي باندي دي چي ابراهيم عليه السلام څلورسفرونه ومکي مکرمي ته کړي دي.

قران کريم کي الله جل جلاله فرمايي: چي الله جل جلاله ابراهيم عليه السلام باندي داسي خوب وليدی چي دی دي خپل زوی اسماعيل عليه السلام ذبح کړي هغه مبارک هم دهمدي امرالهي اتباع وکړه هغه يه ځان باندي عملي کړ الله جل جلاله فرمائي:

(فَلَمَّا أَسْلَمَا وَتَلَّهُ لِلْجَبِينِ ۝ وَنَادَيْنَاهُ أَنْ يَا إِبْرَاهِيمُ ۝ قَدْ صَدَّقْتَ الرُّؤْيَا إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ۝ إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ الْبَلَاءُ الْمُبِينُ ۝ وَفَدَيْنَاهُ بِذِبْحٍ عَظِيمٍ ۝ وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْآخِرِينَ) سورة الصافات.

**ترجمه:** کله چي دوی دواړو غاړه وهغه الهي حکم ته کښيښوده او اسماعيل عليه السلام يه پرهغه راسته اړخ باندي واچوی اومږ ده ته ږغ وکړ په داسي حال کي چي ای ابراهيم عليه السلام په تحقيق سره تاخپل خوب رښتياکړ اوبيشکه چي موږ داسي نيکه جزاورکوو بيشکه چي هم دا ذبحه خاماخا هم دا ابتلاء ازموينه وه ظاهره اوښکاره اوفديه مو ورکړه دغه اسماعيل عليه السلام ته په لويي مذبوحي سره.

په سفرالتکوين کي ذکرسوي دي چي اسماعيل عليه السلام تراسحاق عليه السلام ديارلس کاله مشروو اود ده دقصي دسابق څخه دامعلوميږي چي داواقعه دسحاق عليه السلام دزيږيدلو

(۴) صحيح البخاري ۱ /۴۷۵.

څخه وړاندي واقع سوي وه ځکه د اسحاق عليه السلام د زوکړي زيری د قصي په پای کي راغلي دی د اقصه و مکي مکرمي ته د ابراهيم عليه السلام د يو وخت سفر ثابتوي نو رسفرونه دده په بخاري شريف کي د ابن عباس رضي الله عنه په روايت سره نقل سوي دي چي د هغوی مختصرات په لاندي ډول دی: (٥) کله چي اسماعيل عليه السلام ځوان سو عربي ژبه يې د جرهميانو څخه زده کړه له ده سره د جرهميانو يوه اندازه مينه پيدا سوه ده ته يې يوه ښځه په نکاح باندي ورکړه په همدي وخت کي يې مور مبارکه بي بي هاجره رضي الله عنها وفات سوه په دي وخت کي حضرت ابراهيم عليه السلام هم د دوی د ملاقات او ليدلو د پاره مکي مکرمي ته راغی خو د اسماعيل عليه السلام ښځي د خپل ژوند او زندګي څخه زيات شکايتونه کول ابراهيم عليه السلام ورته وويل چي که چيري اسماعيل عليه السلام راغی ده ته ووايه چي دروازه دي بدله کړه اسماعيل عليه السلام چي راغی ښځي يې ورته هغه بيان وکړ دی مبارک د خپل والد مبارک په مقصد باندي پوه سو هغه ښځه يې طلاقه کړه بيا يې د جوهرد قبيلي د مشر مضاض بن عمرو د لور سره نکاح وکړه ده مبارک چي همدا واده وکړ د هغه وروسته ابراهيم عليه السلام مکي مکرمي ته راغی په دي وار باندي يې اسماعيل عليه السلام ونه ليدی خو د هغه د دويم کوروالسره يې وليدل د هغوی د احوالو معلومات يې وکړ هغي ښځي د الله جل جلاله حمدا وثنا ويلو باندي ده ته د خپل ژوند د سموالي حال ورکړ خپل ژوند باندي شکرګذاره وه ابراهيم عليه السلام ورته وويل چي اسماعيل عليه السلام ته ووايه چي خپله دروازه ټينګه وساته يعني دا کوروالستا د پاره غوره ده دی مبارک بيرته فلسطين ته ولاړی.

دريم وار چي کله ابراهيم عليه السلام و مکي مکرمي ته تشريف راووړ اسماعيل عليه السلام په دي وخت کي د زمزم وا وبو ته نژدي تريوي لودرختي لاندي غشي جوړول کله چي يې خپل پلار مبارک وليدی د ځای څخه ولاړ سو دوی دواړو يو د بل سره په ښه محبت باندي پوښتنه سره وکړه دا ملاقات د دوی د ډير وخت څخه وروسته وه ډير وخت کي دی چي د دوی په مابين کي فراق او جدا والی وو د ايو ګران حقيقت دی چي د داسي مشفق او مهربان پلار لکه ابراهيم عليه السلام د هغه جدا والی دي وزغمل سي او د داسي

---

(٥) صحيح البخاري ١/ ٤٧٥.

زوي لکه اسماعیل ﷺ چې په اولادونو کې داسې صالح اونیک اولاد دی دخپل مبارک پلار فراق وزغمي په همدې وار باندی دوی کعبه معظمه جوړه کړه ابراهیم ﷺ دالله ﷻ په امرباندې خلکو ته اعلان وکړ چې دکعبې مبارکې حج ته راسئ الله ﷻ اسماعیل ﷺ ته دهغه ذکر سوي مضاض دلورځخه (۱۲) زامن ورکړل دهغوی نومونه په لاندې ډول دي: نابت یابنالوط، قیدار، مبشام، مشماع، دوما، میشا، حدد، یتمابطور، نفیس اوقیدمان بیاد دوی ځخه دوولس کورنی جوړې سوې یوڅه وخت ټول په مکه کې ؤسیدل دوی به دیمن، شام، مصر، ترماینن تجارتونه کول دهغه وروسته بیاداکورنی په ټوله عربي جزیره کې حتی چې دهمدې جزیرې ځخه دباندې هم خپاره سول دهمدې معلوماتو ځخه بغیرد قیدار اونابت داولادې ځخه بغیر دنورو په باره باندې نور معلومات نسته.

انباطي تمدن دحجاز په شمال کې ډیرپرمختګ وکړې اودوی هلته یوپیاوړې حکومت جوړکړ بطراء یه پایتخت جوړکړ هیڅا هم د دوی مقابله نه سوای کولای ترڅوچې رومیان راغلل اودوی یه دماینن ځخه یووړل سلیمان ندوي په دې باره معلوماتونه کړي دي دهغه ځخه وروسته یه داسې ویلي دي چې دآل غسان بادشاهان اوانصار (اوس اوخزرج) دآل قحطان داولادې ځخه نه وو بلکه دوی دثابت بن اسماعیل ﷺ اولاده دي.[٦] دقیدار بن اسماعیل ﷺ اولاده په مکه مکرمه کې پاته سول ترهغه وخته عدنان اودهغه زوي معد پیداسو هغه دعدناني عربانو دنسب لړی ترهمدې ځایه پوري په صحیح توګه باندې محفوظ ده. ؤس ستاسو توجوه عدنان دسید البشر ﷺ (۲۱) نیکه دی په یوه حدیث مبارک کې راغلي دي چې کله به رسول الله ﷺ دهغه خپل مبارک نسب سلسله بیانوله کله چې به دی مبارک وعدنان ته ورسیدی وبه دریدی نورنومونه به یه هم نه یادول داسې به یه ویل چې هغه شجره اوسلسله ویونکو دروغ ویلي دي[٧] بعضې علماء بیاد عدنان ځخه لوړ هم درسول الله ﷺ دنسب بیانولو ته جواز ورکوي ځکه هغه په دې باره باندې دابیان سوی حدیث ډیر ضعیف بولي دوی وایي چې دعدنان اوابرهیم ﷺ ځلویښت

---

(٦) تاریخ ارض القران ۲/ ۷۸ ځخه بیاتر ۸۶ پوري.

(۷) الطبري ۱/ ۱۹۱/ تر ۱۹۴/ الاعلام ۵/ ۶

پلرونه تیرسوي دي.[۸] داسي ویل سوي دي چي معدیوزوی درلودی دهغه نوم (نزار) وو دنزار بیا ثلور زامن وو د دوی ثخه اياد، انمار، بریعه، مضر، ثلور لويه كورنۍ جوړي سوي وي ربیعه، اومضر، لوړ وو داكورنۍ نوري پښني هم لري هغه دربیعه كورنۍ چي كومي ثانګي پښني دي:اسدبن ربیعه، عنزه، عبدالقیس، دوائل زامن، بكر، تغلب، حنیفه، اوداسي نور هم سته.

**دمضر قبیله:** داهم په دوو لويو كورنيوچي هغه قیس عیلان بن مضر،اوالیاس بن مضرباندي تقسیم سوي دي بیادقیس عیلان ثخه بنوسلیم قبیله، بنو هوازن، بنو غطفان،اودغطفان ثخه عبس،ذبیان،اشجع،اوغني بن اعصر،اودالیاس بن مضر ثخه تمیم بن مرة، هذیل بن مدركه، بنواسدبن خزیمه، اودكنانه بن خزیمه كورنۍ، اودكنانه ثخه دقریشو قبیله چي دفهر بن مالک بن النضر بن كنانه اولادي ثخه دی دهغه ثخه جوړه سوي ده بیاقریش هم په مختلفو كورنيوباندي تقسیم سوی دی چي هغه مشهوریه جمع، سهم ، عدی،مخزوم، تیم، زهر، اودقصی بن كلاب كورنۍ دي ټولي پښني یعني عبدالله بن قصی اسد بن عبدالعزی، بن قصی، عبدمناف بن قصی، همداكورنۍ دي.

**دعبدمناف كورنۍ پر ثلورو پښوباندي تقسیم ده:** هغه عبدشمس، المطلب، نوفل، هاشم، نومیږي اودهاشم دكورنۍ ثخه دالله ﷻ هغه معزز رسول محمد ﷺ دی چي سلسله یه داسي ده محمد ﷺ بن عبدالله، بن عبدالمطلب، بن هاشم، همدا سیدالبشر ﷺ درسالت دپاره مختار كړل سو.[۹] سیدالبشر ﷺ فرمایلي دي:(ان الله الصطفی من ولدابراهیم اسماعیل واصطفی من ولداسماعیل كنانة، واصطفی من كنانة، قریش واصطفی من قریش بني هاشم، واصطفاني من بني هاشم. رواه مسلم عن واثلة بن الاسقع باب فضل نسب النبی ﷺ ۲/ ۲۴۵/ والترمذي ۲/ ۲۰۱.

**ترجمه:** الله ﷻ دابراهیم علیه السلام داولادي ثخه اسماعیل علیه السلام اوداسماعیل علیه السلام د اولادي ثخه كنانه اودبني كنانه دقبیلي ثخه قریش اود قریشو ثخه بني هاشم او دبني هاشم دقبیلي ثخه یه زه مختار كړی یم.

---

(۸) رحمة للعلمین ۳/ ۷

(۹) محاضرات تاریخ امم الاسلامیة للخضري ۱/ ۱۵/ ۱۶.

دحضرت عباس بن عبد المطلب رضي الله عنه څخه روايت دی چي سيد البشر صلى الله عليه وسلم فرمايي:

ان الله خلق الخلق فجعلني من خير فرقهم وخير الفريقين، ثم تخير القبائل، فجعلني من خير القبيلة ثم تخير البيوت فجعلني من خير بيوتهم فاناخيرهم نفسا وخيرهم بيتا.

رواه الترمذي باب ماجاء في فضل النبي صلى الله عليه وسلم ٣/٣١٠.

**ترجمه**: الله جل جلاله مخلوق پيداکړ زه په ټولو په غوره فرقه اوډله کي وګرزيدلم بيا ددوی په هغه دوو غوره ډلو کي يه هم دهغه زياتي غوري ډلي څخه ګرزولی يم بيايه قبيله غوره کړه زه يه بياترټولو په هغه لوړه قبيله کي پيداکړم بيايه کورنی غوره کړزه يه ترټولو په غوره کورنۍ کي پيداکړم نوزه دخپل ذات په وجه اودخپلي کورنۍ دطرفه ترټولو غوره اود بهترۍ خاونديم.

کله چي هغه اولاده دعدنان زياته سوه نودعربي وطن په هغه مختلفوبرخوکي خپاره سول عبد القيس دبکربن وائل، اودتميم بعضي کورنۍ بحرين ته ولاړل او بنوحنيفه بن صعب، بن علی بن بکر، يمامه ته ولاړل اوپه هغه ځای کي چي نوم يه حجر دی په هغه ځای کي ځای پرځای سول دبکر بن وائل نوري کورنۍ ديمامه څخه بحرين سيف کاظمه، خليج، حتي دعراقي سيمو دشاوخوا لکه ايله، اوداسي هيت پوري ورسيدلي، او دتغليب بعضي کورنۍ دفرات په جزيره کي اوداسي نوري يه دبکر سره ؤسيدلي اوبنو تميم په هغه دښته دبصري کي واړول.

اوبنوسليم قبيله مدينه منوره ته نزدي دالقرى د دري څخه حتى ترخيبره او د خيبر څخه بياد مديني ترهغه ختيځي برخي پوري اودمديني دختيځ څخه بياترجبلين اوپه همدي ترتيب سره ترنجره منطقي پوري خپاره سول اوثقيف په طائف اوهوازن دمکي مکرمي په ختيځ داوطآس په برخه کي چي د بصري اومکی په لاره کي پرته ده هلته ځای پرځای سول.

بنواسد هغه بياد تيما په ختيځ کي اودکوفي په لويديځ طرف کي ځای پرځای سول د دوی اوتيماء ترمايين دطي قبيلي بحترنومي کورنۍ ؤسيدله د دوی دځای څخه ترکوفي پوري دپنځوشپو مزل وو ذبيان کورنۍ وتيماپه طرف کي ترحوران پوري پرته ده دکنانه کورنۍ په تهامه اودقريشو ښنه په مکه مکرمه اوشاوخوا سيموکي

پاته سول خودوی خپل مابيني ډير اختلافات درلودل اتفاق يې نه درلودی بلکه په مشکلاتو باندي سره اخته وو ورک وو ترڅو چي قصابن کلاب ځوان سو هغه دوی سره په اتفاق سول هغه د بدبختۍ او نفاق اوريه په خپل مابين کي مړ کړ خپل ځان يې دوی سره متحد کړ په هغه اتفاقي زنجيرونو يې ځانونه سره وتړل د همدي اتفاق برکت وو چي دوی داسي پرمخ تګ وکړ د قدر او عالي مقام خاوندان سول.[10]

## دعربو حکومت او د دوی امارت

موږ خو په دي کوشش کي سوو چي دعربو هغه تر اسلام مخته حالت ځان ته معلوم کړونو له همدي عزم سره مو دالازمه وبلله چي دعربو هغه حکومت، او امارت، قومونه، او مذهبونه، دتاريخ په باره باندي يوه اندازه تر هر معلومات را مقدم کړو د همدي مطلب دپاره چي موږ ته دا اسانه سي چي د اسلام دظهور وخت او دهغه څېړنه او پيژندنه چي هغه دضروریاتو څخه ده هغه سهولت پيدا کړي وُس توجوه وکړئ: د اسلام تر هغه عالي لمرځرک وړاندي عربي واکداران او قدرت لرونکي پر دوو ډلو باندي ويشل سوي وو يوه ډله يې هغه سي تاج لرونکي بادشاهان وو چي هغوی په حقيقت کي پوره داستقلال او دازادۍ خاوندان وو دويم ډول دقبائلو او کورنيو واکداران او مشيران وو چي هغه هم دبادشاهانو په ډول دپوره استقلال او ازادۍ خاوندان وو او مکمل امتياز لرونکي وو او ډير يې بيا دپوره استقلال خاوندان وو او کيدلای سي چي بعضو نورو به يې ديو بادشاه طبيعت هم درلودی ديمن، ال غسان، الحيره، بادشاهان، تاجدار بادشاهان وو او نوريې داسي دتاج خاوندان نه وو.

## ديمن سلطنت او بادشاهي

په يمن کي دالعاربه عربو دمابين څخه ترټولو پيژندل سوي او معرفي سوی قوم د (سبا) په نامه سره يادېږي د دوی په باره باندي دميلاد څخه وړاندي هغه د (اور) په نامه مځکه کيندنه کي بعضي معلومات په لاس باندي راغلي دي د دوی هغه پرمخ تګ او پراخوالی دميلاد څخه (۱۱) پيړۍ مخته شروع سوي وه د دوی اختيار او واکمني په لاندي ډول دی په يوه اندازه مختلفو قومونو باندي ويشل سوي ده:

---

[10] محاضرات تاريخ امم الاسلامية للخضري ۱/ ۱۵/ ۱۶.

(۱) له(۶۵۰ق،م)څخه هغه وړاندي پیړۍ په دي وختونو کي د دوی بادشاهان د(مکرب سبا) په نامه باندي یادیدل اوپایتخت یه(سرواح)ښاروو خوؤس یه هم په هغه محل کي دمارب ښار په هغه لویدیځ اړخ کي دیوه ورځي دمزل په اندازه باندي په ازاده مسافه کي نشاني لیدل کیږي اونوم یه هم خربیه دی بل دیمن په تاریخ کي هغه مشهور بند (سدمأرب) هم په همدی عصر کي جوړسوی دی داسي ویل کیږي چي دسبا دقوم هغه واکمني اوقدرت په داسي اندازه باندي فراخ سوی وو چي په عربي هیواد کي یه دننه اودباندي زیاتي مستعمري درلودي.(۲)د(۶۵۰م)څخه بیا تر(۱۱۵ق) پوري په دي وخت کي دحمیرقبیلي دسبا بادشاهانو په نامه باندي یادیدل اوپای تخت یه دصرواح څخه ومأرب ته نقل سو په موجوده حالت کي هم د صنعاء وختیځ طرف ته شپیته میله ازاد دهمدي ذکرسوي ښارمأرب علامي او نشاني معلومیږي.(۳)د(۱۱۵ق)څخه بیاتر (۳۰۰م) پوري په دي دور کي دحمیر قبیلي دسبا بادشاهانو ته شکست ورکړ اودمأرب پرځای باندي یه د(ریدان) ښار د پای تختی دپاره انتخاب کړ دهغه څخه وروسته همداشار د(ظفار) په نامه باندي ونومول سوبعضي اثار اوعلامې یه ؤس هم و(بریم) ته نژدي دمدور پرغره باندي پاته دي د دوی انحطاط دهمدي دور څخه شروع سوه د دوی تجارتي حال له ناکامۍ سره مخ سو دلیل یه هم داده چي اول یي دحجاز په شمالي انباطیانو کي خپل تسلط تنګ کړ او د سباقوم یه دهمدي ځای څخه واستی په هغه پسي رومیانو په مصر، سوریا، اود دویم وار دپاره په شمال حجاز باندي دتسلط او قدرت پیداکوني وروسته بحري تجارتي لاري هم ترخپل واک او اختیار لاندي راوستلي اوله دي څخه بغیر دمختلفو قبیلو خپل مابیني اختلافونه هم د دي سبب سوچي آل قحطان په دورکي اوتباهي په څنډه باندي ودریږي اودخپل وطن څخه بي وطنه اودخپل ځای په ارمان سي (۴)له دري سوه (۳۰۰م) کال څخه بیاترهغه اسلامي لمرځرک پوري په همدي دوره کي له دوو قسم قسم کودتاوو سره مخ اودخپل مابیني جنګونو سره لاس اوګریوان وو ترڅودوي هرڅه حتي ازادي هم دلاسه څخه ورکړه په همدي وخت کي رومیان وعدن ته داخل سول حبشیانو ددوی په مرسته باندي همدان اوحمیرقبیلو له داخلي جنګونو څخه په استفادي سره په (۳۴۹م) کال کي داول وار

دپاره یمن تکیه کړ اوتر (۳۷۸م) پوري له همدوی سره وو وروسته بیا یمنیانو بیرته خپله ازادي وګټله لکن په بند دمأرب کي همداوخت درزونه اوچاکونه پیداسول ترڅوپه (۴۵۰م) او (۴۵۱م) کي هغه لوی سیلاب چي قران کریم کي په سیل العرم سره یادسوی دی دارا وبهیدی هرڅه یه یووړل په زیاته اندازه باندي تباهي اوبربادي یه مابین ته راوړه په سنه (۵۲۳م) کي یهودي مشرذونواس دنجران په مسیحیانو سخته حمله وکړه اودایه مطالبه وه چي دوی په زور او زیاتي سره دمسیحیت څخه واړوي لکن کله چي دوی قبوله نکړه نو ذونواس داور کندي ورته وکیندلي هغه مسیحیت باندي ولاړیه په هغه کندو کي داور واچول همداقصه په قران کریم کي په سورة البروج کي اشارةً بیان سوي ده اوداسي فرمایي ﴿قُتِلَ أَصۡحَٰبُ ٱلۡأُخۡدُودِ﴾ **ترجمه**: وژل سوی دي خاوندان دخندقونو. دهمدي واقعي اوپیښي په نتیجه کي نصرانیان دخپل انتقام په خاطر باندي دروم دامپراطور ترمشری لاندي په عربو باندي دتسلط اودخپلي واکمنۍ دفراخوالي په هڅه کي شول په دي وخت کي یه حبشیان راپورته کړل بحري قوتونه یه ورته برابرکړل بالاخره (۷۰۰۰) زره حبشیان سپاهیان پریمن باندي وروختل په (۵۲۵م) کي یه پریمن باندي قبضه وکړه ارياط د دوی حاکم مقرر کړل سونوموړی تریوڅه وخته دیمن حاکم ووچي بالاخره دده دیو فوجي یعني دلښکر دقوماندان ابرهه دلاسه ووژل سوابرهه دقدرت واګي په خپل اختیار کي واخستلي اودا هغه ابرهه دی چي دمکي مکرمي په ورانولو اونړولو کي ده لښکر تیارکړی وو او ومکي مکرمي ته را ووتل دی اوخپل لښکر داصحاب الفیل په نامه باندي یادیږي دهمدي الفیل دواقعي څخه وروسته یمنیانو له فارسیانو څخه مرسته وغوښتله بالاخره یه کلک مقاومت وکړ په هغه نتیجه کي یه حبشیان دخپل وطن څخه خارج کړل اوپه سنه (۵۷۵م) کي یه دمعدیکرب بن سیف ذی یزن الحمیرترمشرتابه لاندي خپلواکي او ازادي اعلان کړه په دي وخت کي یه معدیکرب بادشاه مقرر کړ نوموړي څه اندازه حبشیان دخپل خدمت په خاطرباندي دځان سره وساتل ترداسي وخته چي دی یوه ورځ دهمدي حبشي خادمانو دلاس ښکارسو د ده په مرګ سره د ذي یزن دکورنۍ حکومت هم پای ته ورسیدی په دي

پسي کسری په صنعاء کي فارسي والي مقرر کړل سو په دي وخت کي يمن دفارس يو ولايت اعلان کړل سو په همدي سلسله کي تر (۶۳۸م) پوري يه دوام درلودی لکن په همدي کال باندي فارسي والي (باذان) هم اسلام راوړی په همدي بيان سوي ترتيب باندي پريمن دفارس دتصرف اوتسلطي حکم پای ته ورسيدی.

## دالحيره بادشاهي

په عراق کي او دده په هغه شاوخواعلاقوکي دروش، کبير، خورس، ياسائرس، ذوالقرنين، (۵۲۹ق م) کلونو پوري بادشاهي چليدله دا د دوی هغه دزور اوتوان وخت وو يوچايه هم دمقاکال کي اسکندرمقدوني دفارسيانو وبادشاه ته ماتيه ورکړه اوپه دي ډول سره همدادولت تجزيه سوملک اطوايفي درباندي حاکمه سوه همدالړی تر (۲۳۰م) پوري جريان کي وه په همدي وخت کي قحطانيانو هجرت وکړ دعراق بعضي هغه کليوالي علاقي يه قبضه کړي په دوی پسي عدنانيان راغلل د دوی سره دزور زياتی څخه وروسته يه دفرات دجزيري څخه څه حصې قبضه کړي.
فارسيان د دويم وار دپاره د (۲۲۶م) کال څخه را په دي خوا باندي دساساني دولت دبنسټ ايښودونکي (اردشير) په دوره کي دقدرت خاوندان سول موصوف فارسيان سره متحد کړل پرهغه همسايه عربويه قبضه وکړه نتيجه يه هم داسوه چي د قضاعه قبيلي خلګ دشام په تللو باندي مجبور سول حيره او انبارهم داردشير تراولکي لاندي راغلل داردشير په دوره کي په حيره او دعربي جزيري په هغه کليوالي سيمو اوعلاقو کي هغه وسيدنکي قبيلي لکه مضر او ربيعه والي جزيمة الوضاح نوميده او ارشيرپه دي باندي پوه وو چي پرعربانو باندي حکومت کول او د دوی دحملو څخه ځان ساتل ترهغه وخته امکان نلري ترڅوچي دوی باندي يه يو داسي څوک مقررکړی نه وي چي دقومي او ملي قوت څخه برخمن وي اوبل په قوم کي هم ځای ولري اوداهم وکوي چي دروميانو سره دمقابلي په وخت کي د دوی مرسته راوړي اوهم دعراق عرب دروم ترقبضي لاندي شام دعربو په مقابل کي امده کړي هم دارنګه دالحيري دوالي سره په دفارسي لښکرونو يو غونډ هم موجود وو ترڅو چي دحکومت په خلاف دهغه صحرانشينو عربانو دقيام په ټکولو کي دهغه څخه کاروا خلي جذيمه د (۲۶۸م) په شاوخواکي دهمدي دنيا څخه رحلت کړی دی.

دجزیمه دمرګ څخه وروسته دسابورین اواردشیرپه دوره کي عمروبن عدی بن لفراللخمي دلخمیانو اولین حاکم دحیري والي وټاکل سو لخمیانو ترهغه وخته پرحیره باندي حکومت کاوی ترڅو چي قباذبن فیروز دفارس واکدار مقرر کړل سوپه همدي وخت کي مزدک هم موجود سو موصوف دفساد، فحشاء، اود اباحیت وطرف ته بلنه شروع کړه قباذ اونورو ډیرو دمزدک داخواهش قبول کړ وروسته قباذ دحیري مشر المنذر بن ماء السماء ته لیک واستوی اوهغه ته یه هم دانوی دعوت ورکړ لکن هغه دخپل هغه یوه اندازه غرور له وجي څخه هم دا دعوت ته لبیک نه وو ایو قباذ هغه عزل کړ پرځای باندي یه یو دمزدکي مذهب لارتلونکی حارث بن عمروبن حجر الکندي دحیري والي مقررکړله قباذ څخه وروسته دفارس مشرتابه ته کسری نوشیروان ته ورپه غاړه سوه نوموړی دمزدکي مذهب سره زیات بغض اوعناد درلودی مزدک اودهغوی زیات پیروان یي مړه کړل منزر یه بیرته دحیري والي مقرر کړ حارث یه راطلب کړ هغه په دي وخت کي ودارکلب ته وتښتیدی په هغه ځای کي وفات سو له منذر بن ماءالسمار څخه وروسته حکومت له دوی سره وو ترداسي وخته چي دنعمان بن منذر دور شروع سو په همدي وخت کي دزید بن عدی العبادي دنعمان پرخلاف باندي یوه مقدمه جوړه کړه دهمدي توطئي په نتیجه کي کسری ورته په غوصه اوقهرسو هغه یه راطلب کړ په دي وخت کي نعمان په پوشیده حالت سره اول وآل شیبان مشرهائي بن مسعود ته ورغلی خپل مالونه او اولاد یه دهغه سره پریښوول دهغه وروسته دکسری پرطرف باندي ولاړی کسری هغه بندي کړ ترهغه وخته چي هغه په بندیخانه کي وفات سو بیایه دده پرځای باندي دیاس بن قبیصه الطائي دحیري والي مقرر کړ هغه ته یه امر وکړ چي له هائي بن مسعود څخه دنعمان مال طلب کړي خوهائي قبوله نکړه چي دنعمان مال ورکړي بیا کسری دهائي پرخلاف باندي دجنګ اعلان وکړ اوخپل لښکر یه دایاس په مشري باندي دهغه پرطرف باندي ولیږل په همدي ترتیب سره د ذي قار په علاقه کي د دواړو ترمابین زیاته نیښته وسوه چي دهمدي جنګ په اخرکي بنوشیبان کامیابي ترلاسه کړه فارسیان دشکست سره مخ شول اوهمدا اول وار وو چي عربانو وعجموته ماتیه ورکړه داپیښه دسیدالبشر ﷺ ترولادت څه موده وروسته وسوه سیدالبشر ﷺ

پرحیره باندي داياس بن قبيصه دحكمرانۍ له شروع څخه اته میاشتي وروسته دنیاته راغلی ووپه ایاس پسي کسری دحیري ولایت یوه فارسي نژاده شخص ته وسپاری لکن په (۶۳۲م) کال کي دحيري ولايت بيرته دال لخم کورنۍ ته په لاس باندي ورغلی اوهغه منذر چي هغه په معرور باندي یه شهرت درلودی هغه والي مقررکړل سو خو دده دولایت اته میاستي نه وي پوره سوي چي دخالدبن ولید ﷺ ترمشرتابه لاندي اسلامي اوقهرمان لښکر ورداخل سو.[11]

## دشام حکومت

په هغه وخت کي چي عربو ديوو ملک څخه وبل ملک ته هجرت کاوی په همدي وخت کي دقضاعه دقبيلي بعضي ښاخونه دشام په علاقو کي ؤسيدلو د دوی تعلق دبنوسليم بن مروان سره وو اوپه دوی کي يوښاخ بنو ضجعم بن سليم وو هغه دضجاعم په نامه سره شهرت درلودی رومیانو همداکورنۍ دځان کړي غوښتل یه چي په دوی سره ديوي خوا دصحرا او وچي دعربو مخنیوی وکړي اودبل طرف څخه دفارس په مقابله کي د دوی څخه فائده واخلي په همدي ترتیب سره یه د دوی دپاره جدابادشاه مقرر کړ د دوی بادشاهي د دویمي میلادي پیړۍ له شروع څخه تقریبا تر اخره پوري دوام درلودی ترهغه تولو مشهور بادشاه یه زیاد بن الهبوله وواو ددوی دبادشاهي لړۍ هغه وخت پای ته ورسیدله چي دال غسان کورنۍ وضجاعمه ته شکست ورکړ په همدي ترتیب سره درومیانو دطرف څخه دشام بادشاهي هم آل غسان ته وسپارله سوه نوموړي کورنۍ درومیانو دمزدورانو په صفت باندي تر(۱۳هـ) پوري دشام پرعربو باندي حکومت وکړ خو په نوموړي کال کي دحضرت عمر ﷺ دخلافت په دوران کي دیرموک دغزا په نتیجه کي د دوی حکومت پای ته ورسيدی او ددوی وروستنی بادشاه دجبله بن الايهم اسلام راوړی اوله مسلمانانو سره یوځای سو.[12]

## دحجاز بادشاهي

---

[11] محاضرات تاريخ الامم الاسلامية للخضري ۱/ ۲۹ څخه تر ۳۲.

[12] نفس المصدر ۱/ ۳۴/وارض القران ۳/ ۸۰ و ۸۳.

دایو مشهور حقیقت دی چي دمکي مکرمي ابادي داسماعیل عليه‌السلام څخه راشروع
سوي ده د ده عمر(۱۳۷) کاله وو دی ټول عمر دمکي مکرمي مشر او دبیت الله
شریفي متولي وو اوهم دوحی څخه وروسته د ده زامن دبیت الله شریفي په مشرتابه
باندي مسؤل وو په یوبل روایت کي بیاداده چي نیابت یه په غاړه باندي واخست او
تردي وروسته دمکي مکرمي مشرتوب د دوی نیکه مضاض بن عمرو الجرهمي ته
وسپارل سو خوداسماعیل عليه‌السلام اولاده که څه هم د دوی مشري نورو سره وه خودوی د
زیات قدر اوعزت خاوندان وو دلیل یه همداوو چي د دوی پلار اونیکه کعبه
معظمه جوړه کړي وه دوخت په تیریدلو سره داسماعیل عليه‌السلام داولادي نوم اونښان
دورکیدلوپرطرف باندي روان وو جرهمیان دبخت نصر له عصر څخه مخکي
کمزوري سول اوپه همدي وخت کي دمکي مکرمي پرسیاسي اسمان باندي دعدنان
دکورنۍ ستوري وځلیدل په (ذات عرق) کي پرعربو باندي دبخت نصر دتیري په
باره باندي رانقل سوي روایت هغه دی چي وای په همدي پیښه کي دعربو مشر د
جرهم دقبیلي څخه نه وو زموږ دهغه یادي سوي خبري تاکید کوي دعدنان کورنۍ
دبخت نصرد دویمي حملې (۵۶۷ق،م) په وخت کي یمن ته وتښتیدل برمیا عليه‌السلام چي
دبني اسرائیلو نبي وو هغه معد له خپل ځان سره شام ته بوتلی کله چي دبخت نصر
فشارونه اوتکالیف ورباندي کم سول معد بیرته ومکي مکرمي ته راستون سو په
هغه وخت کي دجرهمیانو څخه په مکه کي خاص جرشم بن جهلمه پاته وو معد دهغه
دلو رسره نکاح وکړه دهغي څخه یه یوزوی (نزار) پیداسو دجرهمیانو وضعیت نور
هم مخ پرخرابیدو سو څوک چي به مکي مکرمي ته راتلل دوی به هغوی باندي
ظلمونه کول دکعبي مبارکي ټول مالونه یه دځان دپاره خاص کړل د دوی همدي کار
عدنانیان په قهر اوغصه باندي کړل اوکله چي دخزاعه قبیلي خلگ په مرظهران
منطقه کي ځای پرځای سول دوی ولیدل چي دجزهمیانو او عدنانیانو وضعیت ښه
نه وو دوی له همدي وضعي څخه په استفاده سره او دعدنان قبیلي دبعضو کورنیو
په مرسته باندي یه دجرهمیانو په مقابل کي جنگ شروع کړ بالاخره یه د دوهمي
میلادي پیړۍ په نیمائي کي جرهمیان له مکی مکرمي څخه و ایستل اودمکي
مشرتوب دوی پخپله غاړه باندي واخست جرهمیانو چي کله مکه

مکرمه پریښووه دزمزم په څاه کي یه بعضي شیان واچول دڅاه خوله یه ورپټه کړه ابن اسحاق وایي عمرو بن الحارث مضاض الجرهمي دکعبي معظمي دوې هوسۍ اوحجراسود دواړه دزمزم په څاه کي ښخ کړل دهغه وروسته دخپلو ملګرو سره ویمن ته ولاړی دمکي معظمي پریښودل وجرهمیانو ته د زیات غم او پریشانی سبب سو په دي باره باندي عمرو داسي وائي:

کـان لـم یکـن بـین الحجـون الـی الصـفا
انـیس ولـم یسمر بمکـة سـامر
بلـی نحـن کنـا اهلهـا فابادنـا
صـروف اللیـالي والجـدود العـوائر

ژباړه: ته به داسي وایي چي دحجون اوصنعا ترمابین هیڅوک نه وو (اشنا او دوست نسته) اوته دمکي مکرمي دشپې دطرف څخه جوړ سوو محفلونو کي کوم قصه ویونکي دشپې قصې ویلي دي. موږ دهمدي ځای ؤسیدونکي یو خو دوخت ناکردو اوخرابو قسمتونو اوهغه نیمګړیو نصیبونو تباهي اوبربادي راکړه اسماعیل عليه السلام په شلمي قبل المیلاد پیړۍ کي تیرسوی وو نو په همدي سره ویلای سو چي هغه جرهم قبیله تقریبا یو ویشت پیړۍ په مکه مکرمه کي ؤسیدلي اوشلو پیړیو په شاوخواکي یه حکومت کړی دی په دوی پسي دمکي مشرتوب دخزاعه کورنۍ په غاړه واخست هغوی ته ورسیدی لکن درې هغه لاندیني مسئولیتونه دمضر وکورنۍ ته پاته سوي دي :(۱) دعرفات څخه ومزدلفي ته خلک لیږل اوپه یوم النفیر یعني هغه دذی الحجي د دیارلسم په ورځ باندي له مني څخه دتللو اجازه ورکول دا وظیفه دبنو الغوث بن مرة چي دالیاس بن مضر دکورنۍ څخه وو پرغاړه باندي واخسته دوی ته صوفه ویل کیږي دیوم النفیر په ورځ به ترهغه پوري بل هیچا هم جمرې نه ویشتلي تر داسي وخته چي دصوفه یوو نفر به ویشتل نه ووکړي کله چي به خلک دجمرې دویشتلو څخه فارغ سول دصوفه خلکو به دعقبي دواړي خواوي ونیولي ترهغه وخته به چاته دتللو اجازه نه وه ترڅو چي به دوی ټول نه ووتللي کله چي به دوی ولاړل بیابه نور خلکو ته دتللو اجازه ورکول کیدله دصوفه ترختم کیدلو وروسته

دامیراث دتمیم قبیلي دبنو سعد بن زید مناه کورنۍ په غاړه واخست .(۲) دنحر (قربانۍ) یالوی اختر په سهار مزدلفي شریفي څخه مناته تلل وو داکار بیا دبني عوان پرغاړه باندي وو.(۳) دالاشهرالحرام څخه ورسته یامخته کول چي دا دبني کنانه قبیلي دبني تمیم بن عدی کورنۍ اوظیفه وه هغه وخت هم دوی دالاشهر الحرام احترام کاوی په دي میاست وکي به دوی جنګونه نکول کله چي به جنګ روان اوجاري وو بیابه یه همداسي فیصله اوپریکړه کوله چي دا میاشتي به وروسته کوو یعني ؤس به جنګ ته ادامه ورکوو اوبیاپه راتلونکي میاشتو کي به الاشهر الحرام راوګرزوو.پرمکه مکرمه باندي دخزاعه دقبیلي مشري درې سوه کاله وه د دوی په دوره کي عدنانیان په نجد، بحرین، اودعراق په شاوخواکي خپاره سول د قریشو بعضي کورنۍ لکه حلول، اوحرم اودبني کنانه هغه مختلفې پښې دمکي مکرمي په څنډو کي پاته سوې خو دوی دقصی بن کلاب تروختة دمکي مکرمي په کارونو کي هیڅ ونډه هم نه درلوده.دقصی په باره باندي ویل کیږي چي دی لادمور په غیږ کي وو چي پلار یه وفات سو د ده مور دبنی عذره دکورنۍ دربیعه بن حرام سره واده وکړ او ورسره دهغه اصلي وطن هغه دشام سرحدي علاقي ته ولاړه خوکله چي قصی ځوان سو بیرته ومکي مکرمي ته راغوپه دي وخت کي دمکي مشر د خزاعه کورنۍ حلیل بن حبشه وو قصی دهغه دلور (حبي) سره نکاح وکړه کله چي حلیل وفات سو دخزاعه او قریشو ترمابین جنګ شروع سو په اخر کي دمکي مکرمي ټول کارونه قصی په خپله غاړه باندي واخستل هغه داکارونه کول.

## دهمدي جنګ دسببونوپه باره باندي درې روایتونه نقل سوي دي

(۱) کله چي قصی دمالونو اوډیرو سړو خاوندسو حلیل هم وفات سو ده خپل ځان د کعبي شریفي دمشرتابه دپاره تر خزاعه اوبني بکر مختار وباله دابه یه ویل چي څرنګه قریش داسماعیل ﷺ داولادو مشیران دي دارنګه باید مشرتوب هم باید له دوی سره وي په دي باره یه دقریشو اوبنی کنانه سره خبرې اومشورې شروع کړې دوی یه هم خبره قبوله کړه په یوو اتفاق یه خزاعه اوبني بکر دمکي مکرمي څخه خارج کړل.(۲) دویم دخزاعه په ګمان باندي حلیل توصیه کړي وه چي دکعبي معظمي مشرتوب به وقصی ته سپارل کیږي .(۳) حلیل دمکي معظمي مشرتوب

وخپلي لور (حبي) ته سپارلی وو او ابو غبشان خزاعي په ورته وکیل کړی وو په
همدي ترتیب سره د کعبي معظمي مشري د (حبي) په نمایندګي سره دابو غبشان په
غاړه باندي وو خو کله چي حلیل وفات سو قصی دامشرتوب له ابو غبشان څخه په
یوو زي (مشک) دشرابو باندي واخستله حال داوو چي خزاعه ورباندي قانع نه سو
اودایه غوښتل چي قصی دکعبي معظمي څخه منعه کړي نو قصی هم ددوی
دمقابلي دپاره دقریشو اوبني کنانه خلګ سره راجمعه کړل ترڅو چي خزاعه دمکي
څخه وباسي اودوی ټول په دي خبره باندي دقصی سره متحد سول په هر ترتیب کله
چي حلیل وفات سو صوفه خپل کارونه وسرته ورسول یو وخت قصی دقریشو او
کنانه سره یوځای دعقبی سره د دوی مخته ودریدل اوداسي یه ورته وویل د همدي
کار په سرته رسولو باندي موږ ترتاسو حق داره یو اوپه هم دي باندي سره مقابله
شروع سوه خو په اخر کي قصی ورباندي کامیاب سو په همدي سره خزاعه او بنو
بکر دقصی طرف پریښووی قصی هم د دوی پر خلاف باندي دجنګ ډګر ته مخه کړه
سخت جنګ شروع سو دواړو طرفونو ته سخت مالي اوبدني نقصانونه ورسیدل
بالاخره دوی په مصالحه باندي سره راضي سول اودبني بکر دکورنۍ یو غړی یعمر
بن عوف یي ثالث بالخیر سو هغه په داطور باندي پریکړه وکړه چي دمکي معظمي
دمشرتابه دپاره یه قصی ترخزاعه مختار اوغوره سو قصی که څوک وژلی وي
دهغه ویني ورته بخښل سوي دي خو خزاعه ا وبنو بکر به دوژل سوو کسانو دیتونه
ورکوي اوکعبه معظمه دي وقصی ته پریښوله سي موصوف له همدي ورځي څخه
په شداخ باندي ونومول سو قصی دپنځمي میلادي پیړۍ په نیمائی برخه یعني
(۴۴۰م) کال کي دمکي مکرمي مشري په غاړه واخستله او په دي ډول پر مکه
مکرمه باندي دخزاعه مشري ترپایه پیداکړه دقریشو اوقصی دمشرتابه دوره پیل
سوه قصی خپل قوم دمکي دشاوخوا څخه راټول کړ هري قبیلي ته یه جدا جدا
ځایونه مقرر کړل النساة، آل صفوان، عدوان اومرة بن عوف ته یه خپلي خپلي دندي
مقرري کړي ځکه ده پرحان باندي دالازمه بلله چي پوره یه اداکړي.
دقصی بل هغه دیاداوری اومهم کارداوو چي دکعبي شریفي وشمال ته یه دا
الندوه (دمشوري دپاره کوټه) جوړه کړه دهمدي کوټي دروازه وکعبي معظمي ته

راختلي وه قريش به دلته دخپلو مهمو مسئلو دحل او فصل په خاطر باندي راجمعه کيدل هغوی دي کوتې ته په زياته درنه سترګه باندي کتل دليل هم داوو چي دهمدي کوتې دبرکت په خاطرباندي د دوی ترمابين اتحادراغو اويو والی راغلی وو ه همدي ځای کي به د دوی هغه لوړ لوړ مشکلات حل کيدل څه پيښه چي به وسوه هغه به حل کيده.

## قصی پخپله د همدا تشريفاتي دندو مسئول وو

(۱)د دارالندوي مشرتوب به قريشو دخپلو مهمو مسائلو په باره باندي مشوري کولي اوهم به يه دخپلو لوڼو ودونه هم دلته ترسره کول عقدونه اوتړونونه به هم دلته کيدل .(۲) اللواء هغه دجنګ بيرغ به له ده څخه بغير نه پورته کيدی.(۳) الحجابه دکعبي شريفي دروازه به تنها ده خلاصوله اوهم به يه ده خدمت اوسرپرستي کوله تصرف يه دد ه په غاړه باندي وو.(۴) حاجيانوته اوبه ورکول په خورما اوممیزو باندي به يه هغه خوږي سوي اوبه بربرولي دحج په دوران کي به يه په حاجيانو باندي دا اوبه چښلي.(۵) وحاجيانو ته خورکه ورکول (رفادة الحاج) داهغ خورکه وه چي دوی به وحاجيانو ته دمهمانی په حالت کي ورکاوی قصی پرقريشو باندي دا لازمه کړي وه چي دحج په دوران کي ده ته يوه اندازه مال ورکړي دهمدي دپاره چي دی وهغه ناتوانه اوبي وسه حاجيانو ته خوراک ورباندي برابرکړوي.

داټول کارونه دقصی زمه واري وه نوموړی لاژوندی وو چي د ده زوی عبدمناف دلوړ منزل اومقام خاوندسو لکن عبدالدار ترهغه مشروو له همدي وجي څخه قصی ورته وويل چي ای عبدالداره !زه به تاپه قوم کي مطرح کوم که څه هم دوی ترتاتکړه اودعزت خاوندان وي اوستاڅخه ميدان وړونکي وي په همدي بنسټ باندي يه وعبدالدارته د دارلندوي، حجابه، اللواء، السقايه، الرفاده، دهمدي ټولو مسؤليتونه وسپارل داسي حالت وو چي دقصی خبره پرهرچا باندي مؤثره وه يوچاهم نه ردوله دهغه هر امر که دد ه په ژوندکي وو اوکه دمرګ څخه وروسته وو داسي وو لکه يو ديني حکم اوهم داوجه وه چه د ده ترمرګ وروسته هم دده امر پرځای باندي پاته وو زامنو دمخالفت څخه بغير د ده حکم پرځای کاوی کله چي

عبد مناف وفات سو بیا دهغه زامنو دخپل اکا عبد الدار له زامنو سره دهمدي دندي پرسرباندي اختلاف شروع کړ.
په همدي وجه باندي قریش پردوو ډلو باندي ویشل سوي دي اودانژدي وه چي ددواړو ډلو ترمابین سخته جګړه وسوه بالاخره ددوی ترمابین صلحه وسوه هغه ذکر سوي منصبونه یه سره تقسیم کړل السقایه، او الرفاده، دعبد مناف دزامنو مسؤلیت وو او دارالندوه، اللواء، الحجابه، له بني عبدالدار سره پاته سول دهغه وروسته عبد مناف هم په خپل مابین کي قرعه اندازي وکوله یعني پچه هسک یه سره واچاوو دا مسؤلیت دهاشم بن عبد مناف په برخه باندي سو ترهغه وروسته عبد المطلب بن هاشم بن مناف دهمدي منصب دپاره انتخاب سول دا دنده السقایه، الرفاده، دعبد المطلب دزامنو سره وو ترڅو چه اسلام راغی په همدي وخت کي نور منصبونه او وظیفي یه هم په غاړه لرلي چي په مابین کي یه سره تقسیم کړي وي اویو ه دیموکراتیک دولت ته ورته اداره یه جوړه کړه داوسنی زماني دپارلماني تشکیلاتو په رقم تشکیلات یه درلودل اوهمدا اداري ورڅخه عبارت دي.
(۱)- الایسار: دویش په خاطرباندي پربتانو باندي پچه اچول دادنده دبني جمع په غاړه وه. (۲) تحجیر الاموال: یعني بوتانو ته دهغه وړاندي سویو هدیو اودهغه هدیه سویو نذرونو اوقربانیوبربرول دشخړو اودښمنیو اوداسي نورو مسائلو حلول دادنده اومسؤلیت له بني سهم سره وو. (۳) شوری: دهغه مسؤلیت دبني اسدپه غاده وو. (۴)الاشناق:د دینونو اوجریموتنظیمول داد بني تمیم وظیفه وه. (۵) العقاب: دملی بیرغ وړل اوپورته کول دا دبني امیه دنده وه.
(۶)-القبه: دلښکرونو برابرول اود اسانو مشر داد بني مخزوم وظیفه وه.
(۷)- السقایه: دامسؤلیت دبني عدی پرغاړه باندي وو.

## قحطاني اوعدناني قبیلي

په اول کي دا ذکر سوی دی چي قحطاني اوعدناني قبیلي دعربي جزیرې وهغه مختلفو برخو ته هجرت وکړ اوداسي موهم وویل چي دمکمل ملک عرب دهغه قبائلو ترمابین تقسیم سوی وو دهمدي څخه وروسته دامارتي سرداریانو نقشه په لاندي ډول باندي وه هغه قبیلي چي وبحیري ته نژدي وي په حیره کي دعربي

بادشاهانو ترظاهري نفوذ اودهغوی تراغیزي لاندي وي اوهغه چي وشام ته پیوست
وي هغه بیا دغسانسه بادشاهانو ترحکمراني اوتسلط لاندي وي لکن حقیقت
داسي وو چي دوی عملا دهمدي بادشاهانو تابعیت نه درلودی اوهغه قبیلي چي
دجزیري په منځنیو برخو کي اوسیدلي هغه په مکمل طورباندي ازادي
اوخودمختاره وي دي قبیلو قسم قسم رئیسان درلودل هره قبیلي دیوه کوچني
دولت غوندي حیثیت درلودی چي هغه دسیاسي تشکیل اوجوړښت اساس یه په
قومي اتحاد او د پردیو څخه دوطني دفاع په اړوند په مشترکو ګټوباندي ولاړوو
دهري قبیلي مشرتوب چي یه کاوی هغه دبادشاه غوندي وو دوی ټولو به یه په سوله
اوجنګ کي اطاعت کاوی دهغه نظریه به وهرچاته منظوره وه اوخپلي غوښتني به یه
دیوو دیکتاتور په رقم باندي پردوی تحمیلولي اوکله چي به کوم مشرپه غصه
کیدی تردي وړاندي به زیاتي توري دتیکو څخه وتلي وي چابه هیڅ دپوښتني
جرأت هم نه درلودی چي داڅه علت دی؟ خویوشي چي مشیران به یه دهغه عادي
اشخاصو سره ومعاملي ته مجبوره کول هغه به دمشرۍ اوقدرت لاس ته راوړلو
دټبرونو ترمابین مسابقه اومقابله وه هریوو به کوشش کاوی چي په میلمه پالنه، او
غیرت، حلم اوداسي زغم کي له نورو څخه پرمخ تګ وکړي ترڅو دخلګو خاص
بیادشاعرانو چي هغوی دقوم دژبي حیثیت درلودی په مابین کي ځای پیداکړي
اومقبولیت حاصل کړي.
رئیسانو خاص اوفوق العاده حقونه درلودل رئیس به دغنیمت په مال کي دالمربع
یعني دڅلورمي حصي او الصفی دهغه چي دویش څخه مخته یه رئیس دځان دپاره
اخلي النشیطه: هغه چي ورئیس ته په لاره کي وړاندي له دي څخه چي مالونه قوم ته
رسیږي په لاس باندي ورځي. الفضول: یعني هغه چي دویش څخه اضافي پاته سي
یعني هغه څه چي په جنګ کونکو باندي پوره نه تقسیمیږي لکه آس، اوښ، اوداسي
نور و په نامه برخي درلودي په دي باره باندي یوشاعر وایي:

لک المرباع فيناوالصفايا وحکمک والنشيطة والفضول

ترجمه: زموږ په مابین کي ستاسو دپاره دمال غنیمت څلورمه حصه ده او مقرر مال دی او هغه مال دی چي دهغه فیصله تاسو کړي وه او هغه مال به په لاره باندي حاصل سي او هغه مال چي هغه دتقسیم څخه وساتل سي.

مرباع: دغنیمت دمال څلورمه حصه.

صفی: هغه مال دی چي دتقسیم څخه مخته دمشر دپاره مقرر سوی وي.

نشیطه: هغه مال دی کوم چي به اصل قوم ته رسیدی دسردار تررسیدلو مخته.

فضول: هغه مال چي دتقسیم څخه وروستهراندي باقي پاته وي او هغه دغازیانو پرتعداد باندي برابر، برابر تقسیم نه سي دمثال په طور هغه پاته سوي اسونه، اوښان، اوداسي نور داټول یو قسم مال وو کوم چي به دسردارانو حق شمیرل کیدی.

**حالت سیاسي**: دعرب دجزیرو دحکومتونو اوبادشاهانو په باره مو خبري وکړي بي ځایه به نه وي وس غواړو چي د دوی پرسیاسي حالت باندي هم یوه اندازه رڼا واچوو دهغه دروسیموکومي چي وپولوته نزدي وي دهغوی سیاسي حالت ډیرخراب وو هلته خلک پردوو برخو باندي ویشل هغه بادار، غلام، حاکم، محکم باندي تقسیم وو هره ګټه به دبادارانو خاص دپردیو دپاره وه هرتاوان نقصان جریمه به دغلامانو یامحکومو په برخه باندي وه په یوبل عبارت باندي په هغه ځای کي رعیت لکه یو زراعتي فارم داسي وچي ټول حاصلات به یه دحاکمانو او واکدارانو په خوندونو، مصارفو، چړچو ظلمونو اوتجاوزاتو کي مصرفیدل خورعیت به قسم قسم ترخه حالتونه اوتکالیف تیرول که به هرڅونه زور اوزیاتی وړباندي کیدی دیوچا حقوق هم په دي حالت کي محفوظ نه وو ودي برخو ته نژدي هغه پرتي قبیلې هم داسي مذبذبه اوداسي بي ارادي وي کله به یه دخپل هوا اوهوس په خاطرباندي عراق اویابه کله وشام ته منتقل کیدل اودجزیرې په مابین کي پرتي قبیلې هم یو دبل څخه جدا وي دوی باندي هغه قومي، نژادي، اوداسي دیني تعصبونه مسلط اومقرر وو له دوی څخه یوشخص داسي وایي:

| غویت وان ترشد غزیة ارشد | وماانا الامن غزیة ان غوت |
|---|---|

ترجمه: زه هم دغزي دقبيلي څخه يوغړى يم كه هغوى په غلطه اوناسمه لاره باندي ځي زه هم پرهمدي غلطه لاره باندي تلونكى يم اوكه سمي لاري ته ځي نوزه هم په سمه لاره باندي ورسره روان يم دوى داسي څوک نه درلودى چي د دوى دهغه استقلال او ازادى تائيد اوملاتړي وكړي اويا دمشكلاتونو اوسختيو په وختونو كي مخ هغوى ته ور واړوي اويا دمشكل په روڼ كي يه ودوى ته فائده ورسيږي خوهغه وخت خلكو دحجاز حكومت په حقيقت كي د ديني اودنيوي مشرتابه اوزعامت يو ګډ شكل وو له حرم څخه دباندي خلكو ته يعني عربو ته يه د ديني مشرتابه حيثيت درلودى خوپه داخل دحرم كي اوپه شاو خوا نژدي كي يه ديو داسي حكومت حيثيت درلودى چي دكعبي معظمي څخه دراتلونكو زيارتكونكو اشخاصو داموروو مشرتوب اود هغه ابراهيمي شريعت جاري كيدل اودهغه تطبيق يه په غاړه باندي وو په همدي حكومت كي دموجوده دور وپارلمان ته ورته تشكيلونه اوهمداسي يه اداري درلودي خوپه هيڅ صورت هم دايو پياوړى اوټنګ حكومت نه وو اوخپلي دندي يه په ښه توګه باندي وسرته نه سواى رسولاى په خپلو كارونو كي په اخره اندازه باندي مانده اوپاته وو اوهمدا حقيقت دحبشيانو دتجاوز اوتيري په ورځ باندي ښه واضح طور باندي معلومه هم سوه.

## دعربو اديان، اومذاهب

په عام طور عربو خو داسماعيل عليه السلام دعوت قبول كړى وو اود ابراهيم عليه السلام د دين تابع دار وو دهمدي وجي څخه يه تنها ديوه الله جل جلاله عبادت ته مخه كړي وه پر وحدانيت دالله جل جلاله باندي په كلكه باندي ولاړوو لكن دوخت په تيريدلو سره دوى دالله جل جلاله دكتاب په د درس يوه برخه د ذهن څخه وايستله بياهم په دوى كي توحيد او ابراهيمي شعائر موجود وو ترداسي وخته چي د بنو خزاعه سردار عمرو بن لحى انتخاب سو دى يوزيات نيک شخصيت ووپه صدقات، خيراتونو كي اوداسي نورو ديني خدمتونو كي يه زياته همكاري كوله دهمدي وجي څخه به خلكو ده ته په زياته مينه سره كتل دى به يي دمشرانو علماؤ اوصلحاؤ اولياؤ څخه شميري په يو وخت كي هغه وشام ته سفر وكړ كه ګوري چي خلک هلته دبوتانو عبادت باندي مشغول دي داكاريه خوښ سو داسي ګمان يه وكړ څرنګه چي دا درسولانو او اسماني

کتابونو د نازیدلو وطن دی همدا بت فرستي به هم حقه وي او د همدي گمان په اساس باندي يه دځان سره يو بت چي هغه د (هبل) په نامه باندي يادېدی رايه وړی دکعبي معظمي په مابين کي يه ودراوی او هغه نور دمکي مکرمي خلک يه هم وبت پرستۍ او شرک ته را وبلل دوی هم د ده بلنه او غوښتنه قبوله کړه لږ وخت وروسته دحجاز خلگو هم دشرک او بت پرستۍ لاره اختيار کړه دکعبي دمشرکانو سره په بت پرستۍ کي شريک سول[13] دعربو ترټولو هغه اولين بت د (منات) په نامه باندي وو چي هغه دسري بحيري پر څنډه باندي قديد ته نژدي دالمشلل په علاقه کي پروت وو[14] په هغه پسي (لات) په نامه باندي بت يه په طايف کي ودراوی بيايه په هغه وادي النخله کي چي هغه ديوځای نوم دی د (العزی) په نامه باندي بت مقرر کړ همدغه دري ترټولو د دوی هغه لوړ بتان وو وروسته شرک او بت پرستي په ټول حجاز کي شايع سوه ويل سوي دي چي عمره بن لحی يو پيري دځان سره ملگری کړی وو هغه ورته وويل چي دنوح عليه السلام دقوم بتان خو (ود، سواع، يغوث، يعوق، نسر،) په جده کي ښخ شوي دي عمرو ورغلی هغه يه را وايستل او دتهامه په نامه وعلاقي ته يه يووړل بيايه دحج کولو په دوران کي هغه پر مختلفو قبيلو باندي تقسيم کړل هغوی دځانونو سره يو وړل.

خلاصه دا چي بتان دومره زيات سول چي هري قبيلي بلکه هر کور جدا جدا بت درلودی مسجد حرام يه هم دبتانو څخه ډک کړی وو او کله چي سيد البشر صلی الله عليه وسلم مکه مکرمه فتحه کړه دکعبي معظمي په شاوخواکي (۳۶۰) بتان موجود وو سيد البشر صلی الله عليه وسلم هغه ټول ټوټه ټوټه کړل بيايه داسي امر وکړ چي همدا ټوټې دي دباندي وايستلي سي په همدي ترتيب سره هغه ټول دمسجد څخه دباندي وسوځيدل او هغه ايرې ځني جوړي سوي[15] هغه خلک چي ځانونه يه دابراهيم عليه السلام د دين تلونکی او پيروان بلل هغه په دي ترتيب سره دجاهليت په لمنو کي راگير سول دوی په شرک او دبتانو په عبادت کي ترحلق پوري ډوب سول دبتانو په عبادت کي يه قسم قسم

---

[13] مختصر سيرت الرسول للشيخ محمد بن عبد الوهاب ص (۱۳)

۱۴ صحيح البخاری ۱/ ۲۲۲.

۱۵ مختصر سيرت الرسول ص (۱۳) - ۵۴

رسمونه او رواجونه درلودل چي هغه په زياته اندازه باندي دعمر بن لحی لطرفه ځخه ايجادسوي وودوی په همدا عقيده باندي ولاړوو چي کوم څه چي عمروبن لحی رواج کړي دي داهغه بدعت حسنه دی نه داچي دا دابراهيم عليه السلام په دين کي يو بدلون وي دبتانو په عبادت کي د دوی رواجونه په لاندي ډول دي: (۱) دوی به دمشکلاتو او سخت حالاتو په وخت کي بتانو ته توجوه کوله له بتانو څخه به يه مدد غوښتی د دوی په نامه باندي به يه ناري وهلي، دخپلو حاجاتو دپوره کولو په خاطر دهغوی دحل سوالونه کول اودايه هم عقيده وه چي دابتان والله جل جلاله ته د دوی په شفاعت کي زياته ونډه لري اوهم د دوی اړتياوي پوره کولای سي. (۲) پربتانو به يه هم حج اوهم طواف کاوی اوهم به يه د دوی په مخکي عاجزي کوله سجدي به يه وبتانو ته لګولي. (۳) وبتانو ته دنزديکت اوتقرب په خاطرباندي به دوی صدقي قرباني کولي دبتانو په نامه باندي به يه مالونه حيوانات حلاله ول خوالله جل جلاله دا دواړه قسمه قرباني داسي يادي کړي دي: (وَمَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ) **ترجمه**: اوحرام دي هغه چي حلال کړل سوي وي ديوځای اويايوشي په نامه باندي بل ځای کي الله جل جلاله فرمايي: (وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللهِ عَلَيْهِ) **ترجمه**: اومه خورئ تاسو دهغه مرداري چي نه وي يادکړل سوی هغه باندي نوم دالله جل جلاله پرهغه باندي عمداً) (۴) بتانو ته به يه دتقرب اونزديکت په خاطرباندي دخپلو خورکونو اوڅښلو څخه يوه اندازه دبتانو په نامه باندي کوله هم دارنګه دهغوی په حاصلاتو باندي اوپه حيوانانو کي به هم د بتانو دپاره يوه خاصه برخه وه دتعجب خبرخولا داسي وه چي هغوی داسي عادت والاوو چي له دي شيانو څخه به يه يوه برخه دالله جل جلاله دپاره هم ټاکله خوبيا د دوی په عقيده کي داسي علتونه او اسباب موجود وو چي دهغوی دسبب څخه به يه دالله جل جلاله دپاره هغه ټاکل سوي برخه هم دبتانو په نامه باندي ګرزوله الله جل جلاله په دي باره باندي داسي ارشاد کوي:

وَجَعَلُوا لِلَّهِ مِمَّا ذَرَأَ مِنَ الْحَرْثِ وَالْأَنْعَامِ نَصِيبًا فَقَالُوا هَذَا لِلَّهِ بِزَعْمِهِمْ وَهَذَا لِشُرَكَائِنَا فَمَا كَانَ لِشُرَكَائِهِمْ فَلَا يَصِلُ إِلَى اللَّهِ وَمَا كَانَ لِلَّهِ فَهُوَ يَصِلُ إِلَى شُرَكَائِهِمْ سَاءَ مَا يَحْكُمُونَ

**ترجمه**: او مقرر کړي دي دي مشرکانو الله جل جلاله لره د هغه څه څخه چي پیدا کړي دي الله جل جلاله هغه له زراعت او چارپایانو څخه یوه برخه وایي دوی دا برخه دالله جل جلاله دپاره ده په زعم د دوی سره او دابله برخه زموږ دشریکانو دپاره ده نو هغه برخې چي وي دپاره دشریکانو د دوی نو هغه نه رسیږي والله جل جلاله ته نو هغه برخه چي دالله جل جلاله دپاره وي هغه شریکانو د دوی ته رسیږي چي (بتان) دي ډیر بد دی هغه حکم او انصاف چي هغه دوی یه کوي. (۵)- بتانو ته د دوی د نزدیکت او تقرب بله طریقه داوه چي دوی به دبتانو په نامه باندي په خپلو مالونو او کښتونو کي نذرونه ایښودل په دې باره الله جل جلاله فرمایي:

وَقَالُوا هَٰذِهِ أَنْعَامٌ وَحَرْثٌ حِجْرٌ لَا يَطْعَمُهَا إِلَّا مَن نَّشَاءُ بِزَعْمِهِمْ وَأَنْعَامٌ حُرِّمَتْ ظُهُورُهَا وَأَنْعَامٌ لَّا يَذْكُرُونَ اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهَا افْتِرَاءً عَلَيْهِ

**ترجمه**: او وایي دوی چي دابرخه دبتانو که چارپایان دي او که کښت دی ممنوع حرام دي له دي څخه به خورک نه کوي بلکه هغه څوک چي زموږ خوښ وي په ګمان ددوی سره سم او بعضي چارپایان دي چي د دوی شاګاني حرامي کړل سوي دي له سپریدلو څخه او بعضي نور چارپایان دي چي په وخت د ذبحي کي نه یادوي دغه مشرکان پردوی باندي نوم دالله جل جلاله بلکه پرهغوی نوم دبتانو یادوي اودهمدي احکامو نسبت والله جل جلاله ته کوي په طریقه د درواغ تړلو په الله جل جلاله پسي.(۶) له همدي ډول نذرونو څخه دالبحیرة، السائبه، الوصیله، الحامي په نامه باندي یادي سوي نذرونه ابن اسحاق وایي: الحیره د السائبه لور ته ویل کیږي او السائبه وهغي اوښې ته ویل کیږي چي هغې په مسلسله توګه باندي لس جونګیان زیږولي وي بیابه نه پرهغي باندي څوک سپریدی شیدي به دمیلمنو څخه بغیربل چانه خوړلي او که به یه چیري یوولسم جونګی هم راوړه بیابه یه دهغي جونګی غوږ چیری اودمورسره به یه هم داسي ازاده پریښوو له بیابه نه څوک ورباندي سپریدی او نه به یه وړی اخستل کیدلي او شیدي به یه هم د میلمنو بغیر بل چانه څښلي په همدي ډول باندي واوښې ته (البحیرة) ویل کیده چي دسائبه لور به وه او الوصیله بیا و هغي میږي ته ویل کیږي چي په مسلسله توګه باندي به یه په پنځو خیټو کي لس وري چي هغوی کي به نارینه وري نه وو هغه سي ترتیب باندي

چي به يه داوري راوړل نو به دوی ويل چي دا ميږه وصله سوه له دي څخه وروسته چي به دي ميږي هرڅه راوړل هغه به تنها نارينه وو خوړلای سوای زنانه وو نه سوای کولای چي ويه خوري خوچي به يه کله يو وری مړ پيداسو اويابه کوم يو مردارسو بيا هغه نارينه اوزنانه ټولو ته جائز وو. **حام**: وهغه نارينه ؤبن ته ويل کيدو چي دهغه د کوروالي څخه به لس بچيان پيدا سول په مابين کي به يه نارينه نه وو بيا به نو دهمدي وينه اوشا محفوظه وه نه به څوک وربا ندي سپريدل اونه به يه وړی اخستل کيدلي تنهٔ په اوبنو کي به ايله وو تنها دده همدا کاروو چي ده ته به يه اوبني نيولي وبس الله ﷻ د جاهليت همدا طريقو باندي ردونه کوي: مَا جَعَلَ اللّٰهُ مِنۢ بَحِيرَةٍ وَلَا سَآئِبَةٍ وَلَا وَصِيلَةٍ وَلَا حَامٍ وَلَـٰكِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا يَفْتَرُونَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ وَأَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ اية نمبر ۱۰۳ سورة المائده **ترجمه**: نه دي روا کړي الله ﷻ له هيڅ بحيري اونه سائبه، اونه واصيلي، اونه دحام، مګر هغه کسان چي کافران سوي دي دوی تړي په الله ﷻ پوري دروغ او ډير له دوی څخه ناپوهان دي. وَقَالُوا مَا فِي بُطُونِ هَـٰذِهِ الْأَنْعَامِ خَالِصَةٌ لِّذُكُورِنَا وَمُحَرَّمٌ عَلَىٰ أَزْوَاجِنَا وَإِن يَكُن مَّيْتَةً فَهُمْ فِيهِ شُرَكَاءُ **ترجمه**: اوو ايي هغه شی چي په نسونو دهمدي چارپايانو کي دی هغه خاص دي دنارينه وو دپاره اوهغه حرام کړل سوي دي زموږ پرښځو باندي او که د ــه مرداره وي نو بيانارينه اوزنانه دواړه پکي شريکان دي دهمدي ډول حيواناتو نذرونو دوضاحت په باره نور روايات اوتفسيرونه هم موجود دي.[16] سعيدبن مسيب رضي الله عنه وايي چي دارنګه حيوانات تنها ددوی د طاغوتيانو وو[17] په صحيح البخاري کي مرفوع روايت دی چي عمرو بن لحی اولين شخص وو چي أوبنه يه سائبه ونومولە په هغه بيان سوو شرطونوسره.[18] عربو به دابيان سوي کارونه ټول دبتانو په خاطرباندي ترسره کول ځکه د دوی داعقيده وه چي بتان به دوی د الله ﷻ سره نژدي کوي او د دوی شفاعت به ورته کوي قران کريم دي ته داسي اشاره کړي ده: مَا نَعْبُدُهُمْ إِلَّا لِيُقَرِّبُونَا إِلَى اللّٰهِ زُلْفَىٰ **ترجمه**: دوی وايي نه کوو د دوی عبادت بلکه

---

۱۶ابن هشام۱/ ۸۹-۹۰

۱۷صحيح البخاری۱/ ۴۹۹.

۱۸نفس المصدر

د دي دپاره چي نزدي کړي دوی موږ وطرف دالله جلّ جلاله ته: وَيَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنفَعُهُمْ وَيَقُولُونَ هَٰؤُلَاءِ شُفَعَاؤُنَا عِندَ اللَّهِ. **ترجمه**: اوعبادت کوي دغه کافران غير دالله جلّ جلاله د هغو بتانو چي نه سي رسولای هيڅ ضرر دوی ته که يه عبادت ونکړ اونه دوی ته فائده رسولای سي که يه عبادت وکړي او وايي دغه کفار چي دا بتان شفاعت کونکي دي زموږ دپاره په نزد دالله جلّ جلاله باندي .مشرکينو به ازلام (دپال غشی) هم استعمالوی ازلام جمع دزلم ده او زلم وهغه غشي ته ويل کيږي چي ښکه نه وي وربانديي لګيدلي .

## دمشرکينو ازلام

دمشرکينو ازلام پردرې قسمه وو: يوقسم يه داوو چي نعم، اولا، به يه وربانديي ليکلي وو کله چي به دوی وغوښتل چي سفر وکړي اويانکاح وکړي اويا د دوي په رقم باندي يوبل کارته شروع وکړي ترهرڅه مخته به يه پردي غشي باندي پال واچاوی که به په پال کي نعم وو هغه کار يه کاوی او که به ورپکي لا وو بيايه هغه کار تريوو کاله نه کاوی ترهغه وخته چي بيابه يه دبت په واسطه بانديي داکار مکرر کړ .

دويم قسم يه هغه وو چي وربانديي خاص (المياه) اوبه او (الدية) ديت وربانديي ليکل سوي وو دريم قسم يه هغه وو چي (منکم) او (من غيرکم) او (ملصق) به وربانديي ليکل سوي وو دابه يه په هغه وخت کي استعمالاوه چي دچا دنسب په باره باندي به يوه اندازه شک اوشبهه وه نوهغه نوموړی شخص به يه د (۱۰۰) اوښانو په سره دهبل مخ ته بووی اوښان به يه وقداح (پال اچونکي) ته ورکول هغه به ټول غشي سره ګډ کړل بيابه يه يو ورڅخه راوکيښ که به چيري (منکم) را و ووت هغه شخص به بيا ددوی څخه وو او که به (من غيرکم) را و ووت بيابه هغه شخص د دوی حليف ملګری يعني د دوی په تړون کي به شامل وو او که به (ملصق) را و ووت هغه به بيا د دو ی په مابين کي د دوی په رقم مقام اوځای درلودی خو هم نسب او حليف به نه شميرل کيدی.[19] دي ته يوبل رواج ورسم قداح (دخمار غشی) اومشير (خمار وهل) هم دمشرکينو په مابين کي عموميت درلودی داهم دخما ريوډول وو چي د

---

[19] محاضرات تاريخ امم الاسلاميه للخضرى ۱/ ۵۶، ابن هشام ۱/۱۵۲ - ۱۵۳ -

همدي غشي په راتلو سره به دوی دخمار اوبښ حلاله وی اودهغه غوښه به يه ور باندي تقسيمولهٔ.[۲۰] دوی دکاهنانو او نجوميانو او عرافينو پرخبرو باندي هم ايمان اوعقيده درلوده کاهن وهغه چاته ويل کيږي چي دراتلونکو واقعو او پيښنو په باره باندي ځان خبربولي دی وايي داسي کيږي داسي به وسي اويابه دانه کيږي کاهن ځان داسي داعي معرفي کوي چي زه په پټو شيانو باندي خبريم اوبعضي خويه لاداسي ويناکوي چي زماپيريان ملګري دي دوی وماته ټول معلوماتونه راوړي او بعضي نور بياوايي چي له پوشيده او غيبي اشياؤ څخه زما خبري زما دخپل علم او پوهي پر بنياد باندي ولاړي دي اونور بياداسي وائي چي مونږ دهغه سوال کونکي دخبرو اوياکار اوياحالت وضعي مقدماتو او سببونو په نظر کي نيولو پراساس باندي هغه راتلونکي پيښني څخه معلومات ورکولای سو په دي اندازه باندي کاهن ته عراف ويل کيږي او دا داسي ده لکه څوک چي وايي دغلا ، اوهم دغلادشيانو او هم دهغه غلا دځای معلومات کولای سم.اونجومي وهغه چاته يل کيږي چي چي هغه دراتلونکو پيښنو اوحالاتو په باره باندي دستورو حرکت اوو ختونو ته دکتلو پر اساس معلومات پيش کولای سي[۲۱] ؤس نو څوک که دنجوميانو پرخبرو باندي يقين او باور لري هغه په حقيقت کي پر ستورو باندي ايمان لري اوپرستورو باندي د دوی دايمان يوشکل همداده چي دوی به الانواء يعني ستورو راختلو باندي عقيده در لوده دوی به ويل چي دفلاني ستوري په وجه راباندي اوريدل وسوو.[۲۲] په مشرکينو بدګماني (طيره) په بله اصطلاح باندي (بدشاګوم) نيول هم رواج وو د دی اصلي حقيقت اوصورت همداسي وو چي هروخت به يو مشرک ديو کار سرته روسولو نيت وکړ دی به هوسی. اوياکوم مرغه ته ورغلی هغه به يه دهغه خپل ځايه پورته کړ او وبه يه شړی که به چيري هغه هوسی يامرغه راسته طرف ته ولاړی بيابه ده هغه کار ته شروع کوله اوکه به هغه وچپه طرف ته ولاړی ده به دهغه کار څخه اجتناب کاوی

---

طريقه يه همداسی وه چي دخمار يو اښ به يه حلال کړهغه به يه بيا پر لسو او يا اته ويشتو برخو باندي تقسيم کړبيابه يه په دي غشو سره قرعه (پچه واچوله)داغشي به يه نښانه ووا وپبعضو به دوړلو نشانه وه که به دچاپرنامه باندي دوړلو غشی راووتی هغه به کامياب ووخپله حصه به يه اخستله اوکه به ديو چاپرنامه باندي بی نښانه غشی را ووتی هغه به بيا قيمت ورکاوی.

۲۱مرقاة المفاتيح شرح مشکوة المصابيح ۲/ ۲/ ۳.

۲۲صحيح مسلم شرح نووی باب بين کفرمن قال مطرنا بالنوء بيان وګورئ مرقاة المفاتيح شرح مشکوة المصابيح.

دی ته به دوی بدشاګوم اویابدفالي ویله هم دارنګه که به دوی ته کوم مرغه
اویاحیوان په مخه باندي ورغلی هغه به یه هم په هغه بدشاګومو کي حساب کړ. په
همدي شکل باندي د دوی یوبل کار همداوو چي دسویی دښنګري هڅوکي به یه په
غاړه کول اوداسي دوی بعضي ورځي، میاشتي، حیوانات، کورونه، زنانه، او همدا
رنګه نور شیان هم په بدشاګوم کي حسابول دوی دمرضونو په سرایت باندي هم عقیده
درلوده اوداسي عقیده یه هم درلوده چي د وژل سوي شخص روح ترهغه وخته ناقراره وي
ترڅو چي دهغه انتقام نه وي اخستل سوی د ده روح لکه دبوم په رقم باندي ګرزي په
دښتونو او صحراوو کي الوزي پروازونه کوي تنده یه زیاته وي ناري وهي چي او به
راکړئ خوچي کله دهغه انتقام واخستل سي دهغه وروسته ځای پرځای سي ارام سي[۲۳].

## بدعتونه دقریشو په دین ابراهیمي کي

دهغه وخت دجاهلیت عقائد همداوو اوعملونه خو له دي سره سره په دوی کي یو هم
اندازه دمقدس دین ابراهیمي شعائر هم موجود وو یعنی د پوره دین ابراهیمي
تارکین نه وو دوی دبیت الله شریفي دتعظیم اوطواف کولو سره سره حجونه او
عمرې هم کولي پرمزدلفه اوعرفات شریف باندي به هم دریدل اوقرباني به یه هم
حلالولي خودوی به په دي شیانو کي هم بعضي بدعاتو ته مخه کړي وه هغه یه رواج
کول له همدي ډول بدعتونو څخه د دوی بعضي بدعتونه په لاندي ډول باندي دي:
قریشوبه داویل چي موږ دابراهیم علیه السلام اولاده ، اهل حرم، دبیت الله مشران، اوهغه
دکعبي معظمي ؤسییدونکي یو ویو چاته هم زموږ په اندازه باندي تقرب اومنزلت
نه ده حاصل اویو څوک هم زموږ په اندازه باندي حق دار نه دي.
دوی ځانونه الحمس یعني زیات دغیرت او جرأت خاوندان بلل اوداسي عقیده یه
درلوده چي دوی باید د هغه مشرف حرم دحدودو څخه دباندي ولاړ نه سي اودهمدي
عقیدي په سبب باندي دوی پرعرفات باندي نه دریدل یعني دوی عرفات ته نه تلل
اوهم به یه افاضه نه ځني کوله بلکه هلته به په مزدلفه کي پاته سول او دهغه ځای
څخه به یه افاضه کوله یعنی بیرته راتګ خوقران کریم دهمدي بدعت په اصلاح کي
دی اودایه رد کړي ده: ثُمَّ أَفِيضُواْ مِنۡ حَيۡثُ أَفَاضَ ٱلنَّاسُ **ترجمه**: بیا راکښته کیږئ ای

۲۳صحیح البخاری ۲/ ۸۵۱/ ۸۵۷ مع حواشیه للشیخ احمد علی السهارنفوری.

قریشو دطواف دپاره دهغه ځای عرفات څخه چي راکښته کیږي نور خلک مزدلفي ته دوی به داهم ویل: دقریشو دپاره دانه ده مناسبه چي داحرام په وخت کي غوړي او پنیر برابر کړي اوداهم نه ده مناسبه چي دوی دوړیو په کوټویعني هغه دسنیو په خیمو کي داخل سي اودوی باید دڅرمني له خیمي بغیر دبل شي ترسایه لاندي نه سي[24] د دوی یوبل داسي بدعت هم وو چي دوی به ویل چي اهل الحل هغه دحرم شریف څخه خارج خلګوته ویل کیږي دوی ته دا روا نه ده چي دحرم په داخل کي هغه ښه وخوري کوم چي دوی دحل څخه دخپل ځان سره راوړي وي خوشرط یه همداده چي دوی به دحج اویاعمري کولو دپاره راغلي وي دوی اهل الحل په دي باندي مکلف کړي وو چي دوی بایدپه خپل اولین طواف کي دالحمس قریشو جامې واغوندي اوکه یه داجامې نه کړي پیدا بیابه نارینه په لوڅ حالت کي طواف کوي او زنانه وو به هم خپلي ټولي جامي ایستلي وي خاص هغه مخصوص اندامونه به یه پټ وویوه ټوټه به یه ورباندي اچولي وه اویا داچي وي کوچنۍ خلاص قمیص به یه اغوستی وای اوپه حالت دطواف کي به یه داسي شعروایه:

الیوم یبدو بعضه اوکله وما بدأ منه فلا احله

ترجمه: نن ورځ دشرمګاه څه برخه اویاټوله ښکاریږي خوهغه چي ښکاره کیږي زه وهغه ته کتل ناروا بولم.

الله جل جلاله دهمدي خرافاتو ته دبطلان نوم ورکړی دی په همدي باره باندي داسي فرمایي: يَا بَنِي آدَمَ خُذُواْ زِينَتَكُمْ عِندَ كُلِّ مَسْجِدٍ **ترجمه**: ای دادم علیه السلام اولاده تاسو واخلئ ښایست خپل په وخت دهرلمانځه کي خو هرڅوک نروي اوزنانه وي که به یه ترهمدي قانون ځان لوړ وباله او په خپلو هغه دحل څخه راوړو جامو کي به یه طواف وکړ ترطواف وروسته به یه همداکالي غورزول یوچا هم دا نه سوای استعمالولای د دوی یوبل داسي بدعت هم وو چي دوی به داحرام په حالت کي خپلو کورونو ته د دروازو دلاري څخه نه ننوتل بلکه دوی به هغه خپل کورونه دشا دطرف څخه سوري کول دهغي لاري څخه به کورونو نه داخیدل بیرته به دهغي لاري څخه راوتل دوی

[24] ابن هشام ۱/۱۹۹ صحیح البخاری ۱/۲۲۶

دایو نیک عمل بالی لکن قران کریم دي عمل ته بد وایي او منعه کوي لکه په دي ای
کریمه کي: (وَلَيْسَ الْبِرُّ بِأَنْ تَأْتُوا الْبُيُوتَ مِن ظُهُورِهَا وَلَـٰكِنَّ الْبِرَّ مَنِ اتَّقَىٰ وَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ أَبْوَابِهَا
وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ) ترجمه: او دا کار نیکي نه ده چي تاسو کورونو ته راځی د شا
د طرف څخه مګر د نیکی خاوند هغه شخص دی چي د الله ﷻ څخه و بیریږي په ترک
د مخالفت باندي او کورونو ته د دروازو د طرف څخه راځئ او وهم وکړئ له الله ﷻ د
دي د پاره چي تاسو خلاص سي د الله ﷻ د عذاب څخه و خپلو مقاصدو ته ورسیږی.
د عربي جزیري ډیري برخي په دي جاهلیت او بت پرستی. او نورو خرافاتو باندي اخته
وو یهودیت، نصرانیت، مجوسیت، او هغه دستورو لمانځنه چي عربو ته ننوتلی وه
هغه هم د دي لاري څخه وه په عربي جزیره کي کم از کم د یهودانو دوي دوري
دیاداوری وړدي اول پر فلسطین باندي د بابلیانو او آسوریانو له قبضي څخه
وروسته د فشار او زور په نتیجه کي د یهود و هجرت بخت نصر بادشاه په سنه
(۵۶۷ ق.م) کي د یهودو هیکلونه او کورونه وران کړل ډیر شمیر یهودیه و نیول د ځان
سره یه بابل ته یو وړل او بله برخه یه مجبور سول چي د فلسطین څخه و حجاز ته هجرت
وکړي او د حجاز په هغه شمالي برخو کي میشت سول.[25]
دویمه د امرحله په (۷۰م) کال کي د روماني (تهایتیس) تر مشرتابه لاندي پر فلسطین
باندي د رومیانو له تسلط څخه شروع کیږي رومیانو د دوی یعني یهودو هیکلونه
وران کړل او د دوی دزیات فشار په وجه باندي بعضي یهودي قبیلي حجاز ته
ولاړي او په یثرب او خیبر او تیماء کي میشت سول هلته یه کورونه برابر کړل نو موړ
ویلای سو چي یهود تر اسلام مخته او د اسلامي دیني په اولینو کي په سیاسي
ډګر کي یو مطرح سوی قوة او ځواک وو کله چي اسلام راغی هغه وخت یهودي
مشهوري قبیلي په دا ډول باندي وي: نضیر، خیبر، مصطلق، قریظه، قیقاع، خو په
دي باره باندي سمهودي په کتاب وفاء الوفاء صفحه (۱۱۶) کي نوشته کړي دي چي
د یهودو د قبیلو تعداد شمیر تر شلو هم زیات وو.[26]

---

[25] قلب جزیرة العرب ص: ۲۵۱.
[26] نفس المصدر (قلب الجزیرة العرب.

# یمن ته یهودیت

یمن ته یهودیت دتبان اواسعد ابوکرب په لاس باندي داخل سوی دی نوموړی دجنګ دپاره یثرب ته تللی وو په هغه ځای کي یهودي سو کله چي دی بیرته راتللی له ځان سره یه دوه یهودان پوهان چي هغه دبني قریظه دقبیلي څخه وو یمن ته راوستل په همدي ترتیب سره په یمن کي هم یهودیت خپور سو کله چي بیا داسعد زوی یوسف ذو نواس دیمن مشر وټاکل سو دنجران پریهودیانو یه حمله وکړه هغه ته یه د یهودیت بلنه ورکړه کله چي هغوی یهودیت قبول نکړ په دي وخت کي یوسف ذو نواس داور کندي وکیندلي هغه یه پکي واچول ویل شوی دي چي په همدي پیښه کي تقریبا دشلو څخه بیاتر څلویښتو زرو پوري نارینه، ښځي، کوچنیان، اوهم سپین ژیري سوځل سوي دي داواقعه د(۵۲۳م) کال داکتوبر په میاشت کي پیښه سوي وه او قران کریم هم دالبروج په سورة کي دابیان کړی دی.

نصراني دین وعربي جزیري ته دحبشي اورومیانو دتسلط او واکمنی دلاري څخه داخل سو حبشي حکومت په اول وار په (۳۴۰م) کي یمن ونیوی تر(۳۷۸م) کال پوري ورسره وو اوهغه مسیحي دین هم په دي وخت کي په دي علاقه کي خپورسوی وو اوهمدي وخت ته نژدي کلونه د مسیحیت پرخوا باندي وبلل سوو خلګو چي د ده تصدیق او کرامت ولیدی د ده غوښتنه یه ومنله مسیحیت یه محتار کړ.[27] هغه وخت چي حبشیانو یمن ونیوی ابرهه په هغه ځای کي خپل حکومت محکم کړ په دي ځای کي مسیحي دین په زیاته اندازه باندي دلته خپورسو ډیر داسي خپل په دوی پسي تلونکي خلک یه پیداکړل ترداسي چي ابرهه په هغه ځای کي د ده په وینا باندي کعبه جوړه کړه غوښتل یه چي عرب هم باید تردي وروسته یمن ته د حج کولو دپاره د ده وکعبي ته راسي او په دي خاطر چي خلګ د ده وکعبي ته راسي قصدیه وکړ چي بیت الله شریفه ونړوي لکن الله ﷻ د ده همدامکر اوفریب کمزوری کړ اوهغه یه له دنیوي او اخروي شرم او رسوائي سره مخامخ کړ.

---

[27] ابن هشام ۱/۳۱-۳۲-۳۳-۳۴.

له روم سره نژدي او سيدونکو قبيلو لکه غسانه، تغلب، طى، اودحيري بادشاهان
هم مسيحي دين قبول کړ مسيحيت په هغه عربو کي رواج وو کوم چي هغه دفارس
سره نژدى پراته وو لکه دعربو په عراق، بحرين، الاحساء، حجر، اودعربي خليج
(خليج فارس) په نژدي څنډو کي ؤسيدونکي خلک هم دارنګه يمن ته هغه وخت
مجوسيت لاس اوږد کړ چي وربان دي فارس قبضه وکړه.

اوهغه دصبائی مذهب هغه معلوماتونه چي په عراق اونورو علاقو کي هغه د
مځکي کندني څخه لاس ته راغو وايي چي صابئيت دکلدانيانو دين وو چي دشا
زيات خلک اوهم دارنګه يمنيان ډير پخوا دهمدي دين پيروان وو خوکله چي
يهوديت اونصرانيت خپورسو قوت يه پيداکړ بيا دهمدي دين اکثر کمزوري او
پيروان يه کم سوي دي خولاترؤسه په عراق اودعربي خليج په سيمو کي دبعضو
خلکو چي هغه دمجوسيانو سره ګډسوي اويا د دوی سره همسايه ګان وو بعضي
اثاراوعلامي يه ليدل کيږي.[٢٨]

## ديني حال اوداسلام رڼا

داسلام درڼا دځليدلو په دوران کي مذاهب او اديان شکست ته مجبورکړل سول
مشرکين چي يه درلودل دوی به ويل چي موږ دابراهيمي دين تلونکي يو لکن دوی
په اصل واقعه کي دابراهيمي شريعت داوامرو اونواهي وو څخه په زياته اندازه
باندي ازاد اوليري وو ټول ترحلق پوري په ګناهونو کي مستغرق وو د دوی په مابين
کي لکه دبت پرستو ټول خرافات اوداسي بي اساسه او بی بنياده شيان رواج سوي
وو داسي خرافاتو د دوی د زندګی ټولي هغه سياسي او ټولنيزي هغه ديني برخي
ترخپل اثرلاندي راوستلي وي يعني تحت اثريه ګرزولي وي.

يهوديت هم په هغه رياکاري او تحکم باندي بدل سوی وو د دوی رهبران لکه
خدايان داسي ګرزيدلي وو پرافرادو باندی به يه دخپلي خوښی حکومتونه او
مشرتوب کاوی تردي چي د دوی دپټو خيالاتو اودوشونډانو دښوريدلو حساب
اوپوښتنه به يه هم ځني کوله دقدرت اوروپو په غم باندي اخته وو هرڅه يه تنها په

---

[٢٨] تاريخ ارض القران ٢/ ١٣٩تا ٢٠٨.

همدي خاطرباندي وو دين او هغه ديني احكام يه دروپو او قدرت په مقابله کي څه
نه بلل د دوی هغه مادي هدف چي به کله پوره کيدی مطلبي کار به هم داوو نور څه يه
نه وو دافکريه هم نه کاوی چي الحاد او کفربه خپورسي او دهغه دين حکمونه به
تر پښو لاندي سي دکوم په باره باندی چي الله ﷻ امر کوي وايي چي هرشخص بايد
دهغه احترام ته امده سي او درناوی پيروي يه په نظرکي ونيول سي.
دنصرانيت څخه دا۔ي دين جوړ وو چي په هغه باندی پوهيدل ډيرګران وو همدا دين
دانسان او الله ﷻ ترمابين يو عجيب غوندي ترکيب برابر کړی وو په هم دي سره داهم
يو باطل او شرک ډوله دين ګرزيدلی وو پرهغه متدينو عربانو ييي هم اثرکم سوی وو
ځکه چي ددي دين لاره اوهغه لارښووني او د دوی عادتونه رواجونه اوج ته
رسيدلي وو او په زياته اندازه باندي بدل وو رواجونه يه سره ازاد وو په څه باندي
چي دوی عادت وو هغه يه د دين دپاره نه پريښوول هم دا ډول دعربو دنورو اديانو
پيروان هم دمشرکينو په څير وو د دوی زړونه او هم د دوی عقيدي عادتونه رواجونه
ډيرسره قريب نژدي وو.

## دنموني په طور باندي دعربي جاهلي ټولني بعضي يادآوري

دجزيرة العرب سياسي اومذهبي حالات بيان سول دهغه څخه و روسته د دوی دهغه
ځای اجتماعي، او اقتصادي، اخلاقي وضعي د ذکرسويو شيانو په باره باندي يوه
اندازه بيان ته ستاسو توجوه:

## عرب او دهغوی اجتماعي ټولنيز حالات

دعربو ابادي دمختلفو اشخاصو څخه جوړه سوي ده دهري ډلي حالات سره متفرق
اوجدا وو داشراف په ډلو کي په نارينه او زنانه وو کي تعلق په خاص ډول باندي ترقي
کړي وه زنانه وو يه مکمله ازادي درلوده خبري او نظرونه يه په زياته اندازه باندی
منل کيدل وښځي ته داحترام او عزت په سترګه باندي کتل کيدل او داحترام او
قدراندازه يه ترداسي ځايه رسيدلي وه چي دښځي په خاطرباندي داهم کيدلای
سوای چي توري دتيکو څخه وزي اوزياته اندازه باندي ويني توی سي اوکه به چا
وغوښتل په کرم سخا اوپه شجاعت کي کوم چي هغه دعربو په وړاندي ترټولو هغه
عالي او اوچت وصف وو دځان ستاينه وکړي هغه به هم زياتره ښځي ته خطاب کاوی

ښځي داسي قدرت هم درلودی چي مختلفي قبيلي دسولي دلاري څخه سره راجمع کړي او داقدرت يې هم وو چي د دوی په مابين کي دجنګونو اورونه بل کړي دهمدې ټولو سره سره دکورنۍ مشرتوب اوصلاحيت دنارينه سره وو ښځي اوسړي به دواده اونکاح له لاري څخه يو دهغه بل سره اړيکي ټينګولي لکن ښځي دانه سواى کولاى چي پرخپل سرباندې واده وکړي بلکه واده به يې په مشرتابه پوري معلق وو دهغوى ترنظربه لاندې وو د دوى په خوښه به يې واده کاوى ذکرسوى بيان داشرافي کورنۍ اجتماعي ټولنيز حالت وو لکن په نورو کورنيو کي نارينه اوزنانه په داسي اندازه باندې سره ګډوو چي دفسادونو اوفتنو څخه بغير نورڅه نه په ګوته کيدل ابوداؤد له حضرت عائشى رضي الله عنها څخه روايت کوي چي دجاهليت په دور کي نکاح په څلور قسمه وه يو قسم يې دموجوده حال دنکاح په رقم وه يوسړي به دبل سړي خور يالور ورڅخه غوښته هغه به ورسره موافق سو بيابه نکاح وتړله سوه دويم ډول نکاح داسي وه چي کله به دکوم چا ښځه دحيض څخه پاکه سوه هغه خاوندبه يې ورته وويل ولاړه سه دفلاني سړي سره يوځاى سه زناورسره وکړه خپل خاوندبه يې ترهغو نه ورسره يوځاى کيدى ترڅو چي به يې دهغه څخه يعني دهغه زاني څخه دحمل يوه نښانه نه واى معلومه سوي نوچي کله به يې حمل ښکاره سو بيابه دهغه خپل خاوندکه زړه غوښتلاى ورسره يوځاى کيدى به په دوى کي دانکاح داستبضاع نوم درلودى اودا نکاح خاص داولاد دپيداکيدلو په خاطرباندې ترسره کيدله اودريم قسم نکاح داسي وه چي ترلسو کم کسان به ديوې ښځي سره يوځاى سول کله چي به ښځه حامله سوه دهغه وروسته چي به يې اولاد پيداسو دهغه څخه وروسته به يې دا ټول کسان راطلب کړل دوى به حاضر سول هيچاهم مخالفت نه سواى کولاى بيابه دې ښځي داخبره وکړه چي څه مو وکړل ؤس داده زما اولاد پيداسو چي خوښ به يې سو هغه ته به يې وويل چي داستا زوى دى اى فلانيه دهغو کسانو څخه به يې ديوو نوم واخست همداکوچنى به دهغه سړي زوى سو له همدې ښځي څخه.

څلورم قسم نکاح په داسي ډول وه چي زيات خلک به ديوې فاحشي ښځي سره يوځاى کيدل هغه فاحشي داسي وې چي دکورونو پردروازو باندې به يې بيرغونه لګولي وو د دې دپاره چي خلک پوه سي چي دا کور دفاحشي ده دلته دا فاحش عمل

ترسره کیدلای سي بي تکلیفه خلک ورسي خو کله چي به یه اولاد پیدا سو نو به دوی
قیافه شناس راوستی هغه به دخپلي تجربي پربناء باندي داکوچنی ویو شخص ته
منسوب کړ هغه کوچنی به بیا دهغه زوی وو ده داعراض او انکار کولو حق هم نه
درلودی خو دهغه وروسته چي کله الله ﷻ سید البشر ﷺ په نبوت باندي مشرف کړ
دنکاح هغه ټول اقسام یه باطل کړل نن تنها هغه یوه اسلامي نکاح پاته ده[29] اوداسي
پیښني به هم کیدلي چي خلکو به دتورو او دنیزو په زور باندي ښځي دځان کولي کله
چي به څوک په جنګ کي کامیاب سو هغه دښمن چي به یه ماتیه وخوړله د دښمن
ښځي به یه نیولي دځان دپاره به یه جائز بللي خو دهمدي ښځو اولادونه به دمرګ تر
ورځي دشرم اوخجالت سره مخ وو دجاهلیت په همدي دور کي هرڅوک حق دار وو
چي بي شمیره ښځي ولري دزنانه دپاره داسي متعین حد وو په یو وخت کي داسي هم
وو چي دوی د دوو خوندو نکاح جائز بلله. زوی هم دپلار دهغه طلاقي سوي
یاکونډي ښځي سره نکاح کولای سوای .(النساء۲۲، ۲۳) په همدي وخت کي
طلاق هم ډیر په زیاته اندازه باندي رواج وو[30] زنا داسي اوج ته رسیدلي وه یعني
دومره زیاته وه چي دهري طبقي اشخاص وربانديٍ مبتلا وو ډیر په کم انداز باندي
خلکو له همدي فاحش عمل څخه ځان ساتلی وو خو بیا هم ازادي ښځې دمینځو په
نسبت باندي ښي او مختاره وي داسي معلومیږي چي دجاهلیت ډیرو پیروانو زنا
دځان دپاره شرم اوعار نه شمیری ابوداؤد دعمرو بن شعیب عن ابیه عن جده څخه
روایت کوي داسي وایي چي یوسړی ولاړسو داسي یه وویل: یارسول الله ﷺ
دافلانی سړی زما زوی دی ځکه ما دجاهلیت په زمانه کي دهغه دمور سره زنا کړي ده
سید البشر ﷺ ورته امر وکړ چي :لادعوة في الاسلام ذهب امر الجاهلیة الولد
للفراش وللعاهر حجر. ترجمه: په اسلام کي دا ډول دعوي نسته دجاهلیت احکام
پای ته رسیدلي دي کوچنی دهغه چادی چي موریه دچا ښځه اویا مینځه وي او د زنا
کار دپاره ډبري تیږي دي همدارنګه دعبد الرحمن بن زمعة دمینځي زوی وو دهغه

---

[29] ابوداؤد کتاب النکاح باب وجوه النکاح التی کان یتناکح بها اهل الجاهلیة .
[30] ابوداؤد باب نسخ المراجعة بعد التطلیقات الثلاثة دالله ﷻ دهمدي قول اطلاق مرتان دسبب نزول په باره باندي مفسرینو همدا خبره یاداوري کړي ده.

پرسرباندي دسعدبن ابي وقاص ﷺ او عبدبن زمعه اختلاف اومقابله راغله سيد البشر ﷺ ته راغلل هغه ورته ذکرسوی حديث ووايه دايوه زياته مشهوره قصه ده درياد يه کړه.[31] دجاهليت په دوره کي دزوی او دپلار تعلق اړيکه هم په قسم قسم باندي وه بعضو به داسي ويل: انما اولادنابيننا اکبادناتمشي على الارض

**ترجمه**: زموږ اولاده زموږ پرمځکه باندي ګرزيدونکي زړونه دي خوداسي پلارونه هم موجود وه چي خپلې لوڼې به يه دفقر اوشرم په خاطرباندي ژوندی ترخاورو لاندي کولي او د ناقدرتی په خاطر به يه خپل اولادونه قتلول[32]. دهمدي ذکرسوي جرم عموميت ځکه نه وو چي دوی به زيات وختونه په جنګونو باندي اخته وو او د دښمن دمقابلي په خاطر به يه وزياتو زامنو ته ضرورت درلودی له وروڼو، دتربرو (اکازامنو) اوداسي نورو سره به يه اړيکي زياتی محکمي اونژدي وي دوی په هغه قومي تعصب کي نوم لرونکي وو په قومي نامه باندي به هم مړ اوهم ژوندی وو د دوی دهغه ټولنيز نظام اساس اوبنياد پر قوميت باندي وو د دوی داسي عقيده وه چي سړی بايد دقوميت پربنياد په حق اوباطل دواړو کي له قريبانو سره اوږه په اوږه باندي ودريږي دوی داسي وو چي کله کله به دمقام اوقدرت په خاطرباندي دپلار اوزوی ترمابين هم جنګونه پيښيدل دنموني په ډول لکه ؤس، اوخزرج، اوياعبس، وزبيان، يابکر وتغلب، هغه خپل ماييني اختلافونه لکه چي موږ ورته اشاره وکړه هرڅه دقوميت پربناء باندي سوي وو له همدي وجي ښځه دهغه مختلفو ډلو اوقبائلو ترمابين هيڅ قسم اړيکي اوکومکونه نه وو بلکه د دوی ټول قدرت اوقوة به يو دهغه بل سره په مقابله کي صرف کيدی کله کله به داسي دښمني د ديني خرافاتي او يانورو عادتونو په وجه باندي کميدله خوداسي به هم پيښيدله چي دهمکاری، دوستی، اطاعت دارنګه تړون چي څوييلاييلې قبيلي اوکورنی سره يوځای کړي له دي ښځه بغير دحرم دمياشتي هم د دوی د ژوند او دژوندانه اړتياوو پوره کولو په خاطر ډيري مهمي او دقدروړ وي دامياشتي د دوی دپاره غټ رحمت او يو ارزښتناکه حيثيت وو خلاصه دا چي د دوي هغه ټولنيز نظام زيات کمزوری او

---

[31] صحيح البخارى ٢/ ٩٩٩- ١٩٦٥- ابوداؤد الولد للفراش.
[32] القران ٦/ ١٥١- ٦١- ٥٨- ٥٩- ١٧- ٣١- ٨١- ٨.

مختلط وو خلکو د حیوانانو په رقم باندي ژوند درلودی جهالت، ناپوهي، اوداسي خرافات بي دیانتي هرطرف ته خپره سوي وه ښځه د حیوان خرڅیدله بعضي وختونه به د ښځي سره تر حیوان هم بده ګذاره ورسره کیدله د خلکو په مابین کي به کوم داسي یو قانون او نظام هیڅ وجود هم نه درلودی هغه تش په نامه حکومتونه که به څه هم موجود وو خو مطلب یه تنها د خپلو جیبونو ډکیدل او د ملت دوینو په خرڅیدلو به یه د دښمنانو سره مقابله کوله.

## اقتصادي ژوند

د دوی اقتصادي حالت هم د هغه ټولنیز حالت تابعدار وو د دي اندازه د عربو د ژوندانه اړتیاوو د پوره کولو په ترټولو هغه لوړه وسیله او واسطه تجارت وو او دا هم ښکاره خبره ده چي د امنیت قیام نه وي تجارت به د کمي خوا حخه قائم سي په هغه وخت کي امن او امان هیڅ ممکن نه وو د دوی په مابین کي به جنګونه خاص د حرم په میاشت کي بندیدل او په همدي میاشتو کي به د عربو هغه مشهور بازارونه لکه، عکاض، ذی المجاز، مجنه، په داسي شکل باندي نور خلاصیدل او صنعت هم زیات کمزوری وو تنها په یمن، حیره، او هغه د شام په اولینو برخوکي په لاس سره د ټوکر وودل، او د څرمنو رنګیدل، اش ورکول، داسي نور صنعتونه هم رواج وو خو هغه د جزیري په داخلي برخوکي مالداري، کرهڼه، هم موجوده وه د عربانو ټولي ښځي د وړیو سنیو په اودلو باندي اخته وي خو چي هرڅه به کیدل هغه به په جنګ کي مصرفیدل دلیل هم دا وو چي خلک د فقر او لوږي سره مخ سول او نیستي ور باندي زوروه.

## اخلاقي نیمګړتیاوي

له همدي حقیقت څخه څوک انکار نه کوي چي هغه د جاهلیت پرقدم باندي تلونکي خلک د ډیرو سپکو او بدو اخلاقو د خرابو عادتونو او داسي بیکارو رواجونو خاوندان نه وو لکن له دي څخه هم انکار نه کیږي چي د همدي باوجود دوی دوی بعضي داسي نیک خویونه، عادتونه، غوره اخلاق هم درلودل هغه هرچاته د افتخار وړ دي د مثال په طور بعضي حسنه اخلاق یه په لاندي ډول دي:

(۱) سخا دوى په سخاكي يو دهغه بل سره سيالي كوله دهغه عصر ينمائي شعرونه په همدي باره باندى ويل سوي دي ځانونه يه په دي صفت باندي په هغو شعرونو كي ستايلي دي اويايه دبل چا صفتونه كړي دي په دوى كي سخاوت زيات عموميت درلودى چاته چي به په زياته لوږه او ډيريخ كي ميلمه راغى نيستي به يه هم زياته وه كوربه يه ديوي اوښي څخه چي په هغه باندي به يه ټوله ژندگى روانه وه خپله مجبروي به يه هم په زياته اندازه باندي وه خودخپل جوادت اوسخاوت په خاطربه يه دهغه ميلمانه په مخ كي هغه اوښه حلالوله دويم د دوى دهغه سخاوتي كراماتو څخه يوداهم وو چي ديو انساني ويني او دهغه دبقاپه خاطربه يه زياتي قرضي اوداسي زيات اوداسي زياتې جريمي قبوله ولي اودايه دځان دباره افتخاري وياړ باله دكرم اوسخا حس يه په داسي اندازه وو چي دوى به شراب څښل په هغوى باندي به يه فخركاوى دافخر يه په همدي مناسبت باندي نه وو چي شراب نوشي پخپله يو فخر وو بلكه دا له همدي امله وو چي شراب څښل هم دسخاوت يوه طريقه وه او همدا كار وانسان ته دخرچ اومصرف لاره معلوموي اوهم له دي وجي څخه چي دوى به دانګور وتاک ته كرم ويل اودانګورو وشرابو ته به يه بنت الكرم يعنى دانګورو لور ويل كه چيري د جاهليت د دوري واشعارو ته اودهغوى ديوانونو ته مراجعه وكړل سي نو هلته به په دى باره باندي دفخر دپاره زيات بابونه پيداسي عنترة بن شداد العبسي وايي:

ولقد شربت من المدامة بعدما
ركد الهوجر بالمشوف المعلم

بزجاجة صفراء ذا اسرة
فرنت بازهر بالشمال مفدم

فاذا شربت فانني مستهلك
مالى وعرضى وافر لم يكلم

واذا صحوت فما اقصر عن ندى
وكما علمت شمائلي وتكرمي

ترجمه: کله چي دغرمي دګرمی زور شکست وخوري ماته یو ژیړلیکی داربلورین جام چي چپه طرف ته اینبوول سوی بریښیدونکی (تابناک) اوسرپوشیده خم دشرابو لوښی سره وونښه سوي صاف اوشفاف شراب وښښل کله چي زه شراب ښښم خپل مال خرڅوم عزت او ابرو مي نه زیانمن کیږي او کله چي راپه حال باندي سم هم په سخاوت کي تقصیر نه کوم زما اخلاق اوکرم خوتاته معلوم دي چي هغه څه دي دوی خمار ته هم کرم او سخاویله ځکه کوم مال چي به یه له دي لاري ګټی هغه به یه ټول اویا هغه حصه چي دګټونکو ترحصو به زیاته وه وړباندي تقسیمیدله به نه هغه به یه مسکینانو اوفقیرانو باندي تقسیم کړه اوداهم له همدي ځای څخه دی چي قران کریم دشرابو اوخمار فائدې بلکل نه نفي کوي بلکه په دي باره باندي فرمايي ﴿وَإِثْمُهُمَآ أَكْبَرُ مِن نَّفْعِهِمَا﴾ ترجمه: او د دوی ګناه ترګټه زیاته ده. (۲) وفا داهم د دوی له هغه حسنه اخلاقو څخه دی یو یه هم پروعده باندي وفاکول وو دوی به پرقول اوعهد باندي زیات ټنګ ولاړ وو حتي په دي لاره کي به ځان اولادونو اومالونو وقرباني ته تیار وو د دي مطلب دوضاحت اوتشریح دپاره دهاني بن مسعود الشیباني، سموال بن عادیا، حاجب بن زراره حکایتونه کافي دي هغه مطالعه کړئ. (۳) ښه خوی اوعادت چي دهغوی په مابین کي رواج وو هغه عزت النفس، دوی داطبیعت درلودی چي ذلت اوسپکاوی ته نه تسلیمیدل د دوی غیرت اوشجاعت زیات ظلم او جبریه بالکل نه قبلاوه کله به یه هم چي یوه سپکه او د ذلت خبره واوریدله فی الحال به یه دتوري څخه استفاده کوله جنګ به یه شروع کاوه دوی دخپل عزت په خاطرباندي دځانونو قرباني ته هم تیار وو. (۴) د دوی دهغه غوره اومختاره اوصافو څخه کلکه اوپخه اراده هم وه کوم کارته چي به دوی اراده وکړه په هرقیمت په هره اندازه به یه هغه کار سرته رساوی. (۵) د دوی له هغه غوره خویونو څخه (حلم) بردباري وه اودوی دپاره سنجیدل دیوشي هم دهغه لوړو خویونو څخه وو خودا چي دوی باندي غیرت او ژر احساسیت پر دوی باندي غلبه درلوده دلیل هم داوو چي په دوی کي حلم په دوی کي کم وو. (۶) دموجوده عصر دچلونو اوفریبونو څخه منزه اوپاک وو دوی سادګي، رښتیا، امانتداري، او اخلاص مختار کړي وو موږ دا وینو چي دعربي جزیري دجغرافیائي موقعیت ترڅنګ د دوی

داپورته بیان سوي اوداسي نور یوه اندازه ښه اوصاف او اخلاق هم ددي سبب سول چي الله ﷻ عرب دیو داسي درانه کار او داسي یو عظیم بار دپورته کولو اودبشري ټولني د لارښووني اوهم دمشرتابه دپاره انتخاب کړل ځکه دا اخلاص که څه هم بعضي یه دشر اوضرر څخه خالي نه وو خوهغه په خپل ذات کي داصلاح حخه وروسته په زیاته اندازه باندي دعزت اوقدر وړ وو اوهغه وخت چي اسلام راغو هغه یه بالکل سم او اصلاح کړل دهغه خیر ټولي دنیا ته ورسیدی د دوی په وفا پسي ترټولو خوندور صفت عزت النفس واپخه اراده وه دلیل هم داده چي که عزت النفس، غیرت، اوټینګه اراده نه وي نو فساد اوشر دماییته نه سي تللای.

د دوی اوصاف دحد اشمار څخه بهر دي که ټول ولیکم په دي وړوکي کتاب کي یه دځای کولو امکان نسته نوهمداده مشت نمونه خروار.

## دسیدالبشر محمد ﷺ نسب او د ده هغه مبارکه کورنۍ

دسیدلبشر ﷺ نسب نامه: دسیدالبشر ﷺ هغه نسبي لړۍ په دري برخو باندي تقسیم سوي ده یوه برخه یه هغه چي اهل السیر اونسب پوهانو یه پر صحت باندي اتفاق کړی دی اوهمدا برخه په عدنان پوري ده دویمه برخه داسي ده چي بعضي اهل السیر هغه صحیح بولي اوبعضي نورو توقف کړی دی دا دعدنان څخه تر ابراهیم علیه السلام پوري ده.

دریمه برخه هغه داده چي هغه دشک څخه بغیر دروغ اوهغه غیرصحیح امور په دي دریمه کي موجود دي اوهغه نو دابراهیم علیه السلام څخه بیاتر ادم علیه السلام پوري رسیږي وُس ستاسو نظر اوپه دري سره برخو کي زموږ تفصیل:

**اوله برخه**: محمدبن عبدالله بن عبدالمطلب (اصلي نوم یه شیبه) بن هاشم (اصلي نوم یه عمرودی) بن عبدمناف (اصلي نوم یه مغیره دی) بن قصی (اصلي نوم یه زید دی) بن کلاب بن مره بن کعب بن لوی بن غالب بن فهر (چي دهغه لقب قریش وو) اود قریشو دقبیلي نسبت هم ده ته ده چي قریشي ورته ویل کیږي بن

مالک بن النضر (چي اصلی نوم یه قیس دی) بن کنانه بن خزیمه بن مدرکه (چه اصلي نوم یه عامر دی) بن الیاس بن مضر بن نزار بن معد بن عدنان.[۳۳]

دویمه برخه :ترعدنان پورته یعني عدنان بن اد بن همیسع بن سلامان بن عوص بن بوز بن قموال بن ابی بن عوام بن ناشدبن بلدرس بن یدلاف بن طابخ، بن جاصم بن ناحش، بن ماضي، بن عیض، بن عبقر، بن عبید بن الدعابن حمدان بن سنبربن یشبري بن یحزن بن یلحن بن ارعوی بن عیض بن دیشان بن عیصربن افناد بن ایهام بن مقصر بن ناحث بن زراح بن سمی بن مزی بن عوضة بن عرام بن قیدار بن اسماعیل بن ابراهیم علیه السلام.[۳۴]

**دریمه برخه**: دابراهیم علیه السلام څخه پورته یعني ابراهیم بن تارح (اصلي نوم یه اذر دی) بن ناحوربن ساروع یاساروغ بن راغو بن فالخ بن عابربن شالخ بن ارفخشدبن سام بن نوح ابان لامک بن متوشلخ بن اخنوخ (داهم ویل سوي دي چي دا ادریس علیه السلام دی) بن یرد بن مهلائیل بن قینان بن آنوشه بن شیث بن ادم علیه السلام.[۳۵]

ؤس نبوي کورنۍ: دسیدالبشر صلی الله علیه وسلم کورنۍ د ده ونیکه هاشم ته منسوبي دی دهمدي نسبت په خاطرباندي هاشمي ورته ویل کیږي ؤس پرهاشم اوترهغه پرروسته حالاتوباندي یو نظر:(۱) هاشم لکه څنګه چي مو په مخکي بیان کړ هغه وخت چي بنو عبدمناف اوبنو عبدالدار دسولي په نتیچه کي هغه منصبونه سره تقسیم کړل نو یه دسقایي اورفادي مسئولیت دبني عبد مناف کورنۍ هاشم په نامه باندي شخص په غاړه باندي واخست هاشم یومالدار اومعزز شخص وو هغه اولین سړی وو چي په مکه مکرمه کی یه وحاجیانو ته شوروا اوډوډۍ ورکړه اصلي نوم یه عمرو خوپه څه اندازه باندي چي یه ډوډۍ په شوروا کي میده وله دی په دې وخت کي په هاشم باندي مشهورسو ځکه هاشم ومیده کونکي ته ویل کیږي دقریشو

---

[۳۳] ابن هشام ۲/۱-۱، تلقیح فهوم اهل الاثر ۶/۵ رحمة للعلمین ۳/۱۱/۱۲ ۱۳-۱۴-۱۵.

[۳۴] محمد سلیمان المنصورفوری دکلبی په روایت سره دنسب داحصه جمع کړي ده همدا دول ابن سعد له زیات دقیق تحقیق وروسته رحمة للعلمین ۲/۱۴/۱۵/۱۶-۱۷- مطالعه کړئ دهمدی حصي په باره تاریخي مصادرو دبل سره ډیرفرق او اختلاف لري.

[۳۵] ابن هشام ۱/۴-۲ تلقیح فهوم الاثرص ۶ خلاصة السیر للطبري ص۶ رحمة للعلمین ۲/۱۸- دامصادر دځینو اسماؤ په تلفظ کي مختلف دي اوهمدارنګه په بعضو کي بعض نه دي بیان سوي.

دواړه سفرونه د دوبي او هم دژمي سفرونه داولين وار دپاره ده رواج کړل د ده په بار
باندي يو شاعر وايي:

عمرو الــــــذي هــــــشم الثريــــــد لقومـ
قــــوم بمكـــــة مـــــسنتين عجـــــاف
ســــنت اليــــه ارحلتــــان كلاهمـ
ســــفر الـــــشتاء ورحلـــــة الاصـــــياف

ترجمه: داعمرو وو چي خپل هغه قحطي ځپلي وکم طاقت اوډنګر قوم ته يه پ
شوروا کي ميده سوي ډوډۍ ورکړه او هم داعمرو وو چي دژمي اودوبي د دواړ
سفرونو تهداب او اساس ده ايښی دی.
د ده په ژوند کي يوه داسي پيښه او واقعه هم وه چي شام ته دی د تجارت دپاره روا
سو کله چي دی و مديني ته ورسيدی هلته يه د بني عدی بن التجار د کورنۍ د سلمی
بنت عمرو سره واده وکړ او ښځه ورسره پاته سو دهغه وروسته بيا شام ته ولاړی دا هغ
وخت وو چي دده ښځه حامله وه هاشم په همدي سفر کي د فلسطين په غزه نومي
سيمه کي وفات سو او په (۴۹۷م) کي د ده زوی عبد المطلب پيدا سو خوځنګه چي د
زوی په سر کي يه سپين ويښتان وو نو دده مور سلمی د (شيبه) په نامه باندي
ونوماوه [36] او په دي ځای يثرب کي يه دزوی پالنه کوله په مکه مکرمه کي دهاش
د کورنۍ هيڅوک هم ورباندي خبر نه وو دهاشم څلور زامن چي دهغوی نومونه پ
لاندي ډول دي: اسد، ابوصيفي، نضل، عبدالمطلب، او دلونو نومونه يه هم په دي
ډول دي شفاء، خالده، ضعيفه، رقيه، جنه[37]. (۲) عبدالمطلب په هاشم پسي سقاي
او رفاده وحاجيانو ته اوبه او ميلمستيا ورکول دمطلب بن مناف په غاړه باندي
ولويده مطلب هم يو شريف او هم په خپل قوم کي د شرف خاوند وو ښه اعتبار يه
درلودی خلکو به دده خبري منلي او هم دزيات سخاوت دوجي څخه به قريشو فياض
بالی شيبه (عبدالمطلب) چي په مدينه منوره کی لس کلن سو اکا مطلب يه باندي
خبر سو ورپسي ورغلی کله چي يه دی وليدی له سترګو څخه يه اوښکي را رواني

[36] ابن هشام ۱/ ۱۳۷- رحمة للعلمين ۱/ ۲/ ۲۶/ ۲۴.
[37] ابن هشام ۱/ ۱۰۷.

سوي په غیږ کي يه تنګ تکیه کړ پر هغه خپله سورلی باندی يه ورسره سپور کړ خو
عبدالمطلب وویل چي زه ترهغه وخته ستاسره نه ځم ترڅوچي زما مور اجازه
رانکړي مطلب وخپلي مور ته وویل چي زما وراره راسره پریږده موريه انکار وکړ ده
ورته وویل چي ماته اجازه راکړه هغه دخپل پلار وطن اودالله ﷻ وحرم ته ځي په دي
خبره سره يه مور ورته اجازه ورکړه اوپه همدي ترتیب باندي مطلب دهغه ځای څخه
دځان سره پراوښ باندي سپور کړ مکی ته راغلل کله چي خلکو ولیدی ويه ویل چي
دا(عبدالمطلب) دی ده ورته انکار وکړ چي يه دا زما دورور هاشم زوی دی
عبدالمطلب هم دلته دخپل اکا مطلب تر [illegible] يه اوساتني لاندي لوی سو ترڅو مطلب
دیمن په رومان علاقه کی وفات سو دهغه مسئولیت وعبدالمطلب ته وسپارل سو ده
هم وخپل قوم ته ډیر هغه خدمتونه وکړل کوم چي هغه د ده پلرونو به کول بالاخره په
خپل قوم کي ديوداسي شرف اوعزت خاوند سو چي پلرونه اواجداد يه هم دي درجي
ته نه وو رسیدلي خلکو ځیاته مینه ورسره درلوده اوده ته يه زياته اندازه باندي
درناوی کاوی.[38] کله چي مطلب وفات سو نوفل دعبدالمطلب پریوه برخه ځمکه
باندي قبضه ولګوله عبدالمطلب دخپل اکا په مقابل کي له قریشو څخه معاونت
طلب کړ قریشو په جواب کي ورته وویل چي موږ ستا اوستا داکا ترمابين هيڅ
مداخله نکوو بیایه وخپلو ماماخیلو ته چي هغه دبني النجار قبیله وه څو شعرونه
ولیږل په هغوی شعرونو کي يه د تعاون مطالبه کوله ماماييي ابوسعد بن عدی
داتیاسپروسره را روان سو دمکي مکرمي په ابطح کي يه واړول عبدالمطلب ورغلی
اوداسي يه ورته وویل چي چي تاسوکورته راځئ؟ مامايه ورته وویل چي نه ما چي
ترڅو نوفل نه وي لیدلی کورته نه درسره ځم بیاونوفل ته ورغلی هغه دقریشو
دمشرانو سره په حطیم کي یوځای ناست وو ابوسعد خپله توره دتیکي څخه وایستله
ورته ويه ویل چي زه قسم کوم د دي کوټي دمالک په نامه که چیري ته زما وخوريي
ته هغه ځمکه بیرته ورنه کړي په همدي توره باند ي به دي وهم نوفل ورته وویل چي
صحیح ده ماهغه بیرته ورکړه دقریشو مشران وربان دي شاهدان سول بیا ابوسعد
دعبدالمطلب وکورته ولاړی درې ورځې ورسره میلمه وو دهغه وروسته يه عمره

---

[38] ابن هشام ١/ ١٠٧.

اداکړه بيرته ومديني منوري ته ولاړې. په همدې واقعه پسې مناف دبني هاشم پر خلاف له بني عبدشمس بن عبدمناف سره تړون وکړ خوکله چې خزاعه وليدل چې بني النجار دعبدالمطلب ملاتړ او تعاون وکړ نويه وويل هغه عبدالمطلب لکه څنګه چې ستاسو داولادې څخه دی دارنګه زموږ داولادې څخه هم دی پرموږ باندي هم حق لري چې موږ يې هم مرسته وکړو اودا ځکه چې دعبدمناف مورد خزد کورنی څخه وه هم داوو چې دخزاعه خلکو په دارالندوه کې دنوفل اوبني عبدشمس پرخلاف له بني هاشمو سره تړون وکړ اوهم دا تړون وو چې وروسته بيا دمکې مکرمې دفتحې سبب سو دزيادت وضاحت دپاره يې په اينده کې تفصيل وګورئ[39]. عبدالمطلب چې په بيت الله شريفه کې وو دبيت الله شريفې په امورو کې له دوو پېښو سره مخ سو چې هغه يوه دفيل واقعه وه اوبل هغه دزمزم دڅاه کيندنه وه ؤس تاسو دهمدې دويمې واقعې بيان ته مکمل متوجه سئ.[40]

## عبدالمطلب ته په خوب کې دزمزم دڅاه امر

د زمزم دڅاه پېښه اودهغې لنډيز په داسې طور باندې دی عبدالمطلب يو وخت په خوب کې دزمزم دڅاه پرکيندلو باندې مامورسو اوهغه دڅاه وهلو دپاره ځای هم ورته مقرر اومعرفي سو ده هم شروع وکړه څاه يې لوڅ کړ هغه ټول شيان يې پکې پيداکړل کوم چې هغه جرهميانو په وخت دهجرت کې پکې ښخ کړې وو هغه زغرې، تورې، اودواړې طلائي هوسۍ، ټول يې راوکښل تورې اوهوسۍ يې د کعبې شريفې په دروازه کې نصب کړل او د حاجيانو دپاره يې اوبه دزمزم تياري کړې کله چې دزمزم څاه ښکاره سو قريشو وعبدالمطلب ته وويل چې موږ هم درسره شريک يو ده نه ورسره ومنله دايه ورته وويل چې زه خاص پرهمدې کارباندې امرکړل سوی يم دوی مخالفت ورسره وکړ ترڅو دبني سعد يوې کابنې ته دمحاکمې دپاره ولاړل دوی لا پرلاره وو چې الله ﷻ دا ورته معرفي کړه چې عبدالمطلب وزمزم ته خاص سوی دی په همدې وخت کې عبدالمطلب نذر ومانه که چيرې ماته الله ﷻ لس زامن راکړل اوهغه ټول ځوانان سول يو به په کعبه کې ذبح کوم.

---

[39] مختصر سيرت الرسول للشيخ محمدبن عبدالوهاب ص ۴۱/ ۴۲.
[40] ابن هشام ۱/ ۱۴۲ تا ۱۴۷.

## دفیل قصه

خلاصه دهمدي قصې په داسي ډول باندي دی چي په یمن کي دنجاشي نماینده ابرهه الصباح الحبشي وو ده داسي حالت مشاهده کړ چي عرب دحج دپاره وکعبي شریفي ته ځي په دي وخت کي ده په صنعاء کي یوه لویه کلیسا برابره کړه مطالبه یه هم داوه چي عرب دکعبي پرځای باندي دلته دهمدي کلیسا حج وکړي دابرهه داخبره دبني کنانه یوو سړي واوریدله دی دشپي په تیاره کي کلیساته ننوتی اوهغه قبله یه په مرداري باندي ور ولړله ابرهه چي کله له همدي پیښي څخه اګاه سو ډیر زیات په غصه شو شپیته زره پیاوړی لښکر یه مکي مکرمي پرطرف باندي روان کړ دهمدي مطلب دپاره چي کعبه معظمه ونړوي اوده سره (۹) نه داني پیلاني او(۱۳) داني نارینه فیلان وو دی خپله پوریولوی پیل باندي سپورسو دمکي مکرمي پرطرف باندي روان سو کله چي دی مغمس نومي ځای ته ورسیدی هلته یه لښکر سره برابر کړ پیلان یه اماده کړل ومکي مکرمی ته دننوتلو په اراده سو کله چي دی دمزدلفي اومنی ترمابین دمحسر وعلاقي ته ورسیدی پیل یه په دي ځای کي چو سو دمکي مکرمي پرطرف باندي یه قدم هم نه پورته کاوی اوبل هرطرف ته چي به یه حرکت ورکړ په تاخته باندي تلی دکعبي طرف باندي نه ورتلی دوی په همدي حالت کي وو چي الله ﷻ یوسیل مرغان ورباندي مقررکړل اودوی یه په داسي شکو باندي وویشتل لکه هغه په اور باندي یخ سوي شکي په دي سره الله ﷻ اوخوړل سوي بوسه داسي کړل دي مرغانو دابابیل او قمري سره ورته والی درلودی مشوکي یه اوږدي وزرونه یه نري او لکی یه پیړي وي له هغو مرغانو سره دنخود داني په شکل باندي دري دري کاڼي وو یوکاڼی په مشوکه اودوه داني په پښوکي وو پرهر شخص باندي چي به ولګیدل اندامونه به یه پریسول او مړبه سو تول په همدي کاڼو باندي نه ولګیدل هغوی د زیات وهم څخه پرهر طرف باندي تاخته کوله یوبل به یه ترپښو لاندي کول په زیاته اندازه باندي د دوی مړي په نظر راتلل پرهره چینه اوهرځای باندي به یه سړي په زیاته اندازه باندي پراته وو اوپه دي وخت کي ابرهه په یوداسي مرض باندي مبتلاسو چي د ګوتو سرونه یه دګوتو څخه جداسول کله چي دی صنعا ته ورسیدی داسي سو لکه هغه بي بڼو چرګوړی هلته یه سینه دوه ځایه

سوه زړه يه تر راووتی په هغه ځای کي مردار او اهل دنيايه د شرڅخه په امان سول قريش د همدي لښکر څخه په غارونو، داسي نورو پټو ځايونو او هم دغرو وسرونو ته ختلي وو کله چي الله ﷻ هغه لښکر دابرهه تو ټه، تو ټه کړ دوی بيرته په مطمئن اوډاډمن زړه باندي وخپلو کورونو ته راستون شول [41] د زياترو تاريخ پوهانو په فکر باندي داواقعه د سيدالبشر ﷺ ترميلاد مبارک پنځه پنځوست ورځي مخته وه داواقعه د محرم په مياست کي واقع سوي وه چي همدا تاريخ د (٥٧١م) کال د فروري داخر اويا دمارچ دمياشتي داولينو ورځو سره سمون خوري ويلای سو چي داپيښه په حقيقت کي يوه مقدماتي نښانه وه چي الله ﷻ دخپل نازوردار رسول سيدالبشر محمد ﷺ او دخپل کور بيت الله دپاره ظاهره کړ دليل پردي باندي همدادی چي موږ وينو په داسي حالت کي چي دبيت المقدس مسلمانان او سيدنکي دي لکن مشرکين او هغه دالله ﷻ ستر دښمنان وربانديتسلط لري لکه په سنه (٥٧٨م) کي دبخت نصر حمله او په (٧٠م) کال کي درروميانو تيری لکن کعبه معظمه سره له دي چي هغه ؤسيدونکي يه مشرکان وو نصرانيان چي دهغه وخت مسلمانان وو تسلط نه سوای وربانديپيدا کولای دهمدي واقعي خبر په دهغه عصر په ټوله متمدنه نړۍ کي خپور سو خکه هغه وخت کي دحبشي اړيکي دروميانو سره وي او هم فارسيانو د دوی هرڅه تر نظر لاندي لرل په کمين کي ورته ناست وو دايې کتل چه روميان او ملګري يې څه کوي اوله څه سره مخامخ کيږي او همدا وجه وه چه په دي پيښه پسي فارسيان سمدستي يمن ته راغلل هغه وخت دمتمدني نړۍ مشري له روميانو او فارسيانو سره وه دي قيصي دنيا حيرانه کړه دهرچا توجه يې دبيت الله شريف مقام او درجي ته راواړوله او دايې ورته وښووله چه يوازي هم داخونه ده چه الله ﷻ ورته قدر او شرف ورکړي ده او يوازي هم دادتقديس وړده نوکه ددي مقدس ځای کوم اوسيدونکي په نبوت مشرف کيږي دادهمدي پيښي غوښتنه او مقتضي ده او په دي سيمه کي درسول الله ﷺ ظهور په حقيقت کي دالله ﷻ هغه حکمت په ګوته کوي کوم چه په دي پيښه کي يې دهغه حکومت په اساس مشرکين پرنصرانيانو په داسي طريقه سره برلاسي کړي وو چه داسبابو له

---

[41] ابن هشام ١/ ٤٣ تا ٥٦ تفهيم القران ٦/ ٦/ ٤٦٢ تا ٤٦٩.

دائري څخه لوړه او اوچته وه عبدالمطلب لس زامن درلودل دهغه دزامنو نومونه په داسي ډول دي حارث، زبير، ابوطالب، عبدالله، ابولهب، غيدان، مقوم، صغار، عباس رضي الله عنه او داهم ويل سوي چه يوولس زامن يې درلودل اودوي دعبدالكعبه اوحجل نومونه ورزيات کړي دي داهم ويل کيږي چه عبدالكعبه هم دامقوم اوحجل هم داغيداق او دقثم په نامه يې زوي نه درلودي خولونې يې شپږ وي دهغو نومونه دادي: ام حکيم «البيضاء»، برة، عاتکه، صفيه، اروي، اواميه.[۴۲]

## درسول الله ﷺ پلار عبدالله صاحب

دعبدالله مور فاطمه بنت عمرو بن عائذبن عمران بن مخزوم بن يقظه بن مرة وه، دعبدالمطلب په اولادونوکي عبدالله ترټولو ښايسته شريف غوره اوټولو ته ګران اوپه ذبيح سره مشهور وو ذبيح يې ځکه باله کله چه دعبدالمطلب لس زامن پوره سول ټول ځوانۍ ته ورسيدل نوريې دده ملاتړ اودفاع کولاي سواي له خپل هغه نذر څخه يې چه ايښي وو خبر کړل زامنو يې خبره ورسره ومنله عبدالمطلب ددوي ټولو نومونه دپال پرغشو وليکل بيايې دهبيل منجورته ورکړل منجور غشي سره ګډ کړل وروسته يې يو ورڅخه راوکيښ که ګوري دعبدالله نوم راوتلي دي عبدالمطلب چاړه راواخستله خپل زوي عبدالله يې ونيوي ترڅوپوري چه کعبي ته يې بوزي اوهلته يې ذبح کړي خوقريشو خصوصاًدعبدالله ماماخيلواورور يې ابوطالب عبدالمطلب له دي کارڅخه منع کړ عبدالمطلب ورته وويل نوچاړه څه ده؟ زه خپل نذر څرنګه اداکم؟ دوي ورته وويل له فلانئ عرافي ښځي څخه په دي هکله مشوره وغواړه عبدالمطلب عرافي ته ورغي هغه ورته وويل چه دعبدالله اولسو اوښانو ترمينځ قرعه اندازي وکه که بياهم دعبدالله نوم راووواتي نولس اوښان نور وربانديَ زيات که په دي ترتيب سره لس لس ورزياتوه ترڅو چه الله ﷻ راضي سي اوداوښانو پچه وخيژي په دي ترتيب سره هغه راغي دعبدالله اولسو اوښانو ترمينځ يې پچه واچوله دعبدالله نوم راووواتي عبدالمطلب لس نور ورزيات کړل خوبياهم دعبدالله نوم راووواتي په دي ډول يې لس لس ورزياتول ترڅو چه سل اوښان پوره سول بيا د اوښانو پچه وختله عبدالمطلب داسل اوښان دعبدالله پرځاي حلال کړل اوهمداسي

---

[۴۲] تلقيح فهوم الاثرص ۸/ ۹/ رحمة للعالمين ۲/ ۵۶ تا۶۶.

يې کښيښوول هرچاچه وړل وړلای يې سوای نه يې انسان ځني منع کاوه اونه حيوا
تردي پيښني مخکي په عربو او قريشو کي د ديت بدله لس اوښان وو له دي وروست
يې سل اوښان تائيد کړل له رسول الله ﷺ څخه په يوو روايت کي راځي چه فرمايي
«انا ابن الذبحين».

ترجمه: زه د دوو ذبيحانو يعني اسماعيل عليه السلام او عبدالله زوی يم.[٤٣]

عبدالمطلب خپل زوي عبدالله ته امنه بنت وهب، بن عبد مناف، بن زهرة، بن کلاب
په نکاح کړه آمنه هغه وخت په قريشو کي د نسب او مقام له اړخه تر ټولو غوره ښځه و
پلار يې د نسب او شرف له پلوه د بني زهرة مشر وو د عبدالله او آمني واده په مکه کي
ترسره سو له واده څه موده وروسته عبدالمطلب هغه مديني ته وليږي ترڅو چه دوي
ته خرماوي راوړي عبدالله هلته په مدينه کي وفات سو ځيني وايي چه د تجارت
لپاره شام ته تللي وو اوبيرته د قريشو له يوو کاروان سره راتلي چه مديني ت
راورسيدي عبدالله مريض وو بيا هلته د(٢٥)کالو په عمر کي وفات سو په
دار النابغه الجعدي کي خاوروته وسپارل سو هغه وخت رسول الله ﷺ نه وو زيږيدلي
که څه هم ځيني روايتونه وايي چه عبدالله د رسول الله ﷺ تر ميلاد دوي مياشتي
وروسته وفات سوی ده[٤٤] خو زياتره مؤرخين اول نظر تائيدوي کله چه د عبدالله
د مړګ خبر مکې ته را ورسيدي آميني دده په مرثيه کي دا شعر وو ايه:

عفا جانب البطحاء من ابن هاشم » « وجاور لحدا خارجا في الغماغم
دعته المنايا دعوة فاجابها » « وما ترکت في الناس مثل ابن هاشم
عشية راحوا يحملون سريره » « تعاوره اصحابه في التزاحم
فان تک غالته المنايا وريبها » « فقد کان معطاء کثير التراحم[٤٥]

ترجمه: د بطحا غيږه د هاشم له زوي څخه خالي سوه هغه داوازونو اوژړاګانو (غوغا)
په مينځ کي د لحد ملګري سو مرګي وغوښتي هغه هم دي بلنې ته لبيک وو ايه او س
مرګي د خلګو په منځ کي د ابن هاشم د زوي په رکم څوک نه ده پري ايښي هغه ما ښام

---

[٤٣] ابن هشام ١/ ١٥١ تا ١٥٥/ رحمة للعالمين ٢/ ٨٩-٩٠- مختصر سيرت الرسول للشيخ عبدالله النجدي ص٢١/ ٢٢-٢٣.
[٤٤] ابن هشام ١/ ١٥٦/ ١٥٨/ فقه السيرة لمحمد الغزالى ص ٤٥/ رحمة للعالمين ٣/ ٩١.
[٤٥] طبقات ابن سعد ١/ ٢.

چه خلګو دده کټ پراوړو اخيستي وو کله هم مرګ اودمرګ حوادثو هغه ختم کړ (خو دهغه دهغه کړيو اعمالو يادبه تل وي) هغه ډير پوه، رحيم، اوسخي سړي وو د عبدالله ټول ميراث پنځه اوښان يوه رمه ميږي يوه حبشي مينځه وه چه نوم يې برکه اوکنيه نوم يې ام ايمن وو داهم هغه ام ايمن ده چه رسول الله ﷺ به يې په غيږ کي ګرځاوه.[46]

## نيکمرغه ميلاداو درسول الله ﷺ دژوند اول څلويښت کلونه

**نيکمرغه ميلاد:** سيدالمرسلين حضرت محمد ﷺ دبني هاشم په شعب مينه کي ددوشنبي په سهار چه دربيع الاول نهمه نيټه وه دنياته يې سترګي وغړولي دغه وخت دفيل له پيښي څخه يو کال اودکسري اونوشيروان دباچهي څلويښت کاله تيرسوي وو دستر عالم محمد سليمان المنصورفوري اوملکي محقق محموددبادشاه د تحقيق پراساس داتاريخ د (٥٧١م) کال داپريل دمياشتي له شلمي اويادوه ويشتمي نيټي سره سمون خوري.[47]

ابن سعد روايت کوي چه درسول الله ﷺ مور وايي کله چه هغه ﷺ وزيږيدي زماله جسم څخه يونور ووا تي چه دشام قصرونه يې روښانه کړل احمد هم له عرباض بن ساريه څخه دي ته ورته يوروايت نقل کړي ده.[48]

ځيني روايتونه وايې چه دنيکمرغه ميلاد په وخت کي ځيني اوهاصات دبني تربعثت مخکي ځيني خارق العاده پيښي واقع سوي وو وايې دقصري دماڼۍ څوارلس کينګري راولويدل دمجوسيانو آتش کيده چه نمانځنه به يې کوله مړه شول دساوه بحيره وچه سوه په شا وخواکي يې موجودي کليساګاني ونړيدي داروايتونه بيهقي رانقل کړي دي خو محمد الغزالي رحمه الله يې نه مني.[49]

کله چه له موره پيدا سو موريې عبدالمطلب ته يو څوک وروليږي چه دلمسي زيږي وزکي عبدالمطلب خوشحاله راغي خپل لمسي يې په غيږکي واخيستي کعبي

---

[46] مختصر سيرة الرسول ﷺ للشيخ النجدي صفحه(١٢)تلقيح فهوم اهل الاثر صفحه(۴)صحيح المسلم ٩۶/٢.

[47] محاضرات تاريخ الامم الاسلامية للخضري ۶٢/١رحمة للعلمين ٣٩/٣٨/١ اودميلادي جنتريو دتوفيرا واختلاف له امله داپريل دشلمي اودووه ويشتمي نيټي په تاکلوکي هم اختلاف راغلي ده.

[48] مختصرسيرة الرسل ﷺ للشيخ النجدي صفحه(١٢)ابن سعد ۶٣/١.

[49] فقه السيرة المحمد الغزالي صفحه(۶۴)وګورئ.

ته یې داخل کړ د الله ﷺ شکریې اداکړ دعایې وکړه. وروسته یې
شریفي کنبیښنووي هغه وخت دمحمد نوم په عربوکي شهرت
دمحمد ﷺ نوم ورباندي دعربو دعادت ترمخي یې په اووَمه ورځ سنت کړ.
اورواج نه درلودي هغه وخت دمحمد نوم په ده ته یې شیدي ورکړي وي ثویبه
۵۰ درسول الله ﷺ په مور پسي لومړنۍ ښځه چه ده ته یې شیدي ورکړي وي ثویبه
نومیده دابولهب مینځه وه ثویبي هغه وخت خپل زوي مسروح ته هم شیدي ورکولي
اوهم دي ثویبي له دي څخه مخکي حمزه رضي الله عنه ته هم شیدي ورکړي دي په دي پسي یې
ابوسلمه بن عبدالاسد المخزومي ته هم شیدي ورکړي دي.[51]

## حلیمه دسعد بن بکر له کورنۍ

دعربو دښارداوسیدونکو خلکو داعادت ووچه خپلو اولادونو ته به یې صحرایي
دایې ګاني شیدي ورکوونکي ښځي نیولي ددي لپاره چه دوي له ښاري مرضونو
څخه خالي پاته سي اندامونه یې پیاوړي اعصاب یې مضبوط اوپه ځانګوکي
فصیحه عربي ژبه زده کړي دهمدي عادت پربناء عبدالمطلب هم دخپل لمسي لپاره
دایې لټوله بالآخیره یې دبني سعد بن بکر کورنۍ یوه ښځه چه حلیمه بنت ابي ذویب
نومیده درسول الله ﷺ لپاره یې دایې ونیوله حلیمي میړه حارث بن عبدالعزی
نومیده کنیه نوم یې ابوکبشه وو له همدي قبیلي بني سعد بن بکر څخه وو هلته
درسول الله ﷺ رضاعي ورونه اوخوندي داوو عبدالله بن حارث، انیسه بنت
الحارث، حذافه اویاجذامه بنت الحارث لقب یې شیماوو دالقب یې ترنامه زیات
مشهور وو نوموړي به رسول الله ﷺ اکاحمزه رضي الله عنه هم تررسول الله ﷺ وړاندي دبني
سعد بن بکرپه قبیله کي وو یوه ورځ دحمزه رضي الله عنه رضاعي مور هم رسول الله ﷺ
رضاعي ورور وو یو دثویبي له خوا اوبل دهمدي ښځي له پلوه [52] درضاعت په
دوران کي حلیمي درسول الله ﷺ داسي برکتونه لیدل چه بالکل به ورته حیرانه وه
راځئ چه په دي اړه یوه قیصه خپله دبی بی حلیمي له خولي څخه واورو:

## دبي بي حلیمي سره دسیدالبشر ﷺ یتیم والی

---

۵۰ابن هشام ۱/۱۵۹/۱۶۰ محاضرات تاریخ الامم الاسلامیة للخضري ۱/۶۲ داهم ویل سوي دي چه هغه ﷺ سنت پیداسوی ده تلقیح الفهوم الاثرصفحه(۴) وګورئ خوابن القیم په دئ هکله ثابت حدیث نسته زادالمعاد ۱/۱۸ .
۵۱تلقیح الفهوم الاثر صفحه(۴) مختصر سیرة الرسول ﷺ للشیخ النجدي صفحه(۱۳).
۵۲ زادالمعاد ۱/۱۹

ابن اسحاق وايي: حليمي به داسي ويل چي زه دخپل خاوند اوکوچني زوی سره چي هغه ته مي شيدي ورکولي دبني سعد کورنۍ دیوي ډلې زنانو سره په دي نيت باندي ووتلم چي دشيدو ورکولو دپاره کوچنيان پيدا کړو دا وايي چي په همدي کال باندي زياته قحطي وه موږ ته هيڅ هم نه وو راپاته دا وايي چي په دي سفرکي زه پرخپل سپين خره باندي سپره وم اويوه زړه اوښه هم راسره وه هغي هيڅ شيدي هم نه کولي کوچنيان موهم په زياته اندازه باندي وږي وو په ټوله شپه کي داسي ساعت نه وو چي موږ دي خوب کړی وای هغه کوچنی به نا ارامه وو په دي حالت کي خو خوب نه کيږي زما تيان هم داسي نه وو چي څه دي پکښي وي او اوښي هم داسي شيدي نه درلودي چي د ده دپاره دي کفايت وکړي لکن داطمعه او اميد مو درلودی چي باران به وسي يوه اندازه وساعت به راسي خلاصه داده چي زه پرهمدغه خره باندي سپره وم حال دا وو چي داخر داسي ډنګر اوخوار وو دزيادت خوارۍ له کبله به ودريدی په قرار تللو کي داسي وو چي دقافلي هغه اخرين خر وو اوزيات خوار وو په زياتو تکاليفو سره موږ مکي مکرمي ته ورسيدلو په مکه مکرمه کي مو کوچنيان کتل سيدالانبياء محمد ﷺ زموږ دکاروان ټولو ښځوته وړاندي کړل سو هغوی چي به په دي باندي باندي خبري سوي چي داهلک يتيم دی منعه به يه وکړه د دوی مطلب داوو چي داسي يوکوچني پيداکړي چي پلار ولري اودهغه پلار راسره يوه اندازه مرسته اوتعاون وکړي په دي باندي چي خبري سوي چي پلارنلري نو نيکه او مور به يه زموږ سره په کومه اندازه باندي تعاون وکړي؟ له همدي سبب ښځه دی چانه واخست ټولو ښځوکوچنيان واخستل تنها زه وم چي کوچنی مي نه وو اخستی کله چي زه په دي اراده باندی سوم چي ولاړسونومي خپل خاوند ته وويل چي زماهغه ټولې انډيوالاني چي وي هغوی کوچنيان واخستل زه ځان دپاره داسي حالت دعار اوشرم بولم چي زه بغير دکوچني ښځه ځم قسم په الله ﷻ باندي زه ورځم اوهغه کوچني يتيم دځان سره اخلم ميړه هم راسره موافق سو چي هو داخبره پرځای ده بده يه مه حسابه ممکن چي الله ﷻ به هغه ديو وسعت اوپراخوالي سبب راته وګرزوي حليمه وايي چي زه ولاړم هغه يتيم کوچني مي دځان سره واخست کله چي مي هغه تي ته واچاوی فی الحال مي په تيانو کي شيدي پيداسوي اوهغه يتيم کوچني

مورسو دهغه وروسته په هغه رضعي ورور هم شيدي ورودلي هغه هم مورسو په ارامه باندي ويده سو حال داوو چي تردي حالت مخته ده نه خوب درلودی او نه هم ارام هغه زما خاوند ولاړی په دي اراده سو چي هغه زړه اوښه ولوشي که ګوري چي داوښي غولانځي بالکل ډکي دي هغه اوښه ولوشله دومره اندازه باندي شيدې يې وکړي موږ هم دواړه ورباندي ماړه سوو همدا شپه موږ زياته ارامه اوپه راحت باندي تيره کړه سهار مي خاوند راته وويل چي ای حليمي په رب العلمين باندي قسم چي تا په څه اندازه باندي يومبارک روح اخستی دی ماپه جواب کي ورته وويل چي زه دالله جل جلاله څخه هم داسي غواړم حليمه قول کوي چي بيا موږ دهغه ځای څخه روان سوو زه پرهغه خيل ډنګر اوخوار خره باندي سپره سوم هغه يتيم کوچني هم زما سره وو په الله جل جلاله باندي قسم چي دزما خر په داسي اندازه باندي چابک وو ټول هغه اولين خره يه شاته کړل زه له دوی ټولو څخه مخته سوم هغه ملګرو راپسي ژغ کړ چي ای دابي ذويب لوري موږ باند ي هم يوه اندازه دمهرباني نظر وکړه ايا داهغه خردي چي زموږ سره دي په تيره ورځ را روان کړی وو؟ مابه دوی ته په جواب کي ويل چي هو دا هم هغه خردی بيازما ملګرو داخبره راته وکړه چي حتما يو خاص سر ستړه په تللو تللو سره اخر خپلي علاقي خپلي ميني ته را ورسيدلو په دي وخت کي زموږ مينه له هغو ځايونو څخه وه چي بل يوداسي قحطي ځپلی ځای وجود نه درلودی موږ چي کله دهمدي مبارک بشر په وړلو باندي مشرف سوو هغه مو يو وړی دهغي ورځي څخه بيا زموږ حالت داسيَ سو چي ميږې به مو مړي او غولانځي به يه دشيدو څخه ډکې وي موږ به دهمدي شيدو څخه استفاده کوله ميږې به مو لوشلي حال هم داوو چي د نورو ميږې ټولي وچي وي يو چاکره به هم شيدو وجود نه درلودی خوزموږ به په رزق اومال کي زيات برکتونه وو تر داسي حال پوري چي دوی به دشپنو سره داخبره کوله چي هرځای دبنت زويب شفه خپلي ميږې پيايي (څروي) يه تاسو يه هم پرهغو ځايونو باندي څروئ بهرحا ل د دوی ميږې به وږي اونری را رواني وي زموږ ميږې به مړي او غولانځي به يه دشيدو څخه ډکي وي زموږ پرطرف باندي دبرکتونو مخه په داسي ډول وه ترڅو چي دهمدي يتيم کوچني چي هغه سيد البشر صلی الله علیه وسلم وو زموږ سره يه دوه کاله پوره سول اودی دشيدو څخه جداکيدی يو

خصوصیت یه همدا وو چي ترنورو کوچنیانو به دی ډیر ژر غټیدی د دوو کلونو په تیریدلو سره هغه یو داسي غوښتلی هلک سو بي بي حلیمه وایي چي بیا موږ هغه یتیم موږ وخپلي مور ته راوور موږ دا امیدا او خواهش درلودی چي له همدي کلونو څخه وروسته هم دی څه وخت زموږ سره تیر کړي موږ د ده مبارک برکتونه مشاهده کړل د ده ومور ته مو وویل چي دا ستازوی یو څه وخت نور هم زموږ سره پریږده دی به لوی سي په دي وخت کي په مکه کي وبا مرض هم وو نوما ورته وویل چي زه په دي باندي وهم لرم چي وبا مرض یه تاواني نه کړي حلیمه وایي ترهغو هم هلته ورسره وو چي د ده مبارکه مور بیرته وهمدي خبري ته امده سوه چي دی مبارک بیا زموږ سره ولیږي.

## شق الصدر دسیدالبشر ﷺ دسیني مبارکې افریشن

سیدالبشر ﷺ ترپنځو اویا څلورو کالو پوري په ذکرسوي ترتیب سره په همدي بني سعد کورنۍ کي پاته سو په همدي وخت کي ورته همدا دسینه څیرلو واقعه پیښه سوه چي ورته په عربي کي شق الصدر ویل کیږي امام مسلم له حضرت انس رضي الله عنه څخه په یو روایت کي داسي وایي: یوه ورځ سیدالانبیاء د کوچنیانو سره لوبي بازۍ کولي جبرائیل علیه السلام ورته راغی دی یه تکیه کړ پرمخکه باندي یه پریستی سینه مبارکه یه ورڅیري کړه د ده زړه یه دباندي را وکښی یوه ټوټه غوښه یه ورڅخه لیري کړه په دي ویناسووول دا ستا په بدن کي دشیطان برخه ده بیا یه دسرو زرو په تال کي دزمزم په اوبو باندي ورپریولی سره یو ځای یه کړ بیرته یه په هغه خپل ځای کي کینبووی کوچنیان په تاخته باندي د ده ومورته ورغلل ورته ویل یه چي محمد ﷺ ووژل سو دوی را ووتل که ګوري دسیدالبشر ﷺ پر رنګ باندي په زیاته اندازه باندي اثر موجود دی[53].

## دهمدي دردناکه واقعي څخه وروسته

له دي واقعي څخه وروسته حلیمي سره واهمه پیدا سوه دی یه وخپلي مورته تسلیم کړ ترشپږ کلن عمر پوري دی دمور سره وو [54] بي بي امینه په دي اراده باندي سوه

---

[53] صحیح مسلم باب الاسراء ۱/ ۹۲.

[54] تلقیح الفهوم الاثرص۷ محاضرات تاریخ الامم الاسلامیه للخضري ۱/ ۶۳ فقد السیرة الغزالی.

چي دوفاپه دود باندي دخپل خاوند دقبر زيارت وکړي په دي وخت کي يه ديثرب
پرطرف باندي حرکت وکړ اندازا پنځه سوه کيلو متره لاره يه طی کړه په همدي
سفرکي دهمدي يتيم زوی سيدالبشر ﷺ خادمه ام ايمن وه اوسرپرست يه
عبدالمطلب هم ورسره وو امنه په هغه ځای کي يوه مياشت پاته سوه دهغه وروسته
يه د بيرته راتللو اراده وکړه په دي وخت کي مريضه سوه دلاري په اژدو کي يه هغه
مرض مخ پرزيادت باندي روان وو دمکي مکرمي اومديني منوري په مابين کي په
ابوا مقام کي وفات سوه [55].

## دسيدالبشر ﷺ سره دعبدالمطلب ترهرچازياته نرمي

دي عبدالمطلب چي زيات سپين ژيری وو خپل يتيم لمسی يه ومکي ته راوستی او
وسره يه زيات محبت وو زيات ورباندي زهير وو ځکه دده هغه اولين غم لانه وو هير
چي غم بيانوی سو دليل همداوو چي عبدالمطلب له دي لمسي سره زياته اندازه
باندي نرمي کوله چي ده داسي نرمي له نورچاسره نه وه کړي هغه تنها چرت
اوفکروهلو ته نه ايله کاوی ترخپلو اولادو يه وده ته توجوه زياته وه ابن هشام ويلي
دی چي دکعبی ترسايه لاندي به عبدالمطلب ته ځای برابريدی زامن به ورباندي
راجمع وو چي دی به راتلی دده پرځای باندي به يوڅوک هم نه کښينستی
خوسيدالبشرچي وُس لاکشر هم وو خو دی به دبابا پرځای باندي کښينستی
اکاګانو به دب منعه کاوی ده ته به يه دهمدي ځای دناستی اجازه نه ورکوله
عبدالمطلب چي به کله داحالت وليدی دوی ته به يه داويل چي تاسو کار مه
ورباندی لرئ قسم په الله عزوجل چي دی دلوړ شان خاوند دی بيابه سيدالبشر ﷺ
دخپل بابا په څنګ کي ناست وو بابا به ورسره زيات محبت کاوی د ده په کردار
اوعمل باندي به زيات خوشحاله کيدی [56] چي دسيدالبشر ﷺ عمر اته کالودوي
مياشتو لس ورځوته ورسيدی نو دده بابا عدالمطلب هم په مکه مکرمه داجل داعی
ته لبيک ووايه خو نيکه داکارپه خپل ژوند کي کړی وو چيدهمدي مبارک لمسي

---

[55] ابن هشام ١/ ١٦٩ تلقيح الفهوم الاثرص ٧ محاضرات تاريخ الامم الاسلامية للخضری ١/ ٦٣ فقه السيرة الغزالی ص ٥٠.
[56] ابن هشام ١/ ١٦٨.

دحفاظت دپاره یه ابوطالب انتخاب کړی وو چې هغه دسیدالبشر ﷺ سکنی اکاوو ۵۷.

## سیدالبشر ﷺ داکا په حفاظت کي

ابوطالب هم داسي شخص وو چي دخپل وراره حقوق په ډیر ښه انداز سره اداکړل دخپلو زامنو سره یوځای بلکه ترهغوی یه هم وځان ته نژدي کړ زیات ورباندی مشفق او مهربانی کونکی وو ترڅلویښت کاله لاهم زیات وخت ورباندی ولاړوو یورقم تعاون یه دده حخه نه منعه کاوی د ده مبارک په وجه به یه دخلکوسره دوستی دښمنی کولی دهمدي قصې تفصیل را روان دی.

## دسیدالبشر محمد ﷺ په وجه باندي باران غوښتنه

یوروایت سوی دی چي دهغه راوي عساکر بن جلهمه بن عرفطه دی دی وایي چي زه مکي مکرمي ته راغلم په همدي زما دراتللو په وخت کي داخلک دزیات وچکالی اوهمدارنگه دیوه اندازه قحطی سره لاس وګریوان وو قریشو وابوطالب ته وویل چي حالت خو په داسي ډول دی چي خلک دزیات مشکل سره مخ دي وچکالي ده قحطي ده همدا وخت ده چي موږ اوتاسو دباران خواست اودعا وکړو دهغه وروسته ابوطالب دهمدا سي هلک سره راووتی دهغه مخ دلمر په شان ځل وبل کیدی دهمدي هلک په شاوخواکي نور هلکان هم ولاړوو ابوطالب هغه هلک تکیه کړ اوشامبارکه یه دکعبي معظمي د دیوال سره ووهله هلک دهغه ګوتي نیولي وي په همدغه وخت کي په اسمان کي یوداسي ټوټه هم نه په سترګو کیدله لکن په قرار قرار باندي یودبله اوریځ سره پیداسوه هغه سره محکمه سوه په داسي انداز باندي باران وسو چي علاقه اوبو پرسرباندي واخستله ټول وطن اوبه سو اوخوشحاله خوشحالی پیداسوه ؤس وهمدي پیښي ته په اشاره کولو سره ابوطالب دسیدالبشر ﷺ په داسي انداز باندي ستاینه کوي او وایي:

| | |
|---|---|
| وابیض یستسقی الغمام بوجهه | ثمال الیتامی عصمة للارامل[58] |

---

[57] تنقیح فهوم الاثر ص ۷ ابن هشام ۱/ ۱۶۹.

[58] مختصر سیرم الرسول للشیخ عبدالله النجدي ص ۱۵، ۱۶.

ترجمه: هغه سپين او ښائسته دئ د ده په روی باندي د باران سوال کيږي هغه د يتيمانو پناه ځای او هغه دبي خاونده زنانو دپاره محافظ دی.

## بحيره راهب او دهغه قصه

سيدالبشر ﷺ چي کله دوولس کلن سو اوپه يوبل روايت کي داسي دی چي د دوولسو کالو او دوو مياشتولسو ورځو سو [59] ابو طالب دځان سره شام ته دتجارت دپاره بوتلی شام ته ولاړل دبصري دښار په اراده وو چي هغه په شام کي دحوران دمنطقي يوښار وو ورسيدل اودا ښار په هغه وخت کي په عربي جزيره کي درومي مستعمرو مرکز وو په دي ځای کي يو راهب وو چي هغه په بحيرا سره شهرت درلودی هغه دلته ؤسيدی اصلی نوم يه جرجيس وو کله چي کاروان وهغه ځای ته ورسيدی راهب د دوی استقبال ته را ووتی دوی يه ټول ميلمانه کړل تردي مخته به دچامخ ته نه راوتی سيدالبشر ﷺ يه دهغه نشانو اوصفتونو په خاطرباندي وپيږندی په داسي حال کي چي دده مبارک لاس يه نيولی وو داسي يه ويل دا دټول عالم سيد او پيشوادی الله عزوجل دعالميانو دپاره رحمت راليږلی دی ابوطالب له ده څخه سوال وکړ چي ته دکومه داقول کوي؟ بحيره راهب ورته وويل چي تاسو کله دهمدي غونډۍ څخه راښکاره سواست ټولې درختې او تيږي تاسو ته پرسجده سول دامعلومه ده چي درختي اوکاڼي په انسانانو کي تنها نبی ته سجده کوي اوبل زه يه دنبوت دمهر دمخي څخه هم پيږنم کوم چي دده داوږو په مابين کي دی اوشکل يه هم دسيب دی موږ په خپلو کتابونو کي هم دده په باره باندي معلوماتونه ليدلي دي وروسته يه له ابوطالب څخه وغوښتل چي بيرته مکي مکرمي ته ولاړسه دی بوزه ممکن هلته يهودان يوه اندازه زيان ور ورسوي ابوطالب هم داخوښه کړه دځونفرو سره يه بيرته واستاوی [60]

## دفجار دجنگ بيان

---

[59] داخبره باندي ابن جوزی قائل دی تلقيح فهوم الاثر ص ٧.

[60] مختصر سيرت الرسول للشيخ عبدالله النجدي ص ١٦، ابن هشام ١/ ١٨٠/ ١٨١- ١٨٢- ١٨٣- په ترمذی اوداسی نورو کتابونو کی راغلی دي چي ابو طالب بلال ورسره وليږی. تحفة الاحوذي اودا معلوم داره غلطي ده ځکه ممکن چي بلال په هغه وخت کي بالکل موجود نه وو او که چيري موجود هم وای نو نه له ابوبکر سره وو اونه له ابو طالب سره .زادالميعاد ١/ ١٧.

سيد البشر ﷺ پنځه لس کلن وو چې دفجار جنګ شروع سو دا هغه سي جنګ وو چي قريش او کنانه يو و طرف ته او قيس وعيلان و بل طرف ته دقريش او کنانه ومشر تا به ته حرب بن اميه انتخاب سوی وو دليل همدا وو چي هغه ترټولو مشر او دزيات شرف خاوند وو دورځي په اولينه برخه کي قيس پر کنانه باندي غالب وو لکن دورځي په نيمايي برخه کي جنګي حالت بدل سو غلبه دکنانه په طرف کي سوه او دا جنګ چي حرب الفجار بولي دليل همداده چي په دي کي دحرم شريف او هغه دحرمت دمياشتو شرف او عزت دمابينه ولاړی سيد البشر ﷺ هم په دي جنګ کي حصه واخستله خپلو قريبانو دپلارورونو ته به يه غشي برابرول.[٦١]

## دفضول تړون

دذکرسوي جنګ ځخه وروسته په مياشته دذی القعدي کي چي هغه داحرام دمياشتو ځخه دی او ورته حلف الفضول هم ويل کيږي هغه پای ته ورسيدی نو دهمدي کار اهتمام دقريشو بعضو نورو خاندانونو لکه بني هاشم، اسدبن العزی، بنوالمطلب، زهرة بن کلاب، تميم بن مروه، کړی وو ټول هغه دشرف او عزت خاوندان دعبدالله بن جدعان التيمي په کورکي سره راجمعه سوي وو دوی داسي عهد او پريکړه وکړه چي دوی به په مکه مکرمه کي دهرمظلوم سره ولاړ وي هغه که هم دلته ؤسيدونکی وي او که دبل ځای ځخه راغلی وي ترهغه وخته به دوی دمظلوم حمايه کوي ځو چي يه هغه دمظلوم حق دظالم ځخه نه وي ترلاسه کړی سيد البشر ﷺ هم په دي تړون اوپريکړه کي حاضر وو کله چي سيد البشر ﷺ په رسالت باندي مشرف سو ده به فرمايل: لقدشهدت فی دارعبدالله بن جدعان حلفاما احب ان لی به حمر النعم ولو ادعی به فی الاسلام لاجبت.[٦٢] ژباړه: زه په هغه تړون کي شريک وم چي هغه دعبدالله بن جدعان په سرای کي وسو زه دهغه په بدل کي سرؤبس هم نه خوښوم نو که ؤس داسلام په دور کي هغه ته طلب کړل سم هم به لبيک ورته ووايم.

همدا تړون او دتعصب پربناء باندي جاهليت او يو دبل سره تناقض او تضاد منافات لري دهمدي تړول اوپريکړي په اساس او علت باندي ويل کيږي چي ومکي مکرمۀ ي

---

[٦١] ابن هشام ١/ ١٨٤، ١٨٥، ١٨٦، ١٨٧، قلب جزيرة العرب ص ٢٦٠ محاضرات تاريخ الامم الاسلامية للخضري ١/ ٦٣.

[٦٢] ابن هشام ١/ ١٣١، ١٣٥، مختصر سيرت الرسول للشيخ عبدالله النجدي ص ٣٠، ٣١.

ته دزبید قبیلي یوه سړي یوه اندازه سامان راوړی وو همدا سامان عاص بن وائل السهمي په بیعه ځني واخست خو بیا یه دهغه حق ادا نه کړ هغه شخص په همدي باره باندي دملګرو څخه مرسته کومک وغوښتی د دده ملګري لکه عبدالدار، جمح، مخزوم، سهم، عدی، خو د توجوه څوک یه نه سوو پیدا د ده قول یه داسي صرف نظر کړ دی ولاړی دابي قبیس وغره ته وختی په لوړ صوت باندی یه داسي اشعار وویل په اشعارو کي یه وخپل مظلومیت ته اشاري کولې په دي وخت کي زبیر بن عبدالمطلب دي طرف ته متوجه سو اودابه یه ویل چي همدا شخص چي جبل ابو قبیس ته ختلی دی اوداسي مظلومانه اشعار وایي داولي داسي بي همکاره ابي مددګاره دی؟ کوشش یه وکړ هغه په اول کي یادي شوې قبیلي سره راجمعه کړې داتړو ن یه لاس لیک کړ پردي باندي سره متفق سول دهمدي اتفاق کولو څخه وروسته وعاص بن وائل ته ورغلل هغه دمظلوم حق یه دهغه څخه وصول کړ.[٦٣]

## دتکالیفو او مشقتونو ژوند

سید البشر ﷺ په هغه نوجواني عصرکي یعني په هغه وخت کي چي دده نو یه ځواني وه دی داسي دیو معلوم کارعامل نه وو معلوم دار کار یه نه درلودی لکن داسي روایتونه راغلي دي چي میږې یه پووي (څرولي)[٦٤] او میږې یه هم دبني سعد څرولي اوداسي هم ویل سوي دي چي دیوه اندازه قراطونو په عوض کي یه دمکي مکرمي دخلګو رمه هم پوولیه (څرولیه) ده[٦٥].

داخو دسید البشر ﷺ هغه الینه ځواني وه کله چي دی (٢٥) کلن سو دشام پر طرف باندي یه دبي بي خدیجي رضي الله عنها مالونه دتجارت دپاره بوتلل په دي باره باندي ابن اسحاق داسي وایي چي بي بي خدیجه بنت خویلد رضي الله عنها دزیات مال اودعالي شرف خاونده وه خپل مالونه به یه وخلګو ته د تجارت دپاره ورکول دمضاربت داصولو پربناء باندي به یه هغوی ته یوه اندازه معلومه حصه مقرره وله په هغه وخت کي قریش دتجارت په کار وبار باندي بوخت وو بیانو کله چي بي بي خدیجة

---

[٦٣] مختصر سیرت الرسول ص٣٠، ٣١.

[٦٤] ابن هشام ١/ ١٦٦.

[٦٥] نقه السیرة لمحمد الغزالی، صحیح البخاري، الجارات، باب رغی الغنم علی قراریط ١/ ٣٠١.

الکبری رضي الله عنها دسید البشر محمد ﷺ دامانت داری، دیانت، تقوی اونیکو اخلاقو ځخه خبره سوه ده مبارک، ته یه حال واستوی چي راسه دا زما مال دتجارت دپاره وشام ته یوسه او دده حصه به هم ترنورو اشخاصو زیاته وي اوهم به د ده سره خپل غلام میسره هم ولیږي سید البشر ﷺ هم دبي بي خدیجي رضي الله عنها هغه رالیږل سوی خبر قبول کړ میسره یه ځان سره مل اودشام پرطرف باندي په سفر ولاړی.[٦٦]

## دخدیجي رضي الله عنها سره واده دشام دسفر ځخه وروسته

کله چي سید البشر ﷺ له شام ځخه راغی خدیجي رضي الله عنها په همدي سفر دسید البشر ﷺ کي اوپه هغه وړل سوي مال کي زیات برکتونه ولیدل اوهم یه په مال اوده کي زیادت اندازه باندي امانت داري او دیانت ولیدی برکتونه هم په دي مال کي دپخوا په پرتله باندي یو په لسه وو اوبل هغه دسید البشر ﷺ سره تللی دخدیجی رضي الله عنها مریی میسره هم دسید البشر ﷺ دامانت داری او دیانات اودکاملي تقوی شاهد وو د ده هغه دسفر امانت داری او نور هغه ددیانت اوزیادت تقوی حال یه د خدیجی رضي الله عنها سره شریک کړ په دي وخت کي بي بي خدیجي رضي الله عنها هم خپل هغه په زړه کي دوخت ځخه درلودونکی هدف پیداکړ بي بي خدیجه رضي الله عنها یوه داسي ښځه وه چي هغه په عربو کي لوړو لوړو اشخاصو د دي طلب کاوی او ورځخه یه دنکاح کولو غوښتنه کوله ي ته هیڅ هم داخبره دمنلو وړ نه وه خو کله چي سید البشر ﷺ له همدي عالي شخصیت اوزیادت امانتداری ځخه خبرداره سوه په زیاته اندازه باندي متأثره سوه په زړه کي یه ورسره دواده اراده وکړه کله چي یه دا دزړه اراده وریاندي غالبه سوه همدا په زړه کي جوړ مرام یه دهغه خپلي ملګري نفیسه سره شریک کړ د زړه باطني راز ته یه ظاهري جامه ورکړه هغه نفیسه بنت منبه دسید البشر ﷺ په حضور کي حاضره سوه دخدیجي سره یه دواده خبره مطرح کړه سید البشر ﷺ هم داخبره ومنله قبوله یه کړه له اکاګانو سره یه خبره وکړه د ده اکاګان دخدیجی رضي الله عنها واکاته ورغلل په همدي ترتیب سره یه دنکاح عقد وشو دواړو نکاح سره وکړه د دوی دواده په مراسمو کي دبني هاشمو مشیران اوداسي نورو لکه

---

[٦٦] ابن هشام ١/ ١٨٧، ١٨٨.

دمضر قبيلې والا شركت درلودئ سيد البشر ﷺ چي دبي بي خديجي سره واده وكړ
دا دشام دسفر څخه دوي مياشتي بعد وو.

## دبي بي خديجي رضي الله عنها مهر

سيد البشر ﷺ بي بي خديجي ته په مهر كي شل داني اوښان وركړل د دي عمر په دي
وخت كي څلويښت كاله وو دخپل عصر ترهغه ټولو زنانو دشرف اوقدر خاونده وه
مال اوپوهنه يه هم ترټولو ښځو زياته وه بي بي خديجه رضي الله عنها دسيد البشر ﷺ هغه
اولينه بي بي وه په امهات المؤمنين كي هم دي اوليت درلودئ ترڅو چي دي له
همدي دنيا څخه رحلت نه وو كړى سيد البشر ﷺ بل واده نه ده كړى يعني د دي په
ژوند كي دسيد البشر ﷺ سره دا تنهاوه [٦٧] دسيد البشر ﷺ اولادونه د ابراهيم څخه
بغير نور ټول د بي بي خديجي ﷺ څخه وو اولين مشرزوى يه قاسم نوميدى له
همدي وجي څخه د ده مبارك اسم كنيه (ابو القاسم) وو دويم اولاد يه زينب، دريم
رقيه، څلورم ام كلثوم، وروستي فاطمة الزهراء رضي الله عنها دهغي وروسته عبد الله پيدا سوى
دى دعبد الله په طيب اوياطاهر سره ملقب وو د ده مبارك زامن ټول په كوچنيوالي
كي وفات سوي دي او لوڼو يه اسلام راوړى اوهم يه هجرت كړى دى او دبي بي
فاطمي رضي الله عنها څخه بغير نوري ټولي د خپل والد مكرم سيد البشر ﷺ په ژوند كي
وفات سوي دي او فاطمه رضي الله عنها د ده دوفات مبارك څخه شپږ مياستي بعد وفات
سوي ده [٦٨].

## دوباره دكعبي شريفي ابادي

سيد البشر ﷺ ديرش كلن وو قريش په دي كوشش باندي سوو چي كعبه معظمه بيا
ودانه او اباده كړي په دي وخت كي دكعبي معظمي اندازه ترانساني قد لږڅه لوړه
او څلور طرفه هغه ديوالى شكل باندي مربع وه دحضرت اسماعيل على نبينا و عليه السلام
په زمانه كي دكعبي شريفي لوړوالى نه (٩) گزه وو په دي وخت كي يه بام چت هم نه
درلودئ اوله دي څخه په استفاده سره دكعبي معظمي په مابين كي هغه ايښودل

---

[٦٧] ابن هشام ١/ ١٨٩، ١٩٠، فقه السيرة لمحمد الغزالى ص ٥٩، تلقيح فهوم الاثر ص ٧.

[٦٨] ابن هشام ١/ ١٩٠، ١٩١، فقه السيرة ص ٦٠، فتح الباري ٧، ٥٠٧، كه څه هم په دي باره باندي دامصادريوه اندازه اختلاف سره لرى خو موږ په دي كي هغه راجح قول نقل كوو.

سوي خزانه غلو یو وړه او بل زیاّت وخت وربانديٰ تیرسوی وو تعمیر او هغه قدیمه ابادي په یوه اندازه دمابینه تللي وي هغه قدیمه دیوالونه یه هم خراب سوي وو چاکونه او درزونه یه کړي وو او دسید البشر ﷺ تربعثت پنځه کاله مخته یو ډیر غټ سیلاب راغلی وو دهغه مخه دکعبي معظمي پرخوا باندي وه کعبه معظمه په زیاته اندازه باندي کمزوري کړي وه هروخت په دنړیدلو احتمال وو له همدي وجي څخه قریش مجبور سول چي دهمدي باعزت او وقار مقام حفاظت وکړي او دبقاء ترتیب یه جوړکړي دوی ټول پردي باندي متفق سول چي دکعبي شریفي په ودانولو کي به حلالي روپۍ مصرفوي په دي مبارک مقام کي به په سود باندي اخستل سوي روپۍ او هم هغه درنډۍ اجرة او هغه په ظلم باندي اخستل سویه روپۍ نه مصرفوي اوداهم په دویم وار ابادي کي ضروري وه چي اولنی تعمیر ونړول سي خو پر دي نړولو باندي دچا جرأت نه وو تر څوچي ولیدبن مغیره المخزومي شروع په وکړه خلګو هم دمشاهده وکړه چي ده ته څه تاوان نه ورسیدی دهغه وروسته ټولو داکار شروع کړ هره.قبیله پرهغه خپله برخه باندي په کار باندي شروع سوه جدا جدا یه ډبري راوړي کارهم په دي ترتیب باندي شروع شو او معماري دهمدي دویم جوړښت باقرنومي رومي کوله داکار شروع وو.

## دحجر اسود دایښودلو پر سر باندي منازعه

کله چي کار دي ته ورسیدی چي نور نو دحجر اسود ایښودلو وخت ده دلته د دوی ترمابین اختلاف پیدا سو چي داعزت او شرف به دچا په برخه باندي کیږي؟ دامنازعه جنجال دوام پیدا کړ څلور یاپنځه ورځې همدا مشکل جوړ وو داهم قریبه وه چي یوخونړی او سخت جنګ دي شروع سي خو په دي ځای کي ابوامیه مخزومي یوه ویناوکړه چي هرڅوک دلته اول وار دمسجد حرام ودربازي ته داخل سو نو به هغه شخص دافیصله کوي ټول پردي باندي متفق سول دایوه الهي اراده وه چي سیدالبشر ﷺ په دي دروازه باندي اول وار راداخل سو ټول په یوه ژغ سره دا وویل چي دا فیصله بالکل صحیح ده دایقینا امین دی زموږ قبول دی دوی ته چي سیدالبشر ﷺ را ورسیدی دوی له همدي واقعي څخه خبر کړ ده مبارک په دي وخت کي یوپټو څادر راواخست په دي پټوکي یه حجر اسود کښیښنو وی دهغه وروسته

په هغه د قبیلو مشرانو ته وویل چې راسئ د همدې پټو طرفونه تکیه کړئ کله چې په حجر اسود وهغه ټاکلي او متعین ځای ته ورساوه هلته سید البشر ﷺ په خپل لاس مبارک باندي حجر اسود تکیه کړ او پر هغه ځای باندي یې کښېښووی دا یوه داسې معقوله او هم مقبوله فیصله وه چې د هغه ټولو قبیلو اشخاص وړ باندي راضي سول په همدې وخت کي د قریشو سره پاک مال د حرامو څخه خلاص مال زوپې. تمامي سوي په دې باندي مجبور سول چې د شمال طرف ته د کعبې څخه تقریبا شپږ (۶) متره په اوږدوالي باندي ځکه پرېږدي هغه یې پرېښووه وهمدې پاته سوي ټوټي ته حجر یا حطیم ویل کېږي قریشو هغه دخل دروازه د ځمکي څخه پورته کړه د همدې دپاره چې څوک داجازې څخه بغیر کعبې معظمې ته داخل نه سي کله چې کعبه معظمه پنځه لس متره لوړه سوه دوی د هغې چت په شپږو ستنو یعني میلانو باندي ودراوی کله چې مکمله سوه نو د کعبې معظمې خوني داسي یو مربع شکل ونیوی د هغې لوړوالی (۱۵) متره وو او هغه دیوالونه چې د حجر اسود مقابل دي یعني جنوبي او شمالي دیوالونه او خاص هغه دیوال چې حجر اسود پکښې دی هغه لس لس متره دي یعني اوږدوالی یې لس لس متره ده حجر اسود د طواف د ځای څخه یونیم متر لوړ ښودل سوی دی او هغه دروازې والا دیوال او د هغه سره مقابل دیوال دوولس دوولس (۱۲) متره اوږد دی او دروازه په د ځمکي څخه دوه متره لوړه ده د کعبې معظمې تر دیوالونو ګرداورد د کرسی په شکل باندي یوه ضلعه راګرځېدلې ده د همدې ضلعې هغه متوسط لوړوالی (۲۵) سانتي متره دی او هغه متوسط پلنوالی په (۳۰) سانتي متره دی او همدا د شاذوان په نامه باندي یادیږي په حقانه طور باندي دا هم د کعبې شریفي یو جز دی لکن قریشو دا هم پرېښې دی[69].

## دا جمالي سیرت بیان دنبوت څخه وړاندي

سید البشر ﷺ د ټولو هغو نیکو او ښائسته او حمیده اخلاقو خاوند وو کوم چې هغه وخت کي بعضي د شرافت خاوندان په داسي متفرقه توګه باندي د هغه د رلودونکي وو سید البشر ﷺ دیو روښانه فکر او پیاوړي نظر، او د مکمل استعداد، پرمخ تللی

[69] ابن هشام ۱/ ۱۹۳ تا ۱۹۷، فقه السیرة ص ۶۲، ۶۳، صحیح بخاری باب فضل مکه وبنیانها ۱/ ۲۱۵ تاریخ خضري.

زکاوت، د دماغ تازګي، د درست او هم صحیح هدف ټاکونکی، ډیره خاموشي، دزیات فکر او حقانه تفتیش اوپلټنې څخه دښه فرصت خاوند وو د الله ﷻ هغه نازولی رسول ﷺ په خپل هغه مکمل ذهن اوروښانه فطرت سره دزندګی ټولي پاڼي دالله ﷻ دمخلوق اوخلکو ټول حالات ویلي اوهم څېړلي وو اوپه هغو خرافاتو کي چي داخلک به راګیر وو دهغوی څخه یه خپل ځان ساتنه او دخپل ځان ورڅخه لیري ساتل د ده اوظیفه وه په عقل اوهم په بصیرت کي پرمخ تللی دخیر په کارونو کي تلونکی که به دخیر کار نه وو بیا ګوښه نشین وو سید البشر ﷺ هیڅ وخت هم شراب نوشي نه ده کړي هغه دبتانو په نامه باندي چي کوم حیوانات ذبحه کیدلو دهغوی غوښه یه نه ده خوړلي اوهغه دبتانو په نامه جوړو مجالسو اومحفلونو کي یه هیڅ کله هم شرکت نه دی کړی.

په زندګي کي یه دابتداء څخه بیاتر انتهاء دهغه باطلو معبودانو اوهم دهرقسم خرافاتو اوناوړه شیانو سره په سخته باندي کین لرونکی وو اوهم داسي وو چي دلات اوعزی په نامه باندي قسم یادول یه هم دبرداشت څخه دباندي کار وو (۱).

دا دشبهي اوشک څخه دباندي خبره ده چي سید البشر ﷺ په تقدیري حفاظت سره محفوظ وو دی مبارک دمقدر په ساتنه کي وو ځکه کله به یه دهغه دنیوي لذات د حصول په سبب باندي د ده هغه نفساني جذبات راپاریدل اویابه یه هغه منور زړه ودي ته تیار او امده سو چي دیوو ناخوښه اوغیر مختار رواج مقلد شي سمدلاسه به وربانذی الهي رحمت وسو اوهغه الهي عنایت به هم په دی وخت کي مداخله کوله له دي کار څخه به دی منعه سو په یو روایت دابن اثیر سره سید البشر ﷺ فرمایي:

ماهممت بشئ مما کان اهل الجاهلیة یعملون غیر مرتین کل ذالک یحول الله بیني وبینه ثم ماهممت به حتی اکرمني برسالته قلت لیلة للغلام الذي یرعی معی الغنم باعلی مکة لوابصرت لی غنمي حتی ادخل مکة واسمر بها کما یسمر الشباب فقال افعل فخرجت حتی اذا کنت عنه اول دار بمکة سمعت عزفا فقلت ماهذا؟ فقالوا عرس فلان بفلانة فجلست اسمع فضرب الله غلی اذنی فنممت فما ایقظنی الاحر

الشمس فعدت الى صاحب فسئلني فاخبرته ثم قلت ليلة اخزظ مثل ذالک ودخلت بمكة فاصابني مثل اول ليلة ثم ماهمت بسوء [٧٠].

**ترجمه:** هغه کارونه چي هغه دجاهليت دزماني خلکو به کول له دوو مرتبو څخه بغير مادهغوی تصور حتي بلکه دهغه مي هيڅ خيال هم نه دی کړی خودا دواړې مرتبي هم الله ﷻ زما اوهغه کار ترمابين پرده اوخنډ پيداکړ يعني هغه مي سرته نه ورساوی اوپه دي پسي مي بيا يوه نوعه اراده هم نه ده کړي ترڅو چي الله ﷻ په رسالت باندي مشرف کړم يوه شپه مي خپل ملګري ته چي دمکي مکرمي په اولينه حصه کي يه ميږي راسره پوولي ماورته وويل :که ته زما ميږو ته ګوري زه به مکی مکرمي ته ولاړسم زه به هم هلته دنورو ځوانانو په رقم باندي په هغه کيسو ويلو کي شرکت وکړم هغه ملګري راته وويل چي داخبره صحيح ده ولاړسه زه هلته ولاړم دمکي مکرمي هغه اولين کورته چي ورسيدلم په هغه محل کي مي دباجي اوازونعه ترغوږو سول سوال مي وکړ چي دا څه خبره ده دوی په جواب کي راته وويل چي دا دفلانۍ اوفلاني واده ده زه هلته کښينستلم هغه اواز هم اورم الله ﷻ زما غوږونه رابندکړل خوب راباندي غالب سو هم دلته په دي ځای کي ويده سوم ترداسي وخته چي لمر ګرمۍ باندي راويښ سوم بيرته دهغه خپل ملګري پرطرف باندي ولاړم هغه سوال راڅخه وکړ مادهغه په جواب کي مي ټوله هغه تيره سوي قصه ورته بيان کړه دهغه وروسته مي بيايوه بله شپه وخپل ملګري ته هم داسي وويل لکه هغه مخته هغه بياهم داسي راته وويل چي ولاړم ومکي بياهم هغه ذکرسوي ډول باندي عمل راسره وسو دهغه څخه وروسته مي بيا بالکل دا اراده هم نه ده کړي اودا اراده مي غلطه وبلله.

يوبل روايت امام بخاري رحمه الله دجابر بن عبدالله څخه کوي دی وايي هروخت چي کعبه معظمه جوړيدله سيدالبشر ﷺ او عباس رضي الله عنه دتيږو راوړلو دپاره ولاړل عباس رضي الله عنه وسيدالبشر ﷺ ته وويل چي خپل لنګ دي خلاص کړه او پر اوږه باندي يه کښيږده نوبه دي اوږي دتيږو څخه وساتي نه به خوږيږي سيدالبشر ﷺ په دي سره پرمځکه باندي وغورزيدی اوسترکي يه داسمان پرطرف باندي ونيولي

---

[٧٠] حاکم اوذهبي داحديث صحيح کړی دی ليکن ابن کثير په البدايه والنهايه ٢/ ٢٨٧ کي ضعيف بللی دی.

پیهوښنه شو کله چي پرهوښ باندې راغی داسي چیغي به یه وهلي په دي کي به یه دا خبره کوله چي زما لنګ زمالنګ بیا یه دسید البشر ﷺ لنګ ور وتاړی په یو بل روایت کي داسي خبره هم ستة چي له دي ښخه و روسته یوچاهم دده عورت نه دی لیدلی[71].

سید البشر ﷺ دزیادت نیکو اخلاقو خاوند وو ترټولو غیرتمند اودنیکی معامله لرونکی انسان وو په حلم بردباري عفت اوهم نرمي کي ترټولو مخته وو نیک عمله او هم دخیر خاوند وو وفادار اوهم دی زیات وعده پالونکی شخص وو، هرڅوک یه پردي اخلاقو باندي قایل وو، ده ته خپلو قومیانو دامین لقب ورکړی وو لکه چي دده په باره باندي خدیجة الکبری رضي الله عنها فرمايي (یحمل الکل ، ویکسب المعدوم، ویقري الضیف، ویعیب علی نوائب الحق[72].

ترجمه: سید البشر ﷺ به دبي وزلانو سره مرسته اوکومک کاوی د دوی بار به یه پورته کاوی، دفقیرانو اوتش لاسو دپاره به بندوبست کاوه، دمیلمانه قدر او درناوی کاوی، دحق په مصیبتونو کي به یه مرسته اوکومک کاوی.

## غار حرا ته ورتګ

کله چي سید البشر ﷺ څلویښت کلن سو د ده افکارو او نظریاتو دده او دقوم تر مابین هغه فکري اوذهني واټنونه یوه اندازه سره ازاد کړل نتیجه یه همداسوه چي دی به عزلت مختاره وو یعني ګوښه به یه خوښوله دخپل ځان سره به یه هغه دخورک مایکفي اندازباندی شی واخست اوبه به یه یووړي په جبل نور کي به دغار حرا طرف ته ولاړی هلته به یه سکونت مختار کړ داغار حرا دمکي معظمي ښخه دوه میلونه ازاده فاصله لري داپه داسي اندازه باندي برابر غار دی څلور متره اوږدواله لري اوهم پاوکم دوه متره یه عرض دی اوحال هم دادی چي دا غار په مځکه کي نه دی بلکه همدا غاردیو دوو ډبرو دیو ځای کیدلو ښخه جوړسوی دی اوداهم یوکت دی سید البشر ﷺ چي به هم دلته دی غار ته راتلی ام المؤمنین خدیجة الکبری رضي الله عنها به هم ورسره ملګري وه دده مبارک ته به نږدي ؤسیدله سید البشر ﷺ به دروڅي

---

[71] صحیح البخاري باب بنیان الکعبة ۱/ ۵۴۰.
[72] صحیح البخاری ۱/ ۳.

میاشت مکمله په هم دي غار کي تیروله فقیرچي به وربانديږ پینځه سو یوه اندازه خورک به یه ورکاوی دی مبارک به ټول وخت په عبادت باندي بوخت اولګیاوو دی به دکائناتو او دهغه دقدرت په باره باندي په غور اوفکر کي وو چي همدا ټول شیان یه پیدا کړي دي بل داوو چي ده دخپل قوم هغه طریقې اومسلکونه نه سوای قبلولای د دوی ټول تصورات اوهم مفکوري یه ور ردولي اوحال هم داوو چي دخپل ځان سره یه هم داسي یو معلوم منهج او تګ لاره نه وه اوهم داسي لاره هم نه وه ورته معلومه چي هغه دقبول وړسي او ورباندي مطمئن او په ډاډ مند زړه دهغي لاري پیروسي.[73]

دی مبارک له همدي تنهاوالي سره زیات خوشحال اود الله ﷻ په عبادت باندي به اخته وو او دا دسید البشر ﷺ ګوښه والي په حقیقت کي یو الهي تدبیر وو اخرالامر داسي وسول چي سید البشر ﷺ د رسالت دهمدي درانه بار دپورته کیدلو دپاره تیار اوامده سو اوداهم یو ښکاره حقیقت دی چي هغه د داسي روح خاوند شخص چي دیو داسی الهي فریضي او دیو داسي عالي درانه کار دپاره انتخاب وي نو دا ورته ضروري هم ده چي دی تنها او دنورو شخه ګوښه وي دزندګۍ له کړاوو نو اوداسي نورو زمیني مشکلاتو شخه ځان ګوښه کړي هم داوو دالله ﷻ درسول الله ﷺ دپاره مطالبه یه وه چي هغه دلوی امانت او زمه واری دپورته کولو دپاره په مځکه او هم نړۍ کي دیوه عالي انقلاب اوهم دتاریخ د مسیر دبدلون په خاطرباندي اماده کړي دري کاله تربعثت مخته دیوازي والي اوعزلت همدا لړۍ پیل سوه مکمل یوه میاشت به سید البشر ﷺ فکر کاوی چي داټول شیان الله ﷻ پیدا کړي دي ترڅو چي دالله ﷻ په اذن اوهم په اراده سره له همدي غیبي قدرت سره دتعامل دپاره اماده سي.[74]

## دوحي راوړونکی جبرائیل علیه السلام

سید البشر ﷺ چي کله څلویښت کلن سو چي همدا څلویښت کاله دهغه ذهني او عقلي کمال عمر دی ویل سوي دي چي پیغامبران علیهم السلام په همدي عمرکي

---

[73] رحمة للعالمين ۱/ ۴۷ ابن هشام ۱/ ۲۳۵- ۱۳۶، فی ظلال القران الجزء ۳۹- ۱۶۶.
[74] فی ظلال القران ۲۹/ ۱۶۶/ ۱۶۷.

دوی ته نبوت سپارل کیدی دزندګی دافق څخه دنبوت اثار اوهم علامې را ظاهره او ښکاره کیږي اوهغه حقیقت یه خوبونه ووسید البشر ﷺ چي به هرکله خوب ولیدی هغه به لکه دسپیدو داغ په انداز باندي راښکاره وو په همدي حالت کي یه شپږ میاشتي دوام وکړ دسید البشر ﷺ دنبوت دوره (۲۳) کاله وه همدا وخت د نبوت د دوري شپږ ځلویښتمه برخه وه دسید البشر ﷺ دحراء په غار کي هغه ګوښه اوعزلت کي چي وو په دریم کال د روژي په میاشت کي دالله ﷻ هغه دمځکي پربنده ګانو باندي هغه دالهي رحمت باران شروع شو الله ﷻ سید البشر ﷺ په نبوت باندي مشرف کړ او دسید البشر ﷺ په واسطه باندي یه دقران کریم څو ایتونه ورباندي نازل کړل سوو[75]. که یوه اندازه په دي باره باندي غور وکړو اوهم یه په ښه دقت سره ترفکرلاندي کړو داوبناکولای سو چي دا (۲۱) تاریخ د رمضان مبارک وو اوهم د دوشنبي شپه وه چي د (۶۱۰م) داګست دمیاشتي سره سمون خوري همداوخت دسید البشر ﷺ عمر مبارک په هغه قمري حساب باندي مکمل (۴۰) کاله (۶) میاشتي او (۱۲) ورځي ووا و هم په شمسي حساب سره (۳۰) کاله (۳) میاشتي (۱۲) ورځي وو.[76]

---

[75] ابن حجر وایي چي بیهقي ویلي دي چي دخوب لیدلو مرحله شپږ میاشتي وه اوپه دي سره موږ وایو چي دخوب دلاري څخه دنبوت شروع په څلویښت کلن عمر کي وه اوپه میاست دربیع الاول کي سوي ده اوپه ویښه باندي دوحي راتلل دروږي په میاست کي سوي ده؟فتح الباري ۱/ ۲۷.

[76] )دبعثت اوهم دوحی دنزول واولیني میاشتي دتجدید په باره باندي تاریخ پوهان په خپل مابین کي اختلاف لري ډیر یه په همدي نظرباندي دي چي دا دربیع الاول میاشت وه.اوبعضي داسي وایي چي دروژي میاست وه اوبعضو نورو وبناکړي ده چي درجب میاشت وه حواله (مختصر سیرت الرسول للشیخ النجدي (۷۷۵) .لکن موږ په همدي نظر باندي یوچي هغه دروژي میاست زموږ تائید ده دلیل همداده چي الله ﷻ فرمائي (شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِيَ أُنزِلَ فِيهِ الْقُرْآنُ) ۲/ ۱۸۵.ترجمه: دروژي مبارکي میاشت هغه میاشت دی چي نازل کړل سوی دی په دي کي قران مجید اوهم په بل ځای کي الله ﷻ فرمایي: (إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ) ترجمه: بیشکه موږ نازل کړی دی دا قران کریم په شپه دقدر باندي دقدر شپه خو په میاست دروژي کي ده اوهمدي شب قدر ته الله ﷻ اشاره کوي اوفرمایي: (إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةٍ مُّبَارَكَةٍ إِنَّا كُنَّا مُنذِرِينَ) ۴۴/ ۳. اوبله دا چي سید البشر ﷺ به دروژي میاشت په غار حراء کي تیروله اوداخو معلومه ده چي جبرائیل ﷺ اول وار په غار حراء کي ورته راغلی وو هغه اشخاص چي وائي چي نزول دوحی درمضان دمیاستي څخه شروع سوی دی دا په همدي کي اختلاف سره لري چي دا په کومه ورځ باندي وو ویل شوي دي چي دا دروژي اوومه وه او نوربیاداسي وایي چي د روژي دمیاستي او ولسم تاریخ وو په یو بل روایت کي راغلي دي چي اتلسم تاریخ دی .مختصر سیرت رسول ﷺ صفحه (۷۵) رحمة للعلمین ۱/ ۴۹؟او خضري په دي باره باندي په خپل کتاب کي ویلي دي چي دا درمضان اوولسمه نیټه ده همدا قول یه تائید کړی دی. محاضرات تاریخ الامم الاسلامیة الخضري ۱/ ۶۹. لکن موږ بیا په دي کي درمضان مبارک یوویشتم تاریخ صحیح بولو که څه هم یوچا داخبره نه ده کړي چي دا یوویشتمه نیټه وه خو څنګه چي ټول اویا اکثر سیرت پوهان په دي باندي متفق دي چي سید البشر ﷺ د دوشنبي په ورځ باندي په نبوت باندي مشرف سوی دی اوحدیث هم د دي نظر تائید کړی دی هغه حدیث چي امامانو روایت کړی دی له ابوقتادة ﷺ څخه روایت سوی دی چي د ددوشنبي دورځي دروژي به باره باندي دسید البشر ﷺ څخه سوال وسو ده ورته وویل چي په همدي ورځ باندي زه پیدا سوی یم اوپه همدي ورځ باندي وحي راته راغلي ده اوبل عبارت داسي دی چي دا هغه ورځ ده چي زه پکښي پیدا سوی یم او داهغه ورځ ده چي زه په نبوت باندي پکي مبعوث شوی یم

دبي بي عائشي رضي الله عنها په قول همدا ښيبنه چي دالهي نور يوه داسي شعله وه چي دکفر او هم جاهليت هغه تياري يه دماښنه يووړلي او هم دژوند تګلاره او هم مسير يه بدل کړ او هم يه دتاريخ مخ بل طرف ته واړاوی ام المؤمنين عائشه رضي الله عنها فرمائي:

قالت عائشة رضي الله عنها: أول ما بدئ به رسول الله صلى الله عليه وسلم من الوحي الرؤيا الصالحة في النوم، فكان لا يرى رؤيا إلا جاءت مثل فلق الصبح، ثم حبب إليه الخلاء، وكان يخلو بغار حراء، فيتحنث فيه وهو التعبد الليالي ذوات العدد قبل أن ينزع إلى أهله، ويتزود لذلك، ثم يرجع إلى خديجة فيتزود لمثلها، حتى جاءه الحق وهو في غار حراء، فجاءه الملك فقال: اقرأ: فقلت: ما أنا بقارئ، قال: فأخذني فغطني حتى بلغ مني الجهد، ثم أرسلني فقال: اقرأ، فقلت: ما أنا بقارئ، فأخذني فغطني الثالثة، ثم أرسلني فقال: اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ. خَلَقَ الْإِنسَانَ مِنْ عَلَقٍ. اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ. [77]

ترجمه: ووایه ای محمد ﷺ قران په برکت دنامه دالله خپل هغه چي پيدا کړي يه دی ټول مخلوقات او پيدا کړی يه دی انسان له ټوټو دهغه ترل سويو وينو څخه ووایه ای محمد ﷺ قران حال دا چي ستا الله جل جلاله لوی کريم ذات دی پرټولو کريمانو باندي.

فرجع بها رسول الله صلى الله عليه وسلم يرجف فؤاده، فدخل على خديجة بنت خويلد فقال: زملوني زملوني، فزملوه حتى ذهب عنه الروع، فقال لخديجة: مالي، وأخبرها الخبر، لقد خشيت على نفسي، فقالت خديجة: كلا، والله ما يخزيك الله أبدا، إنك لتصل الرحم، وتحمل الكل، وتكسب المعدوم وتقري الضيف، وتعين على نوائب الحق، فانطلقت به خديجة حتى أتت به ورقة بن نوفل بن أسد بن عبد العزى ابن عم خديجة وكان امرأ تنصر في الجاهلية، وكان يكتب الكتاب العبراني، فيكتب من الإنجيل بالعبرانية ما شاء الله أن يكتب، وكان شيخا كبيرا قد عمي فقالت

---

اويا راباندي وحي نازله سوي ده . صحيح مسلم ۱/ ۳٦۸. احمد ۵/ ۲۹۸/ ۲۹۹. په نوموړي کال باندي دروژي دمياشتي اوومه څورلسمه يو ويشتمه او هم اته ويشتمه نيټي د دوشنبي دورځي سره سمون خوري او صحيح روايات هم دا ښيي او دقدر شپه دروژي دمياشتي په اخري لسيزوکي هغه طاق شپي دي او په همدي شپوکي د له يوي نيټي څخه بيا وبلي ته نقل کيږي او کله چي دالله جل جلاله ودي قول ته (إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ) او هم دابو قتادة رضي الله عنه وهمدي روايت ته چي وای رسول الله ﷺ بعثت د دوشنبي په ورځ باندي وو او هم دا رنګه دعلمي تجربوي جنتريانو له رويه هم دنوموړي کال د دوشنبي ورځي ترنظر تيري سوي وُس داټول سره مقايسه کوو دابه ښه راته واضح شي چي دسيد البشر ﷺ بعثت درمضان مبارک ديو يشتمي نيټي دشپي څخه شروع سوی دی.

[۷۷] همدا ايتونه دالله جل جلاله ترهمدي قول پوري (عَلَّمَ الْإِنسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ) پوري رانازل سوی وو.

له خديجة: يا ابن عم! اسمع من ابن أخيك. فقال له ورقة: يا ابن أخي ماذا ترى؟فأخبره رسول الله صلى الله عليه وسلم خبر ما رأى. فقال له ورقة: هذا الناموس الذي نزله الله على موسى، يا ليتني فيها جذعا، ليتني أكون حيا إذ يخرجك قومك فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم أو مخرجي هم؟ قال: نعم، لم يأت رجل قط بمثل ما جئت به إلا عودي، وإن يدركني يومك أنصرك نصرا مؤزرا. ثم لم ينشب ورقة أن توفي وفتر الوحي(۱) ترجمه: پرسيد البشر ﷺ باندي دوحي شروع د له هغه نيکو او رښتياخوبونو څخه سوي دي سيد البشر ﷺ چي به هرکله يوخوب وليدی لکه دسپيدو داغ په طور باندي به ښکاريدی اوهم به داسي څرګنديدی ورپسي سيد البشر ﷺ ته تنهاوالی او عزلت ډير خوښ اوهم ورته ګران وو په هغه ذکرسوي غار حراء کي په تنهائي اويوازي والي باندي اخته وو زياتی شپي به کورته نه راتلی دهغه څو شپو چي هغه ده به په غارحراء کي تيرولي خوراک اوهم څښاک به يه دڅان سره وړی کله چي به هغه خلاص سوبيابه سيد البشر ﷺ وخديجي رضي الله عنها ته راتلی دهغه ورڅوپه انداز باندي خورکه به يه دڅان سره يووړه دابه يه وړه ترهغه وخته چي ده ته حق راغی په همدي وخت کي دحراء په غار کي وو ملائکه ورته راغله داسي يه ورته وويل چي ووايه؟ سيد البشر ﷺ ورته وويل چي زه ويل نه سم کولای فرمايي چی همدغه وخت زه هغه نوموړي ملائکي تکيه کړم په داسي اندازه زور باندي يه په غيږکي ټنګ کړم چي زه بالکل بيسده سوم دهغه وروسته يه پريښوولم دايه راته وويل چی ووايه ماورته په جواب کي وويل چي زه نسم ويلای ويونکی نه يم دويم واريه بيايه داسي زور سره ټنګ کړم ترداسي اندازي چي زه بيسده سوم چي پری يه ښوولم بيايه راته وويل چي ووايه؟ ماورته وويل چي زه ويونکی نه يم دريم واريه هم هغه ذکرسوی عمل راسره وکړ بالکل بيهوښه سوم کله چي يه پريښوولم همدا ايتونه يه راته تلاوت کړل: ﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ خَلَقَ الْإِنسَانَ مِنْ عَلَقٍ اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ﴾ ترجمه به دريادة کړئ ستاسو په مخ کي تيره سويه ده.

سيد البشر ﷺ دهمدي ايتونو په ويلو سره خپل کورته راغی زړه يه درپيدلو په حالت کي وو حضرت خديجي رضي الله عنها ته راغی داسي يه ورته وويل چي ماونغاړئ ماونغاړئ يعني په يو څادر اويادا سي بل شي کي مي پټ کړئ هغي هم په څاد رکي پټ کړ ترڅوچي واهمه او بيره يه دزړه څخه ووتله بياسيد البشر ﷺ دهمدي واقعي بيان ورته وکړ داسي يه وفرمايل: چي په ماباندي څه سوي دي هغه ذکرسوي قصه يه ورته بيان کړه اودايه هم زياته کړه زه پرخپل ځان باندي وبيريدلم خديجي رضي الله عنها ورته وويل چي داسي نه ده قسم په الله ﷻ باندي چي رب العلمين به هيڅکله هم تا رسوا

او خوار نه کړي زه دا وایم چي ته د خپلوی اړیکې ټینګې او محکمي ساته ته دوصله رحمي خاوند یي او هم ته د بیچاره ګانو بار پورته کونکی شخص یي او هم دنادارو او مساکینو لاس نیوی او هم مدد کوی مهمان نواز او هم د دوی قدر کونکی یي عزتونه ورکوي او هم ته داسي څوک یي چي د حق په مصیبتونو کي همکاري کونکی یي.

دهغه وروسته خدیجې رضي الله عنها هغه د خپل اکا زوی ورقه بن نوفل بن اسد بن عبدالعزی ته سید البشر ﷺ بوتلی ورقه هم د جاهلیت په دوره کي عیسایي سوی وو او هم یه په عبراني زبان باندي لیکل کولای سوای او په همدي ژبه کي دهغه خپل توان تراندازي پوري انجیل لیکونکی وو لکن دی دهغه وخت ډیر سپین ژیری وو په سترګو باندي یه نه لیدل خدیجې رضي الله عنها ورته وویل ای داکازویه ته دي دوراره قصه واوره او هم ځان ورباندي خبر کړه دی څه وایي ورقه ورته وویل ای وراره وایه څه دي لیدلي دي؟ سید الشر ﷺ دخپلو سترګو هغه لیدلی حال ورته بیان کړ ورقه ورته وویل :داهغه ملائکه ده چي الله جل جلاله موسی علیه السلام ته رالیږلي وه ای افسوس چي زه طاقتور او هم پیاوړی وای او کاش چي زه په هغه وخت کي ژوندی وای چي خپل قوم تا شړي سید البشر ﷺ ورته وفرمایل چي ایا دابه هم پیښه سي چي داخلک به ما شړي؟ ورقه ورته وویل چي هو هر کله چي ستا په رقم باندي پیغام چاراوړی دی هغه سره دښمنان هم زیات سوي دي که زه حیات وم زه به ستاسره مکمله مرسته او کومک کوم لکن څه وخت وروسته ورقه وفات سو او هغه وحی هم په موقت ډول باندي بنده سوه ؤس داخبره دطبري او ابن هشام دروایاتو څخه معلومیږي چي سید البشر ﷺ دناڅاپي راتللو دوحی څخه وروسته دحراء دغار څخه وتلی وو لکن یا بیرته راګرزیدلی وو او هغه خپل ټاکلی وخت یه دلته تیر کړ دهغه وروسته یه مکي مکرمي ته تشریف یو وړی دطبري په روایت سره د سید البشر ﷺ دکور څخه د وتلو او هم تللو سبب راته معرفي کوي هغه داسي روایت دی چي سید البشر ﷺ دوحی دراتللو یادونه کوي داسي فرمایي: دالله جل جلاله په مخلوق کي دشاعرلیوني څخه زیات مي بل شی بد نه ایسیدل یعني دهمدي ذکرسویو دواړو سره مي په زیاته اندازه باندي کین درلودی حتی چي دوی ته هسي کتلو تحمل مي هم نه سوای

کولای کله چي وحی راغله دخپل ځان سره مي داسي وويل چي دا يعني هغه خپل مبارک بشر يه شاعر او ياليونی دی زما په باره باندي به قريش هيڅکله هم داسي خبره ونه سي کړای زه دغره وسرته خيژم او دهغه ځای څخه ځان را غورزوم چي زه مړ سم او دهميش دپاره په امن او هم هوساشم سيد البشر ﷺ فرمايي: زه په همدي فکر باندي ووتلم لکن کله چي دغره وهغه نيمايي حصي ته ورسيدلم له اسمان څخه مي يو اواز واوريدی هغه ماته وايي: ای محمده ﷺ! ته دالله ﷻ رسول اوزه هم جبرائيل عليه السلام يم دی مبارک فرمايي کله چي مي داسمان پرطرف باندي وکتل جبرائيل عليه السلام ديوه سړي په شکل باندي اوهم دسپين ژيري په ځيره کي داسمان په افق کي پښي ايښي دي داسي وايي ای محمد ﷺ ته دالله ﷻ رسول يي زه جبرائيل يم دی فرمايي چي ودريدلم په همدي باندي مشغول سوم او خپله اراده مي نه کړه عملي په کوم باندي چي زه وتلی وم زه پرځای باندي ولاړوم هيڅ مخ وشاته هم نه يم تللی داسمان وهرطرف ته چي به ما وکتل جبرائيل عليه السلام به په هغه طرف کي ولاړوو په هغه بيان سوي صورت اوشکل کي به هلته وو زه دلته ولاړوم ترهغه وخته چي په ماپسي خديجي رضي الله عنها ځوک راوليږی دوی ترمکي مکرمي رسيدلي ووزه هم هلته ولاړوم بيا جبرائيل عليه السلام را څخه ولاړی زه هم بيرته وخپل اهل ته راغلم.[۷۸]

خديجي رضي الله عنها ته ورغلم او هم دهغي دزنګانه مبارک سره په داسي حالت کي کښينستلم چي تکيه مي ورباندي کړي وه هغي راته وويل چي ای ابو القاسم ﷺ ته چيري وي؟ قسم په الله ﷻ چي مادرپسي خلګ وليږل هغه ترمکي مکرمي ولاړل اوهغه بيرته راغلل ته نه وي بياماورته هغه دسترګو ليدلی حال بيان کړ دی راته وويل چي ای داکازويه خوشحاله اوسه اوهم ته دثبات څخه کاروا خله زما دي په هغه الله ﷻ باندي قسم وي چي دخديجي رضي الله عنها ځان دهغه په اختيار کي دی چي زما دا هيله ده چي ته به دهمدي امت رسول اونبي يي[۷۹] دهغه وروسته ورقه بن نوفل ته ورغلل هغه يه دهمدي ييښي څخه خبر کړ ورقه ورته وويل قدوس، قدوس، قسم په الله ﷻ چي دورقه ځان دهغه الله ﷻ په اختيار کي دی چي هغه ناموس اکبر ملائکه

---

[۷۸] نص الطبري ۳/ ۲۰۷.
[۷۹] نص ابن هشام ۱/ ۲۳۷- ۲۳۸.

راغلي ده کومه چې وحضرت موسی علیه السلام ته راغلي وه دا دهمدې امت نبي دی ورته وواېه چې محکم اوټینګ وسه دهغه وروسته خدیجه رضي الله عنها ورڅخه راغله او سید البشر صلی الله علیه وسلم ته یې دورقه خبرې مکملې و کړې بیاچې کله سید البشر صلی الله علیه وسلم په غارحراء کې هغه خپل تاکلی وخت مکمل کړو مکې ته یې تشریف راوړی دورقه سره یې ملاقات وسو کله چې ورقه دسید البشر صلی الله علیه وسلم هغه خبرې واوریدلې ورته ویې ویل: قسم په هغه ذات اقدس باندې چې هغه زمانفس دهغه په اختیار کې دی ته دهمدې امت نبي یې وتالره هغه ناموس اکبر ملائکه راغلي ده کومه چې وحضرت موسی علیه السلام ته راغلي وه ته په حقه سره نبي یې[۸۰].

## کله چې وحي موقتي بنده شوه

په همدې باره باندې چې وحي موقتي طورباندې بنده سوه سعد له ابن عباس رضي الله عنه څخه یوروایت رانقل کړی دی چې دامعرفي کوي چې وحي صرف څو ورځې بنده سوه[۸۱] اودهمدې مسئلې په ټولو اړخونو اوطرفونو کې له ستري څېړني اوهم تحقیق څخه وروسته هم دانظریه دنورو په پرتله باندې دصحت وړ ده اوهم قوي ده بلکه داخبره یقیني ښکاریږي اوهغه چې ویل کیږي همدا موده دري اویادوه نیم کاله وه د دادول نظر په باره دلته تنها دومره ویلای سو چې دا دحقیقت څخه لیرې او بې اساسه وینا ده دوحي دبندیدلو په ورځو کې سید البشر صلی الله علیه وسلم زیات پریشانه اوهم غمجن وو وهم اوهم حیرانتیا اخستی وو امام بخاري رحمه الله په کتاب التعبیر کې یو روایت په داسې انداز باندې رانقلوي:[۸۲]

وفتر الوحي فترة حتى حزن النبي صلى الله عليه وسلم فيما بلغنا حزنا عدا منه مرارا كي يتردى من رؤوس شواهق الجبال. فكلما أوفى بذروة جبل لكي يلقي نفسه منه تبدى له جبريل فقال: يا

---

[۸۰] دابن هشام ۱/ ۲۳۸ لندیز دبخاري شریف دروایت دسیاق اوپه همدې باره باندې دنورو روایاتو دتقابل څخه اوهم دهغوی دڅېړني څخه وروسته ویلای سو چې مکې ته دسید البشر صلی الله علیه وسلم راتلل اوهم دورقه سره ملاقات کول دوحي ترنزول وروسته په هم هغه ورځ باندې ترسره سوی دی اوهم تاکلې موده یې په غارحراء کې مکمله کړې وه اوبیا دمکې څخه بیرته تللی وو.

[۸۱] فتح الباری ۱/ ۲۷، ۱۲، ۳۶۰.

[۸۲] په غین سره دې وتیزتګ ته ویل کیږي.

محمد إنك رسول الله حقا، فيسكن لذلك جأشه، وتقر نفسه، فيرجع. فإذا طالت عليه فترة الوحي غدا لمثل ذلك. فإذا أوفى بذروة الجبل تبدى له جبريل فقال له مثل ذلك.[83]

ترجمه: د څه وخت دپاره وحي بنده سوه سيد البشر ﷺ په داسي اندازه باندي غمجن سو چي څو واره يه دغره وهغه لوړي څوكي ته اراده وكړه او ولاړى به ترڅو چي دهغه ځاى څخه ځان را وغورزوي جبرائيل عليه السلام به ورته را ښكاره سو داسي به يه ورته وويل چي اى محمد ﷺ ته په حقه باندي دالله جل جلاله رسول يي په همدي سره به دسيد البشر ﷺ زړه ډاډمن سو اوپريشاني به يه وركه سوه بيرته به راستون سو خوبيا چي به كله دوحى دبنديدلو وخت ورباندي اوږد سو سيد البشر ﷺ به بيا هم په دي اراده باندي ووتى كله چي به دغره وڅوكي ته ورسيدى بيا به جبرائيل عليه السلام ورته راښكاره سو هغه بيان سوي خبره به يه ورته بيان كړه اوهم به يه ورته تكراروله دا دسيد البشر ﷺ دپاره دتسل او اطمنان وړ وه.

## دويم وار دجبرائيل عليه السلام وحی

ابن حجر رحمه الله ويلي دي چي دا دوحي څو ورځي بنديدل دهمدي په خاطرباندي ووچي دسيد البشر ﷺ څخه هغه واهمه ليري سي كومه چي هغه دوحي دنزول سره پيدا سوي وه اودوحى بيا راتګ ته زيات خواهش مندسي[٨٤] كله چي وهم اوحيراتتيا پردې څيري سوي دحقيقت او هم دواقعيت تهداب هم ټنګ سو اوسيد البشر ﷺ په علم اليقين سره پوه سوچي هغه دلوى الله جل جلاله له پلوه په نبوت باندي مشرف سوى دى اوهغه ملائكه چي ورته راغلي وه هغه دوحى راوړونكي ملائكه وه چي هغه ده ته داسمان څخه وحي راوړي دوحى بيا راتللو ته د ده زيات شوق او انتظار دوحى دبيا راتللو په صورت كي د ده دثبات اوټينګار سبب سوبالاخره جبرائيل عليه السلام بياورته راغى امام بخارى رحمه الله له جابربن عبدالله څخه روايت كوي دى وايي چي ماله سيد البشر ﷺ څخه اوريدلي دي چي دوحى دبنديدلو په باره باندي فرمايي:

«فبينا أنا أمشي سمعت صوتا من السماء، فرفعت بصري قبل السماء، فإذا الملك الذي جاءني بحراء قاعد على كرسي بين السماء والأرض، فجئثت منه حتى هويت إلى الأرض، فجئت أهلي

[٨٣] صحيح البخارى كتاب التعبير باب اول مابدء به رسول الله ﷺ من الوحى الرؤيا بالصالحة ٢/ ٢٠٣.
[٨٤] فتح البارى ١/ ٢٧.

فقلت: زملوني زملوني، فزملوني، فأنزل الله تعالى: يا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ إلى قوله: فَاهْجُرْ، ثم حمي الوحي وتتابع[85].

**ترجمه:** زه روان وم چي داسمان دطرف څخه مي يوناڅاپه اواز واوريدى پورته واسمان ته مي وکتل هم هغه ملائکه چي هغه په غار حراء کي راته راغلى وه داسمان او دمځکي ترمابين پرچوکۍ باندي ناسته وه زه څني وويريدلم پرمځکه باندي راولويدلم دهغه وروسته خپل اهل اوکورنۍ ته راغلم دامي ورته وويل چي ما ونغاړئ ماونغاړئ دوى زه په يوه کفره کي ونغښتلم اوبيا الله ﷻ (يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ. تر. وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ پوري ماباندي نازل کړ په همدي پسي دوحي طريقه تيزه سوه په دوامي توګه باندي به وحي راباندي نازليدله.

## دوحي اقسام اوپه دي باره باندي څيړنه

له دي څخه مخته چي درسالت اوهم دنبوت دزندګۍ په باره باندي په زيات تفصيل سره ورداخليږو اودالازمي شميرو چي اولين حالت کي دوحي قسمونه اودولونه وپيږنو هغه وحي چي هم مصدر درسالت اوهم د دعوت منبع اصل او اساس په دي اره باندي ابن القيم داسي فرمايي:

داوحي يوه اندازه دربښتياوو خوب وو همداوو دسيد البشر ﷺ دوحي پيل اوشروع.

(۲) داييا په هغه رقم باندي وحي وه چي ملائکي به دده په زړه کي واچوله لکن هغه ملائکه دده نه ليدله لکه چي سيد البشر ﷺ په دي باره باندي فرمايي

:كما قال النبي صلى الله عليه وسلم: «إن روح القدس نفث في روعي أنه لن تموت نفس حتى تستكمل رزقها. فاتقوا الله، وأجملوا

ترجمه: روح القدس به زما په زړه کي راپوه کړل چي هيڅ نفس اوساکښونکى به ترهغه وخته مړنه سي چي هغه خپله روزي مکمله نکړي وروسته دالله ﷻ څخه وهم وکړئ اوهم حلاله روزي طلب کړئ اوهم دروزي سستيادي تاسو باندي هم باعث نه وي چي تاسو يه دګناه په کولو سره طلب کړى دليل همداده هغه څه چي دالله ﷻ سره دي هغه لاس ته نه راځي لکن دالله ﷻ په اطاعت سره راځي.

---

[85] صحيح البخاري كتاب التفسير باب والرجز فاهجر ۲/ ۷۳۳.

دریم: قسم هغه وو چې سید البشر ﷺ ته به د سړي په شکل باندي فرښته راغله له ده سره به وږغیدله ملائکي چې به څه ویل سید البشر ﷺ به هغه ورڅخه حفظ کول په همدي صورت کي به کله کله دا ملائکه صحابه کرامو هم لیدله.
څلورم: قسم هغه وو چې وحي به د زنګ داواز په رقم باندي راتله او دا په زیاته اندازه باندي ګرانه وحی وه ملائکه به ورسره یو ځای کیدله او د داسي سخته وحي وه چې دهغه سخت یخنۍ په موسم کي به هم د سید البشر ﷺ پرهغه مبارک او نیک تندي باندي دخولو باران وو دهمدي وحي راتللو داسي حالت وو چې په دي حال کي به دی پراوښه باندي هم سپوروو خو هغه اوښي لره د ریدلو نور توان او طاقت نه وو هغه به پرمځکه باندي پریوتله په همدي روایت کي ویل سوي دي چې یوه ورځ سید البشر ﷺ ته وحی راغله په داسي حال کي چې ده خپل ورون مبارک د زید بن ثابت ﷺ پر ورون باندي ایښی وو پرزید باندي په داسي انداز باندي زور راغی چې دا د زید ورون وماتیدلو ته قریب وو.
پنځم قسم داسي وو چې سید البشر ﷺ به ملائکه په هغه اصلي او خپل شکل کي لیدله هرڅه چې به دالله ﷻ خوښه وه هغه به یه ورته وحی کړل او دا هغه وحی ده چې په وخت کي دوه واره سوي ده او همدا دوه واره وحی په سورة النجم کي الله ﷻ بیان کړي ده.
شپږم قسم وحي هغه وه چې الله ﷻ دمعراج په شپه باندي پورته په اسمانونو کي ورته کړي وه چې هغه عبارت دی دلمانځه دفرضیت او هم دنورو احکامو څخه.
اووم قسم وحي هغه ده چې هغه دالله ﷻ قولونه دواسطي څخه بغیر وي یعني په مابین کي کومه واسطه نه وي لکه څنګه چې الله ﷻ دموسی علیه السلام سره خبري کړي وي دا دموسی علیه السلام سره خبري کول په نص دقران کریم سره ثابت دي همدا رنګه زمونږ نبي سید الانبیاء محمد ﷺ ته په حدیث داسراء او هم دمعراج باندي ثابت دي.
او په وحي کي بعضو علماؤ اتم قسم هم ثابت کړی دی چې هغه خاص دالله ﷻ خبري دي دسید البشر ﷺ سره دحجاب او پردي بغیر لکن دا یوه اختلافي مسئله ده

سلفو او هم خلفو په دي کي اختلاف کړی دی دابن قیم بیان دیوه اندازه اختصار سره چي په اول او اتم قسم کي وسو هغه اخرته ورسیدی.[۸٦]

# دعوت الی الله ته د دریدلو امر

دالله ﷻ په دي قول کي:

يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ قُمْ فَأَنذِرْ وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ وَلَا تَمْنُن تَسْتَكْثِرُ وَلِرَبِّكَ فَاصْبِرْ

**ترجمه:** ای په جامه کي نغښتونکي دوحي دواهمه څخه پورته سه دخوب دځای څخه وبیروه خلک (دالله ﷻ دعذاب څخه که ایمان نه راوړي) او هم دخپل الله ﷻ لویي بیان کړه او کالي خپل وساته پاک، ګندکي او هم بتان پرېږده، او داسي احسان مه کوه چي دهغه بدل زیات غواړي او دخپل رب ﷻ دپاره صبر کوه (او هم هیله ورته لره او هم یه احکاموته منتظرسه) سید البشر ﷺ په دي کي څو اوامر ترلاسه کړل دا اوامر په ښکاره ډول باندي ډیر ساده معلومیږي لکن په حقانه طور باندي ډیرو لوړو او هم عالي اهدافو او هم دواقعیتونو په دنیاکي دیولوی عمل درلودونکي دي.

(۱) دخلګو دویرولو (انذاز) دپاره دریدل او هم ورته چمتوکیدل دهغوی انتهائي برخه داوه چي په ټول عالم کي څوک هم پاته نه سي هغه څوک چي دالله ﷻ دمرضیاتو څخه وي باید له خپل وخیم اوخطر ناک انجام اوعاقبت څخه خبراووېرول سي ترڅوچه په زړه کي یې بیره اولړزه راولاړه سي.

(۲) دالله ﷻ دتکبیراوپه لویې سره دهغه یادولوتقاضا اوغوښتنه داده چه دمځکي پرمخ باید بل هیڅاته هم لویې اوکبر پاته نه سي بلکه دداسي کبریاء اولویې ماتې باید رانسکوره کړل سي ترڅو دمځکي پرمخ له الله ﷻ بغیر بل هیڅوک دلویې اوکبریاء درلودونکي نه وي.

(۳) دجامو له پاکي اوله هرډول چټلي څخه دځان ساتلو هدف داده چه په ظاهري اوباطني صفایې اوپاکي له هرډول ګندکي اوشائبو څخه دنفس په تزکیه کي دکمال هغه لوړي پوړي ته وخیږي چه انسان ورته یوازي دالله ﷻ په رحمت، حفظ، هدایت

---

[۸٦] زادالمعاد ۱/ ۱۸ داول او اتم دول په بیان کي مویوه اندازه اختصار ر کړی دی.

اونور سره رسيداي سي هدف ډاده چه هغه دکمال دي درجي ته په رسيدو سره دانساني ټولني لپاره داسي قدوه او عظيمه نمونه وي چه سليم زړه نه ورباندي نښلي اوله حق څخه منحرف اوکاږه زړونه يې له هيبت او عظمت څخه په لړزه راځي اوبالآخره ټوله دنيادموافقت يامخالفت په صورت کي دهغه پرشاوخواراوڅرخي.

(۴) داچه امر ورته کوي چه په نيکي اواحسان سره دکثرت يازيات بدل هيله اوغوښتنه مه کوه مطلب يې داده چه خپل عمل هلې ځلې لويې اوغټي ونه شميري بلکه په مسلسله توګه په يوو عمل پسي دبل په لټه اوکوشش کي وي زيات مشقت وګالي عظيمي قرباني ورباندي کي خوبيادا ټول هيرکړي اوداسي وانګيري چه دادالله ﷻ په وړاندي هيڅ شي هم نه دي يعني دالله ﷻ په يادا ودهغه په وړاندي دجواب ورکولوله بيري خپلي ټولي قربانۍ تکليفونه له ياده وباسي اوپه هيڅ يې وشميري.

(۵) په وروستني آيت کي الله ﷻ دي ته اشاره کوي چه ددعوت اوبلني په لاره کي به هغه ﷺ دد ښمنانواو معاندينو له خوا ډول ډول کړاوونه اوتکليفونه ويني مخالفت به ورسره کيږي ملنډي به ورباندي وهل کيږي آن تردي چه دده اودده ﷺ داصحابو دقتل اووړل کيدو کوششونه به کيږي الله ﷻ امر ورته کوي چه ددي ټولو مشکلاتو په وړاندي له صبر اوزغم څخه کار واخلي اودفولادي غره په څير ثابت اوټينګ ودريږي خوداصبر اوثبات به ددي په خاطر نه وي چه کومه شخصي ګټه اونفسي غوښتنه يې په پوره سي بلکه داټول به يوازي اويوازي دالله ﷻ درضا په خاطر کوي.

الله اکبر: داحکمونه اواوامر په ظاهره باندي څومره بسيط اوهم الفاظ يې په څه انداز باندي جذب لرونکي دي اوهم دډير لانديزن اثر لرونکي دي اوهمدا په ظاهر باندي بسيط اوهم اسانه اوامر دعمل او هدف په ميدان کي يوډيرلوی اوهم سخت دي او د دوی په نتيجه کي يوزيات عظيم طوفان ميدان ته راغلی دی چي د دنيا و هر طرف ته رسيدلي دي يو عظيم انقلاب يه راوستلی دی اوهم يه دا دنيا يو دبله موافق او اتحاد کړي ده اودغه ايتونه يوداسي اصول راته معرفي کوي چي هغه د تبليغ اوهم دعوت مواد اوهم دهغوی داصولو دپاره دورتللو لاره ده په اية کريمه کي دانذار مطلب اوحکمت هم دادی چي دا راوښيي چي انساني کسبونه او اعمال په

داسي اندازه دي چي دهغوی اندازه اواخر زيات خطرناک دي او څرنګه چي وهرشخص ته دامعلومه ده چي په دي دنياکي انسان دهغه خپلو ټولو اعمالو افعالو جزاء اوهم نتيجه نه ويني په دي صورت کي دانذاريوه تقاضا داده چي انسان دخپلو هغه ټولو کړنو دبدلي اوهم جزا دپاره له دنياڅخه وربل طرف ته يوه بله ورځ هم راتلونکي ده اودا هغه ورځ دی چي وهغي ته په قران کريم کي يوم القيامة ويلي سوي ده اودا بيا دهمدي طلب داره ده چي دهمدي دنياوي ژوندون څخه بغير نور ژوند هم موجود دی ذکر سوي ايتونه دبندګانو څخه داسي غوښتنه کوي چي بايد بندګان تنها دتوحيد لاره خپله کړي ټول کارونه وهغه ذات ته وسپاري چي دشريک څخه پاک دی په دي کي هغه خپل هرڅه مطالب بايدشاته کړي څه چي داحد ﷻ اوامر اونواهي دي هغه بايد عملي کړي.

## د دعوت موادو اوهم اصولو ته ستاسو توجوه

(۱) توحيد. (۲) پريوم القيامة يعني دقيامت پرورځ باندي کامل ايمان لرل. (۳) تزکيه دنفس له قسم قسم منکرات اوهم له بديو څخه ځان ساتل ټول هغه کارونه پريښوول چي هغه دخطرڅخه ډک اوهم دهغوی انجام خراب وي اوداسي کول چي هرقسم نيکي کمال اوهم خير سرته رسول. (۵) هرڅه والله ﷻ ته مفوض کول. (۶) دسيدالبشر ﷺ پر رسالت باندي مکمل او پوخ اوهم په زياته اندازه باندي ټينګ ايمان لرل اوهمدا ټول دسيدالبشر ﷺ ترامر لاندي اودهغه درهنمائي سره سم په سر رسول. اودا مبارک اومنور ايتونه دهمدي لوی کار او زيات مسئوليت سيد البشر ﷺ ته امرکوي چي ته نور ولاړسه خوب، اوهم استراحت په ارامه بستره کي پريږده اودمشقتونو او تکاليفو دجهاد لاره خوښه کړئ (يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ قُمْ فَأَنذِرْ) دهمدي ايتونو ژباړه اومفهوم په پورتنيو ليکو کي تيرسوهغه شخص چي تنها دخپل ځان دپاره ژوند کوي ممکن چي خوب اوهم ارام ولري لکن ته ای سيدالبشر محمد ﷺ په داسي اندازه باندي مسئوليت په غاړه لري نورستا دپاره بايد داسي سهولت ارامتيانه وي ستا بار دروند دی په داسي انداز باندي ثقالت لرونکی بار دی چي دهغه سره دمشقت اومشکل څخه بغير نورڅه نه ليدل کيږي ولاړيدل پکار دي زيات اوعظيم مسئوليت درته سپارل سوی دی ترټولو ستا بار دروند دی پورته سه هغه

جهادي لاره او هغه اغزنه دمشقتونو لاره ووهه څه دخوب وختونه نور ستاسره نسته په موجوده حال کي دهغه مسلسل تکليف دور شروع سوی دی پورته سه دهمدي لوړ اوعالي بار دپاره ځان تيار کړه دايوه داسي عظيمه اوباهيبته کلمه ده چي سيدالبشر ﷺ دهغه ګرمي بستري اوهم دسهولت دژوند څخه را پورته کوي او سيدالبشر ﷺ د ده هغه نوراني بشر ديوداسي کړاوونو اوهم دزياتو مصيبتونو ودرياب ته لاهوکوي کورنی ژوندون ورباندي پريږدي اوهم په دخلکو دژوندنيو حقيقتونو دمقابلي ميدان ته راباسي اوهم په وهمدي مقابلي ته دروي.

سيدالبشر ﷺ هم د همدي الهي حکم له نزول اوهم اوريدلو سره في الحال ولاړسو دی مبارک تقريبا شل کاله دهمدي مقابلي په ډګرکي چي هغه دجهاد اومقاومت ميدان وو ودريدی راحت اوهم ارام يه نه درلودی دهمدي عظيم مسئوليت داداکيدلو په لاره کي يه خپل ځان اوهم اولادونه اوهم نور اهل بيت په زياته اندازه باندي هيرکړي وو په مکمل غيرت او اسلامي جذبه باندي يه دالله ﷻ وطرف ته بلنه کوله اوداسي احساس يه هم نه وکړ چي دا څومره ستر اوعالي امر دی دهمدي درانه بار په پورته کيدلو کي يه هيڅ کمزوري نه ده اختيار کړي داحقيقةً يوعظيم کاروو درونه باروو دليل همدا ده چي دا د ټولي بشري ټولني اودمکملي عقيدي رسول الله ﷺ په جهاد جنګونو اوهم په ډګرونو کي وو داسي پيښه په وخت کي بالکل نه ده راغلي چي ديو کار په سبب دي هغه بل کار پاته وي چي کله دسيدالبشر ﷺ ترغوږونو هغه الهي حکم سوی وي په هغه دم باندي يه هغه خپل ټول ژوندون دهميشه جهاد او دهميشتوب جنګونو په ميدان کي تيرکړ جزاه الله عنا وعن البشرية کلها خيرا .[87]

راځئ په اينده کي دسيدالبشر ﷺ په هغه نه ستړي کيدونکو کارونو اوهم په جهاد پيله لړۍ کي يوه اندازه بحث وکړو.

---

[87] في ظلال القرآن تفسير سورة المزمل والمدثر ج ۲۹/ ۱۶۸- ۱۶۹- ۱۷۰، تا ۱۸۳.

# دعوت او دهغه مراحل

دسید البشر ﷺ هغه درسالت عزتمند ژوند پر دوو بیلابیلو برخو باندي ویشل سوی دی په مکه کي ژوند کیدنه تقریبا (۱۳) کاله په مدینه منوره کي ژوند کیدنه پوره اومکمل (۱۰) لس کاله بیا په دي کي هردور مختلفي مرحلې لري په دي کي هره مرحله دخاصو ځانګړتیاوو اوهم دبیلونکو خصائصو درلودونکی ده که د دعوت اوبلني په دي دواړو دورو باندي یوه اندازه دقیق نظر واچوو دابه ښه راته معلومه سي چي دور مکي پردرو مختلفو دورو باندي تقسیم سوی دی.

(۱) دپټي بلني مرحله دبعثت دڅلورم کال دشروع څخه دبعثت دلسم کال تراخره.

(۲)دمکی څخه دباندي د دعوت اواعلان خپریدل دبعثت دلسم کال داخر څخه بیامدیني ته دسید البشر ﷺ ترهجرته دمدني دور دمراحلوزیات وضاحت خپل ځای لري.

## «په مراحلو کي لومړۍ مرحله دعوت اوتبلیغ»

درې کاله پټه اوسري بلنه : داخو هرچاته معلومه ده چې مکه هغه وخت دعربو دیني مرکزؤ دکعبې شریفي ساتونکي اودامورو مشران دعربو په نزد دمقدسو بتانو ساتونکي هم دلته په مکه کي ؤ،نوددې ځای اصلاح اوددې خلکو پرسیده لار روان یو دنورو په نسبت ډیر ګران او مشکل کار ؤ،دلته ددعوت لپاره داسي پخې ارادې اوټینګ عزم ته ضرورت ؤ چې مصیبتونو اومشکلاتو طوفانونه یې له ځایه ونه سي خوځولای اوپه داسي حالاتو کي دحکمت تقاضا اوغوښتنه هم داوه چې دعوت اوبلنه باید په لومړي سرکي په پټه اومخفي توګه ترسره سي، تر څو دمکې اوسیدونکي په ناڅاپه اونابیره توګه له یوه راپارونکي حالت سره مخ سو.

## «داسلام لومړني مخکشان»

طبعي خبره وه چې سید البشر ﷺ باید لومړۍ هغه کسان اسلام ته راوبولي چې له ده او آل بیت سره دوستي اونژدې اړیکي لري ،هم داسي وسول،رسول الله ﷺ خپل لومړني دوستان اسلام ته راوبلل اوهغه کسانو ته یې داسلام بلنه ورکړه چې دخیرتمه ورڅخه کیده اوپیژندل یې چې دوی تل دحق اوحقیقت خواته ودریږي اوده ﷺ په صدق ریښتولی او اصلاح باندي پوخ باور لري ، له دي ډلي څخه هغو

کسانو ده ﷺ خبره ومنله کوم چې د رسول الله ﷺ دعظمت ،صلاح ،صدق اوصداقت په هکله شک نه وکړي،دالله تعالی غوره بندګان په اسلامي تاريخ کې دالسابقون الاولون په نامه شهرت لري،ددې ډلې په سرکې د رسول الله ﷺ بې بې حضرت خديجة الکبری رضي الله عنها د رسول الله آزاد سوی غلام حضرت زيد بن حارثه رضي الله عنه بن شرحبيل الکلبي وو[88].

اوحضرت محمد ﷺ داکازوی علی بن ابی طالب چې هغه وخت لا کوچنی ؤ اودرسول الله ﷺ ترکفالت لاندې ؤ اود رسول الله ترټولونژدې ملګری حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه ؤ داهغه کسان دي چې ددعوت په لومړنيو ورځوکې په اسلام مشرف سوي دي، ددې وروسته ابوبکر صديق رضي الله عنه د اسلام لورته دبلنې لپاره مټې ونغښتلې ،ابوبکرصديق رضي الله عنه په خپل قوم کې يو منل سوی اومخور سړی ؤ، دخپلو نيکو اخلاقو، تدبر، پوهې اوپه تجارت کې دتجربې له برکته به همېش خلګ ده ته ورتلل، ناسته پاسته يې ورسره درلوده ،نوله هم دې فرصت څخه په استفادې سره يې هغه کسان اسلام ته رابلل چې باور يې ورباندې درلودې اوخپل راز يې ورته ويلای سوای،بالاخره دابوبکر صديق رضي الله عنه ددعوت اوتبليغ په نتيجه کې عثمان بن عفان الاموي رضي الله عنه ،زبيربن عوام الاسدي رضي الله عنه ،عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه سعدبن ابي وقاص رضي الله عنه طلحه بن عبيدالله التيمي رضي الله عنه په اسلام مشرف سول اوپه دې ترتيب سره داآته (۸) کسان د اسلام لومړني لاروي اومخکښان دي .

هم دا راز بلال بن رباح الحبشي رضي الله عنه هم دلومړنيو مسلمانانو څخه دی، ورپسې داسلامي امت امين ابوعبيده عامر بن جراح رضي الله عنه (بن الحارث بن فهر له کورنی څخه) ابوسلمه بن عبدالاسد رضي الله عنه ،ارقم بن ابی الارقم رضي الله عنه (المخزوميان)عثمان بن مظعون او ورونه يې قدامه اوعبدالله ،عبيده بن الحارث بن المطلب بن عبدمناف رضي الله عنه سعيدبن زيد العدوی رضي الله عنه اوښځه يې فاطمه بنت الخطاب العدويه (دعمربن خطاب رضي الله عنه خور) خباب بن الارت رضي الله عنه عبدالله بن مسعود الهذلي اوداسي نور رضي الله عنهم

---

[88] دزيدپه جنګ کې نيول سوی اوغلام اسيرسوی وو حضرت خديجه دهغه مالکه وه بيايه هغه وسيدالبشر ﷺ ته هبه کړ يو وخت دهغه پلار او اکا راغلل چې دی دځان سره بوزي خوهغه سيدالبشر ﷺ پرخپل اکا اوپلار باندې غوره کړ سيدالبشر ﷺ هغه متبنی خپل نسبت والازوی وبالی ده په زيدبن محمدسره شهرت پيداکړ ترڅو اسلام راغی دعربانو د اعادت دماينه ولاړی.

په اسلام مشرف سول او هم دوی ٚ السابقون الاولون دي ، دوی د قریشو په مختلفو
کورنیو پوري اړه درلوده ، ابن هشام د دوی شمیره څلویښت ښوولی او نومونه یې هم
ذکر کړي دي،[۸۹] خو په دې کې ځیني کسان داسي دي چې له السابقون الاولون څخه
یې شمېرل پوره ثابت نه دي او په هکله یې اختلاف وجود لري.

ابن اسحاق وايي وروسته ډله ډله خلک (نارینه او ښځینه) په اسلام مشرف سول،
تردې چې په ټوله مکه کي د اسلام نور خپور سو او د خلکو پرژبو به یاد یدی،[۹۰] دې
ټولو کسانو په پټه اسلام راوړی ؤ، رسول الله ﷺ به هم په مخفي توګه له دوی سره
غونډې کولې او د دین ښوونه به یې ورته کوله ،ځکه دغه وخت مخفي او
وګړیز (فردي) ؤ، وحي هم د المدثر سورت له لومړنیو آیتونو وروسته په مسلسله
توګه راتله، دغه وخت به چې کوم آیتونه رانازلېدل هغه به لنډلنډ ؤ، خاتمه به یې په
ډیرو زړه راکښونکو الفاظو سره کېده ، دا آیتونه به پرزړونو دژوري اغیزي درلودو
نکي او د هغه وخت له سکون او رقت څخه ډکي فضاعین مطابق ؤ، دې آیتونو د نفس
تزکیې او پاکی ته بلنه ورکوله او په دنیوي چټلیو باندي د ملوث کېدو د ککړېدو
زیانونه یې په ګوته کول، د جنت او دوږخ خبري به یې کولی او داسي به یې ور څخه
سپمول تا به ویل چې هم دلته او س حاضر موجود دي، مؤمنان به یې دوخت له بشري
ټولني څخه لوړ او یوې بلي فضا ته تشویقول.

## «لمونځ»

دلمانځه امر د اسلام په لومړنیو ورځو کي نازل سوی ؤ ، مقاتل بن سلیمان وايي
د اسلام په لومړنیو کي الله تعالی دوه رکعته سهار او دوه رکعته ماښام لمونځ فرض
کړی ؤ، الله جل جلاله فرمایي:. **ترجمه**: او تسبیح وایه سره د ثناء د رب خپل هم په
آخر دورځي کي او (هم) په اول دورځي کي .ابن حجر وايي :ترمعراج مخکي هم
رسول الله ﷺ او صحابه کرامو رضي الله عنهم په قطعي توګه سره لمونځ نه کوی، خو اختلاف
په دې کي دي چې د پنځه وخته لمانځه فرضیت څخه مخکي هم کوم لمونځ فرض ؤ
او که نه؟ ویل کیږي چې هغه وخت یوازي له لمر ختو او لمرلوېدو مخکي لمونځ

---

[۸۹] سیرت ابن هشام ۱/ ۲۴۵ څخه تر ۲۶۳.
[۹۰] ابن هشام ۱/ ۲۶۲.

فرض ؤ اوبس ،حارث بن اسامة دابن لهیعه له لاري له زیدبن حارث څخه موصول روایت کوي چې په لومړنیو ورځوکي رسول الله ﷺ ته وحي راغله جبرئیل علیه السلام ورته راغلی داودسه طریقه یې وروښووله اوکله چې له اودسه څخه فارغ سو نو یوه لپه اوبه یې واخیستې اوپرعورت (شرمگاه) یې ور وشیندلې ،ابن ماجه هم په دې مفهوم یو حدیث رانقل کړی دی . له براء بن عازب رضي الله عنه اوله ابن عباس رضي الله عنه څخه هم دې ته یوشان یوحدیث روایت سوی دی ، د ابن عباس رضي الله عنه په حدیث کي راځي :وکان ذالک من أول الفریضة[۹۱]. **ترجمه** : دالمونځ له لومړنیو فرائضوڅخه ؤ،ابن هشام وایي کله به چې دلمانځه وخت سو نو رسول الله ﷺ اواصحابو به دروا وخوړو ته تلل اوهلته به یې دځپل قوم څخه په پټه لمونځ اداکاوه ،یوځل ابو طالب ولېدل چې رسول الله ﷺ اوحضرت علي رضي الله عنه لمونځ کوي نوپه دې هکله یې پوښتنه ورڅخه وکړه اوکله چې په حقیقت پوه سو نو دثبات اوټینگار امریې ورته وکړی[۹۲].

## «قریش په اجتماعي توگه له مسئلې څخه ځان خبروي»

ددعوت اوبلنې په مختلفو پیښو اوواقعاتو کي له غور اودقت څخه وروسته داپه ډاگه کیږي چې دعوت که څه هم په دې مرحله کي پټ مخفي اوانفرادي شکل درلو دی خوبیاهم قریش ورباندي خبرؤ ،خوچندداني باک به یې نه په کاوه اودې خواته یې زیاته توجه نه درلوده،محمد الغزالي رحمه الله وایي داخبره دقریشو غوږوته رسېدلې وه خودوی ځان ښوروی اوباک یې نه ورباندي راوړی،کېدای سي دوی به دا گومان کاوه چې محمد ﷺ به هم دهغه دیني خلکو په څیر وي کوم چې دالوهیت او الهي حقوقو په هکله خبري کوي لکه امیه بن ابي الصلت قس بن ساعده،عمروبن نفیل اوداسي نور ،خوکله چې درسول الله ﷺ دعوت مخ پرخپرېدو سو،اغیزه یې زیاته سوه هم داوه چې دوی هم ورڅخه وبېرېدل اودوخت په تیرېدو سره یې رسول الله ﷺ اودده دعوت ترنظر اومراقبت لاندي ونیاوه، [۹۳]دريِ کاله تیرسول خو

---

[۹۱] مختصر سیرت الرسول للشیخ النجدي ص ۸۸.
[۹۲] ابن هشام ۱/ ۲۴۷
[۹۳] فقه السیرة ص ۷۶.

اسلامي دعوت هم داسي پټ او انفرادي شکل درلودی، په دې موده کې یو داسي مؤمنه ټولګۍ جوړه سوه چې غړي یې دوروري، او تعاون په مزې یو له بل سره تړل سوي ؤ ،د رسالت تبلیغ او دعوت اوچت منزل ته ورسېدو لپاره هڅې جاري وې چې دالله تعالی له لوري وحی راغې او رسول الله ﷺ ته امر کوي چې خپل قوم په ښکاره او څرګنده توګه اسلام ته راوبولی، د دوی له باطل سره ډاګیزې مقابلې ته ملا وتړې او دوی بربتانو د حقیقت ګذار وکړي او له مخه یې پردې پورته کړي ترڅو یې خلک په حقیقت باندي خبردار سي.

## «دویمه مرحله په ظاهره دعوت او ښکاره تبلیغ»

(د دعوت د اعلانېدو لومړی فرمان)

په دې هکله تر ټولو لومړی دالله تعالی دا قول رانازل سو.

وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ سورة الشعرآء آیت (۲۱۴)

**ترجمه:** او ویېره ته (له عذابه اې محمده !هغه) خپلوان ستا چې ډېر نږدې دي (درته) دا آیت (په سورة (الشعرآء) کې دی، د دې سورة په پیل کې د موسی علیه السلام کیسه راغلې ده دا کیسه داسي بیان وي چې د موسی علیه السلام د نبوت پیل څرنګه ؤ بیا هغه له خپل قوم (بني اسرائیلو) سره هجرت وکړی الله جل جلاله دوی ته له فرعون څخه نجات ورکړی ،فرعون او لښکر یې غرق سو، په بل عبارت کې د غه کیسه د موسی علیه السلام د دعوت پر ټولو مرحلو رڼا اچوي.

په داسي وخت کې د موسی علیه السلام د کیسې بیان چې رسول الله ﷺ په ښکاره او اعلانیه بلنه مامور کېږي زما په نظر د دې په خاطر ؤ چې رسول الله ﷺ او اصحاب یې د دعوت تر پیل مخکې د خپلې لارې له هر څه څخه خبره وي، د دوی په وړاندي یو داسي نمونه او یو داسي مثال موجود وي چې د هغه په رڼا کې دې ته اماده او تیار سي چې د ښکاره او اعلانیه دعوت په مرحله کې به دوی له راز،راز مشکلاتو سره مخامخ کېږي ، د دروا غونسبت به ورته کېږي او ډول ډول ظلمونه بهویني ،د هغو قومونو له عاقبت او انجام څخه به هم یادونه کوي کوم چې دالله عزوجل د رسولانو تکذیب یې کړی وي او د دوی له اطاعت څخه یې سر غړولی دی لکه د نوح علیه السلام او عاد ،قوم ثمود ، د ابراهیم علیه السلام او د لوط علیه السلام قومونه.

دفرعون اودديْ قومونو له عاقبت اوانجام څخه يادونه اوخبري ددې په خاطر دي چې درسول الله ﷺ تکذيب کوونکي اودهغه له امر څخه سرغړونکي په دې پوه سي چې که سمي لاري ته برابرنه سي اودحق پيروي ونه مني نودوی به هم له يوه خطرناک انجام سره مخامخ کيږي اوالله عزوجل به يې مواخذه کوي اوترڅومؤمنان مطمئن اوډاډه سي چې پای اوراتلونکی د دوی دی، بری ددوی اوناکامي د دښمنانو په برخه ده.

## «نژدې قريبانو ته دعوت»

ددې آيت له نازليدو وروسته رسول الله ﷺ خپلي کورنۍ (بني هاشم) راوبلل دوی بله ومنله راغلل اودبني المطلب بن عبد مناف له کورنۍ څخه هم څه کسان ورسره وُ ټوله پنځه څلويښت (۴۵) کسان راټول سول.

خوابولهب وړاندي سو سريې ونيوی اومحمد ﷺ ته په خطاب کي وويل: ګوره! دا ستا اکاګان اوداکازامن دي خبري وکړه خوناپوهي پرېږده په دې بنه پوه سه چې ستاکورنۍ دټولو عربو زورنه لري نوزه ترټولو مستحق يم چې تا ونيسم (له دې کار څخه دي منع کړم) ستالپاره هم داستاکورنۍ کافي ده، که چيري ته پرخپله خبره هم داسي ټينګ پاته سی نودقريشو لپاره به داډيره اسانه وي چې ټول ستا پرخلاف راپورته سي اونور عرب يې هم مرسته وکړي، بيا زه نه پوهيږم چې بل څوک به ستا په ځير پيداسي چې دخپل قوم دتباهۍ اوبربادۍ داډول سبب ګرځي، رسول الله ﷺ چوپ پاته سو اوپه دې مجلس کي يې هيڅ خبره ونه کړه.

رسول الله ﷺ دويم ځل يې بيادوی راوغوښتل کله چې غونډ سول نو وی فرمايل:

الحمدالله احمده واستعينه واومن به وأتوكل عليه واشهدأن لااله الا الله وحده لاشريک له،ثم قال: ان الرائد لايكذب أهله والله الذى لااله الاهو ،انى رسول الله اليكم خاصة والى الناس عامة والله لتموتن كماتنامون ولتبعثن كماتستيقضون ولتحاسبن بماتعلمون وانها الجنة أو النار ابدًا.

**ترجمه:** ټول حمدونه اوثناء الله عزوجل لره دي زه دهغه ثناء وايم له هغه څخه مرسته غواړم، پر هغه ايمان لرم اوپرهغه بروسه اوتوکل کوم اوپردې شاهد يم چې له الله تعالی پرته بل هيڅوک هم دعبادت وړنه دي هغه واحد دی هيڅ شريک نه لري

بیایې وویل : مشراولاربنود دخپل اهل اودخپل کور خلکو ته دروا غ نه وایي ،قسم په خدای جل جلاله چې له ده پرته بل اله (دعبادت وړمعبود)نسته ،زه دالله جل جلاله له لوري ستاسي لپاره په خاصه توګه اودټولو خلکو لپاره په عامه توګه رسول اواستازی رالیږل سوی یم ، قسم په الله جل جلاله داسي به مری لکه څرنګه چې بیده کیږی اوداسي به بیرته را ژوندي کیږی لکه څرنګه چې له خوبه راویښیږی اودهرعمل حساب او کتاب به درسره کیږي بیابه دتل لپاره یاجنتوي اویادوږخ .

وروسته ابوطالب داسي وویل:موږ ته ستامرسته کول ډیرغوره دی ،موږ ترهرڅازیات ستا نصیحت ته غوږنیسو ،اومنویې موږترهرڅازیات ستاخبره ربښتونی ګڼو دادي ستاکاکاګان اوتربرونه ټول حاضردي زه هم ددوی یوغړی یم خوزه ستاسي دخوښۍ اوهدف دتکمیل په لار کي تردوی وړاندي یم نوپه پوره ډاد اواطمینان سره مخ په وړاندي دورمه خپله دنده په ښه توګه اداکړه ،قسم په خدای جل جلاله تل په دې خواته ولاړیم اوملاتړبه دي کوم،خوطبیعت اونفس مي ددې اجازه نه راکوي چې دعبدالمطلب دین پریږدم..

دلته ابولهب وویل :والله چې داډیره بده ده مخکي تردې چې نورخلک یې له دې کفر(العیاذ بالله )څخه منع کړي بایدتاسي دده لاس ونیسی اوله دې لاري یې راواړوی ابوطالب په جواب کي ورته وویل :قسم په خدای جل جلاله ترڅوچې ژوندي یو دفاغ به یې کوو .[94]

## «دسیدالبشر اطمنان او دصفا غونډۍ»

کله چې سیدالبشر ﷺ په دې ډاډه سو چې نوربه ابوطالب ددعوت په لاره کي دده دفاع او ملاتړ کوي نویوه ورځ دصفاغونډۍ ته وختی اوپه لوړآواز یې وفرمایل :یاصباحاه[95](اې سهاره)؟ددې ږغ په اوریدو سره دقریشو خلک راټول سول اوبیا رسول الله ﷺ هغوی پر توحید ،رسالت اوآخرت باندي ایمان ته راوبلل ،بخاري شریفي ددې کیسې یوه برخه له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت کوي اووایي: لمانزلت

---

[94] ابن الاثیر فقه السیره ص ۷۷، ۷۸.

[95] دعربو داعادت وو چې د دښمن له حملې څخه دخبرولو او هم داعلان په وخت کي به پرلوړ ځای باندي دریدل د(یاصباحا) الفاظ به یې ویل.

وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الأَقْرَبِينَ .صعد النبي ﷺ على الصفا فجعل ينادي يابني فهر!يابني عدى !البطون قريش، حتى اجتمعوا فجعل الرجل اذالم يستطع اى يخرج أرسل رسولا لينظرماهو ؟فجاء ابولهب وقريش فقال :ارأيتكم لواخبرتكم ان خيلا بالوادى تريد ان تغير عليكم اكنتم مصدقى؟قالو :نعم،ماجربنا عليك الاصدقا ، قال فانى نذير لكم بين يدى عذاب شديد ،فقال ابولهب تبالك سائر اليوم .الهذا جمعتنا فنزلت : تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ. **ترجمه** :کله چې دوَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الأَقْرَبِينَ آیت رانازل رسول الله ﷺ دصفا غونډۍ ته وختی اودقریشو کورنیوته یې جلاجلا بږغ کاوه،اې بنی فهر!اې بنی عدی!ترڅو ټول راغونډ سول ابولهب هم اغلی ،نورسول الله ﷺ وفرمایل : که درته ووایم چې په دې دره یاخوږ کي یوه ډله شهسواران دي غوارې حمله درباندي وکړي نوآیاتاسي به زما دغه خبره ومنی ؟دوی وویل هو!موږ ستاڅخه همېشه رښتیا اورېدلي دي ،نوبیایې ورته وفرمایل : زه تاسي ته له یوه سخت عذاب څخه مخکي خبر ورکوونکی راغلی یم ،په دې وخت کي ابولهب وویل :ټوله ورځ هلاک اوسی،آیا دهمدې لپاره دي موږ راټول کړي ؤ ؟په دې تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ هلاک دې سي دواړه لاسونه دابی لهب اوپه خپله دي هم هلاک سي .سورة رانازل سو مسلم شریف دحضرت ابوهریره رضي الله عنه څخه په روایت سره ددې کیسې بل اړخ را نقلوي وایي :کله چې دوَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الأَقْرَبِينَ آیت رانازل سو رسول الله ﷺ آواز وکړی داآواز عام هم ؤ اوخاص هم ،وی فرمایل اې قریشو! ځانونه له دوږخ څخه وساتی،اې بنی کعب! ځانونه له دوږخ څخه وساتی،اې دمحمد ﷺ لوري فاطمې ! ځان له اوره وساته ،ځکه قسم په خدای چې زه دالله تعالی له مواخذې اوګرفت څخه ستاسي دخلاصون په لاره کي هیڅ واک او اختیار نه لرم ،خودادی چې ستاسي سره دنسب اړیکي لرم اوزه کوښښ کوم چې هغه ټینګي اوپر ځای وساتم[96]،دابلنه پوره اوبشپړاعلان اوتبلیغ ؤ،رسول الله ﷺ خپلوخپلوانوته داوښووله چې نور داړیکو ټنګښت پرډې رسالت باندي ترایمان

---

[96] صحيح مسلم ١/ ١١٤. صحيح البخاري ١/ ٣٨٥.

راوړلو پوري اړه لري او د الله جل جلاله له لوري د دې اعلان او انداز له نازلېدو وروسته د عربو باطل قوميت او قومي تعصب له مينځه تللی .

## « د همدې آواز و اثرات د مکې په شاوخوا کې »

د دې آواز انګازې د مکې په شاوخوا کې لا اورېدل کېدې چې د الله تعالی يو بل امر را نازل سو او هغه داسي ؤ: فَاصْدَعْ بِمَا تُؤْمَرُ وَأَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِينَ .سورة الحجر آيت (۹۴)

**ترجمه**: نو ښکاره او په جهر کړه اې محمده صلی الله عليه وسلم ! هغه چې ته ماموريې پر دې مخ واړوه له مشرکانو څخه (او مه کوه التفات او پروا د دوی ويلو ته) نو رسول الله صلی الله عليه وسلم هم پيل وکړی، د شرک او خرافاتو له مخ څخه پردې پورته کوي، نقصانات يې په ګوته کوي، د بتانو اصلي څېره خلګو ته ښيي او د مثالونو په رڼاکي د دې باطلو معبودانو کمزوري او ناتواني په ګوته کوي او دا اعلانوي چې هرڅوک چې د بتانو عبادت کوي او يا بتان د ځان او الله جل جلاله ترمينځ وسيله ګرځوي دوی ټول ګمراهان او بې لاري دي د مکې خلګو چې واورېدل چې سيد البشر صلی الله عليه وسلم په بتانو پسې خبري کوي او په داګه سره وايي چې مشرکان او د بتانو عبادت کوونکي ټول ګمراهان او پر باطله روان دي نو دا د حق آواز لکه تندر داسي ورباندي ولګېد او ورباندي بل سو، بيري واخستل چې مسې نه دا عظيم انقلاب د هغوی ټول عادات او عنوانات ختم نه کړي نو هم داوه چې د دې د حق انقلاب په وړاندي ودرېدل او د دښمنۍ لاري يې ورسره ونيوله.

مشرکان ځکه د دې بدلون او عظيم انقلاب په وړاندي ودرېدل چې دوی پوهېدل چې له يوه الله جل جلاله علاوه له بل هرچا څخه د الوهيت نفي او پر رسالت او آخرت باندي ايمان دا معني لري چې انسان بايد په کامله توګه مطيع او فرمانبردار وي او د دې رسالت ته داسي تسليم سي چې بيا د ځان او مال سودا او خبره ورسره نه وي، هرڅه يې الله جل جلاله ته سپارلي وي، څرګنده ده چې په دې صورت کې خو بيا د مشرکانو هغه باطله مشري او واکداري له مينځه تله او بيا يې نه سواى کولاى خلګو ته د دين په نامه بازۍ ورکړي او دا ممکنه نه وه چې نور يې پر مظلومانو باندي خپلو ظلمونو ته ادامه ورکړې وی هو! دوی د ايمان په رېښتني معنی پوه ؤ ځکه يې زړه نه سواى ورته ښه کولای، دوی خپله ګمراهي او باطله مشري نه سواى پرېښوولای نو ځکه يې

درسالت له قبلولو څخه انکار کاوه ،الله جل جلاله فرمايي : ﴿بَلْ يُرِيدُ الإِنسَانُ لِيَفْجُرَ أَمَامَهُ﴾ سورة القيامه.

دوی ټول په دې ښه پوه وه خو حيران وُ چې دمحمد ﷺ په څير صادق ،امين، کريم، عزيز او د داسي عظيم تشخص درلودنکي چې په لوړو اخلاقو او سپيڅلتيا کي يې په ډير پيړيو کي مثال نه دی ليدل سوی په وړاندي څه وکړي ؟او کومه لاره ورسره ونيسی له سلا ،مشورو ،غور او فکر وروسته دې فيصلې ته ورسېدل چې درسول الله ﷺ اکا ابو طالب ته ورسي او غوښتنه ورڅخه وکړي چې خپل وراره له دې کار څخه راوګرځوه کوښښ يې کاوه چې خپله داغوښتنه جدي او کلکه وښيي نو دا خبره يې سره غوټه کړه چې ابو طالب ته به داسي وايي : دبتانو دعبادت برېښوولو ته بلنه او دا خبري چې دابتان باطل دي هيڅ وس او توان نه لري دا ټول په حقيقت کي زموږ (مشرکانو) اود دوی دپلرونو سپکاوی دی او دا د دوی د دين توهين دی چې دوی يې زغملای نه سي..

## «دقريشو ځيني مشران ابو طالب ورغلل»

ابن اسحاق وايي دَقريشو ځيني مشران ابو طالب ورغلل او داسي يې ورته وويل :ابو طالبه! ستا وراره زموږ خدايانو ته دبد و نسبت کوي،زموږ دين باطل ګڼي زموږ پلرونه بې لاري او ګمراهان بولي او موږ ته بې عقلان او احمقان وايي ،نو يايې له دې کاره منع کړه او ياته له مينځه ليري سه چې موږ ورسره پوه او خپل حساب ورسره تصفيه کړو ،ته هم زموږ په څير اختلاف ورسره لرې نو پرېږده چې ورڅخه بې غمه دي کړو خو ابو طالب په ډير ښه او نرمه لهجه دوی ته جواب ورکړی او رخصت يې کړل ، رسول الله ﷺ خپل دعوت جاري ساته او دالهي دين دقيام او حاکميت لپاره يې نه ستړېدونکي هلي ځلي کولی.[97]

## «دحج په وخت کي دقريشو غونډه ددعوت دبنديز په اړه»

دښکاره بلني له پيل څخه يوازي څو مياشتي تيري سوي وی چې دحج وخت راتږدی سو، قريش متوجه سول چې په دې وخت کي خود مختلفو ځايونو خلګ راځي نو په

---

[97] ابن هشام ۱/ ۲۶۵.

کار ده چې یوداسي تدبیر ونیول سي اوداسي یوه خبره سره جوړه سي چې عربان ورباندي قانع کړل سي ترڅو د حضرت محمد ﷺ خبره ونه مني او دعوت یې اغیزه ورباندي ونه کړی، نو هم داوه چې ټول ولید بن مغیره ته ورغلل ترڅو په دې هکله مشوره ورسره وکړي، ولید ورته وویل: په کار ده په دې هکله یوه خبره جوړه کړو، داسي ونه سي چې یو بل یوڅه وایي او بل به بل څه، ځکه داپه خپله یو د بل دخبري اثرکموي او ارزښت یې له مینځه وړي، دوی ورته وویل: ته ووایه چې څه باید ووایو؟ ولید وویل: نه! لومړی تاسي خپل نظرونه څرګند کړئ زه به یې اورم دوی وویل: داسي به وایو چې حضرت محمد ﷺ کاهن دی، ولید وویل: نه والله که هغه کاهن وي کاهنان خو موږ لیدلي دوی داسي نه وي، دمحمد ﷺ خبري دکاهنانو له خبرو سره نه په سجع او قافیه او نه زمزمه په هیڅ شي کي هم ورته والی نه لري، قریشو وویل: دا به وایو چې محمد ﷺ شاعر دی.

ولید وویل: نه هغه شاعر هم نه دی، موږ په شعر یو هیږو، دشعر ټول ډولونه راته معلوم دي د محمد ﷺ اقوال او خبري شعر نه دي بیا دوی وویل: نو وایو به چې محمد ﷺ ساحر (جادوګر) دی، ولید وویل: ساحر هم نه دی، ساحران مو لیدلي دي دوی داسي نه دي، نو دوی ورته وویل اوس ته ووایه څه ورته ووایو؟ ولید ورته وویل: قسم په خدای د محمد ﷺ خبري ډیري خوږې دي، ریښي یې ډیري ټینګي دي، اصل یې مضبوط او څانګي یې میوه داري دي، تاسي چې دده په هکله هرڅه وایاست خلګ هغه درواغ شمیري خو زما په نظر تر ټولو مناسبه داده چې وویل سي هغه جادوګر دی، داسي څه یې راوړي چې دهغه په واسطه د پلار او زوی، ورونو، میړه او ښځي، قوم قبیلې ترمینځ بیلتون راولي، یو د بل سره د دوی اړیکي شکوي، بالاخره ټول پر همدې متفق سول او مجلس یې پای ته ورسید.[٩٨]

ځیني نور روایتونه وایي کله چې ولید د قریشو ټولي خبري او نظرونه رد کړل نو دوی ورته وویل نو اوس ته خپله صحیح او ښې داغه نظر راته څرګند کړه، وو ایه ستا رایه څه ده؟ ولید ورته وویل: اجازه راکړی په دې اړه څه سوچ وکړم، له ډیر سوچ

[٩٨] ابن هشام ١/ ٢٧١.

او فکر وروسته یې دوی ته خپل مخکې ذکر سوی نظرو وړاندي کړی چې د ټولو اتفاق ور باندی راغلی.[٩٩]

الله جل جلاله د ولید په اړه په سورة مدثر کي (١٦) ایتونه نازل کړي دي او دا مبارک آیتونه د نوموړي خبري په هکله د ولید د فکر او سوچ کولو حالت ته هم اشاره کوي فرمایي:

إِنَّهُ فَكَّرَ وَقَدَّرَ فَقُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ثُمَّ قُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ . ثُمَّ نَظَرَ ثُمَّ عَبَسَ وَبَسَرَ ثُمَّ أَدْبَرَ وَاسْتَكْبَرَ فَقَالَ إِنْ هَذَا إِلَّا سِحْرٌ يُؤْثَرُ إِنْ هَذَا إِلَّا قَوْلُ الْبَشَرِ. سورة المدثر

**ترجمه:** بیشکه هغه فکر وکړی (چې څرنګه طعن وکړم پر قرآن) او اندازه یې وکړه په زړه خپل کي چې (محمد ﷺ) وو ژل سو (ملعون کړل سو) څرنګه یې اندازه کړه بیا دي وو ژل سي (معلون دي کړل سي) څرنګه اندازه یې وکړه (په طعن د قرآن او محمد ﷺ کي) بیا یې وکتل (محمد ﷺ یا قرآن ته) بیا یې مخ تریو کی او تندی یې غوټه کی (له کراهته) بیا یې شا واړوله (له محمده) او غاړه یې وغړوله (له اسلامیته) نو وی ویل نه دی دا (قرآن) مګر خو سحر دی چې نقل کاوه (له نورو ساحرانو څخه) نه دی دا (قرآن) مګر خو خبره د بشر بني آدم ده.

د قریشو هم پر دې خبره سلا راغله او کله چې د حج وخت راورسیدی نو قریشو د مکې ټولي لاري ونیولی هر څوک به چې راتلل نو د حضرت محمد ﷺ په هکله به یې هغه مخکې جوړه سوې خبره ورته کوله او کوښښ به یې کاوه چې د خلکو توجه بلې خواته واړوي.[١٠٠]

د دې باطلې وظیفې په سرته رسولو کي ابولهب تر ټولو مخکې ؤ، رسول الله ﷺ به د حج په دوران کي حاجیان په خپلو ځایو نو لکه عکاظ، مجنة او ذی المجاز کي د الله جل جلاله لوري ته رابلل هلته به یې تشریف وروړه او دوی ته به یې د اسلام دعوت ورکاوه، ابولهب به ورپسې ؤ او خلکو ته به یې ویل: د محمد ﷺ خبره ونه منی دا یو دروا غجن او له خپل دین څخه اوښتی شخص دی.[١٠١]

---

[٩٩] فی ظلال القران ٢٩/ ١٨٨ مطالعه کړئ.
[١٠٠] ابن هشام ١/ ٢٧١.
[١٠١] روی فعله هذا الترمذی عن یزید بن رومان ورواه احمد فی مسنده ٢/ ٤٩٢.

ددې هلوځلونتيجه داسوه چې د عربو د رسول الله ﷺ د نبوت خبره له ځان سره خپلو ځايونو ته يووړې اوپه دې ترتيب سره د رسول الله ﷺ نوم اود دعوت خبرپه ټولو عربو کې خپور سو.

## «له اسلامي دعوت سره مقابل او دهغه قسم قسم اشکال»

کله چې قريشو وليدل چې محمد ﷺ په هيڅ ډول هم خپله لاره اوبلنه نه پرېږدي نو يوځل يې بيا سوچ وکی او د اسلامي دعوت له مينځه وړلو په خاطرېې لاندي هلي ځلي اوتوطئې په کار واچولې.

(۱): تکذيب، ملنډې، خنداګاني، استهزاء او مسخرې، قريشو غوښتل په دې ډول سره اوله دې لارې د مسلمانانو روحيات کمزوري، ارادې يې ماتې اود دوی دذلت رسوايي اوسپکاوی کوښښ وکړي، نوهم داوه چې په رسول الله ﷺ پورې يې ډول ډول تورونه اوتهمتونه وتړل، د هغه جناب ﷺ په شان کې يې ډېره بې ادبي سپکوالی کوی، کله به يې ليونی باله، قرآن کريم فرمايي: ﴿وَقَالُوا يَا أَيُّهَا الَّذِي نُزِّلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ إِنَّكَ لَمَجْنُونٌ﴾ سورة الحجرآيت (۶) **ترجمه**: اوويل يې (دغو کفارو محمد ﷺ ته) اې هغه سړيه چې نازل کړل سوی دی پرهغه باندې ذکر (قرآن پند) (په زعم د منکرينو) بيشکه ته خوامخواه ليونی يې کله به يې د سحر او درواغو نسبت ورته کاوه، الله تعالی فرمايي: ﴿وَعَجِبُوا أَن جَاءَهُم مُّنذِرٌ مِّنْهُمْ وَقَالَ الْكَافِرُونَ هَٰذَا سَاحِرٌ كَذَّابٌ﴾ سورة ص آيت (۴)

**ترجمه**: اوتعجب کوي (کفار) له دې څخه چې راغلی دی دوی ته (نبي) بيرونکی له دوی څخه اووايي داکافران چې دغه (بيرونکی نبي) ساحر کوډګر دی درواغجن دقريشو کفارو به رسول الله ﷺ ته په ډېره بده سترګه کتل، ترحدزياته کينه او عداوت يې ورسره درلودی، تل به په دې هڅه کې وُ چې په سترګو کې يې خوړلی وي ﴿وَإِن يَكَادُ الَّذِينَ كَفَرُوا لَيُزْلِقُونَكَ بِأَبْصَارِهِمْ لَمَّا سَمِعُوا الذِّكْرَ وَيَقُولُونَ إِنَّهُ لَمَجْنُونٌ﴾ سورة القلم آيت (۱۵) **ترجمه**: اوبيشکه نژدې وُ هغه کسان چې کافران سوي دي خوامخواه وبه ښويوي تا (وبه دې غورځوي پرزمکه) په خپلو سترګو سره هرکله چې واورېده دوی قرآن (ستاله ژبې) اووايي دوی (دکيني له مخ) بيشکه دغه (محمد ﷺ) ليونی دی، رسول الله ﷺ چې به کله له خپلو اصحابو سره ناست وُ، قريشو به له استهزاء

څخه ډکه لهجه سره ویل: دادده ملګري دي قرآن کریم فرمایي: أَهَٰؤُلَاءِ مَنَّ اللَّهُ عَلَيْهِم مِّن بَيْنِنَا. **ترجمه**: آیا هم دا (خواران) فضل کړی دی الله پردوی په مینځ زموږ کي (په هدایت سره) الله جل جلاله ددې په جواب کي فرمایي: أَلَيْسَ اللَّهُ بِأَعْلَمَ بِالشَّاكِرِينَ. **ترجمه**: آیانه دی الله جل جلاله ښه عالم په شکر کوونکو (په نعمت داسلام، بلکه دی نوځکه تفضلا احسان پرکوی) قرآن کریم دمشرکینو دا کیفیت او حالت په ګوته کوي فرمایي

إِنَّ الَّذِينَ أَجْرَمُوا كَانُوا مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا يَضْحَكُونَ. وَإِذَا مَرُّوا بِهِمْ يَتَغَامَزُونَ. وَإِذَا انقَلَبُوا إِلَىٰ أَهْلِهِمُ انقَلَبُوا فَكِهِينَ. وَإِذَا رَأَوْهُمْ قَالُوا إِنَّ هَٰؤُلَاءِ لَضَالُّونَ. وَمَا أُرْسِلُوا عَلَيْهِمْ حَافِظِينَ. سورة المطففين.

**ترجمه**: بیشکه هغه کسان چي کافران سوي دي، ؤدوی به هغو کسانو باندي چي ایمان یې راوړی ؤ خندل یې اومسخرې به یې پرکولی او کله چي تیریږي منکران پرمؤمنانو باندي دوی په خپلو مینځو کي سره سترګي وهي (لپاره داستهزاء) او کله چي وګرځي خپلو کورنو ته (نو) ګرځي دوی خوشحاله (خبري جوړونکي په سبب دتمسخر او استهزاء پرمؤمنانو باندي) کله چي وبه لېدل (کفارو) دغه (مؤمنان) نو ویل به یې په خپل مینځ کي چي بیشکه دغه (مؤمنان) خوامخوا بې لاري دي حال داچي نه دي لیږل سوي (کافران) پردغو (مؤمنانو) باندي ساتونکي

(۲): دنبي کریم صلی الله علیه وسلم دذات، شخصیت او هدایاتو پرخلاف دبې اساسه شکونو او شبهاتو راولاړول او دهغه پرخلاف درواغ او دومره زیات پروپاګند په کاراچول چي عوام خلک هیڅ ددې فرصت پیدا نه کړي چي درسول الله صلی الله علیه وسلم ددعوت او رسالت په اړه غور، فکر او تامل وکړي، مشرکانو چي دقرآن کریم په هکله څه عقیده درلوده الله جل جلاله هغه داسي بیانوي.

وَقَالُوا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ اكْتَتَبَهَا فَهِيَ تُمْلَىٰ عَلَيْهِ بُكْرَةً وَأَصِيلًا.

ژباړه: او وایي (کفار) داکیسې دي دلومړنیو خلګو چي لیکلي دي هغه (محمد) پر لیکونکو نو هغه ویل کیږي په ده: . آیت إِلَّا إِفْكٌ افْتَرَاهُ وَأَعَانَهُ عَلَيْهِ قَوْمٌ آخَرُونَ **ترجمه**: مشرکینو به داهم ویل (انمایعلمه البشر) بیشکه هم داخبره ده چي ښوونه کوي ورته انسان درسول الله صلی الله علیه وسلم په باره به یې داعتراض په توګه داهم ویل: . آیة وَقَالُوا مَالِ هَٰذَا الرَّسُولِ يَأْكُلُ الطَّعَامَ وَيَمْشِي فِي الْأَسْوَاقِ **ترجمه**: او وایي (کفار) چي څه دي دغه رسول ته چي خوري ډوډۍ

اوکړځي په بازارونوکي (لکه نوږخلک لپاره دطلب دمعاش)قرآن کریم ځای ځای دمشرکینو دې ډول پروپاګندناروا تبلیغاتو اوله دښمنۍ څخه ډک اوبې اساسه انتقاداتو ته اشاره کړې او دهغه جواب یې ویلی دی.

(۳): دپخوانیو کیسو په بیان سره دقرآن کریم مقابله اوپه هم دې کیسو سره له قرآن کریم څخه دخلکو لیري ساتل ویل کیږي ،چې نضربن حارث یوځل قریشو ته وویل :اې قریشو !قسم په خدای چې تاسي له یوې داسي پیښې سره مخامخ سوي یاست چې تراوسه پوري موبې هیڅ بندوبست نه دی کړی ،محمد ﷺ یوداسي ځوان ؤ چې ستاسوپه مینځ کي تر ټولو زیات منل سوی، ریښتونی اوامین شخصیت ؤترڅوبې په سرکي سپین ولګېدل اودانوی دین یې درته راوړی نوبیاتاسي ساحروباله خوقسم په خدای هغه ساحرنه دی ساحران خوموږلېدلي دي دوی داسي نه دي، داموویل چې هغه کاهن دی،قسم په خدای هغه کاهن هم نه دی،تاسو وویل چې شاعردی قسم په خدای شاعر هم نه دی ،شعر اودشعر ډولونه خوموږ پیژنوهغه داسي نه دي ،دامو وویل چې لیونی دی خوقسم په خدای هغه لیونی هم نه دی ،اې قریشو ! بیدارسئ تاسي له یوې ډیري لوې پیښې سره مخ سوي یاست .

وروسته نضربن حارث حیرې ته ولاړی اوهلته یې دفارس دباچهانو لکه رستم او اسفندیار کیسې اونقلونه یې زده کړل اوبیرته راغی اوکله چې به نبي کریم ﷺ په کوم مجلس کي وعظ اوتبلیغ کاوه خلک به یې له الهي عذاب څخه بیرول ،نضربه پسې ورتلی اوویل به یې :قسم په خدای محمد ﷺ ترماښامه غوره خبري کولای سي اوشروع به یې وکړه خلکوته به یې درستم اواسفندیارکیسې اورولی بیابه یې ویل :دمحمد ﷺ خبري زماترخبروپه څه غوره اوښې دي،له حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت کی رانقل سوي دي چې نضربن حارث یوشمیرډمي په پیسو اخیستي وې، کله چې به خبرسوچې فلانی سړی دنبي کریم ﷺ خواته میلان پیدا کړی دی نویوه ډمه به یې ورپسې کړه ډمي به نوموړي سړي ته خوراک،څښاک برابروه ، سندري به یې ورته ویلی ترڅوبه یې له اسلام سره دنوموړي اړیکي وشلولی، الله جل جلاله په دې اړه فرمایي : وَمِنَ النَّاسِ مَن يَشْتَرِي لَهْوَ الْحَدِيثِ لِيُضِلَّ عَن سَبِيلِ اللَّهِ **ترجمه:** ځیني خلک داسي هم دي چې بیهوده اولهوخبري اخلي ترڅو دالله له لاري څخه خلک وربانديې بې لاري کړي . (۴):قریشو دسازش اوتوطئې لاره هم نیولې وه ،غوښتل یې دیوې داسي سودا بازي په نتیجه کي اسلام اوجاهلیت سره ګډ کړي

پیشنهاد یې وکړی چې له څه څخه به موږ تیرسو اوله یو څه څخه به محمد ﷺ تیرسي قرآن کریم دې ته اشاره کوي اوفرمايي: ﴿وَدُّوا لَوْ تُدْهِنُ فَيُدْهِنُونَ﴾ **ترجمه**: خوښوي دوی چې که ته نرمي کوی(له دوی سره)نودوی به هم نرمي کوي (ستاسره) دابن جریر اوطبراني یو روایت دی چې وایي،مشرکینو نبي کریم ﷺ ته وړاندیز وکړی چې یوکال ته زموږ دخدایانوعبادت وکړه اویوکال به موږستادخدای عبادت وکړو[102]خودعبدبن حمید روایت وایي چې دوی رسول الله ﷺ ته وویل که ته زموږ خدایان منی نوموږبه ستا درب عبادت وکړو،ابن اسحاق وایي :یووخت رسول الله ﷺ پرکعبه شریفه طواف کاوه چې دقریشو مشران لکه الاسودبن عبدالمطلب بن اسد بن عبدالعزی،ولید بن مغیره اوامیه بن خلف اوعاص بن وائل السهمي ورته راغلل او ورته وی ویل:راځه ته زموږ دخدایانو عبادت کوه اوموږ به ستادخدای عبادت کوو،په دې ډول به عبادت سره شریک کړو،که چیري ستا معبودزموږ ترمعبودانو غوره وي نوموږ به هم څه فائده کړی وي اوکه زموږ معبودان ستاتر معبودغوره وي نوبیابه تاهم څه ګټه کړی وي ،ددوی داپیشنهاد الله ردکړی اوسورة الکافرون یې نازل کړی.﴿قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ لَا أَعْبُدُ مَا تَعْبُدُونَ﴾ الی اخره **ترجمه**: ووایه (اې محمده ﷺ چې)اې کافرانو! نه کوم زه عبادت دهغه شي چې تاسي یې عبادت کوی،په دې ترتیب سره الله جل جلاله د دوی داسازش هم له خاورو سره خاوري کړی اوپه ډاګه سره یې اعلان وکړی چې دمشرکینو لاره له اسلام څخه بیله اوجلاده ،په دې هکله درواېتونو له اختلافه داڅرګندیږي چې کېدای سي مشرکینو څوځلې ددې سازش کوششونه کړي وي.

## «پر مسلمانانو د قریشو ظالمانه حالات»

دنبوت دڅلورم کال په لومړیوکي قریشو داسلامي دعوت دمخنیوي په خاطر پورته یادي سوي لاري چاري یوه په بلې پسې په کار واچولی،څومیاشتي هم داسي تیري سوی کله چې پوه سول چې نودا هلي ځلي ناکامه دي اونه سي کولای په دې سره داسلامي دعوت مخه ونیسي نو یو ځل بیاسره راټول سول اویوه پنځه ویشت کسیزه کومیټه یې جوړه کړه مشر یې ابولهب ؤ دکومټې غړو له ډېر غور اوفکر وروسته فیصله وکړه چې نوبایددمحمد ﷺ اسلام اواصحابو کرامو پرخلاف له زور زیاتی،وحشت اوتیري څخه کاروانخېستل سي[103].

---

[102] تفهیم القران ۶/ ۵۰۱.

[103] رحمة للعالمین ۱/ ۵۹- ۶۰.

دوی دافیصله وکړه اوفیصلې دپلیّ کولولپاره یې متي راونغښتل دوی په آساني سره کولای سوای پراصحابو خصوصا پربې وسه کسانو هرډول ظلم اوزیاتې وکړي خودرسول الله ﷺ په هکله هرچاداجرأت نه سوای کولای ځکه هغه دداسي عظیم شخصیت درلودنکی ؤ چې له دوستانو وړاندي دښمنانو ورته دقدر او احترام په سترګه کتل اوهغه په وړاندي یوازي هغه کسانو یې بې ادبي اوګستاخي کولای سوای چې له عقل اوحیابه بالکل خلاص ؤ اوددې ترڅنګ محمد ﷺ دابو طالب غوندي مهم سړی له تائید اوملاتړ څخه هم پرخمن ؤ ،هغه ابو طالب چې دمکې سر اودخلګو په مینځ کي دقدر او منزلت څښتن ؤ ،چاداجرأت نه سوای کولای چې دهغه تړون مات کړي اودده پرکورنۍ تجاوز وکړي ،دې وضعي قریش څه اندیښمن کړی ؤ اوجرأت یې ورڅخه سلب کړی ؤ خوکله چې د دوی زعامت اوددین په نامه ترلاسه سوي مشري دنوي اسلامي دعوت ترتهدیدلاندي راغله نور نولکه لیونیان راپورته سول اودرسول الله ﷺ پرخلاف یې هم ظلمونه اوتیری شروع کړل ،په دې کارکي ابولهب ترهرچامخکي ؤ ،وموکتل چې دبني هاشم په غوندۍ اودصفاپرغونډۍ یې له رسول الله ﷺ سره څه وکړل ،ځیني روایتونه وایي چې دصفاپرغونډۍ وروسته له هغه چې رسول الله ﷺ خپله بلنه واوروله نوابولهب یوه تیږه راواخیسته اوغوښتل یې رسول الله ﷺ په وولي[104] تربعثت مخکي دابولهب زامنو عتبه اوعتیبه درسول الله ﷺ له لوڼو (رقیې رضي الله عنها اوأم کلثوم رضي الله عنها)سره ودونه کړي ؤ خوتربعثت وروسته ابولهب خپل زامن دې ته اړایستل چې درسول الله ﷺ لوڼوته طلاق ورکړي[105] هغه وخت درسول الله ﷺ دویم زوی عبدالله رضي الله عنه وفات سو ،ابولهب له ډیري خوشحالۍ منډې کړې اوخپلو ملګروته یې زیری ورکاوه چې محمد ﷺ ابتر (میراث) سو .[106]

لکه مخکي موچې وویل ابولهب به دحج په دوران اوبازارنوکي په نبي کریم ﷺ پسې راوان ؤ طارق بن عبدالله محاربي وایي :ابولهب نه یوازي داچې درسول الله ﷺ خبري به یې تکذیب ګڼلې بلکه هغه جناب به یې په ډبرو هم ویشتی اودبشریت دعظیم لاربنود مبارکي پوندي به یې په وینورنګولې .[107]

دابولهب ښځه(ام جمیل اروی بنت حرب بن امیه)چې دابوسفیان خور وه ،نوموړي هم له رسول الله ﷺ سره دابولهب په څیر دښمني اوکینه درلوده ،اغزي به یې راټولول اودشپې

---

[104] نقل الروية من الترمذي.
[105] في ظلال القران ٣٠/ ٢٨٢/ تفهيم القران ٦/ ٥٢٢.
[106] تفهيم القران ٦/ ٤٩٠.
[107] جامع الترمذي.

له مخي به يې دنبي کريم ﷺ په دَروازه اولاروکي ورته شيندل ،نومورې ډېرخرابه ژبه درلوده، د الله تعالی درسول الله ﷺ په شان کي يې ډېرګستاخي اوبې شرمي کوله ،تورونه اوتهمتونه به يې پسې تړل،فتنې اوفسادونه به يې جوړول اوهم داوجه ده چې قرآن کريم(حمالة الحطب) وايي .

اروی چې کله واورېدل چې قرآن کريم ددې اودمېړه يې (ابولهب)غندنه کړې ده نوپه داسي حال کي جومات(مسجدالحرام)ته راغله چې په موټو کي يې هم ډبري ورسره وی ،رسول الله ﷺ اوابوبکرصديق ﷺ دکعبې شريفي خواته ناست ؤ،کله چې ورنژدې سوه نوالله ﷻ يې پرسترګوپرده واچوله اونبي کريم ﷺ يې نه لېدی،ابوبکر ﷺ ته يې وويل:ملګري دي چيري دي؟خبره سوی يم چې هغه زمابدي بيان کړی ده،قسم په خدای که مي وليدی نوپه دې ډبرو به يې پرداخوله وولم ،ګوره زه يوه شاعره يم ،بيايې داسي وويل:

مذمما عصينا..............وامره..............ودينه قلينا[108]

ژباړه :موږ دمذمم (په بدو يادسوي)نافرمايي کی دهغه مونه ده منلی اودهغه دين مو دنفرت اوحقارت له مخ پرېښووي،داخبره يې ورته وکړه او ووتله،وروسته ابو بکرصديق ﷺ وويل يارسول الله ﷺ آياهغې ته ونه ليدلی؟رسول الله ﷺ وفرمايل :نه زه يې نه ليدم ځکه الله ﷻ دهغې پرسترګو پرده واچوله،[109]ابوبکر بزار داکيسه رانقلوي او وايي کله چې اروی راغله ابوبکر ﷺ ته يې وويل :ستا ملګری زموږ هجوه(بدی) ويلي ده،ابوبکر ﷺ جواب ورنه کړی ،نه قسم په الله هغه شعرنه وايي ،ام جميل ورته وويل ته مصدق يې ابولهب سره ددې چې دنبي کريم ﷺ اکاهم ؤ اوهمسايه هم ،خوبيايې هم داټول ظلمونه ترسره کول،دابولهب کوردنبي کريم ﷺ له کوره سره بالکل موښتی اوخوايه خواؤنومورې به لکه دنورو مشرکينو په څير رسول الله ﷺ ته په خپل کورکي هم ضرر اواذيت رساوه.

ابن اسحاق وايي درسول الله ﷺ دهمسايګانوله جملې څخه ابولهب ،حکم بن ابي العاص بن اميه،عقبه بن ابي معيط،عدی بن حمراء الثقفی اوابن الاصداالهدنی دومره خبيث ؤ چې رسول الله ﷺ ته به يې په خپل کورکي هم ضرر رساوه ،اوله دې جملې څخه يوازي

---

[108] اکثرو مشرکينو به سيدالبشر ﷺ دمذمم په نامه باندې يادلوی دمذمم معنی دمحمد دمعنی سره زيات مخالفت لري.

[109] ابن هشام ۱/ ۳۳۵، ۳۳۶.

حکم بن ابی العاص په اسلام مشرّف سوی اونورتهول مشرکان مړه سوي دي ،[١١٠] ددوی داذیت رسولو یوه طریقه داوه چې کله به نبي کریم ﷺ لمونځ کاوه نوله دووی څخه به کوم یوه دمیږي پریوان (لري) وربانديِ وغورځوی اویابه چې کله نبي کریم ﷺ دیګ باندي کړیٔ نودوی به لرۍ راواخیستی اود دیګ پرسربه یې وروغورځاوی ،بالاخره نبي کریم ﷺ مجبور سو چې یوه پناجوړه کړي ترڅودلمانځه په وخت کي د دوی له شره په امن وي اوکله چې به نوموړو مشرکینو لرۍ وربانديِ وغورځوی نودالله رسول الله ﷺ به په یوه لرګي سره هغه رااخیستی اودهغه سړی دروازې ته به ورتلی او ورته ویل به یې اې بني عبدمناف! داڅرنګه همسایتوب دی؟اوبیابه یې هغه لرۍ لیري ورغورځوی.[١١١]

عقبه بن ابی معیط په دې خباثت نورهم وړاندي تللی ؤ،بخاری شریفي دعبدالله ابن مسعود رضي الله عنه څخه روایت کوي،یوځل نبي کریم ﷺ دکعبې شریفي خواته لمونځ کوی ،ابوجهل اوډله یې ناست وه، کوم یوه یې وویل:څوک به دبني فلان داوښ لرۍ اوکولمې راوړي اوکله چې محمد ﷺ پرسجده سي نوهغه لرۍ به یې پرشا ور کښیږدي په دې وخت کي ترټولو بدبخته او خبیث سړي(عقبه بن ابی معیط) ولاړ سو هغه شیان یې راوړل،کله چې نبي کریم ﷺ سرپر سجده کیښووی هغه شیان یې وربانديِ واچول ،ابن مسعود رضي الله عنه وایي ماورته کتل خوهیڅ مي په وسه پوره نه وه ، ابوجهل اوډلي یې خندل ،له ډیري خوشحالۍ اوغرور څخه یوپربل ورکړېدل،یوې اوبلي خواته اوښتل، نبي کریم ﷺ هم داسي سرپرسجده پروت ؤ ترڅوفاطمه رضي الله عنها راغله اوهغه شیان یې ورڅخه ایسته کړل،رسول اکرم ﷺ سراپورته کړی اودرې ځله یې وویل:(اللهم علیک بقریش)

**ترجمه:** اې خدایه!ته دقریشو چاره وروکړې، پرمشرکینو هم دنبي کریم ﷺ دادعااثروکړی اوډېره سخته وربانديِ تمامه سوه ځکه دوی داسي باور درلودی چې دلته دعاګاني قبلیږي رسول الله ﷺ بیاوفرمایل :اې خدایه! ته دابوجهل ،عتبه بن ربیعه ،شیبه بن ربیعه،ولید بن عبته ،امیه بن خلف اوعقبه بن ابي معیط چاره ورکړې، ابن مسعود رضي الله عنه وایي چې اووم نوم یې هم یادکړه خوهغه زماڅخه هیردی،ابن مسعود رضي الله عنه بیا وایي :قسم په خدای جل جلاله داټول کسان کوم چې رسول الله ﷺ یې نومونه واخیستل دبدر په ورځ ماولیدل چې دوی ټوله مړه اومردار پراته اوپه کنده کي لوېدلي ؤ.

---

[١١٠] حکم داموی خلیفه دمروان پلار وو.
[١١١] ابن هشام ١/ ٤١۶

امیه بن خلف به چې کله رسول الله ﷺ ولیدی نو استهزاء به یې ورپوري کوله ،اشارې به یې کولې، دده په باره الله جل جلاله دا آیت نازل کړی : وَيْلٌ لِّكُلِّ هُمَزَةٍ لُّمَزَةٍ . سورة همزه

ابن هشام وایي :همزه هغه سړي ته ویل کیږي چې په ښکاره سره بل سړي ښکنځې ،په پسخندونو او اشارو سره ملنډې وربادي وهي او (لمزه) هغه ته وایي چې په پټه سره د خلکو بد وایي او اذیت ورسوي .[113]

د امیه ورور ابي بن خلف دعقبه بن ابی معیط ډیر نژدې ملګری و،یو ځل عقبه د رسول الله ﷺ په حضور کې کښینستی او څه خبرې یې ورڅخه واورېدې ،خو کله چې ابی بن خلف په خبر سو نو عقبه یې ډیر بې زړه وباله ،زیات یې تهدید کړی ،هغه خبیث هم هم داسې وکړل او ده خپله یعني ابی بن خلف یو وروست سوی هډوکی را واخیستی میده یې کړی او د رسول الله ﷺ پر خوا یې ورپو کړی .[113]

اخنس بن شریق الثقفي به هم رسول الله ﷺ ته زیات تکلیف او اذیت رساوه ،قرآن کریم نوموړي ته اشاره کوي او فرمایي :

وَلَا تُطِعْ كُلَّ حَلَّافٍ مَّهِينٍ . هَمَّازٍ مَّشَّاءٍ بِنَمِيمٍ مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ أَثِيمٍ عُتُلٍّ بَعْدَ ذَٰلِكَ زَنِيمٍ .سورة القلم.

**ترجمه**: نو ته خبره مه منه د هر ډیر قسم خورونکي سپک عیب ویونکي تلونکي په چغلی سره ،منع کوونکی د خیر ،له حده تیرېدونکی (په ظلم کې) ډیر ګناهکار بدخوی سخت ویونکی، وروسته له دې ټولو عیبو حرام زاده ،ابوجهل به کله ناکله د رسول الله ﷺ په حضور کې حاضرېدی او قرآن کریم به یې ورڅخه اورېدی خو ایمان به یې نه پر راوړی ،نه به یې اطاعت کاوه او نه به یې په زړه کې خوف او ویره پیدا کېدله بلکه رسول الله ﷺ ته به یې هر ډول زیان او تکلیف رساوه ،خلک به یې د خدای له دین څخه منع کول او بیا به یې په خپل دې باطل او ناروا عمل فخر او ویاړ هم کاوه ،قرآن کریم دده (ابوجهل) په اړه فرمایي: فَلَا صَدَّقَ وَلَا صَلَّىٰ .سورة القیامه **ترجمه**: بیا یې یقین ونه کی (پر مؤمن باندي) او نه یې لمونځ وکی .

ابوجهل به تل د دې کوښښ کاوه چې رسول الله ﷺ له لمانځه څخه منع کړي،یوه ورځ یې رسول الله ﷺ ولیدی چې له مقام ابراهیم سره پر لمانځه ولاړ دی نو ورته وی ویل : اې محمد ﷺ ! آیا ماته له دې کاره نه یې منع کړی له دې سره اخطارونه او تهدیدونه هم

[112] صحیح البخاری کتاب الوضوء باب اذا لقی علی المصلی قذر او وجیفة ۱/ ۳۷.
[113] ابن هشام ۱/ ۳۶۱ ، ۳۶۲.

شروع کړل رسول الله ﷺ هم وربانديې په غوصه سوا و کلک جواب يې ورکړی،نوده ورته وويل:اې محمد ﷺ !په څه مې بيروې؟په دې منطقه کې هيڅوک هم ترمازيات زور او زواک نه لري په دې پسې الله جل جلاله دا آيت رانازل کی: ﴿فَلْيَدْعُ نَادِيَهُ﴾ ۱۷.سورة العلق **ترجمه:** نو راو دې بولي اهل د مجلس خپل.

په بل روايت کې راځي چې رسول الله ﷺ ابو جهل ترغاړه راونيوی اوښراوه يې او ورته فرمايل يې: ﴿أَوْلَىٰ لَكَ فَأَوْلَىٰ ثُمَّ أَوْلَىٰ لَكَ فَأَوْلَىٰ﴾ سورة القيامة **ترجمه**:وړده تاته (اې کافر انسانه هغه شی چې بديې بولې سختې دمرګ ،نووړده(هغه شی چې يې بولې چې سختې دقبرده)بياوړده تالره هغه شی. چې بديې بولې (چې قيامت دوزخې سختې ده)نووړده(تالره هغه شی چې بديې بولې چې هميشه عذاب دی ستاپه دوږخ کې)دلته دالله جل جلاله ښمن(ابوجهل)ورته وويل:اې محمده ﷺ! آياته مابيروې؟ قسم په خدای چې ته او ستارب زما هيڅ هم نه سي کولای ،زه ددې سيمې ترټولو غوره اوعزيز او سيدونکی يم.[114]

په هرترتيب ابوجهل له خپل رذالت او خباثت څخه لاس وانه خيستی،مسلم شريف له حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت کوي وايي ابوجهل يوځل دقريشو سردارانو ته وويل آيا محمد ﷺ ستاسي په وړاندې خپل مخ پرخاوره ايږدي؟دوی ورته وويل هو،نوده وويل :په لات او عزی قسم يادوم که ماهغه په داسې حال(سجده)کي وليدی نوپرغاړده به يې قدم کښيږدم او مخ به يې په خاوره ولړم ،بياوروسته کله چې ابوجهل وليدل رسول الله ﷺ لمونځ اداکوي هغه ور روان سوا وغوښتل يې چې پرمبارکه غاړه يې پل ورکښيږدي خوخلګو کتل چې بيرته پرشا راروان دی اولاسونه يې داسې مخ ته نيولي چې ته به وايې له څه شي څخه دځان دفاع کوي ،خلګو ورته وويل :ابوالحکمه! څه خبره ده؟ده وويل :زما او محمد ﷺ ترمينځ داوريوه کنده ده هغه هولناک اوازدې رسول الله ﷺ فرمايي که چيرې ابوجهل ماته رانژدې سوی وای نو ملائکو به ټوټه ټوټه کړی وای،[115] داهغه ظلمونه ؤ چې درسول الله ﷺ په حق کې ترسره کېدل ،هغه رسول الله ﷺ چې دټولو په وړاندې عزيز او قدرمن ؤ او دابوطالب چې دمکې ډير محترم او مخور شخصيت ؤ تاييد او ملاتړ هم ورسره ؤ،نوويلای سو هغه ظلمونه چې مشرکانو پرنورو اصحابو کرامو خصوصا پرهغه بې کسه او بې وزله کسانو باندې راوستلي ؤ له دې څخه څو چنده سخت او دردوونکي ؤ

---

[114] في ظلال القران ۲۹/ ۳۱۲.
[115] رواه مسلم.

دهري قبيلې مشركانو به دخپلې قبيلې مسلمان غړي په ډول ډول عذابونو تعذيبول، او كه څوک داسي مسلمان پيدا سو چې دلته به يې خپل خپلوان نه درلودل بې كسه او بې وطنه به ؤ نو دقريشو سردارانو به داسي ظلمونه وربانديکول چې وجدان يې له ياده شرميږي.

ابوجهل چې به خبر سو فلانی سړی مسلمان سوی دی نو كه هغه به دمقام او شرف څښتن ؤ د تهديد او اخطار لاره به يې ورسره نيوله او په دې به يې بيروی كه له اسلام څخه وانه وړې نو دځاني او مالي زيان انتظار باسه او كه به دانوی مسلمان كمزوری او بې وسه ؤ نو بيا به يې ترمتروكه لاندي نيوی او واهه به يې او دوهلو ټكولو دلاري به يې دهغه دبې لاری او ارتداد كوششونه كول[۱۱۶]، او هم دا راز نورخلګ به يې هم دهغه پرخلاف راپورته كول.

دحضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه اكا به هغه دخرماؤ په پزكي ونغښتی او بيا به يې له لاندي څخه دويه وړسې لګوله دودونه يې ورته جوړول. ۱۱۷

دمصعب بن عمير رضي الله عنه مور چې كله دخپل زوی داسلام راوړلو څخه خبريږي نو خپل هغه نازولي زوی او نعمتونو كي پټ زوی له كوره شړي، دومره لوږه او تنده ورباندي راولي چې هغه نرم او نازک پوست او څرمن يې لكه دمارد پوستكي په رقم زيږ او كلک شي.[۱۱۸]

بلال بن رباح رضي الله عنه چې دامية بن خلف الجمحي غلام ؤ كله چې په اسلام مشرف سو نو امية بن خلف دهغه په غاړه كي رسۍ واچوله او هلكانو ته به يې په لاس وركاوه چې دمكې په غرونو كي يې تاؤ راتاؤ كړی رسۍ به يې په غاړه كي وه، امية به په ډير سختۍ سره راكشاوی او په لرګي به يې واهه لمرته به يې كښينوی، سخته لوږه به يې ورباندي راوستله او په سره غرمه كي به يې په سرو شګوكي پرې ايستی او پرسينه به يې لويه ډبره وركښينول او ورته ويل به يې، قسم په الله عزوجل چې هم داسي به پروت يې ترڅو يا ومرې او يا پر محمد صلى الله عليه وسلم باندي كافرسې او دلات او عزی عبادت وكړې خو بلال رضي الله عنه به په هم دې سخت حالت كي ويل: احد، احد (الله يو دی الله يو دی) ترڅو يوه ورځ ابوبكر صديق رضي الله عنه تيريدی او بلال رضي الله عنه يې په دې حالت كي وليدی نو يې هغه واخست ازاد يې كړ داخستلو قيمت يې په يو روايت كي راغلی دی چې دسپينو زرو په اوو يا پنځو او آقويعني

---

[۱۱۶] ابن هشام ۱/ ۳۲۰.

[۱۱۷] رحمة للعالمين ۱/ ۵۷.

[۱۱۸] رحمة للعالمين ۱/ ۵۸ - تلقيح فهوم اهل الاثرص ۶۰.

دوه سوه اتيا درهم چې يوه كيلو زيات سپين زر كيږي اودوه سوه درهمه (٧٣۵) ګرامه سپين زر كيږي ورڅخه رانيوى اوآزاد يې كړ[١١٩].

## دعماربن ياسر رضي الله عنه دمور اوپلار سره دابوجهل ظلم

عماربن ياسر رضي الله عنه چې دبني مخزوم غلام و،مور او پلار چې يې كله ايمان راوړى نو مشركانو خصوصا ابوجهل به دوى په تكنده غرمه كي له كوره ايستل اوپرسرو شګو به يې تعذيبول، يوه ورځ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: صبراً آل ياسر فان موعد كم الجنة) اې دياسر اولادې صبركوى ستاسي ځاى جنت دى، ياسر دهمدې تعذيبونو په نتيجه كي شهيد سو، سميه رضي الله عنها (دعمار رضي الله عنه مور)هم دابوجهل دنيزې په ګوزار چې ددې په فرج كي هغه ګذاروكړ شهيده سوه په دې ترتيب سره نوموړى داسلام لومړنى شهيده بلل كيږي، پرعمار يې تكليفونه اوعذابونه نورهم زيات كړل، كله به يې سره لمر ته ودراوه اوكله به يې پرسينه سرې ډبرې وراېښوولې اوكله به يې په اوبو كي اچاوه ورته ويل به يې ترهغو دې نه پرېږدو ترڅو محمد ﷺ ته بد ونه وايې اوياداچې ووايې: لات اوعزى غوره دي، عمار رضي الله عنه مجبور سو چې داورسره ومني خو وروسته په ژړا درسول الله ﷺ حضورته راغى اوعذورنه يې ورته وړاندي كول ، الله جل جلاله داآيت رانازل كړ[١٢٠]: مَن كَفَرَ بِاللَّهِ مِن بَعْدِ إِيمَانِهِ إِلَّا مَنْ أُكْرِهَ وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ بِالْإِيمَانِ **ترجمه**: هرڅوك چې كافر سو پرالله وروسته له ايمان راوړلو دده (نو دالله غضب دى پر) مګر هغه څوك چې زور پروكړل سو (اومجبورا يې داكلمه وويله) حال داچي زړه دده آرام نيوونكى دى په ايمان سره .

ابو فكهيه چې (افلح) يې نوم دى دبني عبد الدار غلام و، هغه به يې په پښه په رسى وتړى اوبيابه يې پرمځكه راكشاوه.[١٢١]

جناب بن الارت چې دانمار بنت سباع الخزاعية غلام و، مشركينو هغه هم په ډول ډول رېړونو رېړولى دى ،دسرترويښتانو به يې ونيوى اوكشوى به يې ،ورمېږ به يې ور

---

[١١٩] رحمة للعالمين ١/ ٥٧- تلقيح الفهوم ص ٦١، ابن هشام ١/ ٣١٧.

[١٢٠] ابن هشام ١/ ٣١٩- ٣٢٠- فقه السيرة لمحمد الغزالى ص ٨٢/ همدارنګه عوفى هم له ابن عباس رضي الله عنهما څخه د دي يوه حصه روايت كړي ده دشيخ عبدالله مختصر السيرة ص ٥٣ مطالعه كړئ.

[١٢١] رحمة للعالمين ١/ ٥٧- من اعجاز التنزيل ص ٥٣.

وپيچي او ډير ځله به يې پرسرو سکروټو بريې ايښتلې ؤ او دلوړې خوا به يې ډبرې ورباندي ايښي وې چې راپورته نه سي. [۱۲۲]

زنيره ،نهديه او لوريې، ام عبيس هغه مينځې وې چې اسلام يې راوړى ؤ او د اسلام په خاطر يې د مشرکينو له خوا ډير زيات تکلفونه او ربړونه ګاللي دي ،دبني عدي قبيلې مؤمل کورنۍ يوې مينځې اسلام راوړى نو حضرت عمر رضي الله عنه چې هغه وخت مشرک ؤ هغه مينځه يې دومره ووهله څو چې ستړى سو او وې ويل :که ستړى سوى نه واى نو وهله مې پسې. [۱۲۳]

ابوبکر صديق رضي الله عنه دغه مينځې رانيولې او آزادي يې کړې ، لکه څرنګه چې بلال رضي الله عنه او عامر بن فهيره رضي الله عنه آزاد کړي ؤ . [۱۲۴]

مشرکينو به ځيني اصحاب داوښ يا غوا يې په څرمنه کي نغښتل او بيا به يې سره لمر ته غورځول ،ځينو نورو ته به يې داوسپنې زغري ورواغوستې او پرسرو ډبرو به يې پرېستل. [۱۲۵]

هغه کسان چې د الله جل جلاله په لارکي ربړېدلي او ځورېدلي ډيردي ،خو په لنډه توګه دا ويلاى سو هرچا به چې ايمان راوړى او مشرکان به په خبرسول نو هغه به يې آرامي ته نه پرېښووى او ډير عذابونه به يې ورباندي راوستل.

## «د دعوة مرکز دار الارقم»

د مشرکينو د دې شکنجو او فشارونو په مقابل کي د حکمت تقاضا او غوښتنه دا وه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم خپلو اصحابو ته هدايت وکړى چې خپل اسلام پټ وساتي او همدا راز له دوى سره خپل ليده کاته هم پټ وساتي،ځکه که چيري په ښکاره ډول سره راټول سي نو مشرکان به کله هم د دې اجازه ور نه کړي او پرې به يې نه ږدي چې د الله جل جلاله خپل اصحاب وروزي،د الله جل جلاله کتاب او حکمت ور زده کړي او دا هم کيداسواى چې دا ښکاره غونډې د دواړو ډلو ترمينځ تصادم او ټکر سبب سوى واى ،لکه څرنګه چې د نبوت په څلورم کال هم داسي يوه پيښه وسوه پيښه داسي وه

---

[۱۲۲] نفسی المصدر ۱/ ۵۷ تلقيح فهوم الاثرص ۶۰.
[۱۲۳] رحمة للعالمين ۱/ ۵۷- ابن هشام ۱/ ۳۱۹.
[۱۲۴] ابن هشام ۱/ ۳۱۸.
[۱۲۵] رحمة للعالمين ۱/ ۵۸.

چې صحابه کرام په یوه پسته مُحکه کې سره راټولېدل او هم دلته به یې په پټه لمونځونه کول، یوه ورځ مشرکینو ولیدل نوبد زد یې ورته وویل او بالاخره یې ترمینځ شخړه ونښته سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه یو سړی وواهه او وینې پرراماتې سوې او دا په اسلامي تاریخ کې لومړۍ پیښه وه چې وینې په کښې وبهیدې.[126] څرګنده ده که چیرې دغه ډول ټکرونه په پرلپسې او مکرر ډول پیښ سوي وای نو دا به حتماً د مسلمانانو دورکېدو او تباهۍ سبب سوی وای، نو د حکمت غوښتنه دا وه چې صحابه خپل اسلام، عبادت، دعوت، او غونډې پټې وساتي، خو رسول الله صلی الله علیه وسلم به خپل عبادت په ډاګه تر سره کاوه او خپل دعوت به یې هم په ښکاره توګه مشرکینو ته اعلانوی خو له اصحابو سره به یې لیده کاته په پټه وه او دا هم د اسلام او مسلمانانو د مصحلت په خاطر او څرنګه چې دارقم بن الارقم المخزومي کور د صفا پرغونډۍ او د مشرکینو له نظر څخه ګوښه پروت ؤ نو رسول الله صلی الله علیه وسلم هم دغه ځای د مسلمانانو سره د غونډو لپاره مناسب وبلی او د نبوت له پنځم کال څخه یې هم دا کور د خپل دعوت مرکز وټاکی.[127]

## «د ظلمونو د زیادت په وجه حبشې ته لومړۍ هجرت»

پر مسلمانانو باندې د مشرکینو ظلمونه د نبوت د څلورم کال په منځنۍ او یا آخرنۍ برخه کې پیل سو، دغه ظلمونه په لومړي سرکې لږ خو ورځ په ورځ مخ پر زیاتیدو ؤ ترڅو چې د پنځم کال په نیمایي کې خپل اوج ته ورسیدل او مسلمانان دومره په تنګ سول چې نوریې په مکه کې اوسېدل ګران سوا و په دې فکر کې ؤ چې له دې عذاب څخه څه ډول ځانونه خلاص کړي، په هم دې سختو شپو او روځو کې سورة کهف رانازل سو، دې سورة د مشرکینو هغه پوښتنې جواب کړی چې له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه یې کړې وې، خو د دې ترڅنګ دې سورة درې داسې کیسې هم بیان کړی چې په هریوه کې د مسلمانانو لپاره ښکاره هدایات او لارښوونې وې، د اصحاب الکهف کیسه دا په ګوته کوي چې کله مسلمانان د دین له پلوه له خطر سره مخ سي نو باید پر الله تعالی باندې په توکل سره د کفر او ظلم له مرکز څخه د امن ځای ته هجرت

---

[126] ابن هشام ۱/ ۲۶۳ مختصر سیرت الرسول لمحمد بن عبدالوهاب ص ۶۰.
[127] نفس المصدر الاخیرص ۶۱.

وکړي ،الله تعالی فرمايي: وَإِذِ اعْتَزَلْتُمُوهُمْ وَمَا يَعْبُدُونَ إِلاَّ اللَّهَ فَأْوُوا إِلَى الْكَهْفِ يَنشُرْ لَكُمْ رَبُّكُم مِّن رَّحمته وَيُهَيِّئْ لَكُم مِّنْ أَمْرِكُم مِّرْفَقًا. سورة الکهف آيت (۱۶) **ترجمه**: او کله چې پرځنګ سوی تاسي له دغو مشرکانو او له هغه (بتانو) چې عبادت يې کوي دوی بې له الله، نو ځای ونيسئ هغه غار ته (او په کښې ديره سی) خپور به کړي تاسي ته رب ستاسي ته له رحمته خپل او تيار به کړي تاسي ته له کارستاسي اسباب دګزران (خوشحالي)

دحضرت خضر عليه السلام او موسی عليه السلام کيسه دا ښيي چې دحالاتو او واقعاتو نتيجه او پای تل داسي نه وي لکه څرنګه چې په ظاهره معلوميږي ،بلکه ډيرځله داسي کيږي چې دپيښو او حالاتو نتيجه دظاهري شکل بالکل مخالفه او برعکس وي او دادي ته اشاره کوی چې داد مسلمانانو او مشرکينو ترمينځ پيل سوی جګړه په بالکل داوسني ظاهري بڼي پرخلاف وي ،په دي معنی چې هم دا مشرکين او ظالمان به چې اوس يې دمسلمانانو پرخلاف جګړه پيل کي ،که چيري اسلام رانه وړي حتما به دهمدې مظلومو مسلمانانو په وړاندي له ماتي او رسوايي سره مخامخ کيږي .

دذی القرنين کيسه دا ثابتوي چې مځکه دالله تعالی ده ،هرچاته چې وغواړي هم هغه ته يې په ميراث ورکوي او همدا راز په ګوته کوي چې بری او نيکبختي په ايمان کي ده نه په کفرکي او بله دا چې الله تعالی همېشه دخپلو مظلومو بندګانو او دزمانې دياجوج او ماجوج له شرڅخه د دوی دنجات لپاره خپل ځيني بندګان راليږي او دا هم ښيي چې دمځکي دواکداری تر ټولو مستحق خلک دالله تعالی صالح بندګان دي .

په دي پسې بياد (الزمر) سورة رانازل سو دا سورة دهجرت پلو ته اشاره کوي او داعلانوي چې دالله تعالی مځکه ډيره پراخه ده ،قرآن کريم فرمايي :

لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا فِي هَذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ وَأَرْضُ اللَّهِ وَاسِعَةٌ إِنَّمَا يُوَفَّى الصَّابِرُونَ أَجْرَهُم بِغَيْرِ حِسَابٍ .۱۰ الزمر

**ترجمه**: ستا هغو کسانو ته چې نيکي يې کړی ده په دغه دنيا کي (په طاعت سره) نيکي (په آخرت کي چې جنت او رضوان دی) او مځکه د الله جل جلاله پراخه ده ،بيشکه هم داخبره ده پوره ورکول سي صابرانو ته اجر (ثواب) د دوی بې حسابه.

رسول الله صلی الله عليه وسلم خبرو چې دحبشې باچا اصحمه النجاشي يو عادل سړی دی او دده په باچهي کي ظلم او زياتوب نسته ،نو يې مسلمانانو ته امروکی چې حبشې ته هجرت

وکړي، په ترتيب سره دنبوت په پنځم کال درجب په مياشت کي داصحابو لومړنۍ ډله چې دولس نارينه اوڅلور ښځي په کي وې دعثمان بن عفان رضي الله عنه ترمشرۍ لاندي حبشې ته هجرت وکړ، له عثمان رضي الله عنه سره دده بي بي اودرسول الله صلى الله عليه وسلم لور حضرت رقيه رضي الله عنها هم ملګرې وه، رسول الله صلى الله عليه وسلم د دوی دواړو په هکله فرمايي: انهما أول بيت هاجر في سبيل الله بعد ابراهيم ولوط عليهما السلام.[128]

يعني ترابراهيم اولوط عليهما السلام وروسته دوی دواړه (عثمان رضي الله عنه اورقيه رضي الله عنها) هغه لومړنۍ کورنۍ ده چې دالله جل جلاله په لاره کي هجرت کوي نوموړي مهاجرين ددې په خاطر چې قريش په خبرنه سي دشپې په تياره کي په پټه سره له مکې څخه ووتل اودالشعيبه نومي بندرګاه په لورولاړل، هلته خدای جل جلاله دوې تجارتي کښتۍ ورته برابري کړې اوحبشې ته يې يوړل، قريش چې په خبرسول ورپسې ووتل خو کله چې بندرته ورسېدل دوی مخکي لاپه خيراوسلامتيا سره تللي ؤ، په دې ډول سره نوموړي مسلمانان حبشې ته ولاړل اوهلته يې دامن ژوندپيل کړ.[129]

دهمدې کال دروژې په مياشت کي رسول الله صلى الله عليه وسلم حرم ته ولاړې چيري چې دقريشو زيات شمير مشران اولويان موجودوه، رسول الله صلى الله عليه وسلم ولاړ سواوپه ناڅاپه توګه يې دا(النجم) سورة تلاوت کی، په داسي حال کي چې کفارو مخکي تردې دالله تعالى کلام نه ؤ اورېدلی، ځکه ددوی اسلوب اولاره داسي وه چې قرآن کريم ته به يې غوږ نه نيوی اويو بل ته به يې توصيه کوله چې دالله تعالى کلام وانه ورې، قرآن کريم د دوی دې کارته اشاره کوي اوفرمايي: ﴿وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَا تَسْمَعُوا لِهَٰذَا الْقُرْآنِ وَالْغَوْا فِيهِ لَعَلَّكُمْ تَغْلِبُونَ﴾[٢٦] سورة فصلت **ترجمه**: او وايي هغه کسان چې کافران سوي دي (په وخت دقرأت) (قرآن) چې مه اورئ دغه قرآن (چې محمد يې وايي) اوشروماشور واچوي (په وخت دويلود) ده کي ښايي چې تاسي غالب سی (پرې اوله تبليغه يې ساکت کړی) خوکله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم دقرآن کريم داتلاوت ورته پيل کی اودالله جل جلاله هغه اوچت ښکلی اوعظيم کلام يې ورته واوراوه چې انساني ذهن اوژبه يې له بيان څخه عاجزدی نودمشرکينو حالت يوځل بدل سو، پخواني وصيتونه يې هيرکړل

[128] مختصر سيرة الرسول الشيخ النجدى ص ٩٢/ ٩٣، زادالمعاد ١/ ٣٤ رحمة للعالمين ٨١/ ١.
[129] رحمة للعالمين ١/ ٦١ زادالمعاد ٢٤/ ١.

، ټولو په ډير دقت قرآن كريم اوريدی يوازي هم دې ته غوږ ؤ نور هرڅه ورڅخه هير ؤ،
تردې چې ددې سورة وروستني آيتونه يې ورته تلاوت كړل هغه چې لهجه يې دومره
تنده او سخته ده زوړونه ويلوي او كله چې دا آيت : فَاسْجُدُوا لِلّٰهِ وَاعْبُدُوا ٦٢ .سورة النجم
**ترجمه**: نو سجده كوی تاسي (خاص) الله عزوجل ته او عبادت كوی د همدغه (الله جل جلاله)
رسول الله ﷺ وكړی نو يو ځل ټول پر سجده پرېوتل ځكه د حق قوت ددوی عناد،
كبر او باطل له مينځه يو وړي نو ټول د الله جل جلاله په وړاندي سر په سجده سول .[130]
او كله چې متوجه سول چې د الله تعالی كلام ددوی حالت بدل كړی او هغه څه يې په
خپله وكړل چې د هغه د مينځه وړلو په خاطر يې خپل توان په كار اچولی ؤ او ددې
ترڅنګ هغه مشركينو چې په دې مجلس كي حاضر نه ؤ د غه سجده كوونكي
مشركين يې ډير وروټل، پړه او ملامتيا يې ورباندي اچوله نوله همدې ځايه وه چې
دوی به په رسول الله ﷺ پسې دروواغ تړل او داسي افتراء يې جوړه كړه چې ګويا
رسول الله ﷺ ددوی دبتانو ستاينه وكړه او داسي يې : تلک الغرانقة العلی، وان شفاعتهن
لترتجی. **ترجمه**: دا لوړ ديوان دی او ددوی دشفاعت هيله او اميد كيږي دوی دا
افتراء او دروواغ په دې خاطر جوړ كړل ترڅوله نبي كريم ﷺ سره يو ځای هغه خپله
سجده توجيه كړي او د هغه په هكله دا لكه عذر او دليل وړاندي كړي .
او دا څه نوی او عجيبه خبره نه وه چې دوی كړی وي بلكي دوی تل هم داسي دروواغ او
افتراء ګاني جوړولی .[131]
دغه خبره په حبشه كي مهاجرينو ته ورسيده خو د پيښي له واقعيت او حقيقت څخه
خبر نه ؤ، دوی داسي واوريدل ګويا قريشو اسلام راوړی نو د همدې كال دشوال په
مياشت كي دوی هم مكې ته راستانه سول خو كله چې مكې ته رانږدې سول
او د موضوع په حقيقت خبر سول نو ځيني يې بيرته حبشې ته وګرځيدل او نوري يا په
پټه توګه او يا د كوم چا په ضمانت اوتړون مكې ته ننوتل، وروسته قريشو
پر مسلمانانو باندي خپل ظلمونه څو چنده كړل، مشركينو دا هم نه سوای زغملای چې

---

[130] امام بخاري د همدي سجدي قصه په لنده توګه له ابن مسعود او ابن عباس رضي الله عنهم څخه روايت كوي په دي باره باندي دباب سجدة النجم وباب سجدة المسلمين والمشركين ۱/ ۱۴۶ وباب مالقى النبى ﷺ واصحابه من المشركين بمكة ۱/ ۵۴۳.

[131] تفهيم القران ۵/ ۱۸۸- محدثينو هم دا توجيه تائيد كري ده.

مسلمانان دي دنجاشي په باچهۍ کي دامن ژوند وکړي ،نونبي کريم ﷺ لازمه وګڼله چې يو ځل بيا خپلو اصحابو ته حبشې ته دهجرت امروکړی ،خودادويم هجرت مشکل ؤ ځکه قريش ورته بيدار اوتيارؤ کوښښ يې وکی چې داهجرت ناکام کړي خوالله جل جلاله مسلمانانوته لاره هواره کړه اود نجاشي وطن ته ورسېدل ،داوار مهاجرين (۸۳) نارينه(که چيري عمار رضي الله عنه ورسره وشميرل سي ځکه په دې هکله اختلاف دی چې آياعمار هم ورسره ؤ اوکه نه ؟)اواتلس يا نولس ښځي وې[۱۳۲] .علامه محمد سليمان المنصورفوري لومړنۍ شميره تائيده وي .[۱۳۳]

## «په حبشه کي ومهاجرينوته دقريشو پلان»

مشرکينودانه سوای زغملای چې مسلمانان دي په امن ژوندوکړي اوهلته په حبشه کي دي هم داسي پاته سي نويې عمروبن العاص اوعبد الله بن ابي ربيعه چې دواړه ډيرپوه اوځيرک خلک وه حبشې ته وليږل ،دنجاشي اودهغه د درباريانو لپاره يې ډيري قيمتي تحفې هم ورکړی، نوموړودنجاشي درباريانو ته هغه تحفې وړاندي کړی اوټول هغه دلايل يې وروښوول چې بايد مسلمانان ورباندي وشړل سي اوکله چې درباريان په دې راضي سول چې نجاشي ته به د مسلمانانو دشړلو مشوره ور کوي نودوی دواړه نجاشي ته وړاندي سول اوتحفې يې ورکړی او ورته وی ويل اې باچا!وطن ته ځوداسي کم عقله انسانان راغلي دي چې دخپل قوم دين يې پری ايښی دی اوستادين هم نه دی منلی،دوی دځان لپاره يونوی دين غوره کړی، دا داسي يو دين دی چې نه يې موږ اونه يې تاسي پيژنئ نواوس د دوی پلرونو ، اکاګانو ،خپلوانو اودقوم مشرانو موږ تاته راليږلي يو چې ته دوی بيرته ور واستوی (له دې ځای څخه يې وباسی)ځکه هغوی ددوی په احوالو ښه خبردي ،د دوی عيبونه ورته معلوم دي اوپه دې هکله يې ملامت کړي او رټلي هم دي .

درباريانوهم ورته وويل دوی ربنتيا وايي باچاهغه مهاجرين دوی دواړوته وسپاره ترڅو خپل وطن اوقوم ته يې بوزي ،خونجاشي وغوښتل دمسئلې په ټولواړخونو ځان پوه کړي اوله دواړو جانبينوڅخه دلايل واوري،مسلمانان يې راوغوښتل

---

[۱۳۲] زادالمعاد ۱/ ۲۴ رحمة للعالمين ۱/۶۱ .
[۱۳۳] نفس المصدر الاخير رحمة للعالمين.

،دوی پردې اتفاق کړی ؤ، چې رښتیا به وایو نو که هرڅه پیښیږي پیښ دي سي ،او کله چې دربارته راغلل،نجاشي ورته وویل : دا کوم دین دی چې په هغه سره موخپل قوم پرې ایښی دی او هم دا راز موزما او یا له دې موجوده ادیانو څخه بل دین هم نه دی منلی.

په جواب کي حضرت جعفربن ابي طالب رضي الله عنه د مسلمانانو په نمایندګي داسي وویل: اې باچا موږ د جاهلیت په تیارو کي ژوند کاوه،د بتانو عبادت به موکاوه او مرداری به موخوړله فساد او فحشا عمومیت درلودی،دخپلوی اړیکي موشلولی، د همسا یګانو حقوق مونه مراعتول، دزورښتانو به دمظلوموخلکووینې زبیښلی موږ په داسي یوه حالت کي ؤچې الله تعالی زموږ له مینځ څخه رسول راته راولیږی،داسي رسول چې موږ یې د توحید او یوه خدای جل جلاله د عبادت په لور دعوت کړو او دایې راته وښوول چې د توحید لاره ښه کړو او داد کاڼو او بتانو عبادت چې موږ اوزموږ پلرونو به کاوه پریږدو ،نوموري (رسول اکرم صلی الله علیه وسلم )موږته داامر کوی چې رښتیا به وایو ،امانت به ساتو دخپلوی اړیکي به ټینګي او مضبوطه ؤ،له همسا یګانو سره به نیکي کوو ،له ویني تویولو او محارمو څخه به ځان ساتو ،له هرډول، فساد او فحشا ، دروا غو دیتیم له مال خوړلو ، په پاک لمنو ښځو پسې له تور او تهمت ویلو څخه یې به ککله منعه کړي یو اودا امر یې راته کړی چې یوازي دیوه الله جل جلاله عبادت به کوو ،له هغه سره به شریک نه نیسو دلمانځه روژو امریې راته کړی دی او داسي نور اسلامي اموریې ورته یاد کړل.

نوموږ هم دهغه خبره ومنله او ایمان موورباندي راوړی اوهغه دین مو ومانه چې دالله عزوجل له لوري یې راته راوړی دی ،دیوه الله جل جلاله عبادت موپیل کی ،هیڅ شریک ورسره نه نیسو هغه څه چې یې حرام کړي دي هغه حرام او څه چې یې روا کړیدي هغه حلال بولو ،او همدا وجه وه چې زموږ قوم دبتانو عبادت پیل کی،او بیرته هم هغه خباثت او جاهلیت ته وروګرځېدو ،دوی پرموږ هم ډول ډول ظلمونه وکړل،موږ یې نه پرېښوولو چې خپل دیني شعائر اداکړو ،موږ یې له خپل دین څخه منع کولو، نو مجبورسو چې خپل وطن پرېږدو اوستا وطن ته راسو ،موږته غوره کړی یې اوستا همسایه توب مو اختیار کی او دا هیله لرو چې ستا په باچهۍ کي پرموږ ظلم ونه

سي نجاشي ورته وويل : له هغهٔ څه څخه چې رسول الله ﷺ د الله تعالی له لوري راوړي څه شی درسره سته؟ جعفر رضي الله عنه ورته وويل : هو!

نجاشي ورته وويل: نو راته وي وايه نو جعفر رضي الله عنه د سورة مريم د پيل څو آيتونه ورته تلاوت کړل ، نجاشي دومره وژړل چې ږيره يې لنده سوه ، أساقفه (ديني عالمانو) هم د قرآن کريم په اورېدو سره وژړل ، بيا نجاشي ورته وويل : قسم په خدای چې دا او هغه څه چې حضرت عيسی عليه السلام راوړي دي دواړه له يوې منبعې څخه سرچينه اخلي بيا يې عمرو بن العاص او عبد الله بن ابی ربيعه ته په خطاب سره وويل : ځئ ولاړ سئ قسم په خدای چې دوی به تاسي ته ونه سپارم ، دوی دواړه له نجاشي څخه راووتل ، بيا عمرو بن العاص خپل ملګري عبد الله بن ابي ربيعه ته وويل : سبا به زه ورسره ګورم . داسي کار به پرې وکړم چې دوی به هم حيران سي بيخي به يې ورباندي ورک کړم ، عبد الله بن ربيعه ورته وويل : نه داسي مه کوه ، ځکه هغوی هم خپلوان لري که څه هم هغوی زموږ سره مخالف دي خو عمرو بن العاص پر خپل نظر ټينګار کاوه او د عبد الله خبره يې ونه منله .

سبا يې نجاشي ته وويل اې باچا ! آيا ته خبر يې دا خلک (مهاجرين) د عيسی عليه السلام په هکله څه وايي؟ نجاشي دوی راوغوښتل او پوښتنه يې ورڅخه وکړه چې د عيسی عليه السلام په هکله څه عقيده لرئ ؟ هغوی لومړی وبېرېدل خو بيا يې پر رښتيا ويلو اتفاق وکی ، دربار ته ورغلل ، نجاشي پوښتنه ورڅخه وکړه جعفر رضي الله عنه ورته وويل: موږ د عيسی عليه السلام په اړه هغه څه وايو چې زموږ نبي ﷺ راته راوړي دي ، موږ وايو چې عيسی عليه السلام د الله جل جلاله بنده د الله جل جلاله رسول او د الله جل جلاله روح او هغه کلمه ده چې پاک لمني او پيغلي مريمي ته القاء کړی وه . د دې خبري په اورېدو سره نجاشي له مځکي څخه يو ډکي راپورته کی او وی ويل : قسم په خدای چې عيسی عليه السلام تر دې چې تاسو ويل د دې ډکي په اندازه هم آخوا ديخوا نه دی درباريان يې وپښېدل او وځمبېدل ، نجاشي ورته وويل که تاسي هر څو وپښېږی خبره هم داسي ده .

بيا يې مسلمانانو ته وويل ځئ ، تاسي زما په ملک کي په امن ياست ، که چا بد درته وويل جريمه به سي ، درې ځله يې دا خبره وکړه زه دا نه خوښوم چې يوه ستاسو ته تکليف ورسوم ، که څه هم څوک د سروزرو غرونه را کړي .

بيايې خپلو کسانو ته امروکی چې ددوی دواړو تحفې بيرته ورکړي زه څه اړتيا نه ورته لرم، قسم په الله تعالی چې کله ما ته خپله باچايي بيرته راکړي نو رشوت يې نه دی راڅخه اخيستی، تر څو زه په دې لاره کې رشوت واخلم هم دا راز الله تعالی زما په هکله دخلکو خبري نه دي منلي چې زه اوس دالله تعالی په اړه دخلکو خبري ومنم ددې کيسې روايت کوونکي أم سلمه رضي الله عنها وايي دوی دواړو له خپلو تحفو سره په ډير شرم او خجالت راووتل،موږ هم هلته په هم هغه غوره ځای اوله غوره ګاونډي سره پاته سوو [۱۳۴] دا دابن اسحاق روايت دی، نور وايي چې عمرو بن العاص نجاشي ته تربدر وروسته ورغلی ؤ [۱۳۵] او ځيني نور وايي چې عمرو بن العاص دوه واري حبشې ته ورغلی ؤ،خو هغه روايتونه چې وايي عمرو بن العاص دوه ځله حبشې ته ورغلی ؤ،نو دوی په دويم وار ورتګ کې تقريبا هم هغه سوال او جواب رانقلوي کوم چې په لومړي وار کې دجعفر رضي الله عنه او نجاشي ترمينځ سوی ؤ او ابن اسحاق رانقل کړی دی بله دا چې دهمدې سوال اوجواب موضوع او مطلب په دې دلالت کوي چې دا د نجاشي په وړاندې لومړنۍ مرافعه وه.

دمشرکينو داپلان شنډ سو،مکر او فريب يې ونه چليدی او په دې پوه سول چې د خپلو پولو آخوا د دوی مکرونه اغيزه نه لري ،نو په بل فکر کې سول او بالاخره دې نتيجې ته ورسېدل چې ددې مشکل حل دا دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم له خپل دعوت څخه واړوي او که نه نو اعدام يې کړی ،خو په دې لاره کې سترخنډ ابو طالب ؤ ځکه هغه دخپل وراره پرخوا ولاړ ؤ او دمشرکينو له ظلمونو څخه يې خوندي ساتی نو مشرکينو پلان جوړ کی چې په دې اړه له ابو طالب سره مقابله وکړي .

## «ای ابو طالبه خپل وراره له دې کاره بند کړه»

دقريشو مشران او مخور خلک ابو طالب ته ورغلل او ورته وی ويل: ای ابو طالبه !ته زموږ يو شريف مشر يې ،موږ تا ته په ډير اهميت قايل يو ،موږ ستا څخه غوښتي ؤ چې خپل وراره له دې کار څخه منع کړه خو تا هغه منع نه کړی نو اوس موږ نور دا نه سو زغملای چې زموږ پلرونو ته دې بد رد وويل سي ،زموږ په پلرونو پوري دې ملنډې

[۱۳۴] ابن هشام ۲۶۵/ ۲۶۶.
[۱۳۵] مختصر سيرة الرسول للشيخ عبدالله النجدي ص ۹۶/ ۹۸.

ووهل سي اوزموږ معبودان ديّ ورټل سي اوخبري دي ورپسې وسي ،ستاخوښه وراره له دې کاراړوي اويابه زموږ سره مخامخ جګړه اعلانوي،ترڅويوطرف تباه او مسئله حل سي.

پرابوطالب باندې داتهديداواطلاع سخت تمام سوخپل وراره حضرت محمد ﷺ يې راوغوښتی او ورته وی ويل :وراره!ستادقوم خلګ راته راغلی ؤ،داسي خبري يې راته وکړی نولږ زما اودخپل ژوند خيال وساته اوماپه داسي څه مه مجبوره وه چې تروس مي لوړ وي ،رسول الله ﷺ ګومان وکی چې لکه اکايې هم دده مرسته پرېښوه ،کومک نه ورسره کوي نويې وفرمايل : ياعم والله لووضعوا الشمس فی يمينی والقمر فی يساری علی ان اترک هذالامر حتی يظهره الله اواهلک فيه ماترکته. **ترجمه**: اي کاکا !قسم په خدای که دوی لمر په راسته لاس اوسپوږمۍ په چپه لاس کي راکړي ددې لپاره چې زه داکارپرېږدم نو زه به داکار ترهغوپوري پرې نه ږدم چې يايې الله تعالی بريالی کړی اويايې زه په لاره کي ووژل سم.

داخبره يې وکړه له سترګو يې اوښکي رواني سوی او ولاړسو،ابوطالب ږغ پسې وکی هغه مخ ورته را واړه وه نوده ورته وويل وراره!ورځه څه چې دي زړه غواي هم هغه وايه،قسم په الله چې له مرستي به دي لاس وانه خلم اونه به دي چاته پرېږدم[136] اوبيايې داشعرونه وويل :

والله لن يصلوا اليک بجمعهم ........................ حتی اوسد فی التراب دفينا

فاصدع بأمرک ماعليک غضاضة.............. وابشر وقربذلک منک عيونا[137]

ژباړه : قسم په خدای که دوی له خپلو دې ټولیو سره تاته در ورسيدای سي ،ترڅوزه په خاورو کي ښخ سوی نه يم خپله خبره په ډاګه کوه پرتاهيڅ اعتراض نسته ،خوشحاله اوسه اوسترګي دي په دې سره روښانه.

## «قريش او دويم وار بیاابو طالب»

کله چې قريشوولیدل چې نبي کريم ﷺ خپل دعوت پرمخ بيايي ،ابوطالب هم درسول الله ﷺ مرسته نه پريږدي اوپه دې لاره کي دقريشو دښمني اومقابلې ته

---

[136] ابن هشام ۲۶۵/ ۲۶۶.

[137] مختصر سيرة الرسول ﷺ للشيخ محمدبن عبدالوهاب النجدي /۶۸.

تیاردی نومشرکان سره راتهول سول اوعماربن ولید بن مغیره یې ابوطالب ته
ورواستوی اوورته وی ویل:اې ابوطالبه دادقریشو ترټول غیرتي پوه اوښکلی
ځوان دی ،نوته داواخله دده له عقل اوقوت څخه ګټه اخله اودځان لپاره یې زوی
ونیسه په بدل کي یې خپل وراره موږ ته راکړه کوم چې ستااوستا دپلرونو له دین
څخه اوښتی دی ،په قوم کي یې بې اتفاقي اچولی ده ،ترڅوهغه مړکړو سړی به دي
په سړي وي نور څه غواړې ؟ابوطالب ورته وویل داستاسي ډېره غلطه فیصله ده
اودا ډېره خرابه سودا ده چې زماسره یې کوی تاسي خپل زوی ددې لپاره ماته
راکوی چې درته لوی اوچاغ یې کړم اوزماڅخه غواړې چې خپل زوی درته وسپارم
چې مړیې کړې ،قسم په خدای چې هیڅکله به هم داسي ونه سي ،په دې وخت کي
مطعم بن عدی بن نوفل بن عبدمناف وویل :ابوطالبه !دې خلګو دانصاف خبره
درته وکړه ،دوی له خپل طرفه ډېري هلي ځلي وکړې اوڅه چې نه خوښوی دهغه څخه
دخلاصون هڅي یې هم وکړې خوته نه غواړې چې د دوی پیشنهادونه ومني
،ابوطالب ورته وویل :قسم په خدای که دا انصاف وي ،هغوبالکل دانصاف خبره نه
ده کړې لکه چې ته هم زماپرخلاف له دوی سره یوځای درېدلی یې ،نوهرڅه چې
کوی کوه یې [۱۳۸] تاریخي مصادرو ددې دواړو لیدنو اویاپه بل عبارت ابوطالب ته
دقریشو ددې پیشنهادونو وخت اونیټه نه ده ښوولې خودقرائنو اوشواهدو له لېدو
اوپلټلو وروسته دا په ډاګه کیږي چې دا دواړي پیښي دنبوت دشپږم کال په مینځنۍ
برخه کي واقع سوي دي اود دواړو ترمینځ ډېره کمه موده وه .

## «درسول الله ﷺ ومړګ ته دطاغوتیانو پلانونه »

کله چې دمشرکینو داټول چلونه ناکام سول اوله دې لاري څخه څه په لاس ورنغلل
نویې بیرته هم هغه دظلم اوزیاتوب پخوانۍ لاره ونیوله ،خپل ظلمونه اووحشتونه
یې څوچنده کړل اوپه دې لټه کي سول چې رسول کریم ﷺ له بلي لاري په شهادت
ورسوي خود دوی دافریب اوچم هم بیرته د دوی په زیان اود مسلمانانو په ګټه تمام
سو اودقریشو دهمدې ظلمونو اوهمدې توطئو په نتیجه کي دمکې دوه قهرمانان
حمزه بن عبدالمطلب اوعمر بن خطاب په اسلام مشرف سول .

---

[۱۳۸] ابن هشام ۲۶۶ ـ ۲۶۷ .

دقریشو له دې وحشتونو او ظلمونو څخه ځود مثال په توګه وړاندې کوو، یوه ورځ عتبه بن ابی لهب نبي ﷺ ته ورغلی او ورته یې وویل :زه په (والنجم اذاهوی) او (ثم دنافتدلی) کافریم دانه منم ،ورپسې یې دنبي کریم ﷺ کمیس ورڅیرې کړی ،پرمخ یې ورتف کړل خو ناړې وربانديې ونه لګېدی، په دې وخت کی رسول الله ﷺ ښرا ورته وکړه اووی فرمایل :اللهم سلط علیه کلبا من کلابک. الله ﷻ دخپل ژباړه اې خدای له خپلو سپیانو څخه یوسپی وربانديې وګوماره . الله ﷻ دخپل رسول الله ﷺ دا دعا قبوله کړه څه وخت وروسته عتبه بن ابی لهب دقریشو له یوې ډلې سره په سفر ولاړی اوکله چې یې دشام په (زرقا) نامې سیمې کې واړول په همدې شپه یو زمری راغلی عتبه چې یې ولیدی نو وی ویل افسوس اې وروره قسم په خدای دا زمری ماخوري ،لکه څرنګه چې محمد ﷺ ښرا راته کړی ده ،څنه په مکه کې دی خوزه یې دلته (په شام کې) ووژلم ،زمرې وربانديې ټوپ کړل اوترسرېې ونیوی دړې وړې یې کړی .[139] ویل کېږي چې یوځل رسول الله ﷺ دالله تعالی په وړاندې سر پرسجده ایښی وُ چې عقبه بن ابی معیط راغلی اودالله درسول ﷺ پرمبارکه غاړه یې پښه ورکېښووه اودومره زور یې ورباند وکی چې نژدی وه درسول الله ﷺ مبارکې سترګې راووزي [140] داچې دقریشوطاغوتیانو غوښتل رسول الله ﷺ په شهاد ورسوی ددې خبرې دصحت اواثبات لپاره دابن اسحاق هغه اوږد روایت کافي دي چې وایي ،ابوجهل وویل :اې قریشو ! وینی چې محمد ﷺ زموږ دین عیبجن کوي ،زموږ پلرونو ته بدوایي ،زموږ پرعقلونو خاندي زموږ معبودان هم ښکنځي،نوزه له خدای سهر عهد کوم چې یوه دومره لوه تیږه به اخلم چې پورته میده سي ،نوتاسي بیاماوساتی ،اودفاع مي وکړی ،بیادي دبنو عبد مناف لاس خلاص وي څه چې کولای سي ودي یې کړي ،قریشو ورته وویل: قسم په خدای که دي هیچا ته هم ورکړو ،ته خپل کار وکړه ،موږ درسره یو،سباسهار ابوجهل هم داسي یوه ډبره راواخیستله اودرسول الله ﷺ په انتظارکښېنستی

---

[139] تفهیم القران ۶/ ۵۲۲–له الاستیعاب، الاصابة، دلائل النبوة، الروض الانف، مختصرسیرت الرسول للشیخ عبدالله النجدي ص ۱۳۵.

[140] سیرة الرسول لعبدالله النجدی ص ۱۱۳.

رسول الله ﷺ له خپل عادت سره سم راغلی او په عبادت یې پیل وکی ،قریش هم ټول راغلي ؤ او په خپلو ځایونو کي ناست ؤ او کتل یې چې ابو جهل څه کوي ،کله چې رسول الله ﷺ پرسجده سو اوبو جهل هغه ډبره راپورته کړه اود رسول الله ﷺ خواته روان سوخو کله چې ورنژدې سو په بیره سره پرشاراغلی ،بڼه یې الوتی وه ،دومره بیري اخیستی ؤ چې ډبره یې له لاسو ولویده ، دقریشو مشرکان ورپورته سول او ورته وی ویل ،څه درباندي وسوه اې اباالحکمه؟ده ورته وویل زه ور روان سوم ترڅو لکه پرون چې مي تاسو ته ویل ؤ هغه ډبره یې پرسروراپله کړم خو کله چې ورلنډ سوم یو داسي اوښ مي مخ ته راغلی چې ډیر لوی سر،غټ غاښونه او اوږده غاړه یې وه ما په خپل ژوند کي داسي اوښ نه دی لیدلی غوښتل یې چې ما وخوري .

ابن اسحاق وایي اوریدلي مي دي چې رسول الله فرمایلي :ذالک جبریل لودنا لأخذه. ژباړه :هغه جبرئیل علیه السلام ؤ که ورنژدې سوی وای نو نیولی به یې وای وریسې ابو جهل له نبي کریم ﷺ سره هغه څه وکړل چې دحمزه بن عبد المطلب د[141] اسلام راوړلو سبب سو چې په راتلونکي کي به یې یادونه وکړو ، دقریشو طاغوتیا نو درسول الله ﷺ دقتل دوسسه په خپلو زړونو کي ښه پخه کړی وه ،ابن اسحاق له عبدالله بن عمرو بن العاص څخه روایت کوي چې وایي قریش دکعبې خواته غونډ ناست ؤ زه هم ورغلم اود دوی سره کښینستم ،دوی د رسول الله ﷺ په اړه خبري شروع کړی او ویل یې موږ له دې سړي سره له دومره صبر اوحوصلې څخه کار واخیستی چې بل هیڅا ته موهم دومره صبر نه دی کړی ،دوی هم دا خبري کولی چې نبي کریم ﷺ راښکاره سو ،راغلی رکن یې مسح کی ،حجراسود یې مچ کی ،د بیت الله طواف یې شروع کی او کله چې دطواف په ضمن کي ترقریشو تیرسو نو دوی ځیني بدي خبري ورته وکړی،مادرسول الله ﷺ په مخ کي ددې خبرو اثر ولیدی، دویم وارچې بیا ورسره تیرسو بیا یې هم هغسي بدي خبري ورته وکړی، بیا مي ددې خبرو اثردده په مخ مبارک کي ولیدی،دریم وارچې بیاتیریدی،دوی بیا بدي خبري ورته وکړی،نورسول الله ﷺ ودریدی او وی فرمایل:آې قریشو !واورئ قسم په هغه ذات چې زمانفس دهغه په واک کي دي چې ماتاسي ته ستاسي د ذبحي اوقتل

---

[141] ابن هشام ۲۹۸/ ۲۹۹.

حکم راوړی دی، د رسول الله ﷺ دې ارشاد خلک تر خپل تأثیر لاندې راوستل داسې چوپ او آرام کښېنستل تا به ویل چې د هریوه پر سر مرغه ناست دی تر دې چې د رسول الله ﷺ په مقابل کې تر ټولو شدید او سخت سړی به هم ډیرې نرمې او خوږې خبرې کولې او په دې سره به یې له رسول الله ﷺ څخه د رحمت سوالونه کول او ورته ویل به یې اې ابو القاسمه! بیرته ولاړ سه، قسم په خدای ته کله هم نادان نه وې، په سبا باندې بیا په داسې حال کې چې دوی د رسول الله ﷺ په هکله خبرې کوې هغه مبارک تشریف راوړی نو کله چې دوی ولیدی یو وار ټول ور ولاړ سول او د الله عزوجل رسول یې راګیر کړ عبدالله بن عمرو بن العاص وایي ما ولیدل چې یو سړی رسول الله ﷺ یې تر څادر کلک نیولی ؤ، ابو بکر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ خوا ته ولاړ دی او په داسې حال کې ژاړي وایي آیا تاسو هغه څوک وژنئ چې وایي الله زما رب دی، وروسته بیا قریشو رسول الله ﷺ پرېښوی، راوي وایي تر کومه چې ما لیدلی دا پر رسول الله ﷺ باندې د قریشو تر ټولو ستر ظلم ؤ.[١٤٢]

امام بخاري رحمه الله له عروة بن الزبیر رضي الله عنه څخه روایت کوي وایي ما ابن عمرو بن العاص رضي الله عنه ته وویل چې پر رسول الله ﷺ باندې د قریشو تر ټولو د ستر ظلم په اړه چه دی مبارک په عبادت بوخت وو او عقبه بن ابي معیط راغلی خپل پټوی یې د رسول الله ﷺ په غاړه کې ورواچوی او دومره یې وپیچی چې نژدې وه چې زندی سي، په دې وخت کې ابو بکر رضي الله عنه راغلی هغه یې ټینګ ونیوی او له رسول الله ﷺ څخه یې لیرې پرې واهه او وې ویل آیا هغه څوک وژنئ چې وایي الله زما رب دی.[١٤٣]

او په هغه حدیث کې چې آسماء رضي الله عنها روایت کړی دی راځي چې یو چا ابو بکر صدیق رضي الله عنه ته ناره کړه چې هله د ملګري کومک ته دې ورسه نو ابو بکر صدیق رضي الله عنه په ځغستا ور ووتی د غه وخت چې له کوره ووتی د هغه د سر ویښتان څلور کوڅې وې او وې ویل آیا تاسې هغه څوک وژنئ چې وایي: الله زما رب دی، یعني یوازې په دې ګناه یې وژنئ چې وایي الله جل جلاله زما رب دی، په دې وخت کې مشرکینو رسول الله ﷺ پرېښووی او پر ابو بکر صدیق رضي الله عنه ورټول سول او کله چې بیرته کور ته راغلی نو

---

[١٤٢] ابن هشام ١/ ٢٩٨- ٢٩٩.

[١٤٣] صحیح البخاری باب ماذکر مالقی النبی ﷺ واصحابه من المشرکین بمکة.

پرسرېږ یو وېښته هم نه ؤ، کوځې یې ټولې وربانديې شکولې وې او چې کوم یو وېښته پاته ؤ نو هغه زموږ له لاسونو سره توی سو.[۱۴۴]

## «د حمزه رضي الله عنه ایمان راوړل د مؤمنانو د زړونو خوشحالي»

په داسې حال کې چې د مکې فضا د ظلم او طغیان تورو تیارو نیولې وه د حمزه بن عبد المطلب رضي الله عنه په ایمان راوړلو سره د مؤمنانو زړونو ته نوي هیلو او آرزوګانو لاره پیدا کړه، حمزه رضي الله عنه د شپږ کال په وروستیو په غالب ګومان د ذي الحجې په میاشت کې ایمان راوړی دی.

د حمزه رضي الله عنه د ایمان راوړلو کیسه داسې ده، یوه ورځ ابوجهل د صفا له غونډۍ سره رسول الله ته اذیت رساوه، بدې خبرې یې ورته کولې خو رسول الله صلی الله علیه وسلم چوب ؤ هیڅ یې هم نه ورته ویل بیا ابوجهل پورته سو او رسول الله صلی الله علیه وسلم یې په یوه ډبره وویشتی، د هغه مبارک سرېږ ورمات کی او وینې ورڅخه راوبهېدې، بیا ابوجهل ورڅخه روان سو او د کعبې په خواکې له قریشو سره کښېنستی، د عبد الله بن جدعان یوې مینځې چې د صفا په غونډۍ کې په خپل کور کې وه دا صحنه ولیده، په دې وخت کې حمزه رضي الله عنه له ښکاره راغی، لینده یې په لاس کې وه، نو موږې مینځې د ابوجهل کیسه ورته وکړه، حمزه رضي الله عنه یوځل په غوصه سو روان سو تر څو ابوجهل ووینې او حمله ور باندې وکړې، مسجد ته ننوتی او د ابوجهل سره ودرېدی او ورته وی ویل (یا مصفراسته) ځکه ابوجهل په مقعده کې په پیس مرض اخته ؤ ته زما هغه وراره ته ښکنځل کوې چې زه د هم هغه په دین یم؟ بیا یې په لینده یو کلک وار پرې وکړی او سرېږ ورمات کړی په دې وخت کې د ابوجهل کورنۍ (بن مخزوم) او د حمزه رضي الله عنه د کورنۍ (بنو هاشم) خلک سره راپورته سول، خو ابوجهل وویل: ابوعماره (حمزه رضي الله عنه) پرېږدی ما د حمزه رضي الله عنه ایمان راوړل په لومړي سر کې دیوه ننګ او غیرت له امله ؤ، په دې ننګ کې راغلی ؤ چې دده وراره ته څوک په سپکه ستر ګه ګوري خو وروسته الله عزوجل د هغه سینه پراخه کړه او پر اسلام ټینګ ودرېدی[۱۴۵] او د حمزه رضي الله عنه ایمان هغه

---

[۱۴۴] مختصر سیرت الرسول للشیخ النجدیص ۱۱۳.

[۱۴۵] هغه روایت وربانديې دال ده چې الشیخ عبد الله النجدي په خپل مختصر سیرت الرسول صلی الله علیه وسلم کې روایت کړی ده ص ۱۰۱

حمزه چې په غيرت او شجاعت کې يې ساری نه درلودی د مسلمانانو لپاره ډېر عزت او قوت سبب سو.

## «حضرت عمر رضي الله عنه هم د مؤمنانو صفونو ته ورګډ سو»

په همدې وختو کې چې مکه د کفر او طغيان وريځو تياره کړې وه د الله تعالى له پلوه مسلمانانو ته يو بل د اميد څراغ بل سو يعنې عمر رضي الله عنه د مؤمنانو په ډله ورګډ سو، حضرت عمر رضي الله عنه د حضرت حمزه رضي الله عنه تر اسلام منلو درې ورځې وروسته د نبوت د شپږم کال د ذي الحجې په مياشت کې په اسلام مشرف سو[١٤٦] رسول الله صلى الله عليه وسلم د الله جل جلاله څخه د هغه د اسلام راوړلو غوښتنه کړې وه ، ترمذي له ابن عمر رضي الله عنه او طبراني له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت کوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي ؤ:

اللهمّ اعز الاسلام بأحب الرجلين اليک بعمر بن خطاب اوبأبي جهل بن هشام .

ژباړه اې الله ! ته اسلام ته په عمر بن خطاب رضي الله عنه او يا ابو جهل بن هشام هريو چې تا ته ګران وي عزت او قوت ورکړې الله عزوجل ته حضرت عمر رضي الله عنه منظور ؤ او همدې په اسلام مشرف سو[١٤٧] که ټولو هغو روايتونو ته کوم چې د عمر رضي الله عنه د اسلام راوړلو په هکله راغلي دي نظر واچوو نو دا به راته په ډاګه سي چې اسلام د حضرت عمر رضي الله عنه زړه ته په تدريجي توګه لاره پيدا کړې ده خو مخکي تر دې چې روايتونو لنډيز وړاندې کی لازمه وينم چې د حضرت عمر رضي الله عنه د احساساتو او عاطفې په هکله څه خبره وکړم.

حضرت عمر رضي الله عنه په شجاعت او غيرت مشهور ؤ د حساس او تندخوي څښتن ؤ دده د لاسه مسلمانانو ډېر کړاوونه ليدلي دي، خو دده په ذهن کي به تل کشمکش او مقابله وه ، له يوې خوا هغه ډېرو نو او نيکه ګانو عاداتو او تقاليدو ته زيات احترام درلودی ، له لهو او لعب او شرابو سره روږدي او عادت سو و خو له بلي خوا به دې ته هم په تعجب کي ؤ چې مسلمانان د خپلي عقيدې په لارکي دا دومره تکليفونه او رنځونه څه ډول ګالي او د مسلمانانو له دې غيرت او ثبات څخه ډېر متاثر سوی ؤ او کله کله به يې په زړه کي دا هم راګرځېدل چې کېدای سي د اسلام تر نورو پاک

---

[١٤٦] په دې باره باندې به يو بل روايت په اينده کي را نقل کړو.

[١٤٧] الترمذی ابواب المناقب مناقب ابی حفص عمر بن الخطاب رضي الله عنه ٢/ ٢٠٩.

اولوړوي ،لکه امام غزالي رحمه الله چې فرمايي :چې دده په ذهن کي[۱۴۸] دهمدغه متناقضو نظرياتو له امله وه چې کله به احساساتي سو نو ډير ژر به بيرته نرم اوآرام سو.

## «دحضرت عمر رضي الله عنه داسلام راوړلو په باره دمختلفو رواياتو خلاصه»

يوه شپه عمر رضي الله عنه له کور څخه دباندي راووتی حرم شريف ته راغی اوکعبې شريفي ته ننوتی که ګوري چې رسول الله صلی الله عليه وسلم پرلمانځه ولاړ دی او د (الحاقة) سورة تلاوت کوي عمر رضي الله عنه قرآن کريم ته غوږ ونيوی ډيرورته په تعجب کي سو،حضرت عمر رضي الله عنه وايي له ځان سره مي وويل :دامحمد رضي الله عنه شاعرنه دی لکه څرنګه چې قريش وايي ،وايي چې په همدې وخت کي رسول الله صلی الله عليه وسلم دا آيت تلاوت کی : إِنَّهُ لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ وَمَا هُوَ بِقَوْلِ شَاعِرٍ قَلِيلاً مَا تُؤْمِنُونَ. **ترجمه** : بيشکه دا (قرآن) خبره درسول مکرم عزتمند ده اونه ده داخبره دکوم شاعر،بيخي لږ ايمان راوړی تاسي (بلکه نه مؤمنان کيږي)وايي بيامي وويل:داکاهن دی نوهغه دا آيت تلاوت کی : وَلاَ بِقَوْلِ كَاهِنٍ قَلِيلاً مَا تَذَكَّرُونَ تَنزِيلٌ مِّن رَّبِّ الْعَالَمِينَ ۴۳.سورة الحاقة الخ **ترجمه** :اونه ده داخبره دکاهن (تروېتي لکه تاسو چې ګومان کوی )لږ پنداخلی تاسي (بلکي نه يې اخلی ) وايي نوپه دې وخت کي مې اسلام پرزړه اغيزه وکړه.[۱۴۹]

دادحضرت عمر رضي الله عنه پرزړه داسلام لومړنی اغيزه وه خوجاهلي عاداتو اودپخوسترګو تقليد پرهغه دومره زور ورؤ چې هغه يې نه پرېښووی حق ته تسليم سي هم هغه د جاهليت پرلار روان ؤ اوداسلام پرخلاف يې خپلوهلوځلوته ادامه ورکوله.

هغه له رسول الله صلی الله عليه وسلم سره زياته کينه اودښمني درلوده ،يوه ورځ يې توره واخيستله اوپه دې نيت له کوره ووتی چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم به په شهادت رسوي ،دلاري په اوږدو کي له نعيم بن عبدالله بن النحام العدوی سره مخامخ سو[۱۵۰]څوک وايي دبنی زهره

---

[۱۴۸] فقه السيرة ص۹۲/ ۹۳.

[۱۴۹] تاريخ عمربن خطاب رضي الله عنه له ابن جوزی ص۶ دی ته نزدی ابن اسحاق له عطاء اومجاهد څخه هم يو روايت رانقل کوي که څه هم په پای کی هغه ددې سره مختلف دی ابن هشام ۱/ ۳۴۶تر۳۴۸ پوري اودي ته نزدی هغه روايت هم دی چي ابن الجوزی دجابر څخه رانقل کړی دی خو هغه اخرنی برخه يه له دې سره مختلف دی تاريخ عمر بن الخطاب ص ۹/۱۰.

[۱۵۰] داروايت دابن اسحاق دی ابن هشام ۱/ ۳۳۴مطالعه کړئ.

دقبیلې له کوم سړي سره[151] اوپه بل روایت دبني مخزوم قبیلې له کوم سړي سره مخامخ سو[152]، هغه ورته وویل: اې عمره! چیرته راوان یې؟ده ورته وویل: ځم چې محمد ﷺ قتل کړم هغه وویل: بیابه له بني هاشم اوبنی زهره څخه څنګه ځان خلاصوی؟ نو عمر رضی الله عنه په جواب کي ورته وویل: داسي ښکاري لکه ته چې هم له خپل دین څخه اوښتی یې هغه ورته وویل: اې عمره! الله یوې عجیبي پیښي نه دي خبرنه کړم؟ هغه داچې ستاخور اوستا دخور خاوند دواړه ستاله دین څخه اوښتي دي، حضرت عمر رضی الله عنه بیرته راوګرځېدی خپلي خور اودهغې خاوند ته ورغی، د دوی په کورکي جناب بن الارت رضی الله عنه ؤ اویوه صفحه هم ورسره وه چې د (طه) سورة باندي لیکل سوی ؤ او دوی دواړو ته یې ورزدکاوه، جناب رضی الله عنه چې کله پوه سو چې حضرت عمر رضی الله عنه راغلی نو ژر پټ سو او د حضرت عمر رضی الله عنه خور فاطمي رضی الله عنها هغه صفحه هم پټه کړه، خو عمر د جناب رضی الله عنه ږغ اورېدلی ؤ چې دوی ته یې قرآن کریم تلاوت کوی، کله چې کورت ور ننه سو وی ویل دا څه ؤ چې ما واورېدل؟ دوی ورته وویل: موږ په خپل مینځ کي خبري کولی، ورڅخو نه ؤ ده ورته وویل لکه چې دخپل دین څخه اوښتي یاست؟ دخور خاوند یې ورته وویل اې عمره! که حق ستاله دین پرته په بل څه کي هم وي؟ عمر رضی الله عنه ورباندي ټول کړل اوپرمځکه یې راچپه کی، خوریې راغله اوخپل خاوند یې له حضرت عمر رضی الله عنه څخه راپورته کی، هغې ته یې داسي چپلاخه ورکړه چې پرمخ یې وینې را رواني سوی، ابن اسحاق وایي هغه یې ووهله اوسریې ورمات کړی، نوموړي رضی الله عنها په داسي حال کي چې غوصې اخیستی وه، ورته وویل اې عمره! په داسي حال کي چې حق ستاله دینه پرته په بل څه کي دی نوزه شاهدي وایم چې: أشهدأن لااله الاالله وأشهدان محمد رسول الله. **ترجمه**: شاهدي وایم چې له یوه الله جل جلاله پرته بل څوک دعبادت وړ نسته اوشاهدي وایم چې محمد ﷺ دالله جل جلاله رسول دی کله چې حضرت عمر رضی الله عنه ناامیده سو اوداچې دخور وینې یې ولیدی خفه او پر خپلو کړو پښېمانه سو او وی ویل داکتاب چې درسره ؤ رایې کړئ چې وی وایم، خوریې ورته وویل: ته نجس اوناپاک یې اوداکتاب ناپاکان نه سي

---

[151] دانس بن مالک روایت دی تاریخ عمر بن خطاب ص۱۰۱، مختصر سیرت الرسول ﷺ للشیخ النجدی ص ۱۵۳ وګورئ.

[152] ابن عباس روایت کړی دی وروستنی مصدر ۱۰۲ مخ وګورئ.

اخیستلای ،ولاړسه غسل وکړه هغه هم ولاړ سو غسل یې وی او بیایې هغه صفحه واخیستله او بسم الله الرحمن الرحیم یې تلاوت کړه ،وی ویل پاک او سپیځلی نومو نه بیایې (طه) تر: إِنَّنِي أَنَا اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا أَنَا فَاعْبُدْنِي وَأَقِمِ الصَّلَاةَ لِذِكْرِي ۱۴.

**ترجمه**:بیشکه زه چې هم دازه الله یم نسته لائق دعبادت هیڅوک مګر همدا زه یم ، نوعبادت کوه زما او سم دروه (اداکوه)لمونځ لپاره دذکر (یادولو) زما.پوري یې تلاوت کړ،بیایې وویل داڅومره ښکلې اولوړ کلام دی ماته محمد ﷺ وښایاست جناب رضي الله عنه چې کله دحضرت عمر رضي الله عنه خبري واوریدې راووتی او وی ویل زیري مي درباندي اې عمره هیله ده چې دپنجشنبې په شپه درسول الله ﷺ دعاستا لپاره وه،هغه دعاچې فرمایلی یې ؤ:اللهمّ اعز الاسلام بأحب الرجلین الیک بعمربن خطاب او بأبي جهل بن هشام .نبي کریم ﷺ اوس دصفا سره په دار الارقم کې تشریف لري.

نوحضرت عمر رضي الله عنه خپله توره له تیکي څخه راویسته اوله کوره ووتی ترڅو دار الارقم ته ورسیدی،دروازه یې ورودټکوله یوصحابي راولاړسو اود دروازې ترچولو یې وکتل چې د حضرت عمر رضي الله عنه په لاس کې توره ده اوولاړ دی ،ژرېې رسول الله ﷺ ته خبر ورکی ،حاضر خلک سره راټول سول حمزه رضي الله عنه ورته وویل :څه خبره ده؟ دوی ورته وویل عمر رضي الله عنه دی ده وویل : دروازه ورخلاصه کړی که چیري په خیر او ښه نیت راغلی ؤ مرسته به یې وکړو اوکه چیري دشرپه خاطرراغلی وي نوپه خپله توره به یې ووژنو،په دې وخت کې نبي کریم ﷺ دننه ؤ وحي ورته کېدله ،وروسته راووتی اوعمر رضي الله عنه یې په کوټه کې ولیدی نویې له کالو اود توري تربند ونیوی اوپه ډېر زور سره یې راکش کی او وی فرمایل :اې عمره !آیاتاته له خپلي لاري ترهغه نه ګرځې ترڅو چې الله تعالی دولید بن مغیره په شان سپکاوی اوعذاب درباندي نازل نه کړي ؟داعمربن خطاب دی اې خدایه !ته اسلام ته په عمرخطاب رضي الله عنه باندي عزت اوقوت ورکړی،همداوه چې حضرت عمر رضي الله عنه وویل: أشهدأن لااله الاالله وأشهدان محمد رسول الله .اوپه دې ترتیب سره هغه په اسلام مشرف سو،اوکله

چې حضرت عمر رضي الله عنه د شهادت کله وويله په دارالارقم کي په يوه آواز سره د تکبير ناري پورته سوی او ټولو خلګو واورېده.[۱۵۳]

حضرت عمر رضي الله عنه د بې ساري غيرت او شجاعت درلودونکی ؤ او دده اسلام راوړل د مشرکينو لپاره د ذلت او سپکاوي او د مسلمانانو لپاره د عزت او قوت پيغام ؤ، ابن اسحاق په خپل سند سره له حضرت عمر فاروق رضي الله عنه څخه روايت کوي چې وايي کله چې مي اسلام راوړی فکر مي وکی چې په مکه کي څوک له رسول الله ﷺ سره ډېره کينه او دښمني لري؟ومي ويل دا ابوجهل دی،نو کورته يې ورغلم ،دروازه مي ورو ټکوله راووتی او راته وی ويل په خير راغلی خيريت دی،څنګه راغلی يې ماورته وويل د دې لپاره راغلم چې په دې دي خبر کړم چې ما پر الله جل جلاله او د الله جل جلاله پر رسول ﷺ ايمان راوړی دی او ټول هغه څه مي ومنل چې رسول الله ﷺ راوړي دي ،وايي نو ابوجهل دروازه ورپسې بنده کړه او وی ويل خدای دي تا او هغه څه چې راوړي دي خراب او برباد کړي.[۱۵۴]

ابن جوزي وايي چې حضرت عمر رضي الله عنه ويلي دي کله چې به چا اسلام راوړی نو خلګو به هغه نه پرېښووی جنګونه به يې ورسره کول دوی به هغه او هغه به دوی وهل خو کله چې چط زه په اسلام مشرف سوم نو خپل ماما (عامي بن هاشم)ته ورغلم او له پيښي مي خبر کی هغه په خونه ننوتی بيا د قريشو يوه بل مشر (لکه چې ابوجهل وي) ته ورغلم ورته و مي ويل چې زه مسلمان سوم هغه په خپل کور راڅخه ننوتی.[۱۵۵]

ابن هشام او همدا راز په لنډه توګه ابن جوزي دا روايت رانقل کړيدی کله چې حضرت عمر رضي الله عنه اسلام راوړی نو جميل بن معمر الجمعي ته ورغی،نو موړی به د قريشو خبرونه يو بل ته وړل راوړل ،معمر ته يې وويل چې زه په اسلام مشرف سوی يم ،جميل بن معمر په لوړ آواز چيغه کړه چې اې خلګو عمر رضي الله عنه له دين څخه اوښتی دی ،حضرت عمر رضي الله عنه ورپسې وويل دروا غ وايي بلکه ما اسلام راوړی دی ،يو ځل مشرکين ورباندي راټول سول او وهل ټکول شروع سول ترڅو چې لمر ښه راپورت

---

[۱۵۳] تاريخ عمر بن خطاب رضي الله عنه ص ۷/ ۱۰/ ۱۱/ مختصر سيرت الرسول ﷺ للنجدی ص ۱۰۲.

[۱۵۴] ابن هشام ۱/ ۳۵۰/ ۲۴۹.

[۱۵۵] تاريخ عمر بن خطاب رضي الله عنه ابن الجوزی ص ۸.

سو ،حضرت عمر رضي الله عنه ډیر سترګې سو نو کښېنستې دوی یې پر سر ورکښېنستل ،ده ورته وویل کوی چې څه کولای سی ،قسم په خدای که موږ درې سوه کسه وای نو بیابه مو یادا وطن درپرېښی وای او یابه تاسو راپرې ایښی وای.[156]

تردې وروسته مشرکینو د حضرت عمر رضي الله عنه پر کور حمله وکړه او غوښتل یې هغه په شهادت ورسو،بخاري شریفي له حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روایت کوي وایي په داسي حال کي چې حضرت عمر رضي الله عنه په کور کي ؤ او ویري اخیستی ؤ چې عاص بن وائل السهمي ابوعمرو ورته راغلی ،ښکلی لیک دار چپنه او وریښمن قمیص یې اغوستی ؤ نو موږ ي له سهم قبیلې څخه ؤ په جاهلیت کي زموږ او د دوی ترمینځ تړون هم ؤ ،ورته وی ویل څه پیښه ده ؟ده ورته وویل پرتا هیڅوک هم لاس نه سي پورته کولای،کله چې یې داخبره وکړه موږ ډاډه سو.بیا عاص بیرته ووتی او که ګوری چې خوږ خلکو په سر اخیستی ؤ ورته وی ویل چیري ځي؟دوی ورته وویل :دادخطاب زوی عمر رضي الله عنه له خپل دین څخه اوښتی دی په هغه پسې ورځ، ده ورته وویل هغه ته څوک څه نه سي ویلای،نویو ځل خلک راپه شا سول او دابن اسحاق په روایت کي راځي چې داسي سول لکه دمه چې ورڅخه ختلی وي.

داخو دمشرکینو دریځ او حال ؤ ،دمسلمانانو په هکله مجاهد له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت کړی دی وایي له حضرت عمر رضي الله عنه څخه مي وپوښتل تاته ولي الفاروق ویل کیږي ؟ده وویل حضرت حمزه رضي الله عنه ترمادرې ورځي وړاندي ایمان راوړی ؤ بیا یې دخپل اسلام راوړلو کیسه ورته وکړه او دکیسې په پای کي یې وویل : کله مي چې اسلام ومنی نو مي ویل اې دالله رسول الله صلی الله علیه وسلم !آیا موږ پرحقه نه یو که مړه سو او یاژوندي یو ؟هغه راته وفرمایل هو ! موږ پرحق یو ،قسم په هغه ذات چې زما ځان دهغه په واک کي دی چې تاسي پرحق یاست که مړه سی او که ژوندي یاست ،عمر رضي الله عنه وایي نوما ورته وویل چې دا پټه نو څه معنی لري؟قسم په هغه ذات چې ته یې په حق مبعوث کړی یې موږ به خامخا باندي وځو،په دې ترتیب سره موږ په دوو صفونو (لیکو) کي له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره یو ځای دباندي راووتلو په یوه صف کي

---

[156] تاریخ عمر بن خطاب رضي الله عنه ابن الجوزی ص ۱۸ ابن هشام ۱/۳۴۸ - ۳۴۹.

حمزه رضي الله عنه ؤ او په بل صف کي زه (عمر رضي الله عنه) زموږ له ښښنو سره لکه داوړو دګرد په
څیر ګرد هم پورته کېدی، مسجدحرام ته ننوتلو، عمر رضي الله عنه وايي کله چې قریشو زه
اوحمزه ولیدو نوپه داسي غم غمجن سول چې هیڅکله يې هم دومره لوی غم نه
ؤلیدلی، په همدغه ورځ ماته رسول الله صلی الله علیه وسلم د (الفاروق) لقب راکړی.[157]

ابن مسعود رضي الله عنه وايي موږ ترهغوله کعبې شریفي سره لمونځ نه سوای کولی
ترڅوچې حضرت عمر رضي الله عنه اسلام راوړی، صیب بن سنان رومي رضي الله عنه وايي کله چې
عمر رضي الله عنه اسلام راوړی نواسلام ښکاره سو دعوت هم په ښکاره ډول کېدی، موږ
دکعبې ترڅنګ حلقه ووهله طواف مو وکی اوهغه چاچې ظلمونه راباندي کړي ؤ له
هغوی څخه مو څه ناڅه انتقام اوغچ واخیستی اوحساب مو ورسره وکی[158]، عبدالله
ابن مسعود رضي الله عنه وايي له کومي ورځي چې عمر رضي الله عنه په اسلام مشرف سوی دی موږ
عزتمند اوسرلوړي یو.[159]

## «دحمزه رضي الله عنه اودعمر رضي الله عنه په ایمان راوړلو دقریشو ناکامي»

کله چې دمکې هغه دوه قهرمانان حمزه بن عبدالمطلب رضي الله عنه اوعمر بن خطاب رضي الله عنه
په اسلام مشرف سول نودقریشو په زړونو کي ماته ګډه سوه، دمکې له آسمان څخه
دظلم هغه توري وریځي مخ پرشاکېدو سوی، مشران له خپلي مستی څخه لرېه
هوښ کي سول، پوه سول چې نور ځورول او رنځول څه ګټه نه لري، نويې له رسول الله
صلی الله علیه وسلم سره دسازش اوسولي لاره ونیوله او ددې په خاطر چې دالله تعالی رسول يې له
خپل دعوت څخه منع کړی وی هرډول پیشکشونه او وړاندزونه يې ورته وړاندي
کړل خو دوی له دې څخه بې خبر ؤ چې دا ټوله دنیا دهغه د دعوت په مقابل کي
غوماشي دیوه وزر په اندازه هم ارزښت نه لري نوځکه د دوی داهیلي هم له خاورو
سره خاوري سوی.

ابن اسحاق وایي یزید بن زیاد له محمد بن کعب قرطبي څخه ماته روایت کوي وايي
ماته ویل سوي دي چې دقریشو مشر عتبه بن ربیعه یوه ورځ دقریشو په دیره کي

---

[157] تاریخ عمر بن خطاب رضي الله عنه ابن الجوزی ص ۶/ ۷.
[158] تاریخ عمر بن خطاب رضي الله عنه ابن الجوزی ص ۱۳.
[159] صحیح البخاری باب اسلام عمر بن خطاب رضي الله عنه ۱/ ۵۴۵.

ناست ؤ او رسول الله ﷺ هلته په مسجد کي يوازي تشريف درلودی ،عتبه ویل اي قريشو !اخوښه مونه ده چې محمد ﷺ ته ورسم خبري ورسره وکړم څه وړاندیزونه ورته وکړم کېدای سي څه ومني ،او موږ به يې بياهغه شرط پوره کړو اوهغه به هم بياله موږ څخه لاس واخلي،داداسي وخت ؤ چې حمزه ؓ هم ايمان راوړی ؤ اودوی لېدل چې درسول الله ﷺ داصحابو شميره مخ په زياتيدو وه ،قريشوورته وويل صحيح ده ورسه اي ابوالوليده !اوخبري ورسره وکړه ،عتبه ولاړی اود رسول الله ﷺ په حضور کښېنستی او ورته وی ویل وراره !ته خو زموږ په مینځ کي دلوړي اوقدامتي کورنۍ اومحترم اولوړنسب خاوند يې اوتاخپل قوم ته يوه لويه مسئله راوړی او په دې سره دي دوی بې اتفاقه کړل ، د دوی دين اومعبودان دي عيبجن کړل ،دپلرونو دين او عادات دي پرېښوول،نواوس وراره زه څو پيشنهادونه درته کوم فکرپه کي وکړه کېدای سي کوم يوومنې .

راوي وايي رسول الله ﷺ ورته وويل وايه اي ابوالوليده څه وايې ؟ هغه وويل اي وراره ! که چيري غواړی په دې دعوت چې تاشروع کړی دی مال اوپيسې لاس ته راوړی نوموږ به دومره مال ستاليپاره راټول کړو چې ترټولو زيات مالدار به سي اوکه له دې لاري مشري غواړی نوموږ به دې خپل مشروټاکواوهيڅ فيصه به ستاله مشورې پرته نه کوو اوکه باچهي غواړي نو باچابه دي کړو اوکه چيري داڅه چې وايي دکوم مرض له کبله وي اوڅان نه سي ور څخه خلاصولی نوموږ به په خپلوپيسو علاج اوتداوي دربانديي وکړو ترڅوجوړ سی ځکه کله کله داسي هم پيښيږي چې حق پرانسان غلبه پيدا کوي اوبيادهغه دعلاج ضرورت پيداکيږي ، عتبه خبري پای ته ورسولی ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:ابوالوليده!خبري دي خلاصي سوی ؟هغه ورته وويل هو !ده ﷺ ورته وفرمايل : اوس ماته غوږ سه هغه وويل وايه غوږ می دی ،نورسول الله ﷺ خبري داسي پيل کړی:

بِسۡمِ اللهِ الرَّحۡمَٰنِ الرَّحِيمِ حم تَنزِيلٌ مِّنَ الرَّحۡمَٰنِ الرَّحِيمِ كِتَٰبٌ فُصِّلَتۡ ءَايَٰتُهُۥ قُرۡءَانًا عَرَبِيًّا لِّقَوۡمٍ يَعۡلَمُونَ بَشِيرًا وَنَذِيرًا فَأَعۡرَضَ أَكۡثَرُهُمۡ فَهُمۡ لَا يَسۡمَعُونَ وَقَالُواْ قُلُوبُنَا فِيٓ أَكِنَّةٍ مِّمَّا تَدۡعُونَآ إِلَيۡهِ

سورة فصلت (حم السجده)

**ترجمه**: دغه (قرآن) رالیږل سوی دی (له هغه الله جل جلاله) څخه چې خورامهربان، ډیر رحم والا دی داسي کتاب دی چې په تفصیل سره بیان سوي دي آیتونه دده، په دي حال چې ویل سوي دي په عربي ژبه لپاره دهغه قوم چې پوهیږي ،زیری ورکوونکی دی (مؤمنانوته په جنت)او بیرونکی دی داکتاب (کفاروته په دوږخ)نومخ وګرځوی زیاترو ددغو (کفارو) بس دوی نه اوري (حق په اوریدو دقبول سره )او وایي (دغه کفارمحمد ﷺ ته) زړونه مو په پردوکي دي له (فهم) دهغه شي چې بولی ته موږ هغه ته (چې توحید یاقرآن دی)

رسول الله ﷺ قرآن کریم ورته تلاوت کوي اوعتبه چوپ ورته ناست ؤ،غوږ یې ورته نیولی ؤ لاسونه یې شاته ایښي اوتکیه یې ورباندي کړی وه ،ترڅو رسول الله ﷺ سجدي آیت تلاوت کی اوسجده یې وکړه اوبیایې وویل :ابوالولیده ! وادي وریدل اوس په خپله فکر وکړه ،ابو الولیدولاړ سواوخپلوملګرو ته روان سو،هلته هغوی سره وویل چې قسم په خدای دابوالولید بڼه بدله سوی ده ،اولکه چې هغه راغی او کښیناستی دوی ورته وویل څه کیسه ده ؟ده وویل خبره خوداده چې اوس ماداسي خبري واوریدی چې قسم په خدای که مي په ټول عمر اوریدلي وی ،قسم په خدای هغه شعرنه ؤ ، سحر نه ؤ ،جادوګري اومداري نه وه ،اې قریشو زماخبره ومنی اومسؤلیت یې هم زماپرغاړه ،داسړی محمد ﷺ پریږدی قسم په خدای چې داخبري مي ورڅخه واوریدی پردې دلالت کوي چې هغه دلوی خیرخاوند دی ،تاسي هغه پریږدی که چیري عربو هغه له مینځه یو وړی نوتاسي به ورڅخه بې غمه سی اوکه چیري دي پرعربو بریالي سو نوبیادهغه باچایي ستاسي باچایي ده ،دهغه عزت ستاسي عزت دی ،دوی ورته وویل لکه چې جادو یې درباندي وکړه اې ابوالولیده ! ده ورته وویل : دهغه په هکله زمانظر هم دادی ،نورستاسي خوښه ده هرڅه چې مو زړه غواړي هغه وکړی .[١٦٠] په بل روایت کي راغي چې عتبه هم داسي غوږ ورته نیولی ؤ ترڅو رسول اکرم ﷺ داآیت تلاوت کی : فَإِنْ أَعْرَضُوا فَقُلْ أَنذَرْتُكُمْ صَاعِقَةً مِّثْلَ صَاعِقَةِ عَادٍ وَثَمُودَ ١٣.

سورة فصلت

---

[١٦٠] ابن هشام ١/ ٢٩٣- ٢٩٤.

**ترجمه**:نو که چیري مخ وګرځوی (دغو کفارو له حقه) نو ووایه (اې محمد ﷺ دوی ته) چې بیروم زه تاسي له سخت عذابه په مثل دسخت عذاب دعادیانو (لکه دصرصر باد) اوثمودیانو (لکه چیغه د جبرئیل علیه السلام)عتبه یووار وارخطا سو ولاړ سو خپل لاس یې درسول الله ﷺ پرمبارکه خوله ونیوی او ورته وویل دخدای په خاطر رحم راباندي وکړه ،داځکه چې وبیریدی هسي نه الهي عذاب یې راګیر کړي ،بیا خپلو ملګروته ورغلی اوهغوی ته یې خپل نظر بیان کړی.[۱۶۱]

## «له بني هاشم اوبني عبدالمطلب سره دابو طالب غونډه»

که څه هم وضعي اوحالاتو بدلون موندلی ؤ خوابوطالب بیرېدی چې هسي نه مشرکین دده وراره حضرت محمد رضي الله عنه ته څه تاوان ورسوی ،دهغه په ذهن کي هغه پخوانی پیښي ترسمیدلی اودایې ښه په یاد ؤ چې قریشو یو وارد جنګ اخطار ورکړی ؤ دایې هم له یاده اېستلي نه ؤ چې قریشو یو وار عمارة بن الولید ورته راوستلی ؤچې داواخله خپل وراره موږ ته راکړه چې مړیې کړو،دابه یې بل په سترګوکي ګرځېدل چې ابوجهل څنګه دده خوږ وراره ﷺ په ډبرو وویشتی او مبارکي ویني یې توی سوی اوهغه چې عقبه ابن ابي معیط دده زړه ته ډیر نژدې اودالله تعالی مختاررسول ﷺ ترڅادرنیولی ؤ اونژدې ؤچې زندي یې کړي عمربن خطاب رضي الله عنه توره رااېستلی وه چې هغه ﷺ په شهادت ورسوي ،داټولي پیښي به د ابوطالب ددماغ پرپرده تلی او راتلی ،هغه یې ډیر ځوراوه اوپه دې فکر کي به ؤ چې داپیښي هم هسي عادي پیښي نه دي ،مشرکینو غواړه دده وراره ﷺ په شهادت ورسوي ،که چیري کوم مشرک په ناڅاپه توګه په محمد ﷺ حمله وکړي نوبیابه حمزه رضي الله عنه اوعمر رضي الله عنه څه وکړي ابو طالب پردې ښه متیقن ؤ اوواقعیت هم همداسي ؤ ،مشرکینو په دې اتفاق کړی ؤ چې رسول الله ﷺ به په ښکاره توګه وژني ،د دوی دې ګډ تصمیم ته قرآن کریم داسي اشاره کوي : ﴿أَمْ أَبْرَمُوا أَمْرًا فَإِنَّا مُبْرِمُونَ﴾ ۷۹.سورة الزخرف

**ترجمه**: بلکه محکم کړی دي (کفارو پرخلاف دانبیاؤ)یوکار نوبیشکه موږ هم محکم کوونکي یو (دتدبیرخپل)نوپه داسي حالت کي ابوطالب باید څه وکړي؟کله

---

[۱۶۱] تفسیر ابن کثیر/۶ ۱۵۹ـ ۱۶۰ـ ۱۶۱.

چې ده دخپل وراره پر خلاف دقریشو دا دریز اوپلان ولیدی نویې خپل دبنی هاشم
او بني عبد المطلب خلک سره راټول کړل اوله دوی څخه یې دا وغوښتل چې دده
وراره په دفاع اوملاتړکي له ده سره ټول ودریږی دوی ټول ورسره ودرېدل مسلمانۇ
که کافر،ټولو دقومي تعصب پراساس خپل ملاتړ ورته څرګند کړیی،خویوازي
ابولهب له دوی سره داخبره ونه منله او ولاړی دقریشو په خواکي ودرېدی.[162]

## «دقریشو زیاته حیرانتیا»

په څلورو هفتویاتردې هم په کمه موده کي مشرکین له څلورو لویو پیښوسره مخ
سول حضرت حمزه (رضي الله عنه) اسلام راوړی ،ورپسې حضرت عمر (رضي الله عنه) په اسلام مشرف
سو ،بیارسول الله ﷺ دمشرکینو سازشونه اوپیشنهادونه ردکړل ،په دې پسې بن
المطلب اوبني هاشم ټول له یوسره مسلمانۇ که کافرپردې متفق سول چې دحضرت
محمد ﷺ دفاع اوملاتړبه کوي ،په دې پیښو پسې قریش هک پک اوحیران
ودرېدل،اود دوی حیرانتیابې ځایه ځکه نه وه چې په دې ښه پوه سوي ۇ که چیري
محمد ﷺ په قتل ورسوي نو په مکه کي به دوینولښتیان وبهیږي اویاکیدای سي د
دوی دکاملي تباهۍ اوبربادۍ سبب وګرځي نوله همدې امله وه چې دقتل منصوبه
یې پرېښووه اود یوه بل داسي ظلم پرېکړه یې وکړه ترمخکي یادو سوو ظلمونو
زیات اوسخت ظلم ۇ.

## «دظلم اودښمنۍ پرېکړه»

مشرکین دمحصب په وادي اودبني کنانه په خیف کي سره راټول سول اودبني هاشم
اوبني المطلب پرخلاف یې یو ظالمانه تړون وکی اوداسي پرېکړه یې وکړه چې نوربه
څوک له دې دوو کورنیوسره نه دوستي اونه خپلوی کوي (نکاح کول ورسره منع ده)
نه به بیع (اخیستل خرڅول) ورسره کیږي ،نه به ورسره ولاړه پاسته کیږي ،نه به څوک
د.دوی کورونوته ورځي دا ډول خبرې کول هم ورسره منع دي ،لنډا داچې له دوی
سره ترهغو دا عمومي اوبشپړه پرېکړه دوام ولري ترڅویې محمد ﷺ مشرکینوته
سپارلی نه وي ،دوی ددې تړون لپاره یوه صحیفه (لیک یاخط) ولیکی اوپه دې
صحیفه کي یې پردې خبره تړون اواتفاق کړی ۇ(دبني هاشم دسولي وړاندیز به

---

[162] ابن هشام ۱/ ۲۶۹- مختصرسیرت الرسول ﷺ للشیخ النجدیص ۱۰۶.

هیڅکله هم نه مني او نه به ورسره کوم ډول مرسته او همدردي کوي ترڅو محمد ﷺ دقتل لپاره ورتسلیم کړي) ابن قیم وايي :ویل کیږي دا خط منصوربن عکرمه بن عامر بن هاشم لیکلی ؤ اوداهم ویل سویدي چې ددې صحیفې لیکونکی نصربن حارث ؤ ،خو صحیح خبره او روایت دادی چې داصحیفه بغیض بن عامربن هاشم لیکلی وه چې رسول الله ﷺ ښرا ورته وکړه اولاس یې شل سو.[۱۶۳]

تړون وسو اوداصحیفه دکعبې شریفي په مینځ کي راوځړول سوه اوددې په نتیجه کي له ابولهب پرته دنبي هاشم اوبني المطلب ټول غړي که مسلمانان ؤ او که کافران ټول یو ځای دابوطالب په شعب دده خوږ کي محاصره سول دادنبوت داووم کال دمحرم دمیاشتي دلومړنۍ شپې واقعه ده.

## «پر مظلومانو دري کلن بندیز»

محاصره اوکلابندي سخته سوه ،پرمحاصرینو مظلومانو باندی غله ،دخوراک څښاک ټول شیان بند سول ځکه مکې ته به یې چې څه خوارکي مواد اویانور داخېستلو او پیرودلو شیان راتلل نوسمدستي به مشرکینو رانیول ،په دې ترتیب سره دمحاصره سویو کسانو وضعه ډېره خرابه سوه ،دخوراک لپاره یې څه نه درلودل له ډېري مجبوري څخه به یې پاڼي اوپوستکي خوړل ،له لوږې څخه به دکوچنیانو اوښځو دژړا آوازونه ترشعب ابوطالب دباندي هم اورېدل کېدل ،د خپلو اړتیاؤ دپوره کولو اوضروري شیانو داخیستلو لپاره یوازي په حرمت لرونکو میاشتو (اشهرحرام) کي له شعب څخه راوتلای سوای ،او په دې موده کي به یې له مکې څخه دباندي دراغلیو کاروانونو څخه مواد اخیستل خو مشرکینو په دې کي هم دام ورباندي وواهه اود موادو قیمت به یې دومره زیاتول چې په هغه قیمت به یې دوی درانیولو توان نه درلودی حکیم بن حزام به کله کله په پټه سره خپلي عمه خدیجې رضي الله عنها ته په غالب ګومان سره غنم ور وړل، یوځل ابوجهل په مخه ورغلی او قصد یې وکی چې حکیم منع کړي خوابوبختري مداخله وکړه او حکیم یې پرېښووی چې غنم خپلي عمه ته ورسوي..

---

[۱۶۳] زادالمعاد ۲/ ۴۶.

ابوطالب به پر رسول الله ﷺ ډېر بيريدی او دده امنيت ته يې ډيره پاملرنه درلوده ، کله به چې خلک بيده کېدل نو رسول الله ﷺ ته به يې وويل : چې په خپل ځای دي بيده سه ، دا ددې په خاطر ؤ که چيري څوک د رسول الله ﷺ د قتل نيت لري وګوري چې هغه چيري بيده سو ، خو کله به چې خلک بيده سول نو بيا به يې خپل کوم زوی يا ورور يا داکا زوی ته وويل چې ولاړ سه او د رسول الله ﷺ پر ځای بيده سه او رسول الله ﷺ ته به يې وويل چې راسه او د هغه په ځای کی بيده سه ، د حج په دوران کي به رسول الله ﷺ او نور مسلمانان له شعب څخه د باندي وتل خلګو ته به ورتلل او دوی به يې اسلام ته رابلل چې ابولهب به څه کول هغه وړاندي تير سو .

## «د عهداو شوي تړون ماتېدل»

پوره دري کاله تير سول خو حالات هم داسي ؤ تر څو د بعثت په لسم کال د محرم په مياشت کي[164] صحيفه نقض او تړون مات سو ، ددې تړون د ماتيدو سبب هم داؤ چې ځيني قريش له پيل څخه په دې تړون خوشحاله نه ؤ او همدې ناخوښو کسانو د تړون د ماتولو لپاره هلي ځلي کولی ترڅو مات سو ، د تړون د ماتولو اصلي محرک د بني عامر بن لوی کورنی غړی هشام بن عمرو ؤ نو موړي به د شپې له خوا بني هاشم ته خواړه ليږل ، يو ځل هشام دابوطالب خوريی زهير بن ابي اميه المخزومي ته ورغلی د زهير مور عاتکه د عبد المطلب لور وه ، او ورته وی ويل :اې زهيره په داسي حال کي ته خوری او څښی نو څرنګه به دې راضي يې چې د ماماخيلو دی دا حال وي زهير وويل : افسوس صد افسوس زه په يوه سر څه کولی سم؟ قسم په خدای که يو بل سړی راسره ملګری وي نو ددې تړون د ماتولو لپاره به راپورته سوی وای ، هشام ورته وويل څه يو بل سړی هم درسره دی ، ده ورته وويل : هغه به څوک وي ؟هشام ورته وويل هغه زه يم ، زهير وويل او س دريم نفر راګوره ، په دې پسې هشام مطعم بن عدي ته ورغلی هغه ته يې د بني عبد مناف له اولادې (بني هاشم ، بن المطلب) سره د دوستي او نژدې نسبي اړيکي يادونه وکړه ، ملامتيا اوپړه يې ورباندي واچوله چې

---

[164] ددي خبري دليل دادی چي ابوطالب دصحيفی ترنقض شپږمياشتی وروسته وفات شو اوصحيح روايت دادی چی ابوطالب درجب په مياشت کي وفات سوی دی او هغه څوک چی وايی ابوطالب درمضان په مياست کی وفات کړی دی د دوی په نظر ابوطالب دصحيفی ترنقض اته مياشتی اوڅوورځي وروسته وفات سوی دی.

ته ولي په دې ظالمانه تړون او عهد کې د قریشو خواته ولاړ یې ،نو مطعم ورته وویل افسوس نو زه څه وکړم؟زه یوتن یم هشام ورته وویل دویم کس هم درسره دی،ده ورته وویل هغه څوک دی ؟ده ورته وویل هغه زه یم ،مطعم ورته وویل اوس دریم کس راګوره،هشام ورته وویل دریم سړي مي هم پیداکړیدی ،مطعم ورته وویل: څوک دی ؟ده ورته وویل :هغه زهیر بن ابي امیه دی ،مطعم ورته وویل اوس څلورم کس راګوره ، بیا هشام ابی البختري بن هشام ته ورغلی ،هغه یې داسي خبري وکړې لکه مطعم ته چې یې کړې وې ،نو ابو البختریورته وویل آیا داسي څوک به وي چې په دې هکله مرستي ته حاضر وي ؟ هشام بن عمرو ورته وویل هو!سته هغه وویل څوک دی؟ده ورته وویل زهیر بن بي امه ،مطعم بن عدي 'وزه هم درسره یم،بیا هغه ورته وویل اوس پنځم کس راګوره،بیا زمعه بن اسود بن المطلب بن اسد ته ورغلی ،په دې هکله یې خبري وُرسره وکړې اوله بني عبد مناف سره دده د قرابت او ددوی دحقوقو یادونه یې ورته وکړه ،نو زمعه ورته وویل :کوم څوک داسي سته چې ستا ددې نظر اوپیشنهاد تائید اوملاتړ وکړي ،هشام بن عمرو ورته وویل هو!په دې هکله فلانی اوفلانی او......... ټول نوموړي یې ورته یاد کړل کلک ولاړ دي، بالاخره ټول له حجون سره راټول سول ،اوددې صحیفې دنقض اوتړون دماتولو عزم اوتړون یې وکی ،زهیر وویل دکار پیل به زما څخه وي یعني لومړی به زه په دې هکله خبري کوم.

سهار سو خلک ټول خپل خپل دمجلس ځایونو ته ورغلل ،زهیر هم په داسي حال کي چې ښائسته جامې یې اغوستي وې راغلی ،پربیت الله شریفي اووه ځله طواف وکی ،بیایې خلګو ته مخ کی او ورته وی ویل : اې دمکې خلګو !موږ دې خورو اوڅښو خو بني هاشم دي له لوږي مري،نه دي څه ورڅخه اخیستل کیږي اونه دي څه ورباندي پلورل کیږي ؟قسم په خدای زه به ترهغو نه کښینم ترڅو دا ظالمانه تړون مات سوی نه وي او ترڅو دا صحیفه نقض او شیري سوی نه وي ،ابو جهل چې د مسجد حرام په کونج کې ناست وُ وویل :دروغ دي وویل :قسم په خدای دا صحیفه به شیري نه سي ،په دې وخت کې زمعه بن اسود دوویل : قسم په خدای چې ته ډیر دروغ وایې ددې صحیفې دلیکلو په وخت کې موږ هم راضي نه وُ،ابو البختري هم

ړغ وکی او وی ویل : زمعه رښتیا وایي په دې صحیفه کي چې څه لیکل سوي دي موږ په خوښ نه یو او نه یې ملاتړ کوو ،مطعم بن عدي هم وویل تاسي رښتیا وویل اوڅوک چې بل څه وایي هغه دروا غجن دی ،موږ له دې صحیفې او هغه څه چې په کي لیکل سوي دي خپل برائت اعلانوو ،بیا هم هشام بن عمرو هم دې ته ورته خبري وکړی ،نو ابو جهل وویل :ددې خبري تړون دشپې سوی دی او په دې هکله مشوره چیري بل ځای سوی ده ،په دې وخت کي ابو طالب هم دمسجد حرام په کومه کونجه کي ناست ؤ ،دهغه د راتګ سبب هم داؤچې الله ﷻ خپل رسول ﷺ ته دصحیفې په هکله خبر ورکړی ؤ چې الله تعالی وربانډي وینه (بویه) مقرره کړی وه چې دالله ﷻ نامه پرته ټولي دظلم زیاتی او دښمنۍ کلمې یې خوړلی دي،رسول الله ﷺ دا خبره خپل اکا ته وکړه ، نو ابو طالب هم قریشو ته راغلی او ورته وی ویل چې وراره مي داسي وایي که چیري دروا غ یې ویلي ؤ نو بیا تاسي پوهیږی او هغه او که چیري په دې ادعا کي رېښتونی ؤ نو بیا له دې ظلم څخه لاس واخلی او زموږ محاصره ختمه کړی،دوی ورته وویل دا دانصاف خبره ده او کله چې دابوجهل او ددې نورو ترمنځ داخبري تبادله سوی نو مطعم ولاړ سو چې هغه صحیفه څیري کړي ،چې ګوري دصحیفې ټوله ټکي په وینو لړلی او یوازي (باسمک اللهم)او هرچیري چې دالله ﷻ نوم وي هغه پاته ؤ نور هیڅ هم پاته سوي نه ؤ ،نو صحیفه نقض سوه،تړون مات سو،اورسول الله ﷺ سره له ټولو محاصره سوو کسانو له شعب څخه راووتل،مشرکینو درسول الله ﷺ دنبوت یوه عظیمه نښانه او معجزه دسرپه سترګو ولیده ،خوله دې سره هم د دوی رویه داسي وه لکه چې دا آیت مبارکه ورته اشاره کوی : ﴿وَإِن يَرَوْا آيَةً يُعْرِضُوا وَيَقُولُوا سِحْرٌ مُّسْتَمِرٌّ﴾ ٢. سورة القمر

ژباړه :او که ووني دغه (کفار دقریشو) کوم دلیل (دقدرت) نو پرځنګ به سي دوی (مخ به واړوي) ترې او وایي به دوی (دغه) سحر کوونکي دی کوی ،چې له پخوا راهیسي رائجي هو کي! مشرکین له دې نښاني او معجزې هم مخ واړوی ،اعرض یې وکړی ،پرخپل کفر او ګمراهي لاپسې وړاندي ولاړل.[١٦٥]

---

[١٦٥] دهمدي عمومي پریکړي تفصیلات مو له دي مراجعو څخه ترلاسه کړي دي؛ صحیح البخاری،باب نزول النبی ﷺ بمكة ١/ ٢١٦- اوباب تقاسم المشرکین علی النبی ﷺ ١/ ٥٤٨- زادالمعاد ٢/ ٤٦- ابن هشام ١/ ٣٥٠- ٣٥١- ٣٧٥- ٣٧٦- ٧٧-

## «دابو طالب دمرض سختې دقريشو دواهمې سبب»

رسول الله ﷺ له شعب ابي طالب څخه په راوتو سره ددعوت اوتبليغ كارته دپخوا په څير ادامه وركوله ،قريشو كه څه هم په ظاهردامحاصره اوبايكاټ ختم كړى ؤ خوپه حقيقت كي يې پرمسلمانانو باندي خپل ظلمونه اوفشارونه هم داسي جاري ساتل اوخلك يې دالله ﷻ له دين څخه منع كول ،ابوطالب هم دپخوا په څير دخپل وراره ترشاتېنګ ولاړ ؤ ،خوعمريې تراتياكلونو اوښتى ؤ ،اوددې څلوركلونو سختو اوردوونكو پيښو خصوصا درې كلنې محاصرې هغه ډير كمزورى كړى ، د محاصرې له خلاصون څخه لاڅومياشتي نه دي تيري سوي چې ابوطالب مريض سو ،ناروغي يې مخ پرزياتيدو سوه ،دغه وخت مشركينو وويل كه ابوطالب مړسي اوبيامونږ دده له وراره سره ظلم اوزياتى كوو نودابه زمونږ لپاره لويه بدنامي وي ، د همدې بدنامى له بيري څخه دوى يووار بيا دخبرو اترو لاره ونيوله اونيت يې وكى چې دابوطالب په وړاندي دمحمد ﷺ سره دخبرو له لاري معامله وكړي اودا ځل دداسي شيانو په وركړه هم راضي سول چې مخكي يې هغه نه وركول نوهمدا ؤ چې ابوطالب ته يې خپله ورستى جرګه ورولېږله ،ابن اسحاق اونور وايي كله چې ابوطالب ناروغ سواوقريش پوه سول چې حالت يې مخ پرخرابيدو دى نوپه خپل مينځ كي يې سره وويل :عمراوحمزه په اسلام مشرف سول ،دمحمد ﷺ دين د قريشو په ټولو كورنيو كي خپورسوى دى،راځي چې ابوطالب ته ورسو،ترڅو هغه خپل وراره دكومي خبري پابند كړي اوزمونږ څخه هم په دې اړه عهداو وعده واخلي ،قسم په خداى بيريږو چې خلك به بيا زمونږ له ارادې او كنټرول څخه ووزي ،په بل روايت كي داسي راځي چې بيريږو چې كه دابوډا مړسي اوبياله محمد ﷺ سره كوم ظلم او زياتى وسي نوبيابه عرب مونږ ته داطعنه راكوي چې وګورى دوى محمد ﷺ پرې ايښي ؤ اود هغه په مقابل كي يې دظلم اوزياتي جرأت نه درلودى خوكله چې يې اكاوفات سو نوراګيرې كړى اوظلمونه يې ورباندي شروع كړل ،دقريشو داوفد ابوطالب ته هم ورغى،د وفد (هيئت)غړى دقريشو اشراف اومخور خلك

---

رحمة للعلمين١/ ٦٩/ ٧٠/ مختصر سيرت الرسول ﷺ للشيخ عبدالله النجدى ص ٦٧تا/ ٧٣ دموضوع په باره نو موړى مصادر څه كم شاته اختلاف سره لري خو مونږ دقرائنو دځيرلو وروسته زمونږ په نظر ترټولو قوي نظريه اخستى دى.

ؤ، لکه عتبه بن ربیعه، شیبه بن ربیعه، ابو جهل بن هشام، امیه بن خلف، ابو سفیان بن حرب او د قریشو نور اشراف چې د ټولو شمیره (٢٥) کسانو ته رسیده د هیئت غړو له ابو طالبه سره خبري اترې وکړې او داسې یې ورته وویل ته چې زموږ په مینځ کې کوم مقاوت او منزلت لرې هغه تاته ښه معلوم دی، په کوم کې چې اوس قرار لرې هغه هم وینې، د دې بیره ده چې دا ستا آخري شپې او ورځې دي، زموږ او ستا د وراره ترمینځ کوم کشمکش روان دی په هغه هم ښه خبرېږې، نو لازمه ده چې ته هغه را وغواړې او زموږ څخه د هغه لپاره او له هغه څخه زموږ لپاره قول او تړون واخلې یعني داسې چې هغه زموږ څخه لاس واخلي او موږ له ده څخه، موږ دې پرېږدي چې پر خپل دین وو سیږو، او دې به پرېږدو چې پر خپل دین وي، ابو طالب خپل وراره حضرت محمد ﷺ را وغوښتی هغه هم راغلی، ابو طالب ورته وویل: وراره! دا ستا د قوم مشران او مخور خلک درته راغلي دي او دا غواړي چې د ځه شیانو قول او وعده ستا څخه واخلي او د څه شیانو قول او وعده دوی درکړي، بیا یې د دوی وړاندیزونه ورته واورول او دا یې ورته وویل: چې غواړي داسې تړون سره وکړي چې یو په بل غرض نه سره لرې.

رسول الله ﷺ د دې خبرو په جواب کې د هیئت غړو ته مخ ور واړه وه او داسې یې ورته وویل: دا راته وو ایاست که زه داسې کلمه او خبره درته وړاندې کړم چې د هغه په ویلو سره به تاسې د عربو باچاهان سی، عجم به ټول درته سلامي سي نو ستاسې څه نظر دی؟ په ځینو روایتونو کې راځي چې رسول الله ﷺ ابو طالبه ته وفرمایل زه له دوی څخه د یوې داسې خبرې غوښتونکی یم چې که چیرې هغه وو ایي نو عرب به ټول ورته تسلیم سي او عجم به جزیه ورکوي، په بل روایت کې راځي چې خپل اکا ته یې وفرمایل: کاکاجانه! ته ولې دوی یوې داسې کلمې ته نه را غواړې چې هغه د دوی لپاره غوره او بهتره ده؟ ابو طالب ورته وویل: ته دوی څه شي ته را بولې؟ ده ورته وفرمایل: زه غواړم دوی داسې یوې کلمې ته را وبولم چې د هغې په ویلو سره به یې د عربو باچاهان او عجم ټول ورته سلامي سي.

په هر حال کله چې رسول الله ﷺ دا خبره وکړه دوی ټول چوپ او حیران سو چې څنګه کېدای سي تردې حده یوه ګټوره خبره رد کېږي؟ بالاخره ابو جهل ورته وویل:

داکومه خبره ده ؟ستا په پلار قسمّ وو ایه داسي یوه خبره نه بلکي لس خبري وکړه موږ منلو ته تیاریو، نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل : تاسي دا وو ایاست : لَا اِلٰهَ اِلَّا الله .ژباړه : له یوه الله جل جلاله پرته بل دعبادت وړنسته له یوه الله جل جلاله علاوه دبل هرڅه عبادت پریږدی ،ددې خبري په اوریدو سره دوی لاسونه سره ووهل او وی ویل : اي محمد ﷺ ! ته غواړې چې ددې ټولو خدایانو پرځای یوازي یو خدای ونیسو ، په رښتیا چې ستا دامعامله ډیره عجیبه اوغریبه ده ،بیایې یوبل ته سره وویل قسم په خدای چې داسړی ستاسي هیڅ یوه خبره هم نه مني ،نوځي چې ځواود خپلور پلرونو پردین ټینګ وو سیږو ترڅوالله تعالی زموږ اودده ترمینځ پریکړه وکړي ،په دې ترتیب سره دوی هریو پرخپله لار ولاړل ،اودهمدې خلکو په اړه دقرآن کریم داآیتونه رانازل سول : ص وَالْقُرْآنِ ذِي الذِّكْرِ بَلِ الَّذِينَ كَفَرُوا فِي عِزَّةٍ وَشِقَاقٍ كَمْ أَهْلَكْنَا مِن قَبْلِهِم مِّن قَرْنٍ فَنَادَوا وَّلَاتَ حِينَ مَنَاصٍ وَعَجِبُوا أَن جَاءَهُم مُّنذِرٌ مِّنْهُمْ وَقَالَ الْكَافِرُونَ هَٰذَا سَاحِرٌ كَذَّابٌ أَجَعَلَ الْآلِهَةَ إِلَٰهًا وَاحِدًا إِنَّ هَٰذَا لَشَيْءٌ عُجَابٌ وَانطَلَقَ الْمَلَأُ مِنْهُمْ أَنِ امْشُوا وَاصْبِرُوا عَلَىٰ آلِهَتِكُمْ إِنَّ هَٰذَا لَشَيْءٌ يُرَادُ مَا سَمِعْنَا بِهَٰذَا فِي الْمِلَّةِ الْآخِرَةِ إِنْ هَٰذَا إِلَّا اخْتِلَاقٌ ۷. سورة ص.

**ترجمه**:قسم دی په قرآن چې ښتنتن دپند ،ذکر،بیان،شرف،عظمت دی (داسي نه دی چې کفار دمعبودانو په نسبت وایي)بلکه هغه کسان چې کافران سوي دي په کبر،سرکښي کي دی (له قبولودحق څخه)اوپه مخالفت کي دي (له مسلماني سره) (نه ګوري منکران چې) څومره ډیر هلاک کړي دي موږ پخوا له دوی څخه له اهل دزمانې ،نوناري به یې وهلی (عندنزول العذاب حال داچې نه به وُ هغه وخت دخلاصیدو (اوتښتیدو) او تعجب کوی (کفارو)له دې څخ چې راغلی دي وی ته(نبي)بیروونکی له دوی څخه اووایي داکافران چې دغه(بیرونکی نبي) ساحر کوډګردی دروغجن ،آیا ده ګرځولي دي دغه (۳۶۰) معبودان الله یو ؟بیشکه دغه (ګرځول دډیرو معبودانو یوه ته چې تاسي نور معبودان پریږدئ اود یوه الله جل جلاله عبادت کوی )خوامخواه یوشی ډیرعجیب دی (چې مثل نه لري )او ولاړل په تلوار سره مشران له دوی څخه (له مجلسه چې سره ویوونکي وُ یوبل ته) چې ځي(پاڅي له دې ځایه)اوصبر وکړی (اومحکم اوسئ) پر(عبادت د)معبودانو خپلو ،بیشکه

دغه شی (توحید) خامخایوشی دی چې اراده یې کړل سوی ده (له موږ څخه) نه دی اوربدلی موږ دغه (توحید، وحدانیت په ورستني) عیسوي کي، نه دی دغه (توحید) مګر له خپله ځانه جوړ کړل سوی درواغ دي.

## «عام الحزن یعني دغم کال»

دابو طالب وفات: دابو طالب ناروغي سخته سوه بالاخیره دبعثت په لسم کال درجب په میاشت کي وفات سو[166]، دغه وخت داقتصادي محاصرې له ماتیدو څخه یوازي شپږ میاشتي تیري سوي وی[167]، په بل روایت سره ابو طالب دخدیجې رضي الله عنها تر وفات درې ورځي مخکي درمضان په میاشت کي وفات سویدی، په صحیح البخاري کي له مسیب رضي الله عنه څخه روایت سوی دی چې کله دابو طالب ځکندن ؤ، ابوجهل ورسره ناست ؤ، رسول الله صلی الله علیه وسلم هم ورغلی او ورته وویل: کاکاجانه! د: لَاإِلٰهَ إِلَّااللّٰه. کله وو ایه، یوازي هم دایوه کلمه تر خود الله جل جلاله په وړاندي یې ستا لپاره حجت او دلیل په توګه وړاندي کړم، دلته ابوجهل او عبدالله ابن امیه ورته وویل: ابوطالبه! آیا دعبدالمطلب له دین څخه اوړی؟ دوی دواړو هم داسي خبري ورته کولی تر څو له خلګو سره دابو طالب ورستی خبره داسوه چې وی ویل: دعبدالمطلب په ملت (دین) یم، نو بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: تر هغو به له الله جل جلاله څخه بخښنه درته غواړم تر څو له دې څخه منع سوی نه یم، په دې پسې دا آیت شریف نازل سو: مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَن يَسْتَغْفِرُوا لِلْمُشْرِكِينَ وَلَوْ كَانُوا أُولِي قُرْبَىٰ مِن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُمْ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ ۱۱۳. سورة التوبه. **ترجمه**: نه دی لائق او جائز نبي ته او (نه دی لائق او روا) هغو کسانو ته چې ایمان لرونکي دي دغه چې مغفرت وغواړي د دوی لپاره د مشرکانو او که څه هم دا (مشرکان) خاوندان دخپلوۍ وي، وروسته له دې خبري چې ښکاره سي دوی ته چې بیشکه دوی صاحبان د دوږخ (او پر کفر مړه دي).

او دا آیت هم را نازل سو: إِنَّكَ لَا تَهْدِي مَنْ أَحْبَبْتَ. سورة القصص آیت (۵۶)

---

[166] تاریخ الاسلام للشاه اکبرخان ابادی ۱/ ۱۲۰ تاریخی مصادر په دې باره زیات اختلاف سره لري چې ابو طالب په کومه میاست کي وفات کړی دی خو موږ رجب میاشت ځکه انتخاب کړه چې زیاتره مصادر پر دې اتفاق دی چې ابو طالب دشعب څخه تر راوتلو شپږ میاشتي وروسته وفات سو دا اقتصادی محاصره درې کاله وه او شروع یې دبعثت داووم کال دمحرم داولی شپې څخه وو نو په دې حساب سره د ده دمرګ نیټه دنبوت دلسم کال درجب میاشت راځي.

[167] مختصر سیرت الرسول للشیخ عبدالله النجدی ص ۱۱۱.

**ترجمه**:بیشکه ته (اې محمده ﷺ !)نه سی ښوولای (لارحقه) هغه چاته چې خوښ وي ستا دلته دده ضرورت نه وینو چې ابو طالب څومره او څه ډول د رسول الله ﷺ حفاظت او ملاتړ کړی ؤ،ابو طالب د مکې د جاهلانو اولویانو د حملو په وړاندي د اسلامي دعوت لپاره دیوې پخې اولوړي کلاحیثیت درلودی خوهغه دخپلو پلرونو او مشرانو پرملت اودین مړ سو،نو ځکه یې پوره اوکامله کامیابي اورستګاري په برخه نه سوه..

په بخاري شریفي کي له حضرت عباس بن عبد المطلب څخه روایت دی وایي عباس رضي الله عنه رسول الله ﷺ وفرمایل ته خپل اکا ته څه کولای سی؟په داسي حال کي چې هغه به ستاساتنه کوله اوستا په سر به یې له نورو سره شخړي اوجګړې کولی اوستاپه خاطر به نورو ته په غوصه کېدی ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : هغه د دوږخ په باندیني برخه کي دی اوک چیرته زه نه وای نوهغه به د دوږخ ترټولو ژوره کنده کي وای.[۱۶۸]

ابوسعید خدري رضي الله عنه وایي چې یو وخت د رسول الله ﷺ په وړاندي دده داکا ابو طالب یادونه وسوه نو ده وفرمایل :لعله تنفعه شفاعتی یوم القیامة فیجعل فی ضحضاح من النار تبلغ کعبیه [169]. **ترجمه**: کېدای سي چې دقیامت په ورځ زما شفاعت ګټه ورته ورسوي او د دوږخ په لوړه برخه کي یې ځای سي چې اوربه یې یوازي تر ښنګریو پوري ورسیږي..

## «دحضرت خدیجې رضي الله عنها له دار دفنا څخه ودار دبقاته انتقال»

دابو طالب له وفات څخه دوې میاشتي او یا یوازي درې ورځي وروسته دروایتونو د اختلاف په اساس دبعثت په لسم کال دروژې په میاشت کی أم المؤمنین حضرت خدیجة الکبری رضي الله عنها د (۶۵) کالو په عمر کي له دې فاني دنیا څخه سترګي پټي کړې اودغه وخت د رسول الله ﷺ مبارک عمر پنځوسم کال ؤ،خدیجه رضي الله عنها د رسول الله لپاره دالله تعالی له خوا لوی اودیر ګرانبها نعمت ؤ،پنځه ویشت کاله یې یوځای سره تیر کړل ،خدیجه رضي الله عنها دغم اوخفګان په وخت د رسول الله ﷺ لپاره خوشحالي

---

[۱۶۸] تلقیح ابن الجوزی ص۷ رحمة للعلمین ۲/ ۱۴۶.

[۱۶۹] رواه الامام احمدفی مسنده ۶/ ۱۱۸.

اوډاډ ګيرنه وه ، په سختيو کي به يې خواته ولاړه وه ، د رسالت د تبليغ په لاره کي به يې مرسته ورسره کوله ، د جهاد کړاوونه او سختي لاري به يې ورسره ګاللي په ځان او مال سره به يې له رسول الله ﷺ سره غم شريکي کوله رسول الله ﷺ د أم المؤمنين خديجې رضي الله عنها په باره فرمايي :آمنت في حين كفر بي الناس وصدقتني حين كذبني الناس.أشركتني في مالها حين حرمني الناس و رزقني الله ولدها وحرم ولد غيرها[170]

**ترجمه**:خديجې رضي الله عنها هغه وخت پر ما ايمان راوړی چې خلک راباندي کافران ؤ او هغه وخت يې زما تصديق وکی چې خلکو زه دروا غجن بللم او هغه وخت يې زه په خپل مال کي شريک کړم کله چې خلکو زه محروم کړی وم ، او الله تعالى ما ته له دې څخه اولاد راکی اوله نورو څخه يې اولاد رانه کی ،بخاري شريفي له حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت کوي چې وايي :أتى جبرئيل عليه السلام النبي ﷺ فقال : يارسول الله هذه خديجه رضي الله عنها قد أتت معها اناء فيه ادام او طعام أو شراب فاذا هي أتتك فقرأ عليها السلام من ربها، وبشرها ببيت في الجنة من قصب لاخصب فيه ولانصب [171]

**ترجمه**: يعني جبرئيل عليه السلام د رسول الله ﷺ حضور ته تشريف راوړی او ورته وي وفرمايل:يارسول الله !دا ده خديجې رضي الله عنها تشريف راوړی او يو لوښی هم ورسره دی چې په کښي څه کتغ(سالن) خواړه يا څه د څښلو شيدې اوکله چې هغه تا ته راورسيده نوته ددې درب له طرفه ورته سلام ورسوه،اوپه جنت کي د زمرودو او ياقوتو دداسي يو کور زيري ورکړه چې هلته به نه ځوز(ازغی)نه شور ،نه ستومای او نه درماندګي وي .

«د غمونو شروع او دوې در دلرونکي پيښې»

دا دواړي ډيري دردوونکي پيښي وی ،چې په ډير کمه موده کي يوه په بل پسې پيښي سوی ، رسول الله ﷺ يې ډير و دردا وه اوزړه يې غمجن او خفه سو او په همدې پسې د غمونو ورته مخه سوه ، دابو طالب له وفات وروسته مشرکينو وباندي را روړدي سول او جرأت يې پيدا کی ، رسول الله ﷺ ته به يې په ښکاره أذيت رساوه

---

[170] رواه الامام احمد في مسنده ٦/ ١١٨.
[171] صحيح البخاري باب تزويج النبي ﷺ خديجة وفضلها١/ ٥٣٩.

اوظلمونه يې وربانديي کول ،رسول الله ﷺ دومره غمونو واخيستی اوزړه يې دومره ودردېدی چې نوريې له دې خلکو اميد قطع سواوپه دې هيله يې دطائف لاره ونيوله چې کېدای سي هلته يې څوک دعوت ومني ،پناه ورکړي اودخپل قوم په مقابل کي مرسته ورسره وکړي ،خوهلته هم چادالله تعالی درسول الله ﷺ دعوت ونه مانه ،پناه يې ورنه کړه ، اوهيڅ ډول مرسته يې ورسره ونه کړه ،بلکي دهغه ځای خلکو دنيکی پرځای دومره بدي ورسره وکړه چې په مکه کی چانه وه ورسره کړی څومره چې پررسول الله ﷺ دمکې دمشرکينو ظلمونه زيات سول دومره پراصحابو هم ظلمونه او ربړونه ډېرسول ،تردې چې درسول الله ﷺ تژدې ملګری ابوبکرصديق رضي الله عنه هم مجبورسو چې دحبشې په لور دهجرت لار ونيسي ،له کوره ووتی او تر(برک الغماد)پوري ورسيدی خو هلته ابن الدغنه وليداوبيرته يې په خپل جوار اوپناه کي مکې ته راوستی .[۱۷۲]

ابن اسحاق وايي دابوطالب له وفات څخه وروسته قريشو پرنبي کريم ﷺ باندي داسي ظلمونه وکړل چې دابوطالب په ژوند کي يې دهغه تصور قدري هم نه سوای کولای ،آن تر دې چې دقريشو يوه ګمراه اوجاهل يوه ورځ درسول الله ﷺ پرمبارک سر خاوري ورواچولی اود الله تعالی رسول هم داسي ګردجن اوپه خاورو لړلی سرکورته تشريف يو وړی .

معامله او رويه نه وه کړی ترڅوابوطالب وفات سو،اوڅرنګه چې په دې کال کي رسول الله ﷺ ته يوپه بل پسې غمونه او دردونه پيښېدل نوداکال يې دعام الحزن (دغم کال)په نامه و نوماوه ، اوپه همدې نامه په تاريخ کي شهرت لري .

**«دامهات المؤمنين حضرت سوده رضي الله عنها سره دسيدالبشر ﷺ واده»**

په همدې يعني دبعثت په لسم کال دشوال په مياشت کی نبي کريم ﷺ له حضرت سوده رضي الله عنها سره واده وکی ،حضرت سوده رضي الله عنها په اسلام مشرفه سوی وه اوپه دويم ځل هجرت کي حبشې ته مهاجره سوی وه،لومړنی ميړه يې سکران بن عمرو نوميدی هغه هم مسلمان ؤ او له دې سره يې يوځای هجرت کړی ؤ ،خوهلته په حبشه کي

---

[۱۷۲] شاه اکبرخان ابادی وايي چي دا واقعه په همدي کال سوی ده تاريخ الاسلام ۱/ ۱۲۰ وګورئ دااوږده قصه په ابن هشام ۱/ ۲۷۲،۲۷۴اوصحيح البخاری ۱/ ۵۵۲- ۵۵۳- کی هم نقل سوي ده.

وفات سو یاداچې مکې ته راستون سواووفات سواوکله چې د حضرت سوده رضي الله عنها عده پوره سوه نورسول الله ﷺ کوزده ورسره وکړه اوبیایې په نکاح کړه او دا لومړنۍ بي بي ده چې د حضرت خدیجې رضي الله عنها له وفات وروسته رسول الله ﷺ نکاح ورسره کړې ده ، خو وروسته دې مبارکې خپل نوبت حضرت عائشې رضي الله عنها ته بخښلی وُ .

## «تیز او لوړ عقل هم دې ته په حیرت کې دی»

دلته د ډیرپیاوړي عقل او غښتلي زړه خاوندان هم له حیرت څخه ګوته په غاښ دریږي او دلوی علم اوپوهې خاوندان هم داپوښتنه کوي چې هغه کوم عوامل اواسباب وُ چې دمسلمانانو د دومره عظیم صبر اوثبات سبب سوي دي؟دوی دداسي ظلمونو په وړاندې چې تش په اورېدو یې ویښتان غوني نیغ دریږي ،له یاده یې زړونه په لړزه راځي ،څنګه او څه ډول ټینګ ولاړ وُ؟ اوداکوم زور ور سره وُ چې داسي ظلمونه اوکړاونه یې ګاللي دي؟نودې په خاطر چې دا ډول پوښتني جواب سوي وي، لازمه وینو چې دلومړنیو مسلمانانو دصبر اوثبات ځیني عوامل ترنظر تیر کړو .

(۱):ددې ثبات اومقاومت لومړنی اواساسي عامل اوسبب پر واحد الله جل جلاله باندي ټینګ ایمان اود هغه حقیقي پیژندنه اوصحیح معرفت دی ،ځکه یو وار چې زړه دایمان په نور منور سي ،اودایمان شمعه په زړه کې بله سي نوبیاهغه له غرونو څخه هم ټینګ وي او هم درونږ او دداسي ایمان خاوند ددنیا ټول مشکلات اوکړاوونه که هرڅومره ډیر او خطرناک وي په هیڅ شمیر اوهغه ټول دخپل ایمان په مقابل کې لکه داوبو زګ اویالکه دیوه طوفاني اونړوونکي سیلاب په مخ کې دشګوبند شمیري ،هغه دایمان دذلت اوخپل اعتقاد دراحت په وړاندې هیڅ مشکل ته مشکل نه وایي او دایمان په لاره کې دهیڅ کړاو پرواه نه ساتي : فَأَمَّا الزَّبَدُ فَيَذْهَبُ جُفَاءً وَأَمَّا مَا يَنفَعُ النَّاسَ فَيَمْكُثُ فِي الْأَرْضِ.سورة الرعدآیت (۱۷). **ترجمه**:نورهرڅه زګ اوخیري نو ولاړې به سي په دغه حال کې چې پرېوتي وي له نظره (اوبې ګټې به وي)اوهرڅه هغه شی چې نفع سوی خلګوته(اوویل سوي بې غشه فلزات)نوپاته کیږي په ځمکه

کي (دکتي په خاطر) دااساسي غلت اوسبب نوري ځانګي هم لري چې هره يوه يې دثبات اوصبرپه لاره کي دبيل بيل اهميت درلودونکې ده اوهغه دادي.
(۲):داسي قيادت اومشرتابه چې پرزړونو حکومت کوي،رسول الله ﷺ چې نه يوازي داسلامي امت بلکه دټول بشريت قائداولاربنوددی دداسي جسماني جمال، نفساني کمال،کريمانه اونيکواخلاقو،عظيم کردار اوډيرو غوره عاداتواو خصائلو درلودونکي ؤچې زړونه به خپله ورته تسلمېدل اوخلک به ورنه ځارېدل ځکه هغه کمالات اوښيګڼي چې خلک ځان ورنه قربانوي ،رسول الله ﷺ ته له هغو څخه دومره برخه ورکړل سوی وه چې بل هيڅ بني بشرته هم دومره لويه برخه نه ده ورکړل سوی،رسول الله ﷺ دشرف،عظمت،فضل اوکمال تر ټولو لوړ او اوچت ځلي ؤ، د هغه ﷺ په عفت امانتداري ،ريښتنولي او نورو ټولو ښيګڼو باندي له دوستانو وړاندي دښمنانو اعتراف کاوه ،هره خبره به چې درسول الله ﷺ دخولې مبارکي څخه وتله حتي ډير غټ دښمنان به يې هم پرصدق پوره متيقن ؤ.
ډيري داسي پيښې وجود لري چې زموږ دمخکي تيري سوي خبري تصديق اوتائيد کوی ،يو ځل دقريشو درې کسان سره راټول سول ،دوی هريوه جلاجلا اوپه پټه قرآن کريم اورېدلی ؤ، لومړی يوله بله څخه خبر نه ؤ خوبالاخره يې راز فاش اويوپه بل خبرسول،له دې دروکسانو څخه يوهم ابوجهل ؤ،کله چې درې سره راټول سول نو يوه يې له ابوجهل څخه وپوښتل چې ووايه دهغه څه په هکله چې له محمد ﷺ څخه دی اورېدلی دي ستاڅه نظر دی؟ابوجهل په جواب کي ورته وويل ماڅه اورېدلی دی ؟اصلي خبره داده چې په شرف اوعظمت کي زموږ اوبنو عبدمناف ترمنځ مقابله اومسابقه وه، دوی غريبانوته خواړه ورکول موږ هم ورکول دوی خلکوته سپرلی بندوبست کاوه موږ هم سپرلۍ ورته برابر ولي ، دوی خلکو ته مرستي ورکولی ،موږ هم کومکونه ورسره کول يعني څه چې به دوی کول موږ هم داسي کول ترڅو دواړه بالکل سره برابر سي ،موږ او دوی په مسابقه کي لکه يودوه آسان داسي سووچې هريو دا کوښښ کوي چې له بل څخه مخکي سي خواوس بني عبدمناف وايي چې زموږ په مينځ کي داسي نبي دی چې له آسمانه وحي ورته رائي،نوتاسو

وو ایاست موږ به کله هم دې ته وږسېدای سو؟ قسم په خدای موږ به کله هم پر دې سړي ایمان رانه وړو او کله به هم دده تصدیق ونه کړو.[١٧٣]
همدا راز ابو جهل به داهم ویل اې محمده! ﷺ موږ تا دروا غجن نه بولو خو هغه څه تکذیبوو چې تا راوړي دي، نو الله تعالی دآیت شریف نازل کي: فَإِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُونَكَ وَلَكِنَّ الظَّالِمِينَ بِآيَاتِ اللَّهِ يَجْحَدُونَ[١٧٤]. **ترجمه**: نو بیشکه دوی نه کوي تکذیب ستا (په واقع کي) ولیکن دا ظالمان په آیتونو دالله انکار (مسخري) کوي.
داکیسه خو مخکي تیره سوه چې یوه ورځ کفارو رسول الله ﷺ ته درې واره طعنې ورکړې او په دریم وار رسول الله ﷺ ورته وفرمایل اې قریشو! ما تاسي ته قتل او ذبح راوړي ده یعني دا یو ډول تهدید ؤ چې دوی ته یې ویل مادرته ستاسي دقتل خبر راوړی دی، دې خبري پر دوی باندي دومره اغیزه وکړه چې په هغه مجلس کي له رسول الله ﷺ سره له ټولو دزیات عداوت او دښمني درلودونکي هم په ډېره نرمه لهجه او خوږو کلماتو درسول الله ﷺ درضا او خوښي حاصلولو کوشش کاوه، دا موهم مخکي وویل چې یوه ورځ رسول الله ﷺ پر لمانځه ولاړ ؤ کله چې یې سر پر سجده کېښووی، کفارو داوښ لرۍ ورباندي واچوی، خو کله چې رسول اکرم ﷺ له سجدې څخه سر راپورته کی نو دوی ته یې ښرا وکړه، نو یو وارد مشرکینو خندا ځاني په خولو کی وچې سوی، غم او ویري واخیستل او په دې باوري سول چې حتما به هلاک کیږو نور نجات نسته.
داکیسه هم مخکي تیره سوه چې رسول الله ﷺ دابولهب زوی عتبه ته ښرا وکړه، نو عتبه پر دې پوره یقین درلودی چې داښرا به حتما ورته لګیږي او کله چې یې په شام کي زمری ولیدی نو وی ویل قسم په خدای چې محمد ﷺ زه په داسي حال کي ووژلم چې په خپله په مکه کي ناست دی، همدا راز ابی بن خلف به تل رسول الله ﷺ ته دقتل اخطارونه ورکول یو ځل رسول الله ﷺ ورته وویل دده په جواب کي چې داسي نه ده بلکي زه به تا وژنم (ان شاء الله تعالی) او کله چې داحد غزا کي رسول الله ﷺ دابی بن خلف پرغاړه دنیزې واروکی، خو که څه هم معمولي ټپي سو خو داسي

---
[١٧٣] ابن هشام ١/ ٣١٦.
[١٧٤] رواه الترمذی فی تفسیر سورة الانعام ٢/ ١٣٢.

ګرځېدلی وه ،له هري خوا راګیرۀ نژدې ؤ چې له غمه یې زړونه وچوي ،په دې غمجنو حالاتوکي به قرآن کریم دپخوانیو انبیاؤ علیهم السلام او ددوی دمشرکواقوامو حالات اوواقعات بیانول اودې آیتونو به دهغه حالاتو اوواقعاتو کیسې کولې چې دمکې دمسلمانانو اوکفارو له حالاتوسره به یې ډېر ورته والی اومشابهت درلودی اوپه دې ترتیب سره به یې مسلمانانوته دپخوانی زمانی دحق او باطل دجګړې هغه نقشه نتیجه هم ورته اعلانوله اودابه یې ورته ښووله چې الله تعالی کافران اوظالمان څه ډول هلاک اوبرباد کړی اودمځکي حاکمیت یې خپلو نیکوبندګانوته سپارلی ؤ له دې ډول کیسو څخه داپه ډاګه کېدله چې دمکې مشرکان به په ډېر نژدې وخت کي له شرمیدونکي ماتي سره مخ کیږي ،مسلمانانو به بریالي کیږي اواسلامي دعوت به خپل منزل ته رسیږي .

وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا لِعِبَادِنَا الْمُرْسَلِينَ إِنَّهُمْ لَهُمُ الْمَنصُورُونَ وَإِنَّ جُندَنَا لَهُمُ الْغَالِبُونَ فَتَوَلَّ عَنْهُمْ حَتَّىٰ حِينٍ وَأَبْصِرْهُمْ فَسَوْفَ يُبْصِرُونَ أَفَبِعَذَابِنَا يَسْتَعْجِلُونَ فَإِذَا نَزَلَ بِسَاحَتِهِمْ فَسَاءَ صَبَاحُ الْمُنذَرِينَ.

سورة الصافات **ترجمه**:په تحقیق پخوا لاصادر سوی دی حکم زموږ لپاره دمرسلینو بندګانو زموږ ،چې بیشکه دوی له هم دوی سره مدد کړل سوی دی ،اوبیشکه لښکري زموږ خامخاهم دوی کامیاب (پر کفارو)نومخ وګرځوه ته(اې محمد ﷺ !)له دوی څخه تریوه وخته ،اوګوره ته دوی ته بس ژر ده چې وبه ویني دوی (عاقبت خپل)ایانو(په راتلو) دعذاب زموږ تلوار کوي دوی ،نو کله چې نازل سي (عذاب)په میدان د دوی نوبدبه وی سبا دیرول سویو .سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ.

**ترجمه**:ژر ده چې ماته به کړل سي جمع د دوی اووبه ګرځوي دوی شاوي خپلي مسلمانانو ته له جنګه. جُندٌ مَّا هُنَالِكَ مَهْزُومٌ مِّنَ الْأَحْزَابِ. **ترجمه**: دوی خویولښکر ګوتي دي په دغه ځای کي چې ماته ورکړل سوي له هغو ډېرو لښکرو څخه دي .

دهغو اصحابوپه هکله چې حبشې ته یې هجرت کړی ؤ دالله جل جلاله داقول رانازل سوی دی .وَالَّذِينَ هَاجَرُوا فِي اللَّهِ مِن بَعْدِ مَا ظُلِمُوا لَنُبَوِّئَنَّهُمْ فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَلَأَجْرُ الْآخِرَةِ أَكْبَرُ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ

**ترجمه**:اوهغه کسان چې هجرت یې کړی دی په لاره دالله جل جلاله کي وروسته له هغه چې ظلم پر وکړل سو،نوخامخاځای به ورکړو موږ دوی ته په دنیاکي ښه ځای

هم اونادري پيښي به هم په راتلونکو پاڼوکي ووایاست ، خصوصا داحد دغزا پيښي اودخبيب رضي الله عنه او نورو اصحابو تاريخي واقعاتي .

(۳) : دمسؤليت احساس :اصحابو دابنه ادراک کړی ؤ چې دبشريت په هکله د دوي په غاړه دمسؤليت څومره دروند پيټی پروت دی اودخپل انساني مسؤليت پوره احساس يې درلودی اوپه دې باروي ؤ چې ددې مسؤليت اداکول حتمي او لازمي دي له دې څخه غاړه غړول او اوږه خالي کول ،له دې اوسنيو کړاوونو او ظلمونو څخه ډيرخطرناک او ضررناک عواقب لري او ددې عظيم مسؤليت له اداکولو څخه سرغړول د دوی اوټول بشريت لپاره دومره بدبختي او زيانونه راوړي چې له هغه تکليفونو څخه چې ددې ذندي د ترسره کولو په لاره کي يې ګاللي څو چنده زيات او درد ونکي بلکه له هغې سره بالکل د مقايسې وړنه دي .

(۴) :په آخرت باندي ايمان : پرآخرت باندي ايمان د دوی په زړونوکي مسؤليت نورهم پياوړی کوي ،دوی پردې ټينګه عقيده درلوده چې له مرګه وروسته بيا ژوندون سته ، الله تعالی به دټولو کوچنيو اوغټو،پټواوښکاره عملونو حساب ورسره کوي ،بيابه دتل لپاره يا جنت ته ځي اويابه دوږخ په سوځيدونکو لمبو کي وي ،ژوند يې دخوف اورجاء ترمينځ ؤ يعني دالله جل جلاله رحمت اومهرباني ته هيله مند ؤ،اوله عذاب څخه يې بيرېدل،ددوی حالت داسي ؤلکه دامبارک آيت چې ورته اشاره کوي : وَالَّذِينَ يُؤْتُونَ مَا آتَوا وَّقُلُوبُهُمْ وَجِلَةٌ أَنَّهُمْ إِلَى رَبِّهِمْ رَاجِعُونَ ۶۰. سورة المؤمنون.

**ترجمه**:اوهغه کسان چې ورکوي(له زکاتونواوخيراتونو) حال داچي زړونه د دوی بيرېدونکي دي (له عدم قبول ځکه چې)بيشکه دوی رب خپل ته وربلونکي دي ،دوی پردې پوخ باور درلودی چې داټول دنيا دآخرت په مقابل کی مچ اوغوماشي ديوه وزر قدر ارزښت هم نه لري ، نوهمدا ټينګه عقيده اوصحيح معرفت ؤ چې ددنيا هرمشکل يې ورته آسانه کړی ؤ ،هرډول کړاو او درد يې زغملی سوای ،ترټولو ستر ستر مشکلات او کړاوونه يې هم دهدف په لارکې خنډ اومانع نه سوای ګرځيدلی .

(۵) :قرآن کريم:دمشکلاتواوکړاوونوپه دې ترټولو سخت وخت کي دقرآنکريم هغه سورتونه اوآياتونه رانازليدل چې داسلام داساسي اصولو اومبادئو لپاره يې

په زړه راښکونکي اندازه او قاطع لهجه دلایل او براهین قائم کړي دي ،دغه وخت اسلامي دعوت دهمدې اصولو په محور چورلیده او دې آیتونو مسلمانانو ته هغه بنیادي او اساسي امور او مسائل په ګوته کول کوم چې د بشریت له ټولو څخه اوچتې او سپڅلې ټولنې (اسلامي ټولنې) جوړښت الله تعالی په هم هغو امرو تړلی ؤ هم دار از دې آیتونو مسلمانانو ته د زغم او صبر ثبات او پایمردي درس هم ورکاوه ،په دې هکله یې مثالونه ورته راوړل او په دې کې نغښتې حکمتونه یې ورته بیانول

أَمْ حَسِبْتُمْ أَن تَدْخُلُواْ الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَأْتِكُم مَّثَلُ الَّذِينَ خَلَوْاْ مِن قَبْلِكُم مَّسَّتْهُمُ الْبَأْسَاء وَالضَّرَّاء وَزُلْزِلُواْ حَتَّى يَقُولَ الرَّسُولُ وَالَّذِينَ آمَنُواْ مَعَهُ مَتَى نَصْرُ اللّهِ أَلا إِنَّ نَصْرَ اللّهِ قَرِيبٌ ۲۱۴. سورة البقرة

ژباړه :آیا ګومان کوی تاسي (اې مؤمنانو) چې ننه به وزې تاسي جنت ته حال دا چې راغلی به نه وي پر تاسي باندې په مثل (د سختیو ) د هغو کسانو چې تیر سوي دي پخوا تر تاسي چې رسېدلی وه دوی ته سختې (لکه فقر او مرض) او ګرځول سوي ؤ دوی په سختیو سره) تر هغه پورې چې ویل به (هم) رسول او (هم) هغو کسانو چې ایمان یې راوړی ؤ سره له ده چې کله به وي نصرت د الله ؟خبردار سی !چې بیشکه نصرت د الله جل جلاله نژدې دی (مؤمنانو ته)

الم أَحَسِبَ النَّاسُ أَن يُتْرَكُوا أَن يَقُولُوا آمَنَّا وَهُمْ لَا يُفْتَنُونَ وَلَقَدْ فَتَنَّا الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ فَلَيَعْلَمَنَّ اللَّهُ الَّذِينَ صَدَقُوا وَلَيَعْلَمَنَّ الْكَاذِبِينَ. سورة العنکبوت. **ترجمه** :آیا ګومان کوي دغه خلګ چې پرې به ښوول سي دوی (په همدې قدر چې ووایي دوی چې ایمان راوړی دی موږ حال دا چې دوی به ونه آزمویل سي) او خوامخواه په تحقیق سره آزمویلي ؤ موږ هغه کسان چې له دوی څخه مخکې ؤ ،نو دومره معلوم به کړي الله (په علم ظاهري سره هم ) هغه کسان چې رېښتني دي (په دعوه د ایمان کې) او خوامخوا معلوم به کړی الله جل جلاله (هغه) دروا غجن (په علم ظاهري هم) د دې تر څنګ دغه وخت داسې آیتونه هم نازلېدل چې کفارو او ټولو معاندینو او مخالفینو ته به یې غاښ ماتوونکي جوابونه ورکول ،د دوی ټولې هیلې به یې ورماتولې او هیڅ بهانه به یې نه وررپرېښوولې او په پوره څرګنده او صریحه توګه به یې دا ورته اعلانول چې که دوی حق ته غاړه کښېږدي او هم داسې ګمراه او بې لارې پاته سي نو پای او عاقبت به

يې ډير خراب او زيانمن وي، په دې اړه به يې د پخوانيو قومونو کيسې او نور داسې تاريخي شواهد ورته وړاندې کړل چې دا به ورڅخه معلوميده چې د مسلمانانو او کافرانو په هکله د الله تعالی سنت او فيصله څه ده، خو له دې تهديد او ويرې سره سره داسې آيتونه هم رانازلېدل چې له کرم او مهرباني څخه به ډک ؤ، لهجه يې نرمه وه، د افهام او تفهيم، وعظ او ارشاد خوا به يې نيولې وه تر څو ګمراهان له خپلې ګمراهۍ او ضلالت څخه حق او هدايت ته واړوي.

قرآن کريم په حقيقت کې مسلمانانو ته يوه بله دنيا او بېل جهان جوړ کړی ؤ، له دې خاورينې دنيا څخه يې لوړ کړی ؤ هلته يې د کائناتو مشاهد، د ربوبيت جمال او کمال، د الوهيت، عظمت او رفعت او د رحمت، رضا او مهرباني داسې صحنې ورښوولې چې په ليدو سره به يې دوی دومره پياوړي کېدل چې بيا به د کړاوونو او مشکلاتو غرونه ورته لکه ديوه طوفاني سيلاب په وړاندې د شګو بندونه داسې ؤ.

دې آيتونو به مسلمانانو ته د الله تعالی له طرفه د رحمت، رضا او له همېشنيو نعمتونو څخه ډک جنت زيرې هم ورکول او د دوی د ظالمو او کافرو دښمنانو هغه حالت به يې هم دورته تمثيل او ترسيماوه چې د قيامت په ورځ به د الهي عدالت محکمې ته راوستل کيږي محاسبه به ور سره کيږي او بالاخره به پړمخې په دوږخ کې اچول کيږي چې ځی اوس دا ور خوند ګوري.

(۶): د برې زيرې: د دې ټولو تر څنګ مسلمانانو د کوم وخت څخه چې له کړاوونو سره مخ سول بلکه تر هغه وړاندې هم په دې ښه پوهېدل چې اسلام قبلول او مسلمان کېدل يوازې دا معنی نه لري چې تل به د ردونه، ظلمونه او کړاونه ګالي بلکه د اسلامي دعوت هدف دا دی چې د جاهليت داتوري تيارې ختمې کړي او د ادظلم ماڼۍ رانسکوره او پر ځای يې د عدل ځلې ودروي، همداراز د دې دعوت داغوښتنه ده چې دنړۍ په سياسي ډګر کې تر نورو مخکې سي، هلته خپل نفوذ او حاکميت قائم کړي تر څو اسلامي امت او ټول بشريت د بندګانو له عبادت څخه آزاد او يوازې ديوه الله جل جلاله عبادت ته يې بوزي او الهي رضايې په برخه سي.

قرآن کريم به مسلمانانو ته کله په صريحه لهجه او کله به کنايي سره دا ډول زيرې ورکول په دې سختو شپو او ورځو کې چې تر مسلمانانو لاندې مځکه سور اور

او خامخا اجر (بدل) ثواب د آخرت ډیر لوی دی ، که وی دغه کفار چې پوهېدای په ثواب دهجرت .کفارو له رسول الله ﷺ څخه د حضرت یوسف علیه السلام د کیسې پوښتنه وکړه نو الله جل جلاله په جواب کې داسي ورته وویل : لَقَدْ كَانَ فِي يُوسُفَ وَإِخْوَتِهِ آيَاتٌ لِلسَّائِلِينَ .

**ترجمه** :په تحقیق چې ؤپه کیسې دیوسف او وروڼو دده کې دلائل (دقدرت دالله او نبوت ستا ) لپاره دپوښتونکو .

یعني داچې مشرکین د حضرت یوسف علیه السلام د کیسې پوښتنه کوي نو دوی به هم لکه یوسف علیه السلام د وروڼو په شان له ناکامۍ سره مخ کیږي ،اوآخر به دوی هم لکه د دوی په څیر دتسلیمۍ سر پرمخکه ږدي .بل ځای قرآن کریم درسولانو یادونه کوي اوفرمايي :وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِرُسُلِهِمْ لَنُخْرِجَنَّكُمْ مِنْ أَرْضِنَا أَوْ لَتَعُودُنَّ فِي مِلَّتِنَا فَأَوْحَىٰ إِلَيْهِمْ رَبُّهُمْ لَنُهْلِكَنَّ الظَّالِمِينَ وَلَنُسْكِنَنَّكُمُ الْأَرْضَ مِنْ بَعْدِهِمْ ذَٰلِكَ لِمَنْ خَافَ مَقَامِي وَخَافَ وَعِيدِ . سورة ابراهيم .

**ترجمه** :او وویل هغو کسانو چې کافران سوي ؤ رسولانو خپلوته چې خامخا وبه باسو موږ تاسي هرومرو له ځمکي خپلي یابه خامخا ورګرځی تاسي خامخا په دین زموږ کي ،پس وحي وکړه دوی ته رب د دوی چې هرومرو هلاک به کړو موږ ظالمان اوخامخا به ووسو موږ تاسي په ځمکه د دوی کي وروسته ترهلاکت د دوی ، دغه هلاک او اسکان حق دی لپاره دهغه چاچې بیریږي له دریدو په مخ زماکي او بیریږي له وعدې دعذاب زما ،هغه وخت چې دفارسیانو او رومیانو ترمینځ جګړه ګرمه وه دکفارو داهیله وه چې فارسیان بری ترلاسه کړي ځکه هغوی هم مشرکین ؤ،خودمسلمانانو امید داؤ چې بر درومیانو پربرخه سي ځکه رومیانوخوهم پرالله جل جلاله ،رسولانو وحي کتاب اوآخرت باندي ایمان درلودی خوداځل بری دفارسیانو په برخه سو، خو په همدې وخت کي الله جل جلاله مسلمانانو ته زیری ورکوي چې په دې لنډ څوکلونوکي به رومیان پرفارسیانو غلبه پیدا کړي اوددې زیري ترڅنګ یې مسلمانانو ته دفتحي اوبري زیری هم ورکړی .بَعْدُ وَيَوْمَئِذٍ يَفْرَحُ الْمُؤْمِنُونَ (۴) بِنَصْرِ اللَّهِ .

**ترجمه** :اوپه دغه ورځ دروم دغلبې پرفارس خوشحاله به سي مؤمنان په نصرت دالله جل جلاله (له کتابیانو سره په مجوسیانو) رسول الله ﷺ به په خپله هم وخت پروخت دا ډول زیری ورکوی ، دحج په وخت کي به یې چې په عکاظ،ذی المجاز، اومجنه

کي خلک دالله جل جلاله دين ته رابلل نونه يوازي داچې مؤمنانو ته به يې دجنت زيري ورکوي بلکي په داګه سره به يې داهم فرمايل: چې اې خلګو (لاإِلٰهَ إِلَّا الله) وواياست ترڅو بريالى سي اوترڅو په همدې کلمې سره عربان لاندي کړي اوعجم هم ترخپلي قبضې لاندي راولي اوکه په دې لاره کي ومري نوپه جنت کي به باچهان ياست ،د حديث شريف متن په لاندي ډول دی.

يا ايها الناس قولو لااله الا الله تفلحوا وتملكوابها العرب ،وتدين لک بها العجم ،فاذا متم كنت ملوكافى الجنة.[۱۷۸] **ترجمه**:رسول الله صلى الله عليه وسلم ابوطالب ته دقريشو وروستنى هيئت ته هم په صريحو ټکو کي فرمايلي ؤ چې زه له تاسي څخه يوه خبره غواړم چې راسره وی منی اوهغه داسي خبره ده چې په منلو سره به يې دعربو اوعجمو تولوباچاهي ستاسي وي .خباب بن الارت رضي الله عنه وايي : أتيت النبى صلى الله عليه وسلم وهو متوسد بردة وهوفى ظل الكعبة وقد لقينا من المشركين شدة، فقلت الاتدعوا الله ،فقعد هو محمر وجهه فقال لقد كان من قبلكم ليمشط بمشاط الحديد مادون عظامه من لحم وعصب مايصرفه ذلک عن دينه وليتمن الله هذا الامر حتى يسير الركب من صنعاء الى حضر موت مايخاف الاالله ،والذئب على غنمه[۱۷۹] وفى رواية ولكنكم تستعجلون.[۱۸۰] (رواه ترمذى)**ترجمه**:خباب بن الارت رضي الله عنه وايي يوځل زه درسول الله په خدمت کی حاضرسو ،رسول الله صلى الله عليه وسلم دکعبې شريفي سايې ته پريوه چادر تکيه وهلی وه،دغه وخت موږ دکفارو له لاسه ډيرپه عذاب ؤ،ماورته وويل : اې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته الله تعالى ته سوال اودعاوکړه ،رسول الله صلى الله عليه وسلم ددې خبري په اوريدو سره راکښينستی مخ مبارک يې تک سور سو او وی فرمايل : هغه خلک چې تر تاسو مخکي تيرسوي دي ،غوښی اواعصاب به يې ترهډوکو پوري داوسپنې په ږمنځو توږل کيدل خوپه دې سختيو سره به هم دوی له خپل دين څخه نه اوښتل اوبيايې وفرمايل:الله تعالى به دادين مکمل غالب اوبريالى کوي ،تردې چې سپور به له صنعاڅخه ترحضرموت پوري سفرکوي اوله الله جل جلاله پرته به دبل بيره ورسره نه وي

---

[۱۷۸] رواه الترمذى
[۱۷۹] صحيح البخارى ۱/ ۵۴۳.
[۱۸۰] صحيح البخارى ۱/ ۵۱۰.

،البته میړو ته به دلوه خطره اوبېره هم نه وي ،په یوه روایت کې داهم راغلي چې خوتاسي عجله کوی داهم باید وویل سي چې دفتحې دازیری څه پټ اومخفي نه وی بلکه داد مسلمانانو اوکفارو ټولو غوږونو ته رسیدلی ؤوایي چې اسود بن المطلب او ملګرو به یې چې کله د رسول الله ﷺ اصحاب ولیدل نو داستهزاء او رشخند له مخې به یې ویل دادي دمځکې باچهان راغلل ،وګوری دوی به پر قیصر او کسری بریالي کیږي ،بیا به یې چک چکې کولی او لاسونه به یې سره پړکول.[181]

هم دادځلانده مستقبل او بالاخره په جنت کې دابدي اودائمي ژوند زیری او امیدونه ؤ چې مسلمانانو ته یې دهغه لویو دردونو اوسختو ظلمونو ګالل اوزغمل آسانه کړی ؤ او دوی یې په دې باوري کړی ؤ چې داتیاري به حتما روښانه کیږي اوداد غم دوربه خاتمه پیداکوي نوربه بیاخوشحالي او سعادت وي.

ددې ترڅنګ به رسول الله ﷺ تل دوی ته روحي غذا هم ورکوله ، د دوی زړونه اودماغونه به یې دایمان په وړانګو روښانه کول،قرآن کریم اواحادیثو په واسطه به یې د دوی نفساني تزکیه کوله ،په ایمان اوعقیده به یې روزل ، دروحاني اوچتوالي ،قلبي سپیڅلتیا ،غوره او لوړو اخلاقو له مادیاتو اوشهواتو څخه دآزادي او یوازې له یوه الله جل جلاله سره دمیني اودیوه الله جل جلاله دبندګې لورته به یې رابلل په زړونو کې به یې دهرواقعیتاوحقیقت شعلې را اوچتولی،له تیارو څخه به یې رڼا ته را ایستل ،دزغم ،صبراو حوصلې درس به یې ورکاوه ، نو ددې لارښوونو اوهدایاتو نتیجه داسوه چې دهغوی په زړونوکې دین اوایمان کلک ځای ونیوی ،له مادیاتو اوشهواتو سره یې اړیکې وشلیدلی،دالله جل جلاله درضا حاصلولو لپاره هرډول قرباني ته اماده ؤ دجنت په تمه او هیله اوسېدل ،علمي تنده یې لاپسې زیاته سوه،له نفس سره دمحاسبې روح اواحساس یې پیاوړی سو،خپل اعصاب ،احساسات او عواطف یې ترادارې اوکنټرول لاندې ساتل دصبر ،سکون ،عزت اووقار په وسل یې دهر مشکل مقابله کوله.

---

[181] فقه السيره ص ۵۴.

## «دويمه مرحله رسول الله ﷺ په طائف کي»

**رسول الله ﷺ په طائف کي:** دنبوت په لسم کال دشوال په مياشت کي چې (٦١٠م) کال دمئي له وروستيو اود جون له لومړيو سره سمون خوري[182] رسول الله ﷺ دطائف په لور روان سو، طائف له مکې څخه تقريبا شپيته ميله ليري دى ،رسول الله ﷺ دا ټوله مسافه تګ اوراتګ په پښو وکړه، په دې سفر کي دده آزاد کړل سوى غلام زيدبن حارثه رضي الله عنه هم ورسره ملګرى ؤ. رسول الله ﷺ به چې هري قبيلې ته ورسيدى نو داسلام بلنه به يې ورکوله خوهيچا يې هم دعوت ونه منى اوکله چې طائف ته ورسيدى نو دثقيف له قبيلې څخه درو وروڼو ته چې درې سره يې رئيسان اومشران وه ورغلى (ددوى نومونه عبدياليل ،مسعود اوحبيب ؤ اودپلار نوم يې عمربن الثقفي ؤ) اودالله جل جلاله طرف ته يې راوبلل ، داسلام دتائيداوملاتړ غوښتنه يې ورڅخه وکړه ،له دوى څخه يوه ورته وويل که الله جل جلاله ته رسول راليږلى يې نو زه به دکعبې پردې څيري کړم ،بل ورته وويل الله له تاعلاوه بل څوک نه دى پيداکړى چې ته يې رسول راليږلى يې ،دريم ورته وويل قسم په خداى که زه ستاسره خبري وکړم، ځکه که چيري ته په رښتيا سره رسول وې نوبيا ستاخبري ردول زيات خطرلري اوکه چيري په الله عزوجل پوري درواغ تړې نوبيا ددې وړنه يې چې خبري درسره وکړم ،نورسول الله ﷺ ورڅخه ولاړ سو خو داېې ورته وويل : تاسي خو داوکړل خو ګورئ داخبره اوراز به پټ ساتى .

رسول الله ﷺ لس ورځي په طائف کي پاته سو، دهغه ځاى ټولو سردارانو اومشرانو ته ورغلى داسلام بلنه يې ورکړه خوهيچا هم ونه منله په پاى کي دوى ورته وويل چې زموږ له وطنه ووزه اونه يوازي داچې درسول الله ﷺ دعوت يې ونه منى بلکي خپلو اوباشانو او بدمعاشانو ته يې داوويل:چې رسول الله ﷺ ته آذيت ورسوى،کله چې رسول الله ﷺ دبيرته ستنيدو اراده وکړه هغه جاهل اوګمراه خلګ وربانديي راټول سول،ډله ډله پسې روان ؤ ناري اوشور يې جوړ کړى ؤ ،ښکنځل به يې ورته کول ،له بدو ردو سره به يې په ډبرو هم ويشتى ، اوله مبارکو پښو يې دومره ويني بهيدلى چې دواړي څپلى يې په وينو لندې سوى ،زيدبن

---

[182] دادتاريخ الاسلام دمؤلف نجيب ابادى خبره ده اوزه هم دهمدې په صحت قائل يم.

حارثه رضي الله عنه به لکه ډال داسي دفاع ورڅخه کوله ،ځان به يې ګوزارته وړاندي کوی ترڅو رسول الله صلی الله علیه وسلم په امن ورڅخه پاته سي ،بالاخره دزيد رضي الله عنه سرهم مات سو ،دا احمقان او جاهلان هم داسي ورپسې ؤ ترڅوله طائف څخه درې ميله ليري رسول الله صلی الله علیه وسلم پردې مجبور سو چې دربيعه د زامنو عتبه او شيبه باغ ته پناه يوسي ، او هم دلته بيا هغه ظالمان او احمقان ورونه ګرځيدل ، رسول الله صلی الله علیه وسلم دانګورو ترسيورو لاندي يوه ديوال تکيه وکړه اوکله چې يې دمه جوړه سوه نو يې هغه دعا وکړه چې دمستضعفينو ددعا په نامه مشهوره وه ،ددې دعا له هري فقرې څخه دا څرګنديږي چې دطائف دخلګو ددې ظلم ،بدسلوکي اوله دې څخه چې هيڅا هم اسلام ونه منی ، درسول الله صلی الله علیه وسلم زړه څومره ځوريدلی او دردمند سوی ؤ اوله دې دعا څخه دا معلو ميږي چې هغه وخت رسول الله صلی الله علیه وسلم څومره خفه ،غمجن او درديدلی ؤ ،هغه دعا داسي ده چې کومه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايله:

اللهم اليک اشکو ضعف قوتی وقلة حيلتی ،وهوانی علی الناس ، ياارحم الراحمين.انت رب المستضعفين وانت ربی الی من تکلنی الی بعيد يتجهمنی أم الی عدو ملکته المری ؟ان لم يکن بک علی غضب فلا أبالي ،ولکن عافيتک هی اوسع لی.اعوذ بنور وجهک الذی اشرقت له الظلمات.وصلح عليه امر الدنيا والاخرة من ان تترل بی غضبک اويحل علی سخطک لک العتبی حتی ترضی ولاحول ولاقوة الابک.

**ترجمه:** اې الله جل جلاله زه دخپلي کمزورۍ ،بې بسۍ اودخلګو په وړاندي دخپلي بې قدرۍ شکايت تاته کوم ،اې ترټولو رحيم او مهربان خدايه ،ته دبې وزلانو رب يې اوته زما رب يې ته مي چاته سپارې؟پردی او بيګانه ته مي سپاری چې ظلم اوزياتی راسره وکړی؟او يامي کوم داسي دښمن ته سپاری چې زمامعامله دي هغه ته سپارلې ده ،که ته ماته په غضب اوقهر نه يې نو زماهيڅ پروا نسته خوستاعافيت ماته ډير وسيع اوپراخه دی ،زه ستا دمخ په هغه نور پناه غواړ کوم چې تيارې يې رڼا کړيدي ،اوهغه چې دنيا او آخرت ورباندي جوړسوی اوبرابر سوی دی ،له دې څخه پناه غواړم چې ته راباندي خپل غضب وکړی اويا ستا دعتاب مورد وګرځم ، ستا رضا غواړم ترڅو ته راضي سی اوپرته له تاڅخه بل دزور اوقوت څښتن وجود نه

لري کله چې د ربيعه زامنو رسول الله ﷺ وليدی زړه يې پرې وسوو، خپل غلام يې چې عداس نوميدی او نصراني ؤ راوغوښت او ورته وی ويل دا يو ورې انګور واخله او هغه سړي ته يې ورووړه کله چې عداس انګور د رسول الله په مخ کې کښيښودل، رسول الله ﷺ بسم الله وويله لاس يې وراووږد کی او انګور يې وخوړل، عداس ورته وويل ددې وطن خلک خو دا خبره يعني (بسم الله) نه وايي رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ته د کوم ځای يې؟ او د کوم دين پيروی کوی؟ عداس وويل زه په دين نصراني او د نينوا او سيدونکی يم، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل ښه! ته د صالح سړي يونس بن متی عليه السلام کليوال يې، عداس ورته وويل ته يونس عليه السلام له کومه پيژنې؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: هغه زما ورور ؤ هغه نبي ؤ او زه هم نبي يم، ددې په اورېدو سره عداس يوځل د رسول الله ﷺ پر سر لاسونو او پښو ورپرېوتی او مچول يې هلته د ربيعه زوی خپل ورور ته وويل غلام خو ی يې درته بې لاري کی، او عداس چې بيرته راغی دوی ورته وويل څه کيسه وه اې عداسه؟ عداس ورته وويل: اې باداره! په دې ټوله دنيا کې تر دې سړي غوره سړی وجود نه لري، ما ته يې داسې معلومات راکړل چې په هغو له نبي پرته بل څوک نه پوهيږي، دوی ورته وويل عداسه ګوره چې تا له خپل دين څخه وانه ړوي ستا دين د هغه تر دين غوره دی.

رسول الله ﷺ له باغ څخه راووتی او په داسې حال کې د مکې په طرف روان سو چې زړه يې له حسرتونو او غمونو ډک ؤ او کله چې قرن المنازل ته ورسيدی نو الله جل جلاله جبرئيل عليه ورته راولېږی له هغه سره د غرونو ملائکه هم ورسره وه، دوی ورته وويل چې که غواړې نو امر راته وکړه چې د طائف پر خلکو دا خشبين دواړه غرونه راچپه کړو. بخاري شريف کې دا کيسه په مفصله توګه له عروه بن زبير رضي الله عنه څخه روايت کړی ده وايي حضرت عائشې رضي الله عنها راته ويلي دي:

---

انها قالت للنبی ﷺ هل اتی عليک يوم کان اشد عليک من يوم احد؟ قال :لقيت من قومک ما لقيت ,وکان اشد مالقيت منهم يوم العقبة. اذعرضت نفسی علی ابن عبدياليل ابن عبد کلال ,فلم يجبنی الی ماردت.فانطلقت وانا مهموم علی وجهی.فلم استفق الا وانا بقرن الثعالب ,وهوالمسی بقرن المنازل ,فرفعت راسی فاذا انابسحابة قداظللتنی وفنظرت فاذا فيها جبريل.فناداني .فقال ان الله قدسمع قول

قومک لک، ما ردوا علیک ، وقدبعث الله الیک ملک الجبال لتأمره بماشئت فیهم . فنادانی ملک الجبال، فسلم علی ثم قال :یامحمد ذلک فماشئت ان شئت ان اطبق علیهم الاخشبین ای لفعلت والاخشبان هما جبلا مکة ابوقبیس والذی یقابله وهو قعیقعان .قال النبی ﷺ بل ارجو ان یخرج الله (عزوجل) من اصلابهم من یعبد الله(عزوجل) وحده لاشریک به شیئا.[۱۸۳] **ترجمه**: حضرت عائشه رضي الله عنها وايي يو وخت ما د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې آيا پر تا باندي داحد تر ورځي هم سخته ورځ راغلې ده ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل هو! ستا دقوم دلاسه مي چې څه ناکردي ليدلي هغه ليدلي خو تر ټولو زيات او سخت مصيبت هغه ؤ چې دعقبې په ورځ ورسره مخ سو چې دعبدياليل بن عبد کلال زوی ته ورغلم دعوت مي ورکی خو هغه زما خبره اونه منله نو زه په داسي حال کي چې غمونو او حسرتونو اخيستی وم بيرته روان سوم ، هيڅ په ځان نه وم خبر، تر څو قرن ثعالب ته را ورسيدم دلته متوجه سوم ،پورته مي وکتل که ګورم يوه ټوټه وريځ مي پرسر روانه ده او سايه را باندي کوی ،په ځير مي ورته وکتل که ګورم چې جبرئيل عليه السلام په کښې دی ،آوازيې راته وکی او راته وی فرمايل ستا قوم چې څه خبري درته وکړی هغه الله تعالی واورېدی ،نو اوس الله جل جلاله دغرونو ملائکه درته را ليږلی ده ،اوس ستا خوښه چې څه امر ورته کوی هغه به هم داسي کوی ،په دې پسې دغرونو ملائکي ږغ راوکی ،سلام يې راباندي واچاوه او راته وی ويل : اې محمد ﷺ !ستا خوښه څه امر راته کوی؟که ته امر راته کوی چې دا دواړه غرونه(ابو قبيس او قيقعان چې اخشين ورته وايي) ورباندي راچپه کړم ، نو همداسي به وکړم ، خو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل نه زما داهيله ده چې کيدای سي الله تعالی له دوی څخه داسي نسل پيدا کړی چې يوازي ديوه الله جل جلاله عبادت به کوي او هيڅ شريک به نه ورسره نيسي

د رسول الله ﷺ له دې جواب څخه دده شخصيت، عظمت او دده دمبارکو اخلاقو، رفعت او اوچتوالی ښه ښکاريږي اوددې جواب په اورېدو سره سليم عقل دا حکم کوی چې رښتيا هم رسول الله ﷺ د دومره عظيم شخصيت او لوړ اخلاقو درلودونکی ؤ چې انسانی عقل يې له ادراک څخه عاجز دی.

[۱۸۳] صحيح البخاري کتاب بدء الخلق ۴۵۸/۱، مسلم باب مالقی النبی ﷺ من اذی المشرکين والمنافقين ۱۰۹/۲.

لنډ داچې رسول الله ﷺ په دې الهي او غیبي نصرت او کومک چې الله تعالی له آسمان څخه ورته رالیږلی وُ، ډیر ډاډه او مطمئن سوو، غمونه او حسرتونه یې له زړه څخه ووتل او په پوره ډاډ سره دمکې پرخوا وړاندي ولاړی ترڅو وادي نخله ته ورسیدی، هلته څو ورځي پاته سو، هغه وخت په دې ځای کي یوازي دالسیل الکبیر اوالزیمه سیمی داوسیدونکو وړوي ځکه هلته اوبه او آبادي وی، خو موږ له تاریخي مصادرو څخه دامعلومه نه کړل سوه چې رسول الله ﷺ دلته په کومه سیمه کي وسیدلی وُ په همدې موده او ځای کي الله تعالی رسول الله ﷺ ته یوه ډله پیریان هم راولیږل، قرآن کریم دوه ځایه ددې پیریانو یادونه کوي او فرمایي: وَإِذْ صَرَفْنَا إِلَيْكَ نَفَرًا مِّنَ الْجِنِّ يَسْتَمِعُونَ الْقُرْآنَ فَلَمَّا حَضَرُوهُ قَالُوا أَنصِتُوا فَلَمَّا قُضِيَ وَلَّوْا إِلَىٰ قَوْمِهِم مُّنذِرِينَ قَالُوا يَا قَوْمَنَا إِنَّا سَمِعْنَا كِتَابًا أُنزِلَ مِن بَعْدِ مُوسَىٰ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ يَهْدِي إِلَى الْحَقِّ وَإِلَىٰ طَرِيقٍ مُّسْتَقِيمٍ. يَا قَوْمَنَا أَجِيبُوا دَاعِيَ اللَّهِ وَآمِنُوا بِهِ يَغْفِرْ لَكُم مِّن ذُنُوبِكُمْ وَيُجِرْكُم مِّنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ ٣١.

**ترجمه**: اویادکړه هغه وخت اې محمد ﷺ! کله چې وګرځول موږ تاته یوه ټولی له پیریانو څخه چې غوږ به یې ایښوی قرآن ته، نو کله چې حاضر سول دوی دې قرآن ته وویل دوی په خپل مینځ کي چې سئ تاسي اې پیریانو! بیا کله چې تمام سو د قرآن تلاوت پیرته وګرځېدل قوم ته بیرونکي له عذابه که هم هغسي کافران پاته سي، وویل دوی اې قومه زموږ بیشکه موږ واورېدل داسي یو کتاب چې نازل کړل سوی دی وروسته له موسی ﷺ په دې حال کي چې تصدیق کوونکي موافق دي له دوی کتابونو سره چې پخوا له دې نه وُ، لاره ښیي حق دین ته او لاري سمی ته، اې قومه زموږ! قبول کړی تاسي قول دبلونکي دالله ﷻ او ایمان راوړی پرده باندي چې مغفرت درته وکړي الله ﷻ تاسي ته ګناهونه ستاسي، او خلاص به کړي الله ﷻ تاسي له عذاب دردناک څخه، بل ځای په سورة جن کی داسي فرمایي:

قُلْ أُوحِيَ إِلَيَّ أَنَّهُ اسْتَمَعَ نَفَرٌ مِّنَ الْجِنِّ فَقَالُوا إِنَّا سَمِعْنَا قُرْآنًا عَجَبًا يَهْدِي إِلَى الرُّشْدِ فَآمَنَّا بِهِ وَلَن نُّشْرِكَ بِرَبِّنَا أَحَدًا سورة جن **ترجمه**: ووایه (اې محمده ﷺ! دوی ته) وحي راغلی ماته چې بیشکه شان دا چې واورېدی (قرائت زما) یوې ټولی له پیریانو څخه نووویل (دوی نورو قومونو خپلو ته کله چې بیرته ورغلل چې بیشکه موږ واورېدی

یو قرآن عجیب په فصاحت او بلاغت سره چې هدایت کوي رشد (ایمان او حق) ته نو ایمان راوړی موږ پرهغه قرآن او هرګز به شریک نه کړو وروسته تردې ورځې له رب خپل سره بل هیڅوک.

ددې آیتونو له سیاق او همداراز ددې پیښې په هکله رانقل سوو روایتونو څخه راڅرګندیږي چې رسول الله ﷺ ترهغو دپیریانو دډلي په راتګ خبرنه ؤ څوچې الله جل جلاله دهمدې آیتونو په ذریعه خبرورکی او رسول الله ﷺ ته دادپیریانو لومړی ځل راتګ ؤ او له احادیثو څخه داپه ډاګه کیږي چې په دې پسې درسول الله ﷺ حضورته دپیریانو تګ راتګ څوځله تکرار سوی دی ،دپیریانو داراتګ او ددوی اسلام منل په حقیقت کي یو غیبي کومک ؤ چې الله تعالی دخپل غیب مکنون له خزانې څخه دهغه دلښکرو په واسطه له رسول الله ﷺ سره وکی کوم چې له الله تعالی پرته بل څوک ورباندي خبرنه دی،اوبل داچي ددې پیښې په هکله رانازل سوو آیتونو درسول الله ﷺ ددعوت دبري زیری هم ورکاوه اودایې په ډاګه اعلانوله چې د ځمکي پرمخ هیڅ قوت هم ددې دعوت مخ نه سي نیولای او نه یې له خپل څخه پرشاکولای سي لکه فرمایي چې: وَأَنَّا ظَنَنَّا أَن لَّن نُّعجِزَ اللَّهَ فِي الأَرضِ وَلَن نُّعجِزَهُ هَرَبًا ١٢. سورة جن. **ترجمه**: اوبیشکه موږ یقین کوی چې د سره به موږ عاجز نه کړو الله په ځمکه کي (چې پټ او خلاص سو ورڅخه) او دسره به نه عاجز کوو موږ دغه (الله) په تیښتي سره (که وتښتو ورڅخه) دالله تعالی په دې بشارتونو او کومکونو سره درسول الله ﷺ له زړه او دماغ څخه غمونو او تشویشونو کوچ وکی ،هغه په داسي حال کي له طائف څخه راوتلی ؤ چې په سینه کي یې دنورو غمونو ځای نه ؤ ،ناهیلي او ناامیدي یې سترګو سترګو ته کېدله ، خلګو یوازې نه چې خبره یې منلی نه وه بلکه له خپلي سیمي څخه یې راشړلی ؤ خودلارې په اوږدو کي الله تعالی داسي زیری او غیبي کومکونه ورسره وکړل چې غمونه او دردونه یې ټول هیرسول، په ټینګ عزم سره دمکې په طرف ولاړی ،ترڅو هلته له نوي عزم او لویې روحیې سره خپل دعوت مخ په وړاندي یوسي او خلګو ته دالله تعالی دین ورسوي.

په دې وخت کې زيدبن حارثه رضي الله عنه ورته وايي جنابه ! ﷺ ته څنګه بيامکې ته ننوځې په داسې حال کې چې دمکې خلګوته ددې ځای پرېښودوته اړکړی يې؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :اې زيده رضي الله عنه !داحالات چې ته ګوري الله به خامخا موږ ته دنجات اوخلاصون لارپيداکوي الله تعالی حتما دخپل دين مرسته کوي اوخپل نبي ﷺ ته به بری ورپه برخه کوي رسول الله ﷺ روان سو ترڅودحراء لمنې ته ورسيدی هلته معطل سو اوهغه ځايه يې دخزاعه کورنۍ يوسړي(اخنس بن شريق) ته حال وليږی اوله هغه څخه يې دپناه غوښتنه وکړه،خوهغه معذورت وغوښتی او وی ويل : چې زه په خپله حليف يم (دتړون اوعهدخاوند يم)اوحليف چاته دپناه ورکولو حق اوصلاحيت نه لري نوبيارسول الله ﷺ سهيل بن عمرو ته پيغام ورولیږی چې ده ته پناه ورکړي ، سهيل په جواب کی ورته وويل نبي عامر دبني کعب په مقابل کې چاته پناه نه سي ورکولی ، نورسول الله ﷺ مطعم بن عدي ته دپناه غوښتني پيغام واستوي مطعم په جواب کي ورته وويل هو! زه ستاپناه پرغاړه اخلم ،نوريې خپله وسله راواخيستله زامن اودقوم خلګ يې راوغوښتل ورته وی ويل : خپلي وسلې راواخلئ اود کعبې شريفي سره شاوخوا کي ودرېږی ځکه مامحمد ﷺ پناه ورکړی ده بيايې محمد ﷺ ته پيغام واستوی چې اوس راځه ،مکې ته رادننه سه نورسول الله ﷺ هم په داسي حال کي چې زيدبن حارثه رضي الله عنه هم ورسره ؤ مکې ته راننوتی اومسجد حرام ته يې تشريف يووړی،په دې وخت کي مطعم بن عدي پرځپله سپرلۍ ودرېدی اواعلان يې وکی چې اې قريشو !مامحمد ﷺ ته پناه ورکړی ده ،نوربه هيڅوک غرض نه ورسره لري،هلته رسول الله ﷺ حجراسود ته ورغلی مچ يې کی،دوه رکعته لمونځ يې وکی بياخپل کورته راستون سو مطعم ،زامن يې اودقوم خلګ يې هم داسي مسلح شاوخواراوان ؤ ترڅو رسول الله ﷺ خپل کورته دننه سو ،ويل کيږي چې ابو جهل له مطعم بن عدي څخه پوښتنه وکړه چې تامحمد ﷺ ته پناه وزکړه اوکه دهغه دين دي ومنی اودهغه پيروکار سوی؟مطعم ورته وويل : ماپناه ورکړه ، نوابوجهل ورته وويل : چاته چې

تاپناه ورکړی ده موږ هم پناه ورکوو .[١٨٤] رسول الله ﷺ د مطعم بن عدي دا نیکي هیڅکله هم هیره کړې نه ده ، هلته د بدر په ورځ چې مسلمانانو یو شمیر مشرکان په اسارت نیولي ؤ او جبیر بن مطعم د ځینو بندیانو د آزادولو په خاطر د رسول الله ﷺ حضور ته راغلی ؤ ، رسول الله ﷺ داسي وفرمایلي ؤ : لوکان المطعم بن عدی حیا ثم کلمنی فی هؤلاء النتنی لترکتهم له .[١٨٥]

**ترجمه**: که چیري مطعم بن عدي ژوندی وای او ددې بندیانو په هکله یې د رته خبره کړې وای نو ما به دده په خاطر دوی آزاد کړي وای .

## «نورو قبائلو ته د سید البشر ﷺ اسلامي بلنه»

د بعثت په لسم کال د ذی القعدې په میاشت کي چې د (٦١٠ م) کال د جون د وروستیو او یا جولائي له لومړیو سره سمون خوري ، رسول الله ﷺ له طائف څخه مکې ته راستون سو او د لته یې بیا خلک او قبائلي د اسلام طرف ته رابلل او څرنګه چې د حج وخت راتلونکی ؤ نو خلک له هر لیري او نژدې ځایه څخه د حج په خاطر سپاره او پیاده مکې ته راتلل ، رسول الله ﷺ به له دې موقع څخه په استفادې سره هري قبیلې ته جلا جلا ورتلی او د اسلام بلنه به یې ورکوله او د ملاتړ غوښتنه یې ورڅخه کوله او په دې سره یې د نبوت له څلورم کال څخه پیل سوی لړی یو ځل بیا راژوندی کړه .

## «هغه قبیلې چې د سید البشر ﷺ په دعوت اسلام ته رابلل سوي دی»

امام زهري رحمة الله علیه وایي د هغو قبیلو څخه چې رسول الله ﷺ دوی ته تشریف وروړی او اسلام ته یې رادعوت کړی دي ، بنو عامر بن صعصعه ، محارب بن خصفه ، فزاره ، غسان ، مرة حنیفه ، سلیم ، عبس ، بنو نصر ، بنو البکاء ، کلب ، حارث بن کعب ، عذره ، حضارمه خوله دي ټولو څخه یوه قبیله هم په اسلام مشرفه نه سوه .[١٨٦]

خو یاد و نه باید وکړو دا قبیلې چې امام زهري رحمة الله علیه یې نومونه یاد کړي دي ټولي په یوه کال یاد حج په یوه موسم کي اسلام ته نه دي رابلل سوي بلکه دا د نبوت له څلورم کال څخه بیا د هجرت څخه مخکي تر وروستني حج پوري چې لس کاله کیږي اسلام

---

[١٨٤] د طائف د سفر تفصیلات موږ له دي کتابونو څخه اخستی دی ابن هشام ١/ ٢١٩ ، ٤٢٢ ، رحمة للعالمین ١/ ٧١ ، تاریخ اسلام للنجیب ابادی ١/ ١٢٣ ،

[١٨٥] صحیح البخاری ٢/ ٥٧٣ .

[١٨٦] ترمذی مختصر السیرة للشیخ عبدالله ص ١٤٩ .

ته رابلل سوي دي ،[۱۸۷] اودانه سو ویلای چې فلانی قبیله په فلاني کال اسلام ته رابلل سوی ده ، که څه هم علامه منصوري رحمة الله علیه دځینو قبیلو نومونه اخیستي اودایې ویلي دي چې داقبیلې دبعثت په لسم کال اسلام ته رادعوت سوي دي ابن اسحاق اسلام ته دځینو قبایلو د رابللو کیفیت او د دوی جوابونه بیان کړي دي چې موږ یې لنډیز په لاندي ډول وړاندي کوو .

**بنو کلب** : رسول الله ﷺ ددې قبیلې یوې ښنې ته چې بنو عبد الله نومیده ورغی د الله جل جلاله طرف ته یې راوبلل ، اودملاتړ غوښتنه یې ورڅخه وکړه اودایې ورته وویل : چې دې له ځانه سره بوزي اودخپلو خبرو په ترڅ کي یې داهم ورته وفرمایل : اې دعبد الله اولادې! الله تعالی ستاسي په نیکه ډیر غوره شرم اېښی دی خونوموړي قبیلې درسول الله ﷺ دعوت ومانه .

**بنو حنیفه** : رسول الله ﷺ دوی ته ورغی دا سلام بلنه یې ورکړه ،داسلام غوښته یې ورڅخه وکړه اودخپل تګ پیشنهاد یې ورته وکی خوددې قبیلې خلکو په ټولو عربو کي ډیر خراب او ناوړه جواب ورکی .

**عامر بن صعصه** :رسول الله ﷺ دې قبیلې ته هم ورغلی ،دالله جل جلاله دین ته یې را وبلل اوله دوی سره دتګ هیله یې ورته څرګنده کړه ،په جواب کي له دوی څخه یوه سړي چې (بحیره بن فراس) نومیدی داسي ورته وویل قسم په خدای که زه دا ځوان له قریشو څخه خپل کړم نوټول عرب به وربانديي وخورم یعني ټول عرب به دځان کړم ، بیایې رسول الله ﷺ ته وویل ښه دا راته ووایه که چیري موږ ستاپردې دین بیعت درسره وکړو بیاالله جل جلاله ددښمنانو په وړاندي تاته بری درپه برخه کړي نوهغه وخت به بیا دکارونو واګي موږ ته راکوی اوکه څنګه؟رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : دکارونو واک اواختیار له الله جل جلاله سره دی ،هغه چاته یې ورکوي چې خوښه یې وي نوبیاهغه سړي ورته وویل ته داغواړي چې موږ له عربو څخه ستا د دفاع په لارکي خپل سرونه قربان کړو خوکله چې الله جل جلاله بری درکړي نوبیابه واک اوقدرت له بل چاسره وي نوموږ ستادې دین ته اړتیا نه لرو ،په دې ترتیب سره دې قبیلې هم اسلام ونه مانه .

---

[۱۸۷] رحمة للعالمین ۱/ ۷۴، تاریخ اسلام ۱/ ۱۳۵.

خو کله چې ددې قبیلې خلک تر حج وروسته خپل وطن ته ستانه سول هلته یې خپل مشرته چې دکمزورۍ او زړښت له وجې حج ته نه ؤراغلی) ته داکیسه وکړه او ورته وی ویل: دقریشو دبني عبدالمطلب دکورنۍ یوځوان چې دنبوت دعوه یې کوله موږ ته راغی او دایې راځخه وغوښتل چې موږ دده ملاتړ وکړو ،له ده سره ودرېږو او هغه خپلې سیمې ته راولو ، بوډا چې داخبري واورېدې غبرګ لاسونه یې پر سر کښېښول او وی ویل اې دعامر اولادې !آیا ستاسې داخطا جبران کېدای سي؟آیا دا له لاسه وتلی مرغه بیرته لاس ته راتلای سي ؟قسم په هغه ذات چې دفلاني نفس دهغه په اختیار کې دی چې اسماعیلي کله هم په دروغو دنبوت دعوه نه ده کړې ،یقینا چې داحق دی هغه وخت ستاسو عقل چیرته ؤ.[188]

## «له مکې څخه خارج ایمانی بر پښناوې(وړانګې)»

لکه څرنګه چې رسول الله ﷺ قبیلې اوهیئتونه اسلام ته رابلل همدا رازیې ځینې افرادو او وګړې هم دالله تعالی دین ته را دعوت کړل چې دځینو عکس العمل هم ښه ؤ اوتردې موسم څه موده وروسته ځینې افراد په اسلام مشرف سول ،راځی چې ددې پیښې په هکله لاندنۍ څرګندوني سره وواېو .

(۱)**سوید بن صامت** : دیثرب اوسیدونکی ،ډیرځیرک اوذکي شاعر ؤ اودخپلې سنجیدګي شاعري ،شرف اونسب له امله یې په کامل مشهور ؤ ،مکې ته دحج لپاره راغلی ؤ ،رسول الله ﷺ داسلام بلنه ورکړه ، نوده ورته وویل :کېدای سي داکوم څه چې له تاسره دي داسې وي لکه زما سره چې دي ،رسول الله ﷺ ورته وفرمایل :له تاسره څه دي ،سوید ورته وویل :زما سره دلقمان حکمت دی ،رسول الله ﷺ ورته وویل :ماته یې وړاندې کړه ،نوهغه هم له دې حکمت څخه څه ورته تیرکړل ، نوبیارسول الله ﷺ ورته وفرمایل داغوره کلام دی خوهغه څه چې له تاسره دي تردې غوره او افضل دي هغه قرآن کریم دی چې الله جل جلاله پرما نازل کړیدی ، هغه رڼا اوهدایت دی ،بیایې یوڅوآیتونه ورته تلاوت کړل اواسلام ته یې راوبالی ،سوید هم بلنه ومنله اوپه اسلام مشرف سو اووې ویل :داترټولو غوره قول دی ،خو کله

---

[188] ابن هشام ۱/ ۴۲۴، ۴۲۵.

چط بیرته مدینې ته ستون سو هلته دبعاث په جنګ ووژل سو[189]،سوید دنبوت د یوولسم کال په پیل کې په اسلام مشرف سوی ؤ[190].

(۲)**ایاس بن معاذ**:دیثرب اوسیدونکی ؤ نوموړی نوی رسیدلی ځوان ؤ چې داوس قبیلې له وفد سره مکې ته راغلی ؤ،دادنبوت دیوولسم کال پیل اودبعاث دجنګ څخه مخکې پیښه وه نوموړي وفد په دې نیت راغلی ؤ چې دخزرج په مقابل کې له قریشو له حلف اوتړون وکي ،هغه وخت داوس اوخزرج ترمینځ ددښمنی اور تود ؤ،داوس قبیلې شمیره هم کمه وه ،خوکله چې رسول الله ﷺ په نوموړي وفد خبر سو تشریف یې وروړ،او ورته وویل : تاسي چې دکوم مقصد لپاره دلته راغلي یاست آیاترهغه غوره شی قبلوی؟دوی ورته وویل : هغه په څه شی وي ؟رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : زه دالله جل جلاله رسول یم خلګوته یې رالیږلی یم زه انسانان دې رابولم چې یوازي دیوه الله جل جلاله عبادت وکړي ،هیڅ شریک ورسره ونه نیسی الله جل جلاله پرما کتاب هم نازل کړی دی ،بیایې داسلام یادونه ورته وکړه ،قرآن کریم یې ورته تلاوت کی ،نوایاس بن معاذ وویل :اې قومه !قسم په خدای جل جلاله داترهغه څه چې تاسي پسې راغلی یاست ډیرغوره دی ،په دې وخت کې دوفد له غړو څخه یوسړی چې(ابولحسیر انس بن رافع) نومیدی یوموټې خاوري راواخیستی اودایاس مخ ته یې ورو شیندلی او ورته وی ویل :زما په عمر قسم چې موږ ددې لپاره نه یو راغلي ،زموږ د راتلو مقصد بل څه دی ،ایاس چوپ سو او رسول الله ﷺ هم ولاړسو ،وفد هم وروسته ترديې چې له قریشو سره په تړون اوعهدکولو کې ناکام سول بیرته مدینې ته ستانه سول.

مدینې ته له رسیدو سره ایاس مړسو خودځکندن په وخت کې یې :لااله الاالله، الله اکبر، الحمدالله ،سبحان الله .په ژبه جاري ؤ ،نوبیشکه الله هغه مسلمان مړسوی دی.

(۳):**ابوذرغفاري** رضي الله عنه :دیثرت اوشاوخوا سیمو اوسیدونکی ؤ ،کله چې دسوید بن صامت او ایاس بن معاذ په ذریعه درسول الله ﷺ دبعثت خبر مدینې ته ورسیدی

---

[189] ابن هشام ۱/ ۴۲۵، ۴۲۷، رحمة للعلمین ۱/ ۷۴.

[190] تاریخ اسلام للنجیب ابادی ۱/ ۱۲۵.

نو داخبر دابوذر رضی الله عنه غوږ ته هم ورسیدی او هم دایې داسلام راوړلو سبب سو، امام بخاري رحمه الله له ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت کوي وایي :

قال ابوذر کنت رجلا من غفار ،فبلغنا ان رجلا قد خرج بمکة یزعم انه نبی ،فقلت لاخی انطلق الی هذا الرجل وکلمة واتنی بخبره ، فانطلق فلقیه ثم رجع فقلت :ماعندک؟فقال : والله لقد رأیت رجلا یأمر بالخیر وینهی عن الشر، فقلت له :لم تشفنی من الخبر ،فاخذت جرابا وعصا ثم اقبل الی مکة فجعلت لااعرفه ،واکره ان أسال عنه واشرب من ماء زمزم واکون فی المسجد قال فمربی علی فقال : کأن الرجل غریب؟قال قلت نعم : فانطلق الی المنزل فانطلقت معه لایألنی عن شي ولاأسأله ولااخبره ، فلما اصبحت غدوت الی المسجد لاسال عنه ولیس احد یخبرنی عنه بشئ قال فمربی علی فقال :امازال الرجل یعرف منزله بعد؟قال قلت :لا قال فانطلق معی ،قال :فقال : ما امرک؟ وماقدمک هذه البلدة؟قال قلت له :ان کنت علی اخبرتک ،قال فانی افعل ،قال :قلت له بلغنا انه قدخرج ههنا رجل یزعم انه نبی الله ،فارسلت اخی یکلمه ،فرجع ولم یشفنی من الخبر فاردت ان القاه ، فقال له :امانک قدرشددت ،هذا وجهی الیه ، ادخل حیث ادخل ،فانی ان رأیت أحدا اخافه علیک قمت الی الحائط کانی اصلح نعلی وامض أنت فمضی ،ومضیت معه حتی دخل ودخلت معه علی النبی صلی الله علیه وسلم فقلت له :اعرض علی الاسلام فعرضه ،فأسلت مکانی ،فقال لی :یاأباذر أکتم هذا الامر وارجع الی بلدک ،فاذا بلغک ظهورنافاقبل ،فقلت :یامعشر قریش : انی اشهد ان لااله الا الله واشهدان محمد عبده ورسوله ، فقالوا قوموا الی هذا الصابی ،فقاموا ،فضربت لاموت ،فأدرکنی العباس ،فاکب علی،ثم اقبل علیهم فقال : ویلکم تقتلون رجلا من غفار؟ومتجرکم وممرکم علی غفار فاقلعوا عنی ،فلماان اصبحت الغد ،جعت فقلت مثل مال بالامس فقالوا قوموا الی هذاالصابي وصنع بی ماصنع بالامس ،فادرکنی العباس فاکب علی وقال ومثل مقالته بالامس.[۱۹۱]

**ترجمه:** ابوذر رضی الله عنه فرمایي زه د بني غفار قبیلې یو غړی وم، خبر سوم چې په مکه کې یو داسې څوک پیدا سوی دی چې ځان نبي بولي ،ماخپل ورور ته وویل ته دې سړي ورسه خبري ورسره وکړه اوماته یې احوال راوړه . ،هغه ولاړ، ملاقات یې ورسره وکی اوبیرته راغی ماپوښتنه ورڅخه وکړه چې څه خبردي راوړی دی ؟ده

---

[۱۹۱] صحیح البخاری باب قصة زمزم ۱/ ۴۹۹، ۵۰۰، وباب اسلام ابی ذر ۱/ ۵۴۴، ۵۴۵.

راته وویل قسم په الله جل جلاله چې ما یوداسې سړی ولیدی چې په نیکۍ یې امر اوله بدۍ څخه یې نهي کوله ،ماورته وویل : پوره خبردي نه دی راوړی زړه مې پرې داده نه سو ،نوبیامې خپله دتوښې توبره اولکړه راواخیستله اودمکې په طرف روان سوم ،مکې ته ورسیدم خورسول الله صلی الله علیه وسلم مې نه پیژندی اوداهم ښه نه راته ښکاره کېدله چې له چاڅخه یې پوښتنه وکړم ،دزمزم اوبه مې څښلې اوپه مسجد حرام کې به وم بالاخره حضرت علي رضی الله عنه راغی راته وویل : بیګانه معلومېږې ماورته وویل : هو !ده راته وویل نوراځه زما سره کورته ولاړسه ،زه هم ورسره ولاړم ، خونه هغه دڅه شي پوښتنه راڅخه کوله اونه ماپوښتنه ورڅخه کوله اونه مې څه ورته وویل کله چې سهار سو نوبیامسجدحرام ته ولاړم ترڅودرسول الله صلی الله علیه وسلم په اړه څه معلومات ترلاسه کړم ،خوهیڅوک هم نه ؤ چې درسول الله صلی الله علیه وسلم په هکله یې معلومات راکړی وای ، بیا حضرت علي رضی الله عنه راته راغی وی لیدم راته وی ویل دې سړی تراوسه خپل ځای نه دی پیژندلی ؟ماورته وویل نه دي راته وویل ښه نوراځه زماسره ولاړسه ،بیایې راته وویل : داراته ووایه ستاکار څه دی ؟اودڅه په خاطر دې ښارته راغلی یې ؟ماورته وویل که ته زما راز ساتی نودرته وبه وایم ،هغه راته وویل : صحیح ده ساتم یې ماورته وویل : زه خبرسوی یم چې دلته یوداسې څوک پیداسوی دی چې ځان دالله جل جلاله نبي بولي ،ماخپل ورور دلته رالیږلی ؤ چې راسي خبري ورسره وکړي ،هغه بیرته راستون سو خوڅه اطمینان اوتسلي بخش خبر یې نه ؤ راوړی ،نومې تصمیم ونیوی چې زه باید په خپله له دې سړي سره ووینم ، حضرت علی رضی الله عنه راته وویل ته صحیح ځای ته رارسیدلی یې ، ګوره زه دهم هغه په طرف روان یم ، په کومه چې زه تلم په هغه طرف راپسې راځه اوکه دلاري په اوږدو کې له چاسره مخامخ سوو چې ستا لپاره خطرناکۀ نوزه به ددیوال خواته په دې بهانه دریږم چې ګویا زه خپلې څپلۍ جوړوم خوته به تیریږې اوخپله لاربه وهې ، بیاحضرت علي رضی الله عنه روان سو زه ورپسې وم ترڅوهغه ننوتی اوزه هم ورپسې درسول الله صلی الله علیه وسلم حضورته ورسیدم اوعرض مې ورته وکې چې ماته اسلام وړاندي کړه رسول الله صلی الله علیه وسلم اسلام راته وړاندي کی زه پر هم هغه ځای مسلمان سوم ،بیارسول الله صلی الله علیه وسلم راته وویل ابوذره!داخبره پټه ساته اوبیرته خپل وطن ته ولاړسه اوکله چې زموږ دبري

خبر در ورسیدی نو بیاراسه ،ماورته وویل په هغه ذات قسم چې ته یې په حقه رالیږلی یې ،زه به د دوی په مینځ کي داپه ډاګه اعلانوم ،بیازه مسجد حرام ته راغلم قریش ناست ؤ ،ماورته وویل : اې قریشو واوارئ ! اشهدان لااله الاالله واشهد ان محمد عبده ورسوله .

دوی وویل دابې دینه راونیسی ،یو ځل خلک راولاړ سول اوپه مرګ یې ووهلم ، ترڅو حضرت عباس شراغلی پرمایې ځان واچاوه بیایې قریشو ته مخ ورواړاوه او ورته وی ویل : تباه سی ! تاسي دغفار قبیلې یوسړی وژنی ،په داسي حال کي چې ستاسي تجارت اوستاسي لار په غفار قبیله پرته ده ، نوپه دې سره خلګو زه پرېښوولم او راڅخه ولاړل ، سباسهار بیا هلته ورغم پرونی خبره مي بیااعلان کړه،خلګو بیاوویل : دابې دینه ونیسی ،اوبیایې هم هغه پرونۍ معامله راسره وکړه (ډیرېې ووهلم)داځل بیاحضرت عباس رضي الله عنه ورڅخه خلاص کړم اوهم هغه پرونۍ خبره یې ورته وکړه .

(۴) : **طفیل بن عمرو الدوسی** رضي الله عنه : دایوشریف انسان دعقل ،پوهي خاوند، ځیرک شاعر اودخپل قوم مشر ؤ ،دده قبیلې (دوس) دیمن پرځینو برخوحاکمیت اویاڅه ناڅه تسلط درلودی ، نو موړي دنبوت په یوولسم کال مکې ته راغی ،دمکې خلګو یې ډیر تود هرکلی وکی اوډیر قدر اوعزت یې وکی اودایې ورته وویل اې طفیله!تازموږ ښار ته تشریف راوړی اوداشخص چې زموږ په مینځ کي پیداسوی دی زموږ لپاره دډیرو مشکلاتو سبب سوی دی ،زموږ اتحاد ته یې صدمه رسولې ده ،زموږ یووالی یې ختم کړیدی ،دده خبري لکه دسحر اوجادو په څیر اثر او اغیزه لري ،دپلار ،زوی ،وروڼو اومیره اوښځي ترمینځ بیلتون راولی ،موږ ویریږو چې دا مشکلات کوم چې موږ ورسره مخ یو ته اوستاقوم هم ورسره لاس وګریوان سي ،نوته به له ده سره هیڅ خبري نه کوی اوله هغه څخه هیڅ هم باید وانه وری حضرت طفیل رضي الله عنه وایي دې خلګو ماته هم داخبري کولی تردې چې ماکلکه اراده وکړه چې له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره به نه خبري کوم اونه به څه ورڅخه اورم ، آن تردې چې کله سهارزه مسجد حرام ته ولاړم نوپه غوږونو کي مي پمبه کیښوول چې هسي نه درسول الله صلی الله علیه وسلم کومه خبره مي ترغوږو سي ، رسول الله صلی الله علیه وسلم له کعبې سره

لمونځ کاوه اوزه يې په طرف کې ودرېدم اوځرنګه چې دالله تعالی اراده داسې وه چې زه به د رسول الله ﷺ څه خبرې اورم نو هم داسې وسول ما ډيره غوره خبره ورڅخه واورېدله ،بيامي په زړه کی وويل : مورديې راباندې بوره سي زه يو ځيرک اوپوه شاعريم ،ښه اوبد پيژنم ،نوبيا ولې ددې سړي خبرې نه اورم؟که يې خبرې ښيې او صحيح وی وبه يې منم او که خرابې وی نو نه به يې قبلوم ، دا سوچ مې وکی او هم دلته پاته سوم ترڅو رسول الله ﷺ کور ته روان سو زه هم ورپسې سوم ،او کله چې رسول الله ﷺ کور ته ننوتی زه ورپسې وم او هلته مې دخپل راتګ دخلګو دخبرو په غوږونو کې دپمبوايښوول اوله دې سره سره درسول الله ﷺ دځينو خبرو اورېدو ټول تفصيلات ورته بيان کړل ،بيامې عرض ورته وکی چې ته خپلې خبرې راته واوروه ،رسول الله ﷺ راته وړاندې کړی اوقرآن کريم يې راته تلاوت کی ،الله ﷻ شاهد دی چې ماکله هم تردې غوره قوم اوتردې دزيات اوعدل او انصاف خبرې نه وی اورېدلی ،نوهمدا وه چې هم هلته په اسلام مشرف سوم اودحق شهادت مې اداکی يعنی دشهادت کلمه مې وويله ،بيامې رسول الله ﷺ ته عرض وکی چې زماقوم زماخبرې مني ،زه بيرته ورځم اودوی اسلام ته رابولم ، نوته الله تعالی ته سوال وکړه چې ماته څه نښاني راکړې ،رسول الله ﷺ دعا ورته وکړه ،حضرت طفيل رضي الله عنه ته چې کومه نښه ورکړل سوی وه هغه داوه چې کله هغه خپلې قبيلې ته ورلنډ سو نوالله تعالی دهغه په مخ کې لکه څراغ داسې رڼا پيداکړه ده په دې وخت کې دعاوکړه او وی ويل اې الله ﷻ !دمخ پرځای دارڼا په کوم بل ځای کې پيداکړه ، هسې نه چې خلګ ونه وايې چې دامثله ده ، نودعايې قبوله سوه اودارڼايې هم شاته ولاړه ،بيايې خپل پلار اوښځه اسلام ته راوبلل اوهغه دواړه مسلمانان سول خوهغه په داسې حال کې هجرت وکی چې دخپل قوم اويا(۷۰) يااتيا(۸۰)کورنۍ ورسره وې ،حضرت طفيل رضي الله عنه داسلام لپاره ډيرخدمتونه سرته رسولی دی اوله ډيروهلو ځلو وروسته ديمامه په جنګ کې په شهادت رسيدلی دی .روح دی ښاد وي .

(۵): ضماد الازدی : نوموړی ديمن اوسيدونکی او د ازد شنوئة قبيلې غړی ؤ ،دم او چوپ يې وظيفه وه ،مکې ته راغلی هلته يې دسيمې له جاهلانو څخه واورېدل

چې محمد ﷺ لیونی دی ،ضماد وویل : زه دې سړي ته ورځم کېدای سي الله تعالی یې زما په دم جوړ کړي ورغلی او له رسول الله ﷺ سره یې ملاقات وکی او وی ویل اې محمد ﷺ !زه د مرضونودم اوچوپ کوم ،څنګه ته دم اوچوپ ته ضرورت لرې؟رسول الله ﷺ په جواب کي ورته وویل : ان الحمدالله ونستعینه من یهده الله فلامضل له ومن یضلله فلاهادی له ،واشهدان لااله الا الله وحده لاشریک له واشهدان محمدا عبده ورسول امابعد :

**ترجمه:** ټوله ثناء اوصفات خاص دالله تعالی لپاره دي ،موږ دهغه حمد اوثناء وایو اوله هغه څخه مرسته غواړو چاته چې الله جل جلاله هدایت وکړي نو هیڅوک هم هغه بې لاري کولای نه سي اوالله جل جلاله چې څوک بې لاري کړي نو هیڅوک هم هغه ته هدایت نه سي کولای او زه شاهدي وایم چې له الله جل جلاله پرته بل معبود نسته ،هغه واحد دی هیڅ شریک نه لري اوزه شاهدی وایم چې محمد ﷺ دالله جل جلاله بنده اورسول دی .

ضماد ورته وویل :داخبري یوځل بیاراته واوروه رسول الله ﷺ درې ځله ورته تکرار کړې بیا ضمادوویل:مادکاهنانو ،جادوګرانواوشاعرانو خبري اورېدلي دي خوماکله هم ستا دخبرو په څېر خبري نه دي اورېدلي ، دادسمندر تل ته رسېدلي خبري دي ،راوړه لاس دي را اوږد کړه ترڅو بیعت درسره وکړم ،په دې ترتیب سره په اسلام مشرف سو اوله رسول الله ﷺ سره یې داسلام بیعت وکړ .[192]

## «دمدینې منورې شپږ بختور انسانان»

دنبوت په یوولسم کال دحج په موسم کي چې د(۶۲۰م)کال دجولای له میاشتي سره سمون خوري اسلامي بلنې داسي نیالګي وموندل چې ډېر ژر په داسي لویو ونو بدل سو چې دکلونو ،کلونو سترېو اوظلم ځپلو مسلمانانو یې تریخې سایې لاندی دامن اوراحت ژوند پیل کی،دمکې مشرکینو چې درسول الله ﷺ دتکذیب اوله اسلام څخه دخلګو دمنع کولو لپاره کوي لاري چاري اوهلي ځلي په کار اچولي وی ،رسول الله ﷺ د دوی ددې کوښښونو دناکامولو په خاطر دا لاره نیولی وه اوداحکمت یې

---

[192] صحیح مسلم، مشکوة المصابیح، باب علامات النبوة ۲/ ۲۵۲،

په کاراچولی ؤ چې دشپې په تیاره کي به قبائلو ته ورتلی ترڅو دمکې مشرکین څه موانع ایجاد نه کړی.[۱۹۳]

یوه شپه رسول الله ﷺ ددعوت په منظور ووتی، ابوبکر صدیق رضی الله عنه اوحضرت علي رضی الله عنه هم ورسره ملګری ؤ، دبنو ذهل اوبنوشیبان بن ثعلبه هستوګنځی ته ورغلل اوداسلام په هکله یې خبري ورته وکړی، دوی که څه هم نیک اوهیله مند جواب ورکی خوفی الحاله یې اسلام قبول نه کی، په دې وخت دحضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه اوبنوذهل دیوه سړي ترمینځ دنسب دشجرې په هکله ډیر په زړه پوري سوال اوجواب هم وسو، دوی دواړه نسب پوهان ؤ،[۱۹۴] بیارسول الله ﷺ په منٰی کي له عقبی سره تیریدی چې دخلکو خبري یې ترغوږو سوی، د دوی په طرف وروان سواو ورغلی، داله یثرب څخه راغلی شپږ خوانان ؤ اوټول دخزرج له قبیلې څخه ؤ اونومونه یې دادي: (۱): اسعدبن زراره له بني النجار قبیلې څخه. (۲): عوف بن الحارث بن رفاعه ابن عفراء له بني النجار قبیلې څخه. (۳): رافع بن مالک بن العجلان، له بني سلمه قبیلې څخه. (۴) قطبه بن عامر بن حدیدة، له بني سلمه قبیلې څخه. (۵): عقبه عامر بن نابی، له بني حرام بن کعب قبیلې څخه. (٦): جابر بن عبدالله بن رئاب، له بني عبید بن غنم قبیلې څخه

دمدینې دخلګو یوه نیکبختي داهم وه چې دوی به دخپلو حلیفانو یعني دمدینې له یهودیانو څخه دا اوریدل چې ویل به یې: په دې زمانه کي یونبي مبعوث کیدونکی دی ډیر ژر به هغه راښکاره سي، موږبه دهغه متابعت اوپیروي وکړو اودهغه په ملګرتیا به تاسي لکه دعاد او ارم په شان ووژنو.[۱۹۵]

کله چې رسول الله ﷺ دوی ته ور ورسیدی پوښتنه یې ورڅخه وکړه چې تاسي څوک یاست؟ دوی ورته وویل موږ دخزرج قبیلې غړي یو، رسول الله ﷺ وفرمایل: دیهودیانو حلیفان؟ دوی وویل، هو! نورسول الله ﷺ ورته وویل: نوتاسي کښینئ چې څه خبري درسره وکړم دوی کښینستل، رسول الله ﷺ داسلام حقیقت

---

[۱۹۳] تاریخ اسلام للنجیب ابادی ۱/ ۱۲۹.

[۱۹۴] مختصرسیرت الرسول ﷺ للشیخ عبدالله ص۱۵۰/ ۱۵۲.

[۱۹۵] زادالمعاد ۲/ ۵۰/ ابن هشام ۴۲۹- ۵۴۱.

ورته بيان کی، دوی يې د الله ﷻ طرف ته را وبلل او قرآن کريم يې ورته تلاوت کی، دوی په خپل مينځ کې سره وويل داسې ښکاري چې دا به هم هغه نبي ﷺ وي کوم چې يهود يې يادونه کوي او په همدې سره تاسې بيروي او اخطارونه درکوي، نو په کار ده چې يهود د رڅخه مخکې نه سي په دې پسې دوی د رسول الله ﷺ دعوت ومانه او په اسلام مشرف سول.

د اديثرب پوه او ځيرک خلک ؤ، دوی خپل منځني جګړو چې اورونه يې لا بل ؤ ډيرستړي کړي ؤ، نو له همدې امله داهيله ورسره پيدا سوه چې کېدای سي د رسول الله ﷺ دا دعوت جګړې او جنګونه پای ته ورسوي، نو دوی رسول الله ﷺ ته داسې وويل موږ خپل قوم په داسې حال کې پرې اېښی دی چې بل څوک به د دوی په څير په عداوت او بدبختۍ نه وي اخته، هيله ده چې الله ﷻ دوی ستا په برکت سره يو کړي موږ ورځو او خلک ستا دعوت ته رابولو او دادين چې موږ ومانه دوی ته يې هم وړاندې کوو که الله ﷻ ستا په واسطه دوی سره متحد کړل نو بيا ستا په شان عزيز او معزز څوک نسته، او کله چې دا خلک مدينې ته ستانه سول نو له ځان سره يې د اسلام پيغام هم يو وړی او د همدې په واسطه د مدينې په هر کور کې د رسول الله ﷺ يادونه پيل سوه.[196]

## «د سيد البشر ﷺ د حضرت عائشې رضي الله عنها سره نکاح او واده»

په همدې کال يعني د نبوت د يوولسم کال د شوال په مياشت کې رسول الله ﷺ له حضرت عائشې رضي الله عنها عمر شپږ کاله ؤ او واده يې په مدينه کې د هجرت په لومړي کال د شوال په مياشت کې ترسره سو او د غه وخت د دې مبارکې عمر (۹) کاله ؤ.[197]

## «د اسراء او معراج د نيټې په باره د تاريخ پوهانو نظرونه»

په داسې حال کې چې د رسول الله ﷺ دعوت او تبليغ د ظلم او ستم په مينځ کې د بري لاروهله او د فتحې د افق په ليرو څنډو کې د برلاسې او غلبې دستوروګنه شا ته رڼا ترسترګو کېدله، په همدې وخت کې د اسراء او معراج پېښه وسوه، د دې پېښې د نيټې په هکله تاريخ پوهان مختلف نظرونه لري.

---

[196] ابن هشام ۱/ ۴۲۸- ۴۲۹- ۴۳۰.

[197] تلقيح فهوم اهل الاثر ص ۱۰ صحيح البخاری ۱/ ۵۵۱.

(۱) : ویل کیږي په کوم کال چې رسول الله ﷺ په نبوت مشرف سو په هم هغه کال داسراء پیښه هم وسوه داد طبراني قول دی. (۲): تربعثت پنځه کاله وروسته داپیښه سوی ده(امام نووي رحمه الله او امام قرطبي رحمه الله داقول راجح قول بولي. (۳): د نبوت دلسم کال درجب د میاشتي په اوویشتمه داسراء اومعراج واقعه پیښه سوی ده ، داقول دعلامه منصورپوري رحمه الله غوره کړی دی. (۴) : ویل کیږي چې داپیښه دبعثت د دوولسم کال درمضان په میاشت کی یعني ترهجرت شپاړس میاشتي مخکي واقع سوی ده. (۵) : ویل سوي دي چې داپیښه تر هجرت یو کال او دوې میاشتي مخکي یعني دنبوت ددیارلسم کال درېیع الاول په میاشت کي پیښه سوی ده. (۶) : یوروایت داهم دی چې داپیښه له هجرت څخه یو کال مخکي یعني دنبوت دد یارلسم کال درېیع الاول په میاشت کي واقع سوی ده ،له دې قولو څخه لومړني درې قولونه ځکه صحیح نه شمیرل کیږي چې حضرت خدیجه رضي الله عنها دنبوت دلسم کال درمضان په میاشت کي وفات سوی ده اوداخوثابته ده چې نومړی ترپنځو لمونځونو ترفرضیت مخکي وفات سوی ده اوداهم ثابته ده چې دپنځو لمنځونو اداکول داسراء په شپه فرض سوي دي.[198]

خو د درو ورستیو روایتونو په هکله ماهم داسي څه نه کړل پیدا چې له هغو څخه کوم یو غوره او راجح وبولم ، یوازي دومره ویلای سم چې داسراء سورة له سیاق څخه دا څرګندیږي چې اسراء اومعراج ډیر وروسته واقع سویدی ،حدیث پوهانو ددې پیښي ټول تفصیلات رانقل کړي دي ،موږ یې په لنډه توګه یادونه کوو.

ابن القیم وایي : دصحیح روایت مطابق رسول الله ﷺ جسما په داسي حال کي چې پربراق سپور اوجبرئیل علیه السلام ورسره ملګری ؤ له مسجد حرام څخه بیت المقدس ته بوتلل سو، هلته کښته سوبراق یې دمسجد د دروازې له یوې کړۍ سره وتړی او انبیاء علیهم السلام ته یې لمونځ ورکړ ،بیاپه همدې شپه له بیت المقدس څخه ددنیا ترآسمان پوري پورته یووړل سو ،هلته جبرئیل علیه السلام ددروازې خلاصولو اجازه وغوښتله ،نودروازه ورته خلاصه سوه اوهلته یې آدم علیه السلام ولیدی

---

[198] د دی اقوالوپه باره باندي داکتابونه وګورئ زادالمعاد ۲/ ۴۹، مختصر سیرت الرسول للشیخ عبدالله النجدی ص ۱۴۹- ۱۴۸، رحمة للعالمین۱/ ۷۶، تاریخ الاسلام للنجیب ابادی ۱/ ۱۲۴.

سلام يې ورباندي واچاوه ،هغه هم د سلام جواب ورکی ،او ښه راغلاست يې ورته
وواېه او د رسول الله ﷺ پر نبوت يې اقرار وکی ، او هم هلته الله ﷻ خپل رسول الله
ﷺ ته دده په راسته خواکي د شهيدانو او په چپه خواکي د بدبختانو ارواوي
وښوولی ،وروسته دويم آسمان ته وخيژول سو ،د ننوتلو اجازه ورته واخيستله سوه ،
رسول الله ﷺ هلته يحيى بن زکريا عليه السلام او عيسى بن مريم عليه السلام وليدل ،سلام يې ور
واچاوه، دوی دواړو د سلام جواب او ښه راغلاست ورته وويل : او دده پر نبوت يې
اقرار وکی تردې وروسته څلورم آسمان ته وخيژول سو او هلته له ادريس عليه السلام سره
مخامخ سو ،سلام يې ور واچاوه هغه د سلام جواب وکی ، هرکلی يې ورته وواېو
او دده پر نبوت يې اقرار وکی ،بيا پنځم آسمان ته وخيژول سو هلته يې هارون بن
عمران عليه السلام وليدی ،سلام ور واچاوه هغه د سلام جواب او ښه راغلاست ورته وويل
او دده پر نبوت يې اقرار وکی .

بيا شپږم آسمان ته وخيژول سو هلته يې له موسى بن عمران عليه السلام وليدی ،سلام يې ور
واچاوه هغه د سلام جواب او ښه راغلاست ورته وويل او دده پر نبوت يې اقرار وکی
خو کله چې حضرت محمد ﷺ مخ په وړاندي رهي سو نو موسى عليه السلام وژړل پوښتنه
ورځخه وسوه چې ولي ژاړي ؟ده په جواب کي ورته وويل :له دې امله ژاړم چې
ترما وروسته يو داسي ځوان په نبوت مشرف سوی دی چې زما د امتيانو په نسبت به
دده د امت زيات شمير خلک جنت ته داخليږي ، وروسته حضرت محمد ﷺ اووم
آسمان ته وخيژول سو هلته يې له ابراهيم عليه السلام سره ليدنه وسه هغه د سلام جواب او ښه
راغلاست ورته وواېه او دده پر نبوت يې اقرار وکی، بيا سدرة المنتهى ته وخيژول
سو ،وروسته محمد ﷺ ته بيت المعمور وښوول سو ، بيا د جبار خدای ﷻ حضور
ته يو وړل سو ،او رسول الله ﷺ خپل رب ته دومره ورلنډ سو چې د دوو ليندیو
دلرګي په اندازه او يا تردې هم کمه فاصله پاته وه ، هم دلته الله تعالی خپل رسول
ﷺ ته هغه څه وحي کړل چې وحي يې کړل او پنځوس لمونځونه يې ورباندي فرض
کړل ،بيا رسول الله بيرته راستون سو ترڅو موسى عليه السلام ته راورسيدی ،هغه پوښتنه
ورځخه وکړه چې الله ﷻ په څه مامور کړی؟ رسول الله ﷺ په جواب کي ورته وويل
الله ﷻ د پنځوسو لمونځونو امر راته وکی ،موسى عليه السلام ورته وويل :ستا امت

دپنځوسولمونځونو توان نه لرې ،بیرته خپل رب ته ورسه اودخپل امت لپاره دتخفیف سوال ورڅخه وکړه .

رسول الله ﷺ حبرائیل ؑ ته په داسي انداز وکتل لکه مشوره چې ځني غواړي هغه ورته وویل : صحیح ده که ستاخوښه وي نوهمدا وه چې جبرئیل ؑ بیارسول الله ﷺ دالله جل جلاله حضور ته حاضرکړو اوهغه په خپل ځای وُ ،په ځینو طریقوکي دا دبخاري شریف لفظ دی،الله جل جلاله لس لمونځونه ورڅخه کم کړل ،بیارسول الله ﷺ راکښته سو حضرت موسی ؑ یې په دې خبره خبرکی ،موسی ؑ ورته وویل ته بیرته دخپل رب جل جلاله حضور ته ورسه اودنور تخفیف سوال هم ورڅخه وکړه،په دې ډول سره رسول الله دالله تعالی اوموسی ؑ ترمینځ ترهغو پوري تلی راتلی ترڅو الله تعالی یوازې پنځه لمونځونه فرض پرېښوول بیاهم موسی ؑ ورته وویل بیرته خپل رب ته ورسه اودنور تخفیف سوال ورڅخه وکړه خورسول الله ﷺ ورته وویل نور له الله تعالی څخه شرم اوحیاراځي ،زه ورڅخه راضي او ورته تسلیم یم ،اوکله چې رسول الله ﷺ لږلیري ولاړی نوآواز وسو چې ماخپله فریضه نافذه کړه اوپرخپلو بندګانو مي تخفیف اوآساني وکړه.[199]

په دې پسې ابن القیم ددې خبري په هکله اختلاف ذکرکړی دی چې آیارسول الله ﷺ الله جل جلاله لیدلی اوکنه؟بیایې دابن تیمیه رحمه الله تحقیق رانقل کړیدی چې دهغه لنډیز داسي دی ، چې په سترګو سره دالله تعالی لیدل ثابت سوي نه دي اونه هم کوم صحابي پردې قول قائل دی ، او داچې له حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه مطلقا لیدل اوپه یل روایت دزړه لیدل رانقل سوي دي نودا لومړنی روایت چې مطلقا لیدل دي ددویم روایت سره چې دزړه لیدل دي منافي نه دی .

ابن قیم رحمه الله وایي دالله جل جلاله داقول چې وایي :ثُمَّ دَنَا فَتَدَلّٰی . **ترجمه** : بیانژدی سو (جبرئیل ؑ محمد ﷺ ته ) نوښه نژدی سو داسراء په کیسه کي ذکرسوی نژدې والی په دې آیت کي له ذکرسوي نژدېوالي سره توپیر لري ځکه دنجم سورة په دې پورته ذکرسوي آیت کي نژدېوالی دجبرئیل ؑ له نژدې والي اوتدلی څخه عبارت

---

[199] زادالمعاد ٢/ ٤٧- ٤٨.

دی لکه څرنګه چې عائشې رضي الله عنها او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه فرمايلي او همدا راز د جملې سياق هم پر همدې دلالت کوي او هلته د اسراء په حديث کې نقل سوی نژدې والی د الله تعالی له نژدې والي او تدلی څخه عبارت دی ، په دې هکله هيڅ اشکال نسته او د سورة نجم کې دا موضوع نه ده څيړل سوې بلکې هلته دا سې ويل سوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه د دويم ځل لپاره له سدرة المنتهی سره وليد او دا جبرئيل عليه السلام و چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دوه ځله په خپل اصلي شکل کې ليدی ، يو ځل يې په ځمکه کې ليدلی او بل ځای يې هلته له سدرة المنتهی سره ليدلی دی .[200] والله اعلم .

په همدې ځل د رسول الله صلی الله علیه وسلم د مبارکې سينې د څيرېدو پېښه هم سوې ده او په همدې سفر کې رسول الله صلی الله علیه وسلم ډېرشيان ليدلي دي ، رسول الله صلی الله علیه وسلم ته شيدې او شراب وړاندې سول هغه جناب صلی الله علیه وسلم شيدې غوره کړې ، نو ورته وويل سول چې د فطرت لاره درته ښوول سوې ده يا دې فطرت غوره کړې او په ياد ولره که دې چېرې شراب غوره کړي وای نو امت به دې بې لارې سوی وای .

رسول الله صلی الله علیه وسلم په جنت کې څلور رودونه وليدل چې دوه يې ظاهري او دوه نورې باطني ؤ ظاهري يې د نيل او فرات رودونه ؤ او د دې معنی دا وه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم رسالت به د نيل او فرات په حاصل خيزو ځمکو کې خپرېږي او د هغه ځای خلګ به پشت په پشت د اسلام پيروان وي او د دې معنی دا نه چې ګويا د دې دواړو رودونو او به له جنت څخه راوځي .

رسول الله صلی الله علیه وسلم د دوږخ مالکان او خازن هم وليدل ، هغه نه خندل او نه يې په مخ کې د خوشحالی او خوښی څه نښې نښانې ښکارېدې ، همدا راز د الله تعالی رسول الله صلی الله علیه وسلم جنت او دوږخ هم وليدل ، رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه کسان هم وليدل چې په ظلم او ناحقه د يتيمانو مالونه خوري ، د دوی دا وښانو په څېر شوندې وې ، د ډبرو په څېر داور سکروټې به يې په خوله کولې چې بيرته به يې د مقعد له لارې وتلې .

سودخواره يې هم وليدل چې دومره غټ غټ نسونه يې وه چې له ځايه به نه سوای ښورېدلی او کله به چې آل فرعون د دوږخ په لور بيول کېدل نو پر دې سودخورو به

[200] زادالمعاد ۲/ ۴۷- ۴۸. صحيح البخاری ۱/ ۴۵۰- ۴۵۵- ۴۵۶- ۴۷۰- ۴۷۱- ۴۸۱- ۵۴۸- ۵۴۹- ۲۵۵۰- ۶۸۴، صحيح مسلم ۱/ ۹۱- ۹۲- ۹۳- ۹۴- ۹۵- ۹۶.

تیرېدل او دوی به یې ترپښنو لانډې کول ،رسول الله ﷺ هلته زناکاران هم ولیدل چې مخ ته یې ښه پاکه تازه اوچاغه غوښه اېښې وه اوبلې خواته یې توره وچه اوبدبویه غوښه وه ،دوی به داپاکه اوتازه غوښه پرېښووله اوهغه مرداره غوښه به یې خوړله.

هلته رسول الله ﷺ هغه ښځې هم ولیدې چې په خپلو مړو نو پسې دبل چااولاد تړې (یعني په دې معنی چې دبل چاسره زناکوي اوله زناڅخه حمل اخلي اوبیاپه بې خبرۍ دا اولاد دهغه مېړه شمیرل کیږي ،رسول الله ﷺ داډول ښځې هم ولیدلې چې دآسمان اوځمکې ترمینځ په تیانو راځړول سوې وې ،همدا راز رسول الله ﷺ په تګ راتګ کې دمکې دخلکو یوه قافله هم ولیدله او دوی ته یې هغه اوښ هم ور وښووی کوم چې ورڅخه تښتېدلی ؤ ،رسول الله ﷺ ددې کاروان له یوه سرپټې لوښې څخه اوبه هم وڅښلې ،دکاروان خلک ټول بیده ؤ اودهغه لوښې سرپټې هم داسې پټ پرې ایښې ؤ اوهم داخبره داسراء دشپې په سهار درسول الله ﷺ دصدق اورېښتولې یو دلیل هم سو.[201]

ابن قیم رضی الله عنه وايي : کله چې سهار سو نورسول الله ﷺ خپل قوم ته دهغولولو لویو نښونښانو خبرورکې کومې چې الله جل جلاله ده ته ورښوولې وې ،قوم یې داخبرې ونه منلې درسول الله ﷺ تکذیب یې وکې، اودده پرخلاف یې ظلمونه اوجبرونه لاپسې زیات کړل اوله رسول الله ﷺ څخه یې وغوښتل چې دوی ته دبیت المقدس کیفیت بیان کړي ، نوپه دې وخت کې الله تعالی خپل رسول الله ﷺ ته بیت المقدرس راښکاره کې اودرسول الله ﷺ سترګوته ودرېده اوده پیل وکې خپل قوم ته یې دهغه نښې اونښانې وویلې ، دوی نه سوای کولای چې دده مبارک کومه خبره رد کړي ، همدا راز رسول الله ﷺ قریشو ته د دوی دهغه کاروان خبرهم ورکړی کوم چې دمعراج ته دتګ راتګ په وخت کې لېدلی ؤ اودوی ته یې دنوموړي کاروان دراتګ نیټه هم وښووله ، اودهغه اوښ نښانې یې هم ورته وویلې کوم چې دکاروان په سرکې را روان ؤ وروسته څرګنده سوه چې حقیقت هم داسې ؤلکه څرنګه چې رسول الله ﷺ بیان کړی ؤ، خوله دې ټولو سره سره دوی حق ونه منی ،بلکه لاپسې

[201] په مخکې یادسوي مصادر ابن هشام ۱/ ۳۹۷، ۲- ۴- ۳- ۴- ۴- ۴- ۴- ۵- ۴- ۶- ۴.

بې لارې سول اودخپل کفر اوانکار له امله يې هيڅ ډول حقيقت ته غاړه نه ايښووله،[۲۰۲] ويل کيږي چې ابوبکرصديق رضي الله عنه ته په همدې وخت کې دصديق لقب ورکړل سو، ځکه نوموړي په داسې وخت کې ددې پيښې اسراء اومعراج تصديق وکی چې نورو خلګو يې تکذيب کاوه،[۲۰۳] داسراء اومعراج دسفر دګټو او علتونو دبيانولو په هکله ترټولو لويه او ترټولولنډه خبره دالله جل جلاله داقول دی چې فرمايي :

لِنُرِيَهُ مِنْ آيَاتِنَا. سورة بني اسرائيل آيت (۱) **ترجمه** :چې هلته وښيو موږ محمد صلی الله علیه وسلم ته ځيني له دلايلو دقدرت خپل ،دانبياؤ عليهم السلام په هکله د الله عزوجل سنت دادي چې فرمايي : وَكَذَٰلِكَ نُرِي إِبْرَاهِيمَ مَلَكُوتَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَلِيَكُونَ مِنَ الْمُوقِنِينَ ۷۵ سورة الانعام

**ترجمه**: لکه چې مو وښووه ابراهيم ته دده دقوم دګمراهي قبحه ،همدارنګه ښيو موږ ابراهيم ته عجائبات دآسمانونو اودمځکې ،لپاره ددې چې دليل ونيسي په وحدانيت زما ،اولپاره ددې چې سي له يقين کوونکو ،عيانًا هم لکه چې وبيانا.

بل ځای حضرت موسی عليه السلام ته خطاب کوي اوفرمايي: لِنُرِيَكَ مِنْ آيَاتِنَا الْكُبْرَى ۲۳.سورة طه. **ترجمه** :لپاره ددې ښنوتاته ځيني له هغومعجزاتو څخه چې ډيرلوی دی ،الله تعالی ددې ښنو ښبانو دښوولوهدف او مقصدته اشاره کوي ،اوفرمايي : وَلِيَكُونَ مِنَ الْمُوقِنِينَ. **ترجمه** :او کله چې دانبياؤ علوموته دداسې مشاهدو ليدنه اوکتنه هم ورزياته سي نو ورته دعين اليقين هم وجه حاصليږي چې اندازه کول يې ممکن نه دي ، په فارسي کې کې يومتل دی (شنيده کی بودمانند ديده) اواهم داوجه ده چې انبياء به دالله تعالی په لارکې داسې مشکلات اوکړاوونه ګالي چې دبل چاله وسه پوره نه ؤ ،اودهم دې عين اليقين په برکت ددنياټول قوتونه د دوی په وړاندې دماشي ديوه وزر قدر اوارزښت هم نه درلودی ،اوله همدې امله وه چې دهغوی د هيڅ کړاو اوعذاب پروايې نه درلوده ،داچې معراج ددې عظيم سفر ترشانورکوم حمکتونه اواسرار پراته دي دهغوی دبيانولو اصلي ځای دشريعت داسرارو کتابونه دي ،خوداسې څه حقايق هم سته چې له دې مبارک سفر څخه

---

[۲۰۲] زادالمعاد ۱/ ۴۸، صحيح البخاری ۲/ ۶۸۴- صحيح مسلم ۱/ ۹۶، ابن هشام ۱/ ۲- ۴- ۳- ۴.

[۲۰۳] ابن هشام ۱/ ۳۹۹.

سرچینه اخلي اودنبوي سیرت دګلشن په لور امتداد کوي ،نودې ډول حقایقوته داسي اشاره کوو.

ګورو چې الله جل جلاله داسراء سورة یوازي په یوه آیت کي داسراء کیسه یاده کړی ده بیایې دیهودانو جرائم بیان کړي دي او د دوی له جنایاتو څخه یې پرده پورته کړی ده ، وروسته یې دوی دې ته متوجه کړي دي چې داقرآن ترټولو سمي اوصحیح لاري ته هدایت کوي ،کېدای سي چې دقرآن کریم تلاوت کوونکي ددې آیتونو په تلاوت سره داسي وانګیري چې د دواړو خبرو اومسئلو ترمینځ څه ارتباط اواړوند نسته ، خو حقیقت داسي نه دی بلکه الله عزوجل په دې اسلوب سره دې ته اشاره کوي چې دا سفر داسراء دبیت المقدس پرخوا ترسره سوی دی او داهم ځکه چې یهودبه نور دانساني امت له قیادت اومشرتابه څخه لیري کیږي ځکه دوی داسي جرائم اوجنایتونه کړي دي چې نور ددې ورنه دي چې دبشریت رهبري وکړي نوالله تعالی اوس دامنصب خپل رسول الله صلی الله علیه وسلم ته سپاري او دابراهیمي دعوت دواړه مرکزونه (مکه اوبیت المقدس) دده ترامرلاندي راولي ،اوس هغه وخت رارسیدلی دی چې معنوي مشرتابه اوقیادت له یوه امت څخه بل امت ته وسپارل سي ،په بل عبارت اوس ددې وخت دی چې دامعنوي قیادت له هغه امت څخه واخیستل سي کوم چې تاریخ یې ټول له غدر،خیانت، ظلم اوبدکاریو څخه ډک دی،اوداسي یوه امت ته وسپارل سي چې نیکي اواصلاح یې شعار اورسول یې له ټولو څخه سیده لاري ته دلارښوونکي قرآن په وجه مشرف دی.

خوخبره داده چې داقیادت به څه ډول انتقال پیداکوي ،په داسي حال کي چې ددې امت رسول الله صلی الله علیه وسلم دخلګو دظلم له لاسه دمکې په غرونو کي لالهانده ګرځي ؟داسوال له یوه بل حقیقت څخه پرده پورته کوي اوهغه دادی چې داسلامي دعوت داپړاؤ نورسرته رسېدلی اوس به بل نوی پړاؤ پیلیږي اوله همدې امله ده چې قرآن کریم په صریحه اوشدیده لهجه مشرکین تهدید وي لکه چې فرمایي : وَإِذَا أَرَدْنَا أَن نُّهْلِكَ قَرْيَةً أَمَرْنَا مُتْرَفِيهَا فَفَسَقُوا فِيهَا فَحَقَّ عَلَيْهَا الْقَوْلُ فَدَمَّرْنَاهَا تَدْمِيرًا . سورة بني اسرائیل آیت (١٦)

**ترجمه:** اوکله چې اراده وفرمایو موږ ددې چې هلاک کړو کوم کلی نوامروکړو موږ غټانو او متمولانو دهغه ښارته په طاعت دالله سره نوفسق وکړي دوی په هغه کي نوحق (اوثابت) سي پرذمه دا وسیدونکو هغه خبره دعذاب نوهلاکوو موږدوی په هلاکولو سختو سره له ګډولو دمکیو اوښارونو ددوی.

وَكَمْ أَهْلَكْنَا مِنَ الْقُرُونِ مِن بَعْدِ نُوحٍ وَكَفَىٰ بِرَبِّكَ بِذُنُوبِ عِبَادِهِ خَبِيرًا بَصِيرًا. سورة بني اسرائيل آيت (۱۷)

**ترجمه:** اوډیرهلاک کړي دي موله (اله د) قرنونو له نوح لکه عادیان اوثمودیان اوکافي دی رب ستاپه ګناهونو دبندګانو خپلو ښه خبردارښه لیدونکي په عالم په پټو او ښکاره ؤ. اود دوی وعید لرونکوآیتونو ترڅنګ داسي آیتونه هم راغلي دي چې مسلمانانو ته دهغه تمدن ، اصول اوقواعد ورپه ګوته کوي په کوم سره چې د دوی اسلامي ټولنه ودانیږي ،داسي ښیي لکه چې دوی په کوم ځای کي میشته سوی ، ټول کارونه د دوی په لاس کي دي اویوله بل سره دیووالي په داسي مزی تړل سوي دي چې ټولنه دهم هغي په محور راڅرخي ،نوپه دې آیتونو کي دې ته اشاره ده اویاداپه ګوته کوي چې رسول الله ﷺ به ډیرژر داسي یوه پناه ګاه اومینه پیداکړي چې هلته به یې دین استقرار پیداکوي ، اوهمدایو مینه به یې په ټوله دنیاکي ددعوت دخپرېدو مرکز وي ،داسراء اومعراج دمبارک له پټو حکمتونو او اسرارو څخه یوهم داسي حکمت اوراز ؤ چې زمو ږله بحث اوموضوع سره یې پیوند درلودی نوځکه یې دلته یادونه وکړه ، په دې ترتیب سره دې حکمت اودې ته ورته نورو حکمتونو ته له نظرکولو وروسته ویلای سوچې اسراء اومعراج یاله بیعت اوعقبه اولی څخه مخکي اویاد دواړو بیعتونو ترمینځ واقع سوی دی. والله اعلم.

## «دعقبه او دهغه اولین بیعت»

مخکي مووویل چې دنبوت دیوولسم کال دحج په موسم کي دیثرب له خلکو څخه شپږ کسانو ایمان راوړی له رسول الله ﷺ سره یې ژمنه وکړه چې درسول الله ﷺ رسالت به خپل قوم ته رسوي ، ددې نتیجه داسوه چې په راتلونکي کال یعني دنبوت د دولسم کال دحج په موسم کي چې د (۶۲۱ م) کال دجولایي له میاشتي سره سمون خوري دوولس کسان درسول الله ﷺ حضورته راغلل له جملې څخه پنځه کسان هم هغه ؤ کوم چې تیر کال حاضرسوی ؤ اوجابر بن عبدالله بن رئاب دهغوی شپږم ؤ چې

په دې کال چې په دې کال نه ؤ راغلی اوددې دوولسو کسانو دپاته اووکسانو نومونه په لاندي ډول دي.

(١) : معاذ بن الحارث بن عفراء له بني النجار دکورنی شخه (خزرج)

(٢) : ذکوان بن عبد القيس ،له بني زريق دکورنی شخه......(خزرج)

(٣) : عباده بن صامت له بني غنم دکورنی شخه..........(خزرج)

(٤) : يزيد بن ثعلبه دبني غنم له ملګرو شخه............(خزرج)

(٥) : عباس بن عباده بن نضلة له بني سالم له کورنی شخه...(خزرج)

(٦) : ابو الهشيم بن التيهان له بني عبد الاشهل له کورني شخه..

(٧) : عويم بن ساعدة له بني عمرو بن عوف له کورنی شخه.

له دې کسانو شخه يوازي دوه وروستي کسان داوس له قبيلې شخه ؤ نور ټول دخزرج دخاندان غړي ؤ.[204]

دې کسانو په منی کي عقبې ته نژدې له رسول الله ﷺ سره ملاقات وکی او له رسول الله ﷺ سره يې دداسي خبرو بيعت وکی چې بيا وروسته يعنی دمکې دفتحې په وخت کي له ښځو شخه دهم هغه خبرو بيعت واخيستل سو ،اودې بيعت ته بيعة النساء يعنی دښځو بيعت ،دښځو بيعت ځکه وايي چې دبيعت بندونه مادې لکه دښځو دبيعت اومادو په ډول وي.

امام بخاري رحمة الله عليه له عباده بن صامت رضي الله عنه شخه روايت کوي وايي رسول الله ﷺ وفرمايل : راسئ زما سره پردې بيعت وکړئ چې له الله تعالی سره به هيڅ شريک نه نيسئ غلا به نه کوئ زنا به نه کوئ خپل اولادونه به نه وژنئ بهتان به نه کوئ په ښو کارونو کي به زما نافرماني نه کوئ ،چاچې په دې خبرو پوره عمل وکی نو اجريې پرخدای جل جلاله دی اوکه څوک له دې امورو شخه دکوم يوه مرتکب سو يعني په دې هکله يې په کوم شه کي زما له امرسرغړونه وکړه اوبيايې په دنيا کي دهم هغه عمل جزا وليدله نوهمدا دده لپاره کفاره ده اوکه چاپه دې امورو کي کوم يو ترسره کی يعني له دې کارونو شخه ديوه کار مرتکب سو بيا الله تعالی دهغه پرده وکړه نودده معامله له الله تعالی سره ده که دجزا اراده يې وکړه نوجزابه ورکړي اوکه يې

[204] رحمة للعالمين ١/ ٨٥- ابن هشام ١/ ٤٣١- ٤٣٣.

دعفوي اراده وکړه نو عفوه به ورته وکړي ،عباده بن صامت ﵁ وايي نو مي په ډې شيانو کي بيعت ورسره وکړی اوپه بل روايت کی دجمعي صيغه راځي يعني پرهمدې شيانو موبيعت ورسره وکړی. [۲۰۵]

## «په مدينه منوره کي داسلام استازی»

کله چې بيعت سرته ورسيد اودحج موسم هم تيرسو،نورسول الله ﷺ له هغو کسانوسره مدينې ته خپل لومړنی سفير واستاوه ،ترڅوهغه مسلمانانو ته داسلام احکام اوهدايات ورزده کړي اودمشرکينو په مينځ کي داسلام تبليغ وکړی رسول الله ﷺ ددې دندي لپاره دسابقينو اولينو له جملې څخه يوځوان انتخاب کی چې نوم يې مصعب بن عمير ﵁ ؤ.

## «ستره کاميابي»

کله چې مصعب بن عمير ﵁ يثرت ته ورسيدی نوداسعدبن زراره ﵁ په کور کي ميشت سو،دوی دواړو په ډيره مينه ،جوش اوخروش سره داسلام تبليغ کاوه ،مصعب بن عمير ﵁ دمقري په نامه مشهورسو (يعني استاذ اومعلم)،ددعوت اوتبليغ په ډګر کي دده له سترو کاميابيو څخه يوه داده چې يوځل اسعدبن زراره ﵁ هغه دبني عبدالاشهل اوبن ظفرځای ته وروست ، هلته دبني ظفر ديوباغ په دننه کي له مرق نومي څاه سره کښينستل ،څه شمير مسلمانان ورته راټول سول هغه وخت دبني عبدالاشهل دواړه سرداران سعدبن معاذ اواسيد بن خضير مشرکان ؤ اوتراوسه په اسلام نه ؤ مشرف سوي ،دوی دواړه چې کله له دې څخه خبر سول نوسعددبني عبدالاشهل بل سردار اسيد ته وويل ولاړسه اودغه دواړه يعني مصعب ﵁ اواسعد ﵁ بنه تهديد کړه اوزموږ ځای ته له راتلوڅخه يې منع کړه ځکه دوی دواړه راغلی ترڅوزموږ کمزوري کسان بې لاري اوبې وقوفه کړي اوکه چيري اسعدبن زراره ﵁ زمادخاله زوی نه وای نوداکاربه ماپه خپله کاوه ،په دې سره اسيد خپله نيزه واخيستله اودوی په لور روان سواوکله چې داسعد سترګي ورباندي ولګيدلی نومصعب ﵁ ته يې وويل : دادي دخپل قوم سردار راته را

---

[۲۰۵] صحيح البخاری باب بعد حلاوة الايمان ۱۰/ ۷- باب وفود الانصار۱/ ۵۵۰- ۵۵۱- په دي ځای کي رانقل سوی لفظ له همدی باب څخه دی باب قوله تعالی اذاجاءک المؤمنات ۲/ ۲۲۷- باب الحدود کفارة ۲/ ۱۰۰۳.

روان دي دده په هکله له الله تعالیٰ سره ریښتولي غوره کړه ،مصعب رضی الله عنه ورته وویل : که کښینستی نوخبري به ورسره کړم،اسید راغی دوی ته ودرېدی اوسختي خبري یې ورته وکړې ورته وی ویل :تاسي دڅه په خاطر دلته راغلی یاست ددې لپاره راغلی یاست چې زموږ کمزوري کسان احمقان جوړ کړی؟نور که خپل ژوند درته ګران وي نوزموږ څخه لیري سي.

مصعب رضی الله عنه ورته وویل : بده به نه وي که لږڅه کښیني اوزماخبري واوری که دي کومه خبره خوښه سوه نوقبوله یې کړه اوکه دي خوښه نه سوه نومه یې منه ، حضرت اسید رضی الله عنه ورته وویل : دانصاف خبره دي وکړه ،نوخپله نیزه یې ودروله اوکښینستی ،مصعب رضی الله عنه داسلام خبره ورته وکړه اوقرآن کریم یې ورته وواېه :هغه وایي قسم په خدای مخکي تردې چې اسید رضی الله عنه خبري وکړي موږ یې په مخ کي داسلام رڼا ولیدله ،بیایې وویل :داڅومره ښکلی اوخوږ کلام دی ،داراته ووایاست چې که څوک په دې دین کي ځان شاملول غواړي نوڅه به کوي ؟ دوی ورته وویل :لومړی غسل وکړه ،پاک کالي واغونده بیادحق او شهادت کلمه ووایه او دوه رکعته لمونځ اداکړه.

حضرت اسید رضی الله عنه ولاړ سو غسل یې وکړی ،پاک کالي یې واغوستل ،دشهادت کلمه یې وویله او دوه رکعته لمونځ یې وکی ،په دې پسې یې داخبره وکړه په ماپسې یو بل شخص هم دی که چیري هغه ستاسي متابعت غوره کړي نو د هغه قوم به ټول په تاسي پسې روان سي اوله دوی څخه به هیڅوک هم ستاسي مخالفت ونه کړي ،زه اوس هغه تاسي ته رالیږم ،سعدبن معاذ رضی الله عنه ته اشاره ده ، بیاحضرت اسید رضی الله عنه خپله نیزه واخیستله اوسعدبن معاذ رضی الله عنه ته ورغلی ،هغه له خپل قوم سره په دیره کي ناست ؤ سعد رضی الله عنه چې کله هغه ولیدی نووی ویل: قسم په خدای داچې په کوم مخ تللی ؤ په هغه بیرته نه دی راروان ،حضرت اسید رضی الله عنه ورسیدی نوسعدبن معاذ رضی الله عنه ځیني وپوښتل :څه دي وکړل ؟ده ورته وویل : ماله هغودواړو سره خبري وکړې خوقسم په خدای چې څه مشکل مي نه په کښي ولیدی ماهغوی منع کړل خو دوی راته وویل : چې څه ستاخوښه وي هغه به کوو اوبله داچې زه خبرسوم چې بني حارثه راوتلي ترڅواسعدبن زراره رضی الله عنه ووژني اودا په دې خاطرچې دوی خبرسوي دي چې

اسعد ستا دخاله زوی دی په دې سره دوی غواړي ستاسره خپل تړون مات
کړي ،سعد بن معاذ چې داخبري واورېدی قهر اوغوصې پرسر واخیستی سمدستي
راولاړسو ،خپله نیزه یې را واخیستله اود دوی دواړو پرخوا ورغلی خوکله چې یې
دوی ډاډه ولیدل نوپوه سوچې په دې خبره سره اسید غوښتل چې زه د دوی خبري
واورم اوکله چې ښه ورلنډسو ورته ودرېدی او دوی دواړو ته یې ډېري سپوري
ستوغی واورولی ،بیایې اسعد بن زرارہ رضی اللہ عنہ ته وویل اې ابوامامه ! قسم په الله
جل جلاله که زما اوستا ترمینځ خپلوي نه وای نوتابه زما څخه داطمع اوامید نه وای کړی
،ته راځي زموږ په کور اوکلي کی داسي کارونه کوی چې زموږ نه خوښېږي، تر دې
مخکي حضرت سعد رضی اللہ عنہ حضرت مصعب رضی اللہ عنہ ته ویلي ؤ دادی داسي سردار درته
راروان دی چې ترشایې ټول ولاړدی ،که چیري ده ستا پیروي غوره کړه نوټول قوم به
یې ستاپیروان سي ، هم دلته وه چې مصعب رضی اللہ عنہ ورته وویل مهرباني وکړه لږ کښینه
اوزماڅوخبري واوره که دي کومه خبره خوښه سوه قبوله به یې کړي اوکه دي خوښه
نه وه نومه یې منه ، سعد بن معاذ رضی اللہ عنہ په جواب کي ورته وویل : دانصاف خبري دي
وکړه ، بیایې خپله نیزه ودروله اوکښېنستی حضرت مصعب اسلام ورته وړاندي کی
اوقرآن کریم تلاوت یې ورته وکی ،وایي قسم په خدای مخکي تردې چې څه
ووایي موږ یې په مخ کي داسلام رڼا ولیدله ،بیایې راته وویل کله چې څوک اسلام
مني نوڅه به کوي ؟دوی دواړو ورته وویل :
ته لومړی غسل وکړه ، خپل کالي پاک کړه بیا دحق اوشهادت کلمه ووایه او وروسته
دوه رکعته لمونځ اداکړه ،حضرت سعد بن معاذ رضی اللہ عنہ هم ولاړسو اوداټول کارونه یې
ترسره کړل ،بیایې خپله نیزه واخیسته اودقوم پرطرف رهي سو دوی چې سعد رضی اللہ عنہ
ولیدی نویوبل ته یې وویل : قسم په خدای په کوم مخ چې تللی ؤ هغه بیرته نه دی
راروان ،سعد رضی اللہ عنہ چې کله مجلس ته راورسیدی نووی ویل : اې بنوعبدالاشهل
ستاسي په مینځ کي زمامقام او معامله څنګه ده؟دوی ورته وویل : ته زموږ سردار
یې اوترموږ ټولو دپاخه نظرخاوند او ترموږ ټولو برکتي اوزموږ نمائنده اوسرپرست
یې ،نوده ورته وویل ښه واوری!ستاسي ټولو نر اوښځو سره ترهغه زماخبري
حرامي دي ترڅومي پرالله جل جلاله اودهغه پررسول الله صلی اللہ علیہ وسلم ایمان نه وي راوړی ، د

سعدبن معاذ رضي الله عنه ددې خبرې اثر دا ؤ چې ترماښامه دده ټول قوم نارينه او ښځينه په اسلام مشرف سول ،يوازې يو سړی چې (اصيرم) نوميدی هغه اسلام رانه وړی هغه هم بيا وروسته داحد په جنګ کې مسلمان سو ،دالله تعالی په لاره کې يې جنګ وکی او په داسې حال کې په شهادت ورسيدی چې الله جل جلاله ته يې يوه سجده هم نه وه کړې رسول الله صلی الله عليه وسلم دده په هکله فرمايي :عمل قليلا واجر کثيرا .ژباړه : نوموړې عمل کم کړی خو اجرېې زيات ترلاسه کی.

حضرت مصعب بن عمير رضي الله عنه ترهغوپورې داسعدبن زراره په کورکې ؤ اوداسلام تبليغ يې کاوه ترڅوپه انصارو کې داسې کورنۍ پاته نه سوه چې څوکسان دې نراوښځې نه وي په کی مسلمان سوی،يوازې دبني اميه بن زيد اوخطمه او وايل کورنۍ داسې وی چې د دوی څوک نه ؤ په کې مسلمان سوی اوداهم ځکه چې مشهور شاعرقيس بن اسلت د دوی له ډلې څخه ؤ او دوی به دده خبره په کلکه سره منله اوهم دې شاعر دوی دخندق ترغزايعني پنځم هجري کال پورې له اسلام څخه بېل اوليرې ساتلی ؤ،په دې ترتيب سره حضرت مصعب بن عمير رضي الله عنه دبعثت د دريارلسم کال دحج ترموسم لږ مخکې مکې مکرمې ته ستون سو اوهلته يې خپل عظيم لارښوونه حضرت محمد صلی الله عليه وسلم ته دفتحې زيرې واورول اوهغه يې ديثرب دخلکو له حال واحوال د دوی له جنګې اودفاعې صلاحيتونواونورو ښوښو استعدادونو څخه خبر کی.

## «عقبه او دهغه دويم بيعت»

دنبوت د ديارلسم کال دحج په موسم کې يعنې د (۶۲۲م) کال دجون په مياشت کې دمدينې منورې له اوسيدونکو څخه تراويازيات کسان مسلمانان دخپل قوم له مشرکانو سره يوځای دحج په خاطر مکې ته ورسېدل دوی لاپه مدينه اويادمکې پرلاره ؤ چې داخبره سره ياده کړه چې ترڅوبه رسول الله صلی الله عليه وسلم دمکې په غرونو کې لالهانده له غمونو اومشکلاتو سره لاس وګريوان پاته وي ؟ددې مکې ته تررسيدو وروسته له رسول الله صلی الله عليه وسلم سره تماس ونيوی اوپردې سره اتفاق سول چې دذې الحجې په دولسمه شپه به په منی اودجمره عقبه سره نژدې غونډېږي.

اوس راځی کعب بن مالک الانصاري رضی الله عنه ته غوږ سوچې ددې تاریخي غونډې په هکله کومي چې دکفر او اسلام دجګړې مخه یې بدله کړه څه وايي : حج ته ولاړو اوله رسول الله صلی الله علیه وسلم سره مو تشریق منځنۍ ورځ وعده وټاکله بالاخره ټاکل سوی شپه را ورسیده موږ داخبره دخپل قوم له مشرکینو څخه پټه ساتله ، خويوازي له عبدالله بن عمرو ابن حرام سره موپه دې هکله څه خبري وکړې ،نوموړي زموږ له مشرانو اوشریفانو څخه شمیرل کېدی ،موږ ورته وویل : ابوجابره! ته زموږ له مشرانو اوشریفانو څخه یې موږ نه غواړو چې د دوږخ په اور کي وسوزي بیاموا سلام ته راوبلی اوله رسول الله صلی الله علیه وسلم سره دکړې ژمني په اړه موخبر کړی کعب وايي نوهغه هم په اسلام مشرف سو اودعقبی په بیعت کي یې ګډون وکی اودخپل قوم استازي وټاکل سو،کعب وايي :دنوموړي شپې په سرکي له خپل قوم سره یوځای په خپله مینه کي بیده سوو خودشپې د دریمي برخي ترتیرېدو وروسته راکښېنستو اوپه پټه دټاکل سوي ځای پرخوا ولاړو ترڅو له عقبی سره نژدې سره راټول ؤ، زموږ شمیره درې اویا خلګ اودوی ښځي چې یوه یې دبني مازن بن النجار نسیبه دکعب لوریعني أم عمارة اوبله یې دبني سلمه قبیلې اسماء دعمرو لورأم منیع وه.[206]

هم دلته سره راټول سوو اودرسول الله صلی الله علیه وسلم دراتلو انتظار موایستی ،ترڅورسول الله صلی الله علیه وسلم تشریف راوړی ،له ده سره اکاعباس رضی الله عنه هم ؤ نوموړی هغه وخت لامسلمان سوی نه ؤخودا یې غوښتل چې دخپل وراره په دې معامله کي برخه ولري اوټینګ عهد ورته واخلي اوددې غونډې لومړی خبري کوونکی هم حضرت عباس رضی الله عنه ؤ .

## «ددیني اوعسکري مسئلې پراهمیت دعباس رضی الله عنه له طرفه رڼا اچول»

کله چې دمجلس غړي پوره سول نوددیني اوعسکري تړون په اړه خبري شروع سوی ترټولو مخکي حضرت عباس رضی الله عنه په پوره صراحت سره دمسئلې دارزښت اود دوی دمسؤلیت د دروند والي په هکله خبري وکړی اووی ویل :اې خزرجیانو! دهغه وخت عربو ټولوانصارو یعني اوس خزرج دواړو ته خزرجیان ویل تاسي زموږ په مینځ کي درسول الله صلی الله علیه وسلم مقام اومنزلتویني موږ هغه دخپل قوم زموږ سره په

---

[206] ابن هشام ۱/ ۴۴۰ـ ۴۴۱.

عقیده کي شریکو خلکو ښځه په امن ساتلی، هغه په خپل قوم کي د عزت خاوند دی
او دلته په خپل وطن کي زموږ له ملاتړ او حمایت ښځه برخمن دی خو دې غواړي چې
تاسي ته درسي او ستاسي طرف ته میلان لري، نو اوس که چیري تاسي له ده سره
پرکړي وعده وفا کوی او مخالفینو ښځه یې ساتي نو صحیح ده تاسي پوه سي
او مسؤلیت مو که ستاسي دا خیال وي چې له دې ځایه له وتو وروسته یې
ملاتړ پریږدی نو سر له اوسه یې پریږدی ځکه په خپل وطن کي د عزت خاوند او زموږ
له ملاتړ ښځه برخمن دی دی، کعب وایي: موږ په جواب کي ورته وویل:
موږ ستا خبري واوریدی نو اوس ته خبري وکړه ای رسول الله ﷺ او د خپل ځان او رب
ﷻ لپاره په خپله خوښه عهد او تړون واخله[207] د انصارو له دې جواب ښځه دا ښه په
ډاګه کیږي چې دوی د دې عظیم مسؤلیت په اداکولو کي څومره مخلص او ټینګ
ولاړ ؤ او په دې لاره کي یې د هر راز مشکلاتو زغملو ته په پوره ایمانداري سره اوږه
ورکوله، په دې پسې رسول الله ﷺ خپلي خبري وکړی او بیعت ورسره وسو.

## «د سید البشر ﷺ ښځه د بیعت زده کړه»

امام مالک رضي الله عنه په دې هکله د جابر رضي الله عنه روایت په مفصله توګه رانقل کړیدی جابر
رضي الله عنه وایي موږ رسول الله ﷺ ته وویل په څه شي بیعت درسره وکړو؟ وی فرمایل
: پر دې بیعت راسره وکړی چې:

اول: په هر حالت سستی او چالاکي کي به زما خبري اوریئ او منی به یې.

دویم: په فقر او بډایي دواړو کي به مال خرڅوی او مصرفوی.

دریم: په نیکي به امر او له بدو ښځه به نهي کوي..

څلورم: د خدای د دین په خاطر راپورته سی او په دې لاره کي د هیچا پروا مه ساتی.

پنځم: کله چې زه درغلم نو ملاتړ به مي کوی او د خپلو ځانو، ښځو او اولادونو په شان
به زما دفاع هم کوی، او د دې ټولو په بدله کي زه د جنت وعده درکوم.[208]

---

[207] ابن هشام ۱/ ۴۴۱- ۴۴۲.

[208] امام احمد دا په حسن اسناد سره رانقل کړي دي حاکم او ابن حبان دا روایت صحیح بللی دی د عبدالله النجدی مختصر سیرت الرسول ﷺ نومی کتاب ۱۰۵، صفحه هم وګورئ ابن اسحاق هم له عباده بن صامت ښځه دی ته ورته روایت راوړی دی خو په هغه کي دا ماده زیاته ده چه وای موږ د حکومت په وجه له حاکمانو سره مخالفت نه کوو ابن هشام ۱/ ۴۵۴.

دکعب رضي الله عنه په روایت کي چې ابن اسحاق راوړی دی یوازي وروسته بند ذکرسوی دی په دې روایت کي راځي کعب وایي : نو بیا رسول الله ﷺ خبري وکړې ،دقرآن کریم له تلاوت دالله جل جلاله طرف ته له بلني او اسلام ته له ترغیب او هڅوني وروسته یې وفرمایل : په دې بیعت درڅخه اخلم چې زما داسي دفاع او ملاتړ وکړی لکه څرنګه چې یې له خپلو ښځو او اولادنو څخه کوی . نو براء بن معرور په خپل لاس دده مبارک لاس ونیوی او وی فرمایل :قسم په هغه ذات چې ته یې په حقه رالیږلی یې چې دخپلو اولادنو په څیر به ستادفاع هم کوو زموږ څخه بیعت واخله اې دالله رسوله ﷺ !موږ دجنګ بچیان یو وسله زموږ سینګار ده دا موږته له پلرونو څخه په میراث راپاتي ده .

راوي وایي ابو الهشیم بن التیهان دبراء خبري ورپوري کړې او وی ویل :اې رسول الله ﷺ ! زموږ او یهودو ترمینځ اوس ښې اړیکي دي خو موږ هغه غوڅوو ،هسي نه چې اوس موږ دا اړیکي هم غوڅي کړو ،پیا ته ترفتحي اوبري وروسته موږ پرېږدې اوبیرته خپل قوم ته راسې ،نو رسول الله ﷺ تبسم وکی او وی فرمایل : نه داسي نه ده ستاسي وینه زما وینه او ستاسي تباهي زما تباهي ده زه ستاسي او تاسي زما یاست له چاسره چې تاسي جګړه کوی زه هم ورسره جنګیږم او دچاسره چې سوله کوی زه هم سوله ورسره کوم .[۲۰۹]

## «دبیعت په باره نور زیادت اسرار»

وروسته تردې چې دبیعت دشرطونو په هکله خبري وسوې او خلګو یې دتړون اراده وکړه ،د لومړي دلي مسلمانانو له جملې څخه دوه هغه کسان چې دنبوت په یوولسم او دوولسم کال یې اسلام راوړی ؤ ولاړ سول ترڅو خبل قوم دده بیعت له اهمیت او خطر څخه یو ځل بیاخبر کړي او تربیعت کولو مخکي دوی ښه پوه سي او ترڅو په دې ځان پوه کړي چې قوم یې په دې لاره کي څومره قرباني ورکولو ته تیار دی ،ابن اسحاق وایي کله چې خلګو دبیعت کولو اراده وکړه عباس بن عباده بن فضله وویل :اې خلګو !ایاتاسي پوهیږی چې له دې سړي سره دڅه شي بیعت کوی؟دوی وویل هو!ده ورته وویل : چې تاسي ددې بیعت ورسره کوی چې له ټولو خلګوسور

---

[۲۰۹] ابن هشام ۱/ ۴۴۲.

پوستکو او تور پوستکو سره به جنګیږي نو که ستاسي دا خیال وي چي د خپلو مالونو له مکملي تباهی او مشرانو له وژلو وروسته د هغه ملاتړ پریږدی نو همدا اوس یې پریږدی ځکه هغه وخت د ده له ملاتړه لاس اخیستل د دنیا او اخرت تباهي او رسوابي ده او که دا اراده لري چي د مالونو له تباهي او د سردارانو له مرګ سره سره به له ده سره پر خپل تړون وفا کوی نو بیا یې له ځان سره واخلی ځکه دا د دنیا او آخرت ګټه ده.

دوی وویل په دط لاره کي موږ د مالونو د تباهي د مشرانو او رهبرانو د مرګ ژوبلي خطر پر ځان منو یار رسول الله ﷺ دا راته ووایه که موږ په دې وفا وکړو نو ددې په بدله کي به زموږ لپاره څه وي؟ده وفرمایل: ددې په بدله کي ستاسي لپاره جنت دی نو دوی وویل لاس دي را اوږده کړه، ده مبارک لاس ور اوږد کی او دوی بیعت ورسره وکی،[210] او د جابر رضي الله عنه په روایت کي راځي ولاړسو ترڅو بیعت ورسره وکي کله چي یې اسعد بن زراره رضي الله عنه لاس ونیوی نو موړي ترټولو کشرؤ او وی ویل: لږتم سئ اې د یثرب خلګو! موږ د ده حضور ته د حاضری په خاطر دا اوږد سفر له دې یقین او باور سره کړی چي بیشکه هغه د الله جل جلاله رسول دی نن ورځ د ده وتل له ټولو عربو سره د مقاطعې او دښمني معنی لري د استاسي سردارانو د مرګ او تورو چلولو غوښتنه کوي، که تاسي دې قربانۍ ته تیار یاست نو د رسره وایی خلی، خدای جل جلاله به اجر درکړي، او که چیري تاسي پر خپلو ځانونو بیرېږی نو بیا یې پریږدی او دا به د الله جل جلاله په وړاندي ستاسي څه ناڅه مقبول عذر وي.[211]

## «د بیعت سلسله په مصافحې سره شروع سوه»

د بیعت پر شرطونو او بندونو له موافقې او له یادسوي تاکید وروسته د بیعت سلسله په مصافحې سره شروع سوه، جابر رضي الله عنه د اسعد بن زراره رضي الله عنه د خبرو له روایت څخه وایي نو دوی وویل: اسعده! لاس دي لیري کړه قسم په خدای موږ دا بیعت حتماً کوو او بیا یې نه ماتوو په دې سره اسعد پوه سو چي قوم یې په دې لاره کي څومره قرباني ورکولو ته تیار دی، دې له دې پلوه ډاډه او مطمئن سو، نو موړي د بیعت کوونکو دیني رئیس سو، ځکه د مصعب بن عمیر رضي الله عنه ملګری داعي ؤ او ترټولو لومړی ده

---

[210] ابن هشام ١/ ٤٤٦.

[211] د امام احمد لخوا د جابر په روایت نقل سوی حدیث.

بیعت وکی ،ابن اسحاق وايي بنو النجار داګومان کوی چې ابوامامه اسعدبن زراره رضي الله عنه لومړنی کس ؤ چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته یې دبیعت لاس ورکړی.[۲۱۲]

ورپسې عام بیعت شروع سو جابر رضي الله عنه وايي موږ یو یو ورولاړېدو او بیعت به مو کاوه په مقابل کي به یې دجنت وعده راکوله.[۲۱۳]

خودهغه او دښځو بیعت یوازي زباني ؤ ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم پردیو ښځو ته هیڅکله هم لاس نه دی ورکړی.[۲۱۴]

## «دخزرج او داوس قبیلې دمشرانو تاکل»

دبیعت تر تکمیل وروسته رسول الله صلی الله علیه وسلم د دوولسو کسانو دانتخاب غوښتنه وکړه داکسان به دخپلو قوم مشري او دبیعت دبندونو دتطبیق او تنفیذ مسؤلیت پرغاړه لري دوی ته یې وفرمایل : تاسي له خپل مینځ څخه دوولس کسان وټاکی چې دوی به دخپل قوم استازي او د دوی له طرفه مسؤلین وي،نو سمدستي دوولس کسه وټاکل سول چې نه(۹) یې دخزرج او (۳) یې داوس له قبیلې څخه وه.

## «دخزرج قبیلې استازي»

اول : اسعدبن زراره رضي الله عنه .

دویم : سعدبن الربیع بن عمرو رضي الله عنه

دریم : عبدالله بن رواحه بن ثعلبه رضي الله عنه .

څلورم : رافع بن مالک بن العجلان رضي الله عنه .

پنځم: البراء بن معروربن صخر رضي الله عنه .

شپږم : عبدالله بن عمرو بن حرام رضي الله عنه .

اووم : سعدبن عباده بن دلیم رضي الله عنه .

اتم : المنذر بن عمروبن خنیس رضي الله عنه .

نهم :عباده بن الصامت بن قیس رضي الله عنه .

---

[۲۱۲] ابن اسحاق وایی بنو عبد الاشهل وایی همدارازابو الهیثم بن التیهان او کعب بن مالک وایی لومړی سړی براء بن معرور وو ابن هشام ۱/ ۴۴۷، اوزه داسی وایم چه ممکن ده داګمان کړی وي چي نوموړی به د دوی او د رسول الله ترمایین هغه تیري سوي خبرې بیعت بولي لیکن صحیح قول دادی چي اولین بیعت کونکی اسعدبن زراره دی.

[۲۱۳] مسند امام احمد رحمه الله

[۲۱۴] صحیح مسلم باب کیفیة بیعة النساء ۲/ ۱۳۱،.

## «داوس قبیلې استاذي»

اول : اسید بن حضیر بن سماک رضي الله عنه .

دویم : سعدبن خثیمه بن الحارث رضي الله عنه .

دریم : رفاعه بن عبد المنذربن زبیر رضي الله عنه .[215]

داهم ویل کیږي چې داوس دریم نماینده ابو الهشیم بن التیهان ؤ ، کله چې دادوولس کسان وټاکل سول نورسول الله صلی الله علیه وسلم له دوي څخه درئیسانو اومسؤلینو په حیث یوبل ترون هم واخیستی اوداسي یې ورته وفرمایل :تاسي دخپل قوم استازي او کفیلان یاست لکه څرنګه چې حواریون دعیسی علیه السلام کفیلان ؤ اوزه دخپل امت یعني مسلمانانو کفیل یم ،دوی وویل هو ! صحیح ده .[216]

## «شیطان ددې ترون سر اوراز اښکاره کړ»

ترون اوبیعت ترسره سو خلک دخوړېدو په حالت کي ؤ په همدې وخت کی یوه شیطان ترون اوبیعت رازافشاکړی ،خوڅرنګه چې غونډه تقریبا پای ته رسیدلی وه اوداممکنه نه وه چې دقریشو مشران په پټه سره خبرکړي ،ترڅو بیعت ته حاضر سوي کسان په نابېره توګه راګیر کړی نوشیطان پریولوړځای ودرېدی اوپه ډېر لوړ آوازېې چیغه کړه اې خلګو !اې ددې کورونو اوسیدونکو !محمد صلی الله علیه وسلم او ورسره بې دینان له خپل دین څخه اوښتي کسان وګوری ؤس ستاسي سره دجنګ په خاطر راټول سوي دي .

رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل :داددې عقبې شیطان دی اې دالله دښمنه !واوره زه اوس درخلاصیږم بیایې حاضروکسانو ته امروکی چې خپلو ځایونو ته ولاړسی .[217]

## «انصار د قریشو په مقابل کي»

دشیطان ددې آواز په اورېدو سره عباس بن عباده بن نضله رضي الله عنه وویل :قسم په هغه ذات چې ته یې په حقه رسول رالیږلی یې که ته غواړی نوسبابه موږ دمنی پراوسیدونکو دتورو حمله وکړو، رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل :تراوسه ددې

---

[215] زبیر، یازنیر ویل کیږي چي دا ابو الهیثم بن التیهان وو.
[216] ابن هشام ۱/ ۴۴۳، ۴۴۴، ۴۴۶.
[217] زادالمعاد ۲/ ۵۱.

اجازه نه ده راکړل سوی خپل مینو ته ستانه سی، بیادوی هم ستانه او هم الته بیده سول.[۲۱۸]

## «دقریش احتجاج دیثرب مشرانو ته»

دې آواز دقریشو غم او غوصه هم راوپاروله ځکه دوی ښه پوهیدل چې پردوی او د دوی پرمالونو به دداسي یوه بیعت اغیزه او اثرخه وي ،نو کله چې سهار سو دقریشو له مشرانو څخه یوه ډله دیثربیانو ځایونو ته ورغلل ترڅو دوی د دې بیعت په هکله له خپل عکس العمل او احتجاج څخه خبرکړي او داسي یې وورته وویل :خزرجیانو! موږ خبر سوي یو چې تاسي راغلی یاست ترڅو زموږ ملګري له ځایه وباسی او د جنګ بیعت هم ورسره کړی دی خو قسم په خدای چې موږ د ټولو عربي قبیلو په نسبت ستاسي سره جنګ بد بولو.[۲۱۹]

خو څرنګه چې دخزرج مشرکان په دې مسئله خبرنه ؤ ځکه دابیعت دشپې په تیاره کي په ډیره پټه سره سوی ؤ،یوځل راپورته سول ،قسمونه یې خوړل چې هیڅ داسي پیښه زموږ په مینځ کي نسته ،اوموږ په دې هیڅ خبرنه لرو بالاخره دقریشو وفد عبدالله ابن سلول ته ورغلی هغه هم ورته وویل : چې داخبره درواغ ده داسي څه نه دي ترسره سوي او داهم امکان نه لري چې زما قوم دي زماپه پټه داسي کاروکي ،که هلته په مدینه کي هم ؤ زما قوم زما له مشورې پرته داسي کارنه کوي ،مسلمانانو یوبل ته کتل او چوپ ناست ؤ په دې هکله یې هیڅ هم ونه ویل قریشو هم د مشرکانو خبره ومنله او بې فائدې بیرته ولاړل .

## «دبیعت په باره دقریشو اعتماد او دیثربیانو پلټنه»

دقریشو مشران د دوی له میني څخه په داسي حال کي ستانه سول چې دبیعت دخبرو په درواغ والي څه یقیني سوي ؤ خو پردې سربیره په دې لټه کي ؤ چې صحیح معلومات لاس ته راوړي او په دې هکله یې خپله پلټنه جاري ساتله ،بالاخره په دې باوري سول چې دبیعت خبرصحیح دی خو داداسي وخت ؤ چې حاجیان ټول دخپلو وطنونو په طرف تللي وه ،په هرترتیب دقریشو سپاره په یثربیانو پسې ووتل ،مخکي

---

[۲۱۸] ابن هشام ۱/ ۴۴۸.
[۲۱۹] ابن هشام ۱/ ۴۴۸.

ولاړل ترڅو سعد بن عباده او منذرّ بن عمرو يې ونيسي تعقيب يې کړل منذر ورڅخه وتښتيدی خو سعد يې ونيوی لاسونه يې له ورميږه سره دده د کجاوې په رسۍ ور وتړل تروهلو او ټکولو يې لاندي کړی او په کشولو کشولو يې مکې ته ورساوه ،هلته مطعم بن عدي او حارث بن حرب بن اميه وليدی او د دوی له لنده يې آزاد کړی ځکه سعد به په مدينه کی د دوی د قافلو ملاتړ کاوه ، انصار چې پوه سول چې سعد ورڅخه پاته سوی دی نوپرې سره اتفاق سول چې بيرته به ورپسې ځي خو دوی لا خوځيدلي نه وُ چې هغه ورته را ورسيدی او ټول يو ځای مدينې ته ورسيدل .[220]

دا وُ د عقبې دويم بيعت چې دلوی بيعت په نامه ياديږي دابيعت په داسي حالت کي ترسره سو چې د مسلمانانو زړونه يوله بل سره له ميني او محبت څخه ډک وُ ،او په دې لاره کي په پوره همت او ميړانه سره هرراز قرباني ورکولو ته چمتوُ د مدينې مسلمانانو په مکي پر خپل مسلمان ورور شفقت کوي ،زړه يې وربانديي سوځي غم شريکي ورسره کوي ،دهغه چاپه وړاندي چې دمکې پرمسلمانانو ظلم کوي خپل قهر او غوصه څرګندوي ،لنډا داچې دخپل ديني ورور سره پرهرڅه کي ځان ګډ اوشريک بولي .

دامينه او محبت هسي هم نه وه چې د وخت په تيرېدو سره له مينځه ولاړه سي ځکه ددې ميني سبب او مصدر پرالله ،رسولانو ،کتابونو باندي ايمان وُ ، داسي ايمان چې هيڅ ظالم او جابر دهغه د مينځه وړلو توان او قدرت نه لري ،داداسي ايمان وُ چې دعمل او عقيدې په ډګر کي به يې داسي کارنامې ترسره کولی چې د عادي بشر له وسه نه دي پوره ، او په دې ايمان سره دهغه وخت مسلمانانو داسي کارونه او قهرماني ترسره کړی چې نه يې اوس مثال سته ،نه پخوا او نه به يې په راتلونکي کي مثال وليدل سي .

## «دهجرت شروع»

وروسته تردې چې د عقبې دويم بيعت ترسره سو او اسلام وتوانيدی چې له کفر او جهالت څخه به ډکي بيديا کي د ځان لپاره مينه پيدا کړي ،رښتيا هم چې د دعوت له پيل څخه دادا اسلام لويه سوبه وه ،رسول الله ﷺ مسلمانانو ته د هجرت کولو اجازه

---

[220] زادالمعاد ۲/ ۵۱- ۵۲، ابن هشام ۱/ ۴۴۸- ۴۴۹.

ورکړه دغه وخت د هجرت معنی د ځان د احتمالي نجات او خلاصون په خاطر د ټولو کټو او مصلحتونو ترپښو لاندي کول او هر راز مالي قرباني پرځان منل، خو هر هجرت کوونکی به په دې ښه پوهیدی چې سر یې هم په امن نه دی کېدای سي دلاري پرسر او یا پای کي ووژل سي، راتلونکی یې هم مجهول او نامعلوم دی، خدای خبر چې سبا به له څه ډول مشکلاتو او کړاوونو سره مخ کیږي.

مسلمانانو د هجرت سفر پیل کړل، دا ټول تکلیفونه یې پرځان ومنل، مشرکینو هم دخطر په درک کولو سره زیار ایښته چې د هجرت مخ ونیسي راځي په دې اړه لاندي خبرو ته غوږ سو.

۱): لومړی مهاجر ابوسلمه رضي الله عنه ؤ، ابن اسحاق وایي نوموړي دعقبې له دویم بیعت څخه یو کال وړاندي هجرت کړی ؤ کله چې ده دهجرت اراده وکړه نو خپله ښځه او زوی یې هم له ځان سره بیول، خوخسرګنی یې ورته وویل: دخپل ځان په هکله خو څه نه سو درته ویلای خو داستا ښځه چې زموږ خپله ده څنګه یې درسره پرېږدو چې لیري وطن ته یې بوځي، هم داؤ چې ښځه یې ورڅخه راوګرځوله، په دې وخت کي دابوسلمه رضي الله عنه کورنی په غوسه سوه او وی ویل: موږ هم خپل ماشوم نه پرېږدو چې له مور سره یې ستاسي سره وي، د دواړوو قبیلو خلګو کوچنی له یو بل څخه کشوی ترڅو د کوچني لاس وختی او بیا دابوسلمه کورنی واخیستی او ابوسلمه رضي الله عنه یوازي د هجرت لار ونیوله، خو ښځه به یې هرسهار له کوره وتله او د (البطح) نامي ځای ته به تلله او ترماښامه پوري به یې هلته ژړل، پوره یو کال یې هم داسي بده ورځ وه بالاخره یې دخپلوانو له جملې څخه دیوه سړي زړه ورباندي وسوځیدی او نورو ته یې وویل دا مسکینه پرېږدی، له زوی او میړه څخه موجلا کړې ده نو ورته وی ویل: که غواړې خپل میړه ته ورسی نو ورسه، ښځي هم خپل زوی د پلرګنی څخه راواخیستی، او دمدیني په طرف ولاړه، هو دې اوږد سفر ته یې چې تقریبا پنځه سوه کیلومتره اوږد ؤ یوازي ملا وتړله، ترڅو تنعیم ته ورسیده، هلته عثمان بن طلحه ولیده، دحال او احوال له پوښتني وروسته ورسره روان سو

ترڅو قباء ته ورسيدل ،هلته يې ورته وويل :ميره دي دلته دی ،ورسره او دې په خپله بيرته مکې ته روان سو.[۲۲۱]

۲) :هغه وخت چې صهيب د هجرت نيت وکی نو د قريشو کفارو ورته وويل ته چې کله دلته راغلی نو يو حقير او نادار سړی وی،همدلته د مال او شتو څښتن سوی،اوس غواړې دلته ټولی مال له ځان سره يوسې دا هيڅکله هم نه سي کېدای ،صهيب په جواب کي ورته وويل : که زه خپل مال تاسي ته درکړم نو بيا ما پرېږدی چې ولاړ سم ؟دوی وويل هو! ده ورته وويل زما مال ستاسي سو داخبره رسول الله ﷺ ته ورسيده نو وی فرمايل :صهيب ګټه کړی ګټه کړی.[۲۲۲]

۳) :عمربن خطاب رضي الله عنه عياش بن ابي ربيعه او هشام بن وائل يو ځای سره وټاکی چې سهار به هم الته سره راټوليږي بيا به مدينې ته هجرت کوي سهار عمر رضي الله عنه او عياش رضي الله عنه راغلل خو هشام ورڅخه وګرځول سو،او کله چې دوی دواړه قباء ته ورسيدل ابو جهل او ورور يې حارث راغلل او عياش رضي الله عنه ته يې وويل : مور دي قسم خوړلی چې ترهغو به نه سر ږمنځوي او نه به سايې ته کښيني ترڅو يې ته ليدلی نه يې نو زړه وربانـدي وسوځه د دوی درې سره ؤ مور پوه وه په دې وخت کي عمر رضي الله عنه ورته وويل :عياشه !دوی غواړي تا له خپل دين څخه وګرځوي متوجه اوسه مور دي که دسپږو څخه په عذاب سي حتما به سره ږمنځ کړي او که ګرمي يې پسې واخلي خامخا به سايې ته ځي خو عياش رضي الله عنه تصميم ونيوی چې له دوی سره به بيرته مکې ته ځي ترڅو د خپلي مور قسم رښتيا کړي ،نو عمر رضي الله عنه ورته وويل : اوس چې دا اراده لری نو دا زما اوښه درسره بوزه ، دا ډيره ښه آرامه او چټکه اوښه ده ، مه ورڅخه کښته کيږه او دې د خلګو له طرفه څه شکمن حرکت وليدی نو سمدستي تښته ، درې سره روان سول په لاره کي ابو جهل ورته ويل قسم په خدای چې دا زما اوښه سرکښه ده څه کيږي که زه هم ستاسره سپور سم ؟عياش رضي الله عنه ورته وويل صحيح ده اوښې يې ودرولی او بيا يې چوکړی ، په همدې وخت کی دواړو (ابو جهل او حارث) ناڅاپه حمله وربانـدي وکړه ټينګ يې ونيوی او بيا يې وتړی او مکې ته يې يووړی ،هلته يې

---

[۲۲۱] ابن هشام ۱/ ۴۶۸,۴۶۹-۴۷۰.
[۲۲۲] ابن هشام ۱/ ۴۷۷.

خلکو ته وویل تاسي هم له خپلو بې عقلانو سره داسي چلند وکړی لکه څرنګه چې مو ږ له خپل دې جاهل سره وکړی.[۲۲۳]

داوو له هجرت کوونکو سره د مشرکینو چلند، خو سربیره پردې هم مسلمانان یو په بل پسې له مکې څخه ووتل، او دعقبې له دویم بیعت څخه یوازې دوې میاشتې او څوورځې تیرې سوی وی چې په مکه کې له رسول الله ﷺ، ابوبکر صدیق رضي الله عنه، علي رضي الله عنه او له هغو مسلمانانو پرته چې مشرکینو په زور نیولي ؤ بل مسلمان نه ؤ پاته سوی، ابوبکر رضي الله عنه او علي رضي الله عنه رسول الله ﷺ په امر دلته پاته سوی ؤ، رسول الله ﷺ او ابوبکر صدیق رضي الله عنه د سفر تیاری ونیولی وه خو په دې انتظار کې ؤ چې کله به د وتو امور رته کیږي.[۲۲۴]

امام بخاري رحمة الله علیه له حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روایت کوي فرمایي: رسول الله ﷺ مسلمانانو ته وویل ما ته ستاسي د هجرت ځای راښوول سوی دی او دلاري د دوو غرونو تر مینځ یو نخلستاني علاقه ده، په دې پسې مسلمانانو مدینې ته هجرت وکړی، دحبشې مهاجرین هم ټول مدینې ته راغلل، ابوبکرش هم مدینې ته د سفر تیاري کوله خو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: لږ صبر وکړه، هیله ده ما ته هم د هجرت اجازه راکړل سي، نو حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه ورته زما پلار دې تر تا قربان وي، ایا ته ددې امیدلری؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: هو! زه امیدلرم نو حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه هم پاته سو تر څو له نبي کریم ﷺ سره ملګری سي، ده دوې اوښې هم برابري کړی دي او پوره څلور میاشتې یې د سمر درختې بلګونه ورکړی او ښې یې وساتلی.[۲۲۵]

---

[۲۲۳] هشام او عیاش هم داسي کفارو په بندکي وو ترڅو رسول الله ﷺ هجرت وکړی یوه ورځ یې وفرمایل څوک به هشام او عیاش راخلاص کړي دولید زوی ولید وویل چې یا سید البشر ﷺ زه یې راخلاص وم دهغه وروسته ولید په پټه تو ګه کلي ته ولاړی هلته یې یوه ښځه ولیدله چې هغه دوی ته خواړه وروړي په دې سره یې د دوی ځای معلوم کړ او دایو بې چته کوروو ما ښام پر دیوال باندي ور واوښتی دواړه یې راخلاص کړل د ځان سره یې مدینې ته بو تلل ابن هشام ۱/ ۴۷۴. حضرت عمر رضي الله عنه دشلو کسانو سره مدینې ته تللی وو بخاری ۱/ ۵۸۵.

[۲۲۴] زاد المعاد ۲/ ۵۲.

[۲۲۵] صحیح البخاری باب هجرة النبی ﷺ واصحابه ۱/ ۵۵۳.

## «قریش او دهغوی پارلمان دار الندوه»

قریشو ولیدل چې درسول الله ﷺ اصحاب مهاجرسول اولادونه اومالونه یې مدینې ته یو وړل ،نو یوځل یې په زړونو کې بې ساري غم اوغوسه راوپارېدله او اور ورباندې بل سو خپل دیني اواقتصادي وجودیې په خطر کې ولیدی ، ځکه دوی حضرت محمد ﷺ ښه پېژندی او پوهېدل چې هغه څومره عظیم اومؤثر لاربنود دی په دې هم پوه ؤ چې اصحاب څومره دصبر ، استقامت خاوندان اوقرباني ته تیارکسان دي ،داوس اوخزرج قوت اوزوریې هم لیدی اوپه دې هم پوره باوري ؤ چې ددې دواړو قبیلو مشران اودعقل خاوندان ددې توان اواستعداد لري چې خپل منځني دښمني ختمي کړي اویوبل ته د وروري اوهمکاري لاس ورکړي .

دمدینې استراتیژک موقعیت یې هم له سترګوپټ نه ؤ اوپه دې خبرؤ چې داعلاقه دهغه تجارتي لاري لپاره دڅومره اهمیت درلودونکی ده کومه چې دسرې بحیرې پرغاړه له یمن څخه ترشام پوري غځیدلی ده دمکې خلګوبه هرکال شام ته د(۲۵۰) زرو طلائی دینارو په بیه تجارت درلودی ، دطائف اونورو ځایونوداوسیدونکو تجارت له دې څخه جلا ؤ اوښکاره ده چې ددې لاري امن اوآرامي د دوی دتجارت لپاره ضروری وه ، خوداهم باید ووایو چې قریشوپه مدینه کې داسلامي دعوت له ځای پرځای کېدو اود دوی په مقابل کې دهغه ځای دخلګو له راپارېدو څخه هم غټ خطر احساسه وه ،داټول خطرونه یو ځای دقریشو سترګو ته ودرېدل ،نوپه دې لټه کې سول چې درسول الله ﷺ په لاس کې راپیدا سوی خطر بالکل اوپه پوره توګه له مینځه یوسي .

دعقبې له دویم بیعت څخه تقریبا دوې نیمي میاشتي وروسته دپنجشنبې په سهار دنبوت د څوارلسم کال دصفر دمیاشتي په (۲۶« مه چې د(۶۲۲ م)کال دستمبر دمیاشتي له (۱۲) سره سمون خوري[۲۲۶] ،دقریشو پارلیمان (دارالندوه) په خپل تاریخ کي ترټولو .خطرناکه غونډه پرانیستله[۲۲۷] په دې غونډه کې دقریشو دټولو

---

[۲۲۶] دانیټه دهغه تحقیق اوڅېړني څخه وروسته معلومه سوه کوم چه علامه محمد سلیمان منصور پوري په رحمة للعالمین کتاب کي لیکلی ده ۱/ ۹۵، ۲۹۷، ۲/ ۴۷۱.

[۲۲۷] دابن اسحاق رحمه الله روایت دی چي جبرائیل علیه السلام سید البشر ﷺ ته د دې غونډې په باره باندې خبرو کړ او اجازه دهجرت یې ورکړه په دې باره باندې بل دلیل د حضرت عائشې رضي الله عنها روایت دی.

قبیلو استازو برخه واخیسته ترڅو د اسلامي دعوت دستر لاربنود له منځه وړلو لپاره لاري چاري ولټوي او په دې اړه مناسبه پرېکړه وکړي اول : ابوجهل بن هشام ،دبني مخزوم له قبیلې څخه .دویم: جبیر بن مطعم بن عدي او حارث بن عامر، دنبي نوفل بن عبدمناف قبیلې څخه .دریم: دربیعه زامن شیبه او عتبه او ابوسفیان بن حرب ،دبني عبدشمس بن عبدمناف له قبیلې څخه . څلورم : نضربن حارث له بني عبدالدار قبیلې څخه دا هم هغه لړی ده کوم چې پر رسول الله ﷺ یې داونبې پرېوني وراچولې وُ .پنځم : ابوبختري بن هشام بن زمعه بن اسود او حکیم بن حزام له بني اسد بن العزی قبیلې څخه شپږم : دحجاج زامن نبیه او منبه له بني سهم قبیلې څخه .اووم : امیه بن خلف له بني جمع قبیلې څخه .

ټول له وعدې سره سم راغلل ، که ګوري چې شیطان دیوه مخور سړي په شکل کې په دوروازه کي ولاړ دی ،قیمتي چپنه یې اغوستې وه دوی ورته وویل دامشر څوک دی ؟ده ورته وویل:زه دنجد قبیلې یومشریم ستاسي دغونډې خبرواورېدی راغلم ترڅو ستاسي خبري واورم کېدای سي زه هم په دې هکله ښه مشوره درکړم ،دوی ورته وویل : ډېرښه ،راځه او په دې ترتیب هم هغه په غونډه کې شریک سو .

## «دپارلمان ټولو اشخاصو دسیدالبشر ﷺ دوژلو پرېکړه وکړه»

دپارلمان ټول غړي حاضر سول ،خبري او مناقشې پیل سوې ،هرچا خپل رایه وړاندې کوله ابواسود وویل رائې چې محمد ﷺ له وطنه وشړو ، هرچیر چې ځي ولاړ دي سي زموږ څه کار ورسره نسته ، خودده په اخراج کې به زموږ مشکل حل سي او اړیکي به مو بیرته سره ټینګي او وحدت به مو قائم سي .

خونجدي شپین ږیري (شیطان) وویل نه دا صحیح نظر نه دی ګوري چې محمد ﷺ څومره بلیغ او منطقي شخصیت دی ،دهغه زړه وړونکي او خوږې خبري نه ویني ، او دا نه ګوري چې هغه دنورو زړونه څه ډول ځان ته راکشوي نو ددې بیرته موجوده چې هغه یوې بلې عربي قبیلې ته ولاړ سي او دوی دځان پیروي وګرځي بیا به پر تاسي حمله وکړي او دلته په خپل وطن کې به مو تس نس کړي او بیا به خپله رأیه دربانديي تحمیل کړي ، غوره داده چې په دې هکله نور فکر وکړی او بل فلان جوړ کړی .

ابو البختري وویل : هغه دا او سپنئ په پنجرو کي بند کړی ترڅو د پخوانیو شاعرانو په ډول زهیر او نابغه مړسي د نجد مشر (شیطان) بیا وویل نه دا هم چندان صحیح نظر نه دی ،ځکه که تاسي هغه بند هم کړی هغه به خپل ارشادات اصحابو ته رسوي ،کېدای سي دوی حمله وکړي او هغه له بنده آزاد کړی بیا به یې پیروان ډېرسي او پر تاسي به برلاسی پیدا کړي ،نو یه بله لاره وګورئ.

پارلمان دا دوړاه پیشنهادونه رد کړل ، خو دا ځل د مشریکانو او مکې غټ مجرم ابو جهل داسي ظالمانه وړاندیز وکی چې ټول ورسره موافق سول او هغه داسي ؤ چې ابو جهل وویل زه دده هکله داسي نظر لرم چې تاسي یو به یې هم نه لری ،دوی ورته وویل :وایه ستاڅه نظر دی ؟ ده وویل موږ باید له هري قبیلې څخه یو یو غښتلې تکړه او د ښه نسب څښتن خوان غوره کړو دوی ټولو ته توري ورکو او د هغه ﷺ د مړګ لپاره یې ورولیږو ،ټول به یو ځای ګوزار ورباندی وکړي او په قتل به یې ورسوي ،او موږ به ورڅخه بیغمه سو ،که داسي وکړو نو دده خون به پر ټولو قبیلو وویشل سي او عبد مناف به هم ددې وس نه لري چې له ټولو قبیلو سره جګړه وکړي نو مجبور به سي دیت اخیستل به و مني او موږ به یې دیت ورکړو ،نجدي مشر وویل ډېر ښه نظر دی ، د دې سړي خبره او نظریه د منلو وړ ده زما نظر هم دا دی .[228]

نو د پارلمان ټولو غړو دا نظریه او وړاندیز و منی او تصمیم یې ونیوی چې دا طرحه به ژر او سمدستي عملي کوي او پر همدې غونډه پای ته ورسیده .

## «د سید الانبیاء ﷺ هجرت»

کله چې قریشو د رسول الله ﷺ د وژلو ظالمانه پرېکړه وکړه نو جبرائیل علیه السلام وحي راوړه ،رسول الله ﷺ یې د قریشو له دې توطئې څخه خبر کی او د هجرت اجازه یې ورکړه ،د هجرت ورکولو وخت یې ورته وټاکی او داسي یې ورته وویل : نن پر خپل ځای مه بیدېږه .[229]

نبي کریم ﷺ هم په دې غرمه کي د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه کورته ورغلی ترڅو د هجرت په هکله پلان جوړ کي ،عائشه رضي الله عنها وایي سره غرمه وه موږ

---

[228] ابن هشام ۱/ ۴۸۰، ۴۸۱، ۴۸۲.

[229] ابن هشام ۱/ ۴۸۲، زاد المعاد ۲/ ۵۲.

دابوبکرصدیق رضي الله عنه په کورکي ناست ؤ چې یوسړي آواز وکی دادی رسول الله ﷺ راغلی ،سرېې پټ کړی دی داداسي وخت ؤ چې عادتًا به رسول الله ﷺ په دې وخت کي زموږ کره نه راتلی ،ابوبکر رضي الله عنه وویل :زمامور اوپلاردی تردہ قربان سي ،قسم په خدای چې دیو مهم کار لپاره راغلی دی ،عاشئه رضي الله عنها وایي :رسول الله ﷺ راغلی اوداجازې تراخیستلو وروسته کورته راننوتی ،ابوبکر رضي الله عنه ته یې وویل : داحاضرین وباسه ،ابوبکر رضي الله عنه ورته وویل : زمامور اوپلار دي ترتاقربان وي یارسول الله ﷺ داخوټول ستااهل دي ،ده وفرمایل ماته دهجرت اجازه سوی ده ابوبکر رضي الله عنه ورته وویل :اې رسول الله ﷺ مادرسره ملګری کوی؟رسول الله ﷺ ورته وفرمایل هو[۲۳۰] د هجرت له پلان جوړلو وروسته رسول الله ﷺبیرته خپل کورته ولاړی اودشپې انتظاریې کاوه

## «دقریشولطرفه دسیدالبشرمحمد ﷺ دکور محاصره کېدل»

دقریشو مجرمانو ټول ورځ پردې تیره کړه چې د دارالندوه پرېکړه عملي کړې اوددې لپاره یې یوولس مشران وټاکل چې نومونه یې په لاندي ډول دي .

۱:ابوجهل بن هشام ،۲:حکم بن ابی العاص.۳: عقبه بن ابي معیط .۴:نضربن حارث .۵ امیه بن خلف ،۶ : زمعه بن اسود. ۷ : طعمیه بن عدی . ۸ :ابولهب . ۹ :ابی بن خلف .۱۰: نبیه بن حجاج. ۱۱ :منبه بن حجاج .[۲۳۱]

ابن اسحاق وایي: کله چې دشپې تیاره خپره سوه دوی ټول درسول الله ﷺ پرکور راچاپیره سول اوددې انتظار یې کاره چې هغه بیده سي اودوی حمله ورباندي وکړي .[۲۳۲]مشرکانو پوره باور درلودی چې د دوی داتوطئه به حتما کامیابه کیږي ، تردې حده چې ابو جهل دکبر اوغرور په حالت کي خپل ملګرو ته مخ کوي اووایي : محمد رضي الله عنه وایي که تاسي دده پیروي وکی نود عربو اوعجمو باچهان به سی ،اوبیابه ترمرګ وروسته بیاراژوندي کیږی اوهلته به دا اردن دباغونوپه څیرباغونه درکړل سي اوکه تاسي داسي ونه کړل ،دده دین مو ونه مانه نوبیابه دده له لاسه ستاسي په مینځ کي قتل اوقتال وسي اوکله چې بیاراژوندي کړل سی نوبیابه په اور

---

[۲۳۰] صحیح البخاری باب هجرة النبی ﷺ واصحابه.۵۵۳.
[۲۳۱] زادالمعاد ۲/ ۵۲.
[۲۳۲] زادالمعاد ۱/ ۴۸۲.

کې سوځي [۲۳۳] د پلان د شروع کولو وخت نیمه شپه تاکل سوی ده دوی ټول بیدار او وینښ ولاړ وُ د تاکل سوي وخت انتظارېې ایستی، خو الله عزوجل تر ټولو لوی غالب ذات دی، د ځمکې او آسمان باچایي له ده سره ده څه یې چې اراده وي هغه کوي، هغه پناه ورکوونکی دی چاته چې پناه ورکوي هیڅوک هغه ته ضرر نه سي رسولای او که وغواړي څوک راګیر کړي نو بیا د هغه خلاصون نسته، الله جل جلاله خپل رسول الله ﷺ وساتی، او د قرآن کریم دا آیت موقف داسې تشریح کوي.

وَإِذْ يَمْكُرُ بِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِيُثْبِتُوكَ أَوْ يَقْتُلُوكَ أَوْ يُخْرِجُوكَ وَيَمْكُرُونَ وَيَمْكُرُ اللهُ وَاللهُ خَيْرُ الْمَاكِرِينَ

۳۰. سورة الانفال **ترجمه**: او یاد کړه (اې محمد ﷺ!) هغه وخت چې مکر فریب به کاوه ستا سره کافرانو لپاره د دې چې بندي کړي تا یا ووژني تا، یا وباسي تا د مکې څخه او پټ فریب کوي دوی ستا سره او جزا د فریب ورکوی الله دوی ته او الله عزوجل بهتر د جزا ورکوونکو د مکر دی.

## «قریش بیا هم له فاحشي ناکامۍ سره مخ سول»

سره له دې چې قریشو د خپل وحشیانه پلان د تطبیق لپاره پوره تیاری نیولی وه خو بیا هم له فاحشي ناکامۍ سره مخ سول په همدې سخت وخت او مشکل وخت کې رسول الله ﷺ د ابو طالب زوی حضرت علي رضی الله عنه ته وویل: ته زما په بستره کی بیده سه او دا زما شین حضرمي څادر د ربانديې واچوه [۲۳۴]، بیده سه، تا ته به د دوی له لاسه هیڅ ضرر درونه رسیږي رسول الله ﷺ به په همدې پټو کې بیده دی. [۲۳۵]

بیا رسول الله ﷺ له کوره ووتی د دوی په په مینځ کې تیر سو او یو موټې شګلنه خاوره یې واخیسته له د دوی پر سرونو یې وروشیندله الله عزوجل د دوی سترګې وربانديې ړندې کړې او وی نه لیدی او دا مبارک آیت یې تلاوت کوی: وَجَعَلْنَا مِنْ بَيْنِ أَيْدِيهِمْ سَدًّا وَمِنْ خَلْفِهِمْ سَدًّا فَأَغْشَيْنَاهُمْ فَهُمْ لَا يُبْصِرُونَ ۹.سورة یس **ترجمه**: او ګرځولی مودی په مخ د دوی کې دیوال او وروسته د دوی دیوال، نو پټې کړې مودې سترګې د دوی، نو دوی هیڅ نه ویني، رسول الله ﷺ د ټولو مشرکانو پر سر خاوره وروا چوله

---

[۲۳۳] ابن هشام ۱/ ۴۸۳.

[۲۳۴] په حضرموت یعنی جنوبی یمن کی جوړسوی پټوچې په حضرمی چادر سره مشهور وو

[۲۳۵] ابن هشام ۱/ ۴۸۲، ۴۸۳.

اوسیده دحضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه کورته ورغلی له هغه ځای دواړه دشپې له مخ
دیو کړکۍ له لاري ووتل اودیمن پرخوا روان سو اوغارثورت ورسېدل[۲۳۶]، هلته
محاصره کوونکي دټاکل سوي وخت دراسیدو انتظار کوي خودوخت له رارسیدو
لږ شیبه مخکي په خپله نامرادي اوناکامي پوه سول ،یوسړی ورته راغلی او ورته
وويل : څه انتظارباسی؟دوی ورته وويل : د محمد ﷺ انتظار کوو، ده ورته وويل
نامراده سی ناکام سواست هغه درڅخه تللی اوستاسي پرسرونو يې خاوري در
اچولي دي ،هغه پرخپله لار تللی دی ،دوی وويل قسم په خدای موږ خونه دی لیدلی
سرونو ته يې لاس کی اوخاوري يې ورڅخه پاکي کړې ،نود دروازې له چاک څخه
يې دننه وکتل که ګوري چې حضرت علي رضي الله عنه بیده دی دوی وويل قسم په خدای
هغه دي محمد ﷺ لاتراوسه بیده دی،دوی ترسهاره منتظرۇ ترڅوسهار سو حضرت
علي رضي الله عنه له ځایه راولاړسو دوی هغه راونیوی او دمحمد ﷺ په هکله يې معلومات
ورڅخه غوښتل ده ورته وويل :زه دهغه په هکله هیڅ معلومات هم نه لرم.[۲۳۷]

## «له کوره بیاتر غار ثوره»

رسول الله ﷺ دنبوت په څوارلسم کال دصفر دمیاشتي په (۲۷)شپه چې (۶۲۲م)
کال[۲۳۸] د ستمبر دمیاشتي له (۱۲/۱۳)سره سمون خوري له خپل کور څخه ووتی او
دابوبکر رضي الله عنه کورته ورغلی اودهغه ځای څخه دواړه دکورله ورستي کلکینۍ څخه په
ډیر چټکۍ سره ووتل ترڅو سهاردرباندي نه سي ،رسول الله ﷺ په دې پوهیدې
چې مشرکان به يې په لټه پسې وزي ،او لومړی لار چې مشرکان به يې ورته نیسي
هغه دشمال خوانه دمدینې لویه لار ده نوده په خپل حکمت سره ددې مقابله یعني
دجنوب لارونیوله،دا لار یمن ته تللی وه،تقریبا پنځه میله لیري مخکي ولاړل ترڅو
دثورغرته ورسیدل،دا ډیرلوړ،سخت اودلویولویو ډبرو درلودونکی غردی،د رسول

---

[۲۳۶] ابن هشام ۱/ ۴۸۳، زادالمعاد ۲/ ۵۳.

[۲۳۷] ابن هشام زادالمعاد.

[۲۳۸] رحمة للعالمین ۱/ ۹۵، که دهجري کلونو شروع له محرم څخه فرض کړو نودامیاشت صفره دنبوت دڅوارلسم کال میاشت راځي اوکه دکلونو پیل دبعثت له میاشتي څخه فرض کړو نوبیا دا دنبوت د دیارلسم کال میاشت راځي او دسیرت زیات لیکونکي کله اول اوکله دوهم فرضیه صحیح بولي اوداوجه ده چې دحوادثو په ترتیب کي څه غلطي هم ورڅخه وسي نو موږ ددي شیانو په فهم کي نیولو سره دابنه بولو چې دکلونو شروع دمحرم دمیاشتي څخه ووشي.

[۲۳۹] رحمة للعالمین ۱/ ۹۵، مختصرسیرت الرسول للشیخ عبدالله النجدي ص ۱۶۷.

الله ﷺ دواړي پښې لڅي وي بلکه داهم ويل کيږي چې رسول الله ﷺ دپښو په ګوتو تلی ترڅو دپلونو اثريې پاته نه سي ، اوپه دې سره يې پښې زخمی سوی په هر حال ابوبکر رضی الله عنه دغره له لمني څخه دغره په څوکه کي واقع غارته رسول الله ﷺ په شا يو وړی ،داغارپه تاريخ کي دثور دغارپه نامه ياديږي .[239]

## «غارته اول حضرت صديق رضی الله عنه بيا سيدالبشر ﷺ داخل سو»

کله چې غارته ورسيدل ابوبکرصديق رضی الله عنه وويل : يارسول الله ﷺ !ته به غارته ترهغو نه ننوځی ترڅوزه ورننوتلی نه يم او وګورم که هلته څه مضر شی وي چې لومړی زه ورسره مخ سم ،ابوبکر رضی الله عنه غارته ننوتی اوجارو يې کی اوټول سري يې دخپلي لنګوټې په ټوټوبند کړل ، يوازي دوه سوري پاته سول هغه يې په خپلو پښو بند کړل ،بيايې رسول الله ﷺ ته وويل :مهرباني وکړه غارته راننوزه ، رسول الله ﷺ غارته تشريف يووړی اوهلته يې دابوبکر صديق رضی الله عنه په غيږکي سرکيښووی اوبيده سو په دې وخت کي ابوبکرصديق رضی الله عنه له سري څخه پرپښه يوشي وچيچی اوله دې ويري چې رسول الله ﷺ راوينښ نه سي هيڅ ونه ښوريدی خواوښکي يې درسول الله ﷺ پر رخسارمبارک راتوی سوی هغه راوينښ سو او ورته وی ويل : څه خبره ده ابوبکره ! ده ورته وفرمايل څه شي وچيچلم زما مور اوپلار دي ترتا قربان وي ،نورسول الله ﷺ پرهغه ځای خپلي مبارکي ناړي واچولی اوپه دې سره دابوبکر رضی الله عنه درد ورک او آرام سو [240]دوی درې شپې يعني د(جمعې ،هفتې او يکشنبې) شپې په غارکي پټ ؤ .[241]

دابوبکر رضی الله عنه زوی عبدالله به دشپې له دوی سره بيده کيدی،حضرت عائشه رضی الله عنها وايي عبدالله تنکې پوه او ځيرک ځوان ؤ سهار وختي به له دوی څخه را ووتی او داسي وخت به مکې ته راورسيدی چې ګومان به کيدی شپه يې هم دلته تيره کړی ده اوقريشو به چې درسول الله ﷺ پرخلاف کومي خبري کولی ،تولي به يې اوريدلی اوځان به يې وربانديې پوه کوی او بيابه دشپې په تياره کي دوی ته ورتلی اوداخبري

---

[240] داروايت دحضرت عمر رضی الله عنه څخه هم روايت سوی دی په هغه کي داهم سته چي ددي زهرو اثر دابوبکر رضی الله عنه دمرګ په وخت کي بيرته ښکاره سو اوهم دغه زهر يې دمرګ سبب سو مشکوة المصابيح باب مناقب ابی بکر رضی الله عنه ۵۵۶/۲

[241] فتح الباری ۳۳۶/۷.

به یې ور رسولی ،دحضرت ابوبکر رضي الله عنه غلام یعني عامربن فهیره به مه پیوله او کله چې به شپه پخه سوه نورمه به یې دغارخولې ته راوستله اودغار دواړو ملګرو به شیدی څښلې اوپه آرام به بیده کېدل ،عامر به بیاسهار وختي رمه بیوله پرکومه به چې عبدالله بن ابوبکر رضي الله عنه تللی ؤ ترڅو هغه دپلونو اثر اونښه پاته نه سي.[۲۴۲]

هلته دتوطئې دتطبیق دشپې په سهار قریش له خپلې ناکامۍ اودرسول الله ﷺ له نجات څخه باوري سول نژدی ؤ چې لیونیان سي لاره ورڅخه ورکه سوه لومړی یې حضرت علي رضي الله عنه راونیوی ښه یې ووهه کعبې ته یې یو وړی هلته یې بندي کړی ترڅو درسول الله ﷺ په هکله معلومات ورڅخه واخلي[۲۴۳] ،اوکله چې یې له حضرت علي رضي الله عنه څخه څه ثبوت نه کړل نو دابوبکر صدیق رضي الله عنه کورته ورغلل او دروازه یې ور وټکوله دابوبکرصدیق رضي الله عنه لور اسماء رضي الله عنها راووته ورته وویل پلار دي چیري دی ؟دې جواب ورکړ چې والله که زه خبره یم چې پلار مي چیري دي په دې جواب سره خبیث ملعون ابوجهل داسي کلکه څپېړه ورکړه چې دغوږ لښتې ایسته ولویده[۲۴۴]

قریشو دیو عاجلې اوفوق العاده غونډې په نتیجه کې فیصله وکړه چې باید دنبي کریم او ملګري دنیولولپاره یې ټول وسایل اوامکانات په کار واچول سي نو سمد ستي یې له مکې څخه دباندي ساحې ترکلکي مسلحي څارني لاندي ونیولې او اعلان یې وکی هرڅاکه دوی دواړه مړه یاژوندي دوی ته راوستل نو دوی به دهریوه په بدل کي سل اوښان جایزه ورکوي[۲۴۵] ددې جایزې تراعلان وروسته ټولوخپلې هڅي ګړندې کړی پلې اوسپاره او پل پیژوندونکي یوې خوا بلې خواته خپاره سول ،غرونه دښتي خوړونه اودرې یې پلټلی خوټول نامراده ؤ او هیڅ په لاس نه ورتلل.

ځیني پلټونکي هم دغار خولې ته ورغلل ،خوالله تعالی په خپل کار کي غالب اوبرلاسی دی ، امام بخاري رحمة الله علیه دانس رضي الله عنه اوهغه له حضرت ابوبکرصدیق رضي الله عنه څخه روایت کوي وایي زه له رسول الله ﷺ سره په غار کي وم کله مي چې سرراپورته کی که ګورم چې دخلګو پښې راته ښکاریږي ،نورسول الله ﷺ ته مي

---

[۲۴۲] صحیح البخاری ۱/ ۵۵۳، ۵۵۴.

[۲۴۳] رحمة للعالمین ۱/ ۹۶.

[۲۴۴] ابن هشام ۱/ ۴۸۷.

[۲۴۵] صحیح البخاری ۱/ ۵۵۴.

وويل که د دوی کوم يوهم هسي ګاندي وګوري نو موږ به ووينې ده وفرمايل :چوپ يااباکر! موږ دوه يو دريم موالله ﷻ دی اوپه بل روايت کي راځي چي ابوبکره دهغو دوو کسانو په هکله څه ګومان کوی چي دريم يې الله ﷻ دی.[٢٤٦]

دايوه معجزه وه چي الله تعالی خپل رسول الله ﷺ په مشرف کړی پلټونکي بيرته ورڅخه وګرځېدل په داسي حال کي چي د دوی او د رسول الله ﷺ ترمينځ يوازي دڅو قدمو فاصله وه.

## «دمديني پر طرف دسيدالبشر ﷺ سفر»

کله چي دلټي اوپلټني هلي ځلي کراري سوی اوقريش تر درو ورځو مسلسلو خوبې نتيجې منډو ترړو څخه وروسته څه ناڅه آرام سول ،نورسول الله ﷺ اوملګری يې له غار څخه دوتو تياری ونيوله ،دوی مخکي لاد عبدالله بن اريقط الليثي سره چي به صحرايي لارو پيژندنه کي يې خاص مهارت درلودی دپيسوپه مقابل کي مديني ته درسولو خبره کړی وه ،نونوموړی هغه وخت لامشرک ؤ خودوی ته داعتماد وړؤ ،خپلي اوښي يې ورته سپارلي وی اوداوعده يې ورسره کړی وه چي درې ورځي وروسته به دغارخولې ته راځی همدا وه چي عبدالله بن اريقط د دوشنبې په شپه دهجرت دلومړي کال دربيع الاول په لومړی نيټه چي(٦٢٢م) کال دستمبر له (١٦) سره سمون خوري اوښي دغار خولې ته راوستلی ،نوابوبکر رضي الله عنه نبي کريم ﷺ ته وويل :پلارمي له تاقربان سه يارسول الله ﷺ !له دې دوو اوښو څخه يوه اوښه يې ستاوهغه بهتره اوښه يې وړاندي کړه ،رسول الله ﷺ ورته وويل صحيح ده خوپه بيه.

په دې وخت کي اسماء بنت ابوبکر صديق رضي الله عنها دلاري توښه ورته راوړه خوددې دتړلو لپاره يې څه نه ؤ ورسره راوړی اوکله چي دوی دسفر اراده وکړه اسماء رضي الله عنها څه پيدا نه کړل چي هغه توښه په کي وتړي نوسمدستي يې دخپل ملاکمربند دوه

---

[٢٤٦] صحيح البخاری ١/ ١٦- ٥٥٨، دابوبکر رضي الله عنه واهمه دخپل ځان په خاطر نه وه بلکه دوهم سبب يه داوو لکه په يوه روايت کي چي راغلی دي چي کله دوی وليدل نو درسول الله ﷺ په باره باندي زيات غمجن سو او ويه ويل که زه ووژل سم يو شخص يم پروا نسته خوکه ته ووژل سي ټول امت هلاک سو په دې وخت کي سيد البشر ﷺ ورته وويل مه خفه کيږه الله ﷻ زموږ سره دی. مختصر سيرت الرسول ﷺ ١٦٧.

ځایه کی په یوه ټوټه یې خوراک وتړی او په بله یې ملاوتړله او په دې سره ذات النطاقين وبلله سوه.[۲۴۷]

بیا رسول الله ﷺ او ابوبکر صدیق رضی الله عنه روان سول عامر بن فهیره رضی الله عنه هم ورسره ؤ او لاري پیژندونکی عبدالله بن اریقط دبحري دغاړي لاره غوره کړه او همداسي مخکي ولاړل،

کله چي له غاره ووتل لومړی دجنوب پلوته دیمن په طرف ولاړل، بیا دبحر دغاړي پرخوا دلویدیځ لوري ته راوګرځېدل او مخکي ولاړل ترڅو داسي لاري ته ورسېدل چي عام خلګ به نه وربانديي تلل، بیا شمال طرف ته وګرځېدل او دسرې بحیرې غاړي ته نژدې پرداسي لار روان سول چي له کوم یوه سړي پرته هیڅوک هم نه وربانديي تلل.

ابن اسحاق دهغو ځایو نومونه ذکر کړي دي له کومه ځخه چي رسول الله ﷺ په دې سفرکي تیرسوی دی هغه وايي لاري پیژندونکی لومړی دوي دمکې په لاندنۍ برخه کي بوتلل بیا د ساحل په لاره روان سول او عسفان په لاندنۍ برخه کي یې لاره غوڅه کړه بیا دامج په لاندنۍ برخه کي روان ؤ او کله چي له قدید ځخه تیر سول نوبیایې لاره غوڅه کړه هم داسي مخکي ولاړل دخرار په لاره ولاړل بیا په ثنیة المره او ورپسې په لقفا او بیا د لقف له بیابان ځخه تیر سول، ورپسې دمجاح دښته ونیوه، بیا دمجاح له ګرځندی (موړ) ځخه پوري وتل او ذی الغضوین ګرځندی یې ونیوله، په ذی کشر ورننوتل او داسي په جلاجلا بیا په اجرد ذا سلم او د اعداء له لاري دتعض په دښته او مخکي عبابید او داسي په فاجه بالاخره په عرج راکښته سول او مخکي دقباء[۲۴۸] په طرف ولاړل، اوس راځی دلاري په اوږدو کي واقع سوي ځیني پیښي ترنظر تیري کړو.

لومړی: امام بخاري رحمة الله علیه له حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ځخه روایت کوي وايي کله چي دشپې له غاره ووتو نوداټوله شپه او سبا ورځ ترغرمې مومزل وکی دغه وخت لاره بالکل خالي وه، هیڅ لاروی هم نه لیدل کېدی، که ګورو چي یوه پرښه ده

---

[۲۴۷] صحیح بخاری ۱/ ۵۵۳- ۵۵۵- ابن هشام ۱- ۴۸۶.

[۲۴۸] ابن هشام ۱/ ۴۹۱- ۴۹۲.

او په سرو يې تراوسه لا لمر نه ؤ راغلی ،موږ هم دلته واړول ماپه خپل لاس رسول الله ﷺ ته ځای تيار کی اويو پوستين مي ورباندي هوار کی او ورته ومي ويل :يارسول الله ﷺ !دلته بيده سه زه به شاوخوان څارنه اومراقبت کوم ،رسول الله ﷺ بيده سو اوماڅار کاوه په دې وخت کي مي يو شپون وليدی چې رمه يې ددې ډبري پرخوا را روانه کړې وه اوغواړي زموږ په څير دلته واړوي ماورته وويل ته د چايې ؟هغه دمکې يامدينې دکوم سړي نوم واخيستی ،ورته ومي ويل : ميږي دي شيدې لري؟ ده وويل هو !اويوه ميږه يې راونيوله ترڅوېې ولوشی ما ورته وويل داتی يې له خاورو ،ويښتانو او نورو شيانو څخه پاک کړه بايې په يوه لوښي کي شيدې راولوشلی زما سهريوه چرمي بدنی وه رسول الله ﷺ به اوبه ورڅخه څښلی او اودس به يې په کاوه ، بيا رسول الله ﷺ ته راغلم خومناسبه مي ونه بلله چې راويښ يې کړم ،ترڅو لاندنی برخه يخه سوه او ورته ومي ويل :يارسول الله ﷺ !مهرباني وکړه شيدې وڅښه رسول الله ﷺ دومره شيدې وڅښلی چې زه ډير پرې خوښ سوم بيايې وفرمايل : دحرکت وخت نه دی ؟ماجواب ورکی هو ! دتګ وخت دی بيا روان سوو .[249]

دويم : په دې سفرکي دحضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه عادت داؤ چې په رسول الله ﷺ پسې به وروسته پراوښه سپور ؤ ،اوڅرنګه چې پوخ ښکاريدی نودخلکو توجه به هم ده ته وه اود رسول الله ﷺ په څير کي دځوانی نښي ډيري وی دخلکو زياته توجه به ورته نه وه ،اوهمدا وجه وه چې کله به له چاسره مخامخ سول نو دوی به له حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه څخه پوښتنه کوله چې داسړی څوک دی؟ابوبکرصديق رضي الله عنه به په جواب کي ورته وويل : دا زمالارښود دی او ربدونکو به داسي ګومان کاوه چې دالارښيي خو دده مراد به هغه دخير او دين لار وه .[250] دريم : سراقه بن مالک د دوی په لټه پسې وتلی ؤ هغه وايي زه دخپل قوم بني مدلج له خلکو سره ناست وم چې له دوی څخه يوسړی راغلی راته ودريدی او وی ويل : اې سراقه! ماهم دا اوس له ساحل سره څو کسان وليدل ،فکرکوم چې هغه محمد ﷺ اوملګری

---

[249] صحيح البخاری ۱/ ۵۱۰.

[250] صحيح البخاری له انس رضي الله عنه څخه ۱/ ۵۵۶.

یې وې سراقه وایي زه پوه سوم چې داکسان هم دوی دي خوده ته مي وویل : دادوی نه سي کېدای اوداتا چې څوک لېدلي دي هغه فلاني فلاني دی چې زموږ مخ ته تیرسول ،بیاڅه وخت هم دلته په مجلس کي پاته سوم ، وروسته ولاړ سوم اوکورته ولاړم خپلي مینځي ته مي امروکی چې آس راوباسي اوهلته دغونډۍ په شاکي راته انتظارسي،ماخپله نیزه راواخیستله اودکور دشاله دروازې څخه په داسي حال کي راووتلم چې دنیزې څوکه مي په مزکه ولګوله اوپورتنۍ خوامي یې هم کښته نیولی وه آس ته ورغلم وروباندي سپور سوم اوپوه سوم چې هغه مي دمعمول په څیر په ځغاسته مخ ته وړي ،آن تردې چې دوی ته ورلنډ سسوم توبري ته مي لاس ګی اودفال غشي مي ورڅخه راویستل اوفال مي وروباندي واچاوه چې آیا دوی ته تاوان ورسوم که نه؟ نو هغه غشی راووتی چې ماخوښ نه ؤ خو ددې غشي پروامي ونه کړه پرآس سپور سوم اوپه چټکي سره یې دوی ته دومره ورلنډ کړم چې درسول الله ﷺ دقرائت آواز مي اورېدی، هغه خپل قرائت کاوه ،هیڅ بل طرف ته یې التفات نه کاوه ،خوابوبکر رضي الله عنه ډیر یوې بلې خواته کتل په دې وخت کي زما دآس پښې ترګونډو په مځکه کي ښخي سوی ،زه ورڅخه ولویدم بیامي آس وواهه اوهغه په ډیر مشکل سره خپلي پښې راویستی اوکله چې چګ ودرېدی نودپښو له نښانو څخه یې د دود په شان ګرد پورته سو دلته مي بیاپه غشوفال واچاوه بیاهغه غشی راووتی چې زماخوښ نه ؤ نودامان ږغ مي وروباندي وکی هغوی راته ودرېدل ،ماپرآس پښه واړوله او ورغلم ، اوهغه وخت چې زه له دوي څخه منع کړل سوی وم نوداخبره مي په زړه کي پخه سوی وه چې رسول الله ﷺ به غالب او امربه یې برلاسي کېږي ، ورته ومي ویل ستاقوم ستاپرسر جایزه ټاکلې ده اوله دې څخه مي هم خبرکړی چې خلک دده په هکله څه نیت او اراده لري ،وروسته مي خپل زاد اوتوښه ور وړاندي کړه خوهغوی څه ورڅخه وانه خیستل اونه یې دڅه سوال راڅخه وکی ،یوازي دومره یې راته وویل :چې حال پټ ساته ماورته وویل : دامن خط راته

وليکه نو عامر بن فهيره رضي الله عنه ته يې د خط ليکلو امر وکی هغه د پوستکي پر يوه ټوټه خط وليکی بيا رسول الله ﷺ مخ په وړاندي ولاړی .[٢٥١]

په دې هکله له حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه څخه يو روايت هم رانقل سوی دی هغه وايي موږ روان سو او خلک زموږ په لټه کي وُ خو له سراقه رضي الله عنه پرته هيچا هم پيدا نه کړو او کله چې د سراقه رضي الله عنه آس رانژدې سو ما وويل يا رسول الله ﷺ دا دی پلټونکی را ورسيدی ده ﷺ راته وفرمايل[٢٥٢]: لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللهَ مَعَنَا. سراقه رضي الله عنه بيرته ستون سو او خلک لا په تلاش کي وُ . ده ورته وويل :ما مکمل او پوره احوال درته راوړی ، نور د لټه ستاسي هلي ځلي بې ګټي دي په دې خواکي چې څه لازم وُ هغه وسول په دې طريقه يې خلک را وګرځول ،نو موږ د ورځي په پيل کي د دوی په لټه پسې وتلی وُ خو د همدې ورځي په پای کي د دوی نګهبان او ساتونکی ګرځيدلی وُ .

څلورم : په دې سفر کي يې د خزاعيه کورنۍ د ام معبد نومي ښځي خيمو هم ګذر وسو ،نوموړي مشهوره او تکړه ښځه وه اکثر وخت به شرخ په لاس د خيمې په خوله کي ناسته وه او څوک به چې ورتلل نو د خوراک او څښاک بندوبست به يې ورته کاوه ، رسول الله ﷺ او ملګري يې د څه شي غوښته ورڅخه وکړه دې ورته وويل قسم په خدای که مي څه درلودای نو ستاسي په ميزباني کي به مو کوتاهي نه وای کړی زموږ ميږي هم ډيري ليري دي او دغه ډير وچ کال وُ .

رسول الله ﷺ وکتل او د خيمې به کونج کي يې يوه ميږه وليدله نو وی فرمايل :دا څه ډول ميږه ده اې ام معبدې ! دې وويل :دا د ډيري کمزورۍ له امله له رمې څخه پاته سوې ده رسول الله ﷺ وفرمايل شيدې کوي؟ دې ورته وويل : دا له ښو لوېدلې ده نو شيدې په څنګه وکړي ده ورته وفرمايل : اجازه راکوې چې وې لوشم ،دې وويل مور او پلار مي ترتا قربان که لازمه وينې نو وې لوشه ،وروسته رسول الله ﷺ په خپل مبارک لاس د هغې غولانځه مسحه کړه ،بسم الله يې وويله او دعا يې وکړه يو وار د ميږي غولانځه ډکه سوه او ښې سره ليري کړی نو رسول الله

---

[٢٥١] نفس المصدر ١/ ٥٥٤- سراقه هغه وخت ورپسي ووتی چي دوی ترقديد تير سول زاد المعاد ٢/ ٥٣، په غالب ګمان سره سراقه د دوی د سفر په دريمه ورځ پسي وتلی وو.

[٢٥٢] صحيح البخاری ١/ ٥١۶.

ﷺ دام معبد هغه غټ لوښي وغوښتي کوم چې دیو ټولګی لپاره بس ؤ او میره یې په کې ولوشله ترڅو په مور کوئي څک ودرېدی بیایې ام معبد ته شیدی وروڅښلي ترڅو ښه مړه سوه بیایې خپل ملګري ماړه کړل په پای کې یې په خپله وڅښلي او ورپسې میره بیاولوشله ترڅولوښی ښه ډک سو اوله دې سره یې پرېښووی او دوی ځیني روان سول.

لږساعت وروسته ابو معبد له خپلو کمزورو سستو اوډنګرو بزو سره را ورسیدی اوکله چې یې شیدی ولیدلې نو حیران سو اوخپلې ښځې ته یې وویل: داشیدی له کومه سوی؟رمه خو لیري ده اوپه کور کې هم شیدې ورکوونکی میږه نسته ،دې ورته وویل :قسم په خدای همدا اوس ډیر مبارک سړی راغخه رخصت سو چې دا اوداسي خبري یې وی حال یې داسي اوداسي ؤ ،ده وویل :هو فکر کوم داهغه څوک دی چې قریش یې لټوي ،نواې ام معبده ! راته معرفي یې کړه اونښې یې راته ووایه :دې هم په خپله بلیغه ژبه دهغ عظیم صفات داسي ورته بیان کړل ،که ته وایې همدا اوس یې په مخ کې ولاړدی ،دکتاب په پای کې به دابیان رانقلوو ،ابو معبد وویل قسم په خدای چې داد قریشو هم هغه ملګری دی دکوم په هکله چې دوی مختلفي خبري کوي ، زه دهغه دملګرتیا اراده لرم ، اودامکان په صورت به هغه حتما داکار سرته رسوم ، له بلي خوا هلته په مکه کي یوداسي آوازپورته سو چې ټول خلک یې اوري خو ویونکی یې نه معلومیږي ،دا آواز داسي ؤ.

جزى الله رب العرش خير جزائه ........رفقين حلا خيمتى ام معبد

همـانـزلا بالبروار تحـلا بـه ..........وافلح من أمسى رفيق محمد

فياالقصى مازوى الله عنكم ..............به من فعال لايحاذى وسؤدد

ليهن بى كعب مكان فتاتهم ..............ومقعدها للمؤمن بمرصد

سلوا اختكم عن شاتها وانائها ...........فانكم ان تسألوا الشاة تشهد

**ترجمه**: دعرش دمالک الله جل جلاله د دوو هغو ملګریو ته بهترینه جزا اوبدله ورکړی کوم چې دام معبد خیمې ته راغلی ؤ ،دوی دواړه هلته په خیر اونیکۍ راغلی ؤ اوبیرته په خیراونیکۍ سره ولاړل ، اوبریالي دي هغه څوک چې دمحمد ﷺ

ملګرتیا کوي ،اې قصی ! الله عزوجل له هغه سره ځومره بې مثاله کارنامې او سرداری، له تاسي ځخه یو وړی بنو کعب ته د دوی دسیاه سري کوراودمؤمنانو دنګهداشت ځای مبارک دی ،تاسي له خپلي خور ځخه ددې میرې او لوښي په هکله پوښتنه وکړي ،که تاسي له هغه میرې ځخه هم وپوښتی نوهغه به هم شاهدي ووایي .

اسماء رضی الله عنها وایي موږ خبر نه وُ چې رسول الله صلی الله علیه وسلم کومي خواته تللی ترڅو دمکې لاندنی برخي ځخه یوجن راغلی اودا پورتني ابیات یې وویل خلک ورپسې ورغلل او ورپسې تلل آواز یې اورېدی خوهغه یې نه لېدی ترڅو هغه دمکې له پورتني برخي ځخه ووتی اسماء رضی الله عنها وایي کله موچې داخبري واورېدلی نوپه سوو چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دمدینې وطرف ته تللی دی .[۲۵۳]

پنځم : رسول الله صلی الله علیه وسلم دلاري په اږدو کي له ابو بریده سره هم مخامخ سوی وُ نوموړی دخپل قوم مشر وُ اودقریشو له طرفه داعلان سوي جائزې کټولو په طمعه درسول الله صلی الله علیه وسلم اوابوبکر صدیق رضی الله عنه له لټه پسې راوتلی وُ خو کله چې له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره مخامخ سو اود هغه مبارکي خبري یې واورېدی نوپرهم هغه ځای دخپلو قوم له اویا کسانو سره په اسلام مشرف سو ،بیایې خپله لنګوټه راخلاصه کړه اودبیرغ په ډول یې دنیزې پرڅوکه ټینګه کړه په دې سره یې دااعلانول غوښتل چې دادي دامت اوسلامتیا باچارا روان دی ترڅو دادنیاپه عدل او انصاف سره ودانه کړي .[۲۵۴]

شپږم : دهجرت په لاره زبیر رضی الله عنه هم درسول الله صلی الله علیه وسلم په ملاقات مشرف سو زبیر رضی الله عنه چې له یوې ډلي مسلمانانو تجارانو سره له شام ځخه راګرځیدلی وُ ،رسول الله صلی الله علیه وسلم اوابوبکر رضی الله عنه ته یې یوه جوړه سپین کالي هم هدیه کړل .[۲۵۵]

## «دسیدالبشر صلی الله علیه وسلم وقباء ته رسیدل»

د دوشنبې په ورځ دنبوت دڅوارلسم اودهجرت دلومړني کال درببع الاول په اتمه چې د (۶۲۲ م) کال دسټمبر له (۲۳) سره سمون خوري رسول الله صلی الله علیه وسلم قباء ته ورسیدی .[۲۵۶]

---

[۲۵۳] زادالمعاد ۲/ ۵۳- ۵۴.

[۲۵۴] رحمة للعلمین ۱/ ۱۰۱.

[۲۵۵] داله عروة بن زبیرځخه دامام بخاری روایت دی۱/ ۵۵۴.

عروه بن الزبیر وایي چې په مدینه کې مسلمانانو له مکې څخه د رسول الله ﷺ د روانېدو خبر اورېدلی ؤ نو هر سهار وختي به د حرة پراخوا راوتل او هلته به یې ترغرمې پورې د رسول الله ﷺ انتظار کاوه، یوه ورځ هغوی له ډېر انتظار وروسته کورو ته ستانه سول په دې وخت یو یهودي د کوم شي د کتلو لپاره خپل برج ته ختلی ؤ که ګوري چې رسول الله ﷺ او ملګري یې په سپینو کالو کې چې د سپوږمۍ په شان رڼا کوي را روان دی نو یو ځل یې له خولې څخه په لوړ آواز دا سې الفاظ ووتل: اې عربو! دا دی ستاسې هغه پلار چې تاسې یې په انتظار کې واست راغلی، د دې آواز په اورېدو سره مسلمانان ټول را پورته خپل وسلې یې واخیستې او د خپل رهبر محمد ﷺ استقبال ته وروان سول.[257]

ابن قیم رحمه الله وایي په همدې وخت کې په بني عمرو بن عوف چې د (قباء او سیدونکي ؤ) کې هم د تکبیر آوازونه پورته سول، مسلمانانو له ډېر خوشحالی څخه په لوړ آواز تکبیرونه ویل او د ده مبارک استقبال ته وروان ؤ ترڅو حضور ﷺ ته ورسېدل، او د نبوت په سلام سره یې د ده استقبال وکی او کله د بورا ګانو په شان پر خپل لار بسود را چاپیره سول، رسول الله ﷺ د وقار او عظمت د لوی غره په شان د دوی په مینځ کې تشریف درلودی او د الله تعالی له خوا دا آیت وربا ندې نازل سو[258]

فَإِنَّ اللَّهَ هُوَ مَوْلَاهُ وَجِبْرِيلُ وَصَالِحُ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمَلَائِكَةُ بَعْدَ ذَٰلِكَ ظَهِيرٌ. سورة التحریم

**ترجمه:** نو بیشکه الله هم د هغه مددګار دی د هغه نبي او جبرئیل او صالح د مؤمنانو یې هم مددګار دي او ملائکې یې هم وروسته له دغه مددګاري څخه مددګاراني دي

عروه بن الزبیر وایي له خلکو سره ترلېدني او کتني وروسته رسول الله ﷺ له خلکو سره یو ځای راسته طرف ته ولاړی او د بني عمرو بن عوف په مینه کې یې واړول، دا د ربیع الاول میاشت او د دوشنبې ورځ ده. د لته ابوبکر صدیق رضي الله عنه د خلکو د هر کلي لپاره ودرېدی او رسول الله ﷺ چوپ ناست ؤ او هغه انصار چې رسول الله

---

[256] رحمة للعالمین ۱/ ۱۰۳، په دې ورځ باندې د رسول الله ﷺ عمر مبارک پوره ۵۳ کاله وو او که د نبوت شروع د عام الفیل ۴۱ کال څخه و منو چې وای رسول الله ﷺ د عام الفیل په ۴۱ کال د رمضان په میاشت کې په نبوت مشرف شو نو په دې ورځ قباء ته د رسیدو ورځ د نبوت ۱۲ کاله پنځه میاشتې ۱۸ یا ۲۲ ورځې تیرې سوي وي.

[257] صحیح البخاری ۱/ ۵۵۵.

[258] زاد المعاد ۲/ ۵۴.

ﷺ یې مخکې نه ؤلیدلی دوی به د سلام او ښه راغلاست په خاطر مستقما ابوبکر صدیق ته ورتلل ترڅوپررسول الله ﷺ لمر راغلی نو ابوبکر رضي الله عنه خپل څادر واخیستی ، اوپررسول الله ﷺ یې سایه جوړه کړه ،تردې وروسته خلګو رسول الله ﷺ وپیژندی.[259]

مدینه داستقبال اوهرکلي په دود ټوله شور او زوږ اخیستی وه اوداسي یوه ورځ وه چې دمدینې په تاریخ کي یې ساری نه لیدل کیږي په دې ورځ یهودو هم دحقوق النبي دهغه زیري رښتینوالی په سترګو لیدی چې ویل به یې الله جل جلاله دجنوب اوهغه چې قدوس دی دفاران دغرونو له خوا راغلی ،رسول الله ﷺ په قباء کی دکلثوم بن هدم په بل روایت دسعدبن خیثمه په کور کي واړول ، خولومړی قول راجح دی ،حضرت علي رضي الله عنه درې ورځي په مکه کي پاته ؤ ترڅويې له رسول الله ﷺ سره دخلګو امانتونه ټول خپلو خاوندانو ته تسلیم کړل ، بیایې پیاده دهجرت لاره ونیوله اوپه قباء کي له رسول الله ﷺ سره دکلثوم بن الهدم په کورکي یوځای سو[260] رسول الله ﷺ څلور ورځي یعني دوشنبه ،سې شنبه ، چارشنبه ،اوپنج شنبه په قباء کي تیری کړی اودلته یې دقباء مسجد جوړکی اولمونځ یې په کي اداکی دادده تر نبوت وروسته لومړی مسجددی چې بنیاد یې په تقوی سره ایښوول سوی دی ، تر څوپه پنځمه یعني دجمعې په ورځ دالله تعالی دامرمطابق په خپله سپرلۍ چې ابوبکر صدیق یې ردیف ؤسپور سو خپلوماماخیلو یعني بني نجار ته یې اطلاع ورکړه چې دوی له تورو سره ورته راغلل اوبیادمدین په طرف ورسره روان سول اوکله چې بني سالم بن عوف ته ورسیدل نو دجمعې دلمانځه وخت سو رسول الله ﷺ دبطن وادي په هغه ځای کي دجمعې لمونځ ادا کړی چیري چې اوس یو مسجد وراندي جوړ دی اوددې لمونځ کوونکو شمیر سلو کسانوته رسیدی.[261]

---

[259] صحیح البخاری ۱/ ۵۵۵.

[260] زادالمعاد ۲/ ۵۴. ابن هشام ۱- ۴۹۳، رحمة للعالمین ۱/ ۱۰۲.

[261] داد ابن اسحاق روایت دی ابن هشام ۱/ ۹۹۴، علامه منصور پوري همدا روایت غوره شمیرلی دی رحمة للعالمین ۱/ ۱۰۲، په صحیح البخاری کي راغلي چې سید البشر ﷺ په قباء کي ۲۴ ورځي پاته سوی وو، ابن قیم دا ۱۴ ورځي غوره قول شمیرلی دی اوپه خپله وایي چې سید البشر ﷺ په دوشنبه باندي قباء ته رسیدلی دی اودجمعې په ورځ باندي ورڅخه روان سوی دی زادالمعاد ۲/ ۵۴- ۵۵- اوښکاره ده چې د د وشنبې او جمعي ترمابین له لسو ورځو زیاتی نه وي بیله دې چې دوتو او رسیدو دوي ورځي ورسره حساب کړو اوپه دې سره هم تر ۱۲ ورځو نه سي زیاتیدلای البته په دوو هفتو کي.

## «دنبي كريم ﷺ ومديني منوري ته رسيدل»

دجمعي ترلمانځه وروسته رسول الله ﷺ مديني ته تشريف يووړی اوله همدې ورځې څخه ديثرب نوم (مدينة الرسول ﷺ) سو اواوس دااختصار په توګه مدينه ورته ويل کيږي، دايوه تاريخي اوبې ساري ورځ وه دمديني ټولي لاري اوکوڅې دتکبير، تحميد او تقديس نارو پرسراخيستي وې، اودانصارو لوڼوله ډيري خوشحالۍ څخه دابيتونه ويل:

طلع البدر علينا ....... من ثنيات الوداع

وجب الشكر علينا ....... مادعا الله داع

ايها المبعوث فينا ...... جئت بالامر المطاع

**ترجمه**: دجنوبي طرف له غرو څخه پرموږ دڅوارلسم سپوږمۍ راوختله، پرموږ دالله ﷻ شکر واجب دي، داڅومره عمره اوعظيم دين اوتعليم دی، داستا دحکم اطاعت فرض دی ستا راليږونکی لوی کبريائي والا ذات دی [۲۶۲]. انصارکه څه هم دذاتي سرمايې څښتنان ؤ خو هريوه يې داهيله او آرزو درلوده چې رسول الله ﷺ له ده سره ولاړسي اوپر هريوه کور چې به تيرېدی دکورمالک به يې داوښې واګې نيولی او ورته وويل به يې تشريف راوړی دلته زيات تعداد ډيرسازو سامان وسله اوحفاظت ستاسي په خدمت کې دی، رسول الله ﷺ به ورته وويل: اوښه پريږدی داماموره سوی ده اوښه ورسيده ترڅود مسجدنبوي ﷺ ځای ته ورسيده او هلته چو سوه خورسول الله ﷺ ورڅخه کښته نه سو وروسته اوښه ولاړه لږمخکې ولاړه بيا يې يوڅوا بلې خواته وکتل بيرته راوګرځيده اوپرخپل لومړني ځای چوسوه رسول الله ﷺ ورڅخه راکښته دادرسول الله ﷺ دماماخيلو دعزت اواحترام په خاطر له دوی سره واړوی په دې وخت کې خلګو رسول الله ته له دوی سره دتلو پيشنهادونه کول، خوابو ايوب انصاري رضي الله عنه وار لومړی کی درسول الله ﷺ بار اوکجاوه يې خپل

---

[۲۶۲] علامه منصورپوري دا اشعار داسي ترجمه کړي دي ابن قيم ليکي چي دا شعرونه دتبوک څخه د سيد البشر ﷺ دراکښته کيدلو په وخت کي ويل سوي دي اوداچي وايي چي مدينه ته درسول الله ﷺ د دخول په وخت کي ويل سوي دي هسي بي بنياده خبره ده زادالمعاد ۱۰/ ۱/ ۳. خوابن قيم په دي باره څه قوي دليل نه دی وړاندي کړی اوده ده پرخلاف منصور پوري داخبره ثابته کړي ده اوراجع يه بولي چي وای داشعرونه مدينتي ته د داخليدلو پروخت باندي ويل سوي دي اود ده سره خپلي خبرې داثبات دپاره کافی اومعقول دلائل هم موجود دي رحمة للعالمين ۱/ ۱۰۶ زادالمعاد ۲/ ۵۵.

کورته یو وړه نو رسول الله ﷺ وفرمایل مسافر له خپل بار او کجاوې سره وي او اسعد بن زراره رضي الله عنه راغلی او داوښې پړی یې ونیول او له ځان سره یې بو تلله او له همده سره وه.[263]

امام بخاري رضي الله عنه له حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت کوي وايي رسول الله ﷺ وفرمایل: زموږ دکوم یوه سړي کور ډیر نژدې دی ابوایوب انصاري رضي الله عنه ورته وویل زما کور ډیرنژدې دی یا رسول الله ﷺ دا مې کور او دا يې دروازه ده رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: درځه او زموږ لپاره دغرمې دبیدېدو ځای برابر کړه هغه عرض وکړ تاسې دواړه مهرباني وکړئ په برکت دخدای سره.[264]

وروسته درسول الله ﷺ بی بی أم المؤمنین سوده رضي الله عنها او دواړې لوڼې یې ثوورځې ورواسته درسول الله ﷺ بی بی أم المؤمنین سوده رضي الله عنها او دواړې لوڼې یې فاطمه رضي الله عنها او ام کلثوم رضي الله عنها او اسامه بن زید ،ام ایمن له عبدالله بن ابوبکر رضي الله عنه چې عائشه رضي الله عنها او دابوبکر رضي الله عنه نوره کورنۍ یې را ایستلې وه راورسېدل،خو حضرت زینب رضي الله عنها هلته په مکه کې له ابوالعاص سره پاته سوه ځکه هغه اجازه نه ورکوله ترڅو له بدر وروسته رامهاجره سوه.

عائشه رضي الله عنها وايي کله چې رسول الله ﷺ مدینې ته ورسیدی هلته ابوبکر رضي الله عنه او بلال رضي الله عنه سختې تبې ونیول ،زه ورغلم او ورته ومې ویل باباجانه څنګه یې؟او بلاله ته څنګه یې؟ داوايي :چې ابوبکرصدیق رضي الله عنه به دتبې په وخت کې دا شعر وایه :

کل امرئ فی أهله ...... والموت ادنی من شراک نعله

ژباړه : هرچاته په خپل کور کې سهار په خیروېل کیږي ،په داسې حال کې چې مرګی یې دڅپلۍ له تسمې څخه هم ورلنډ وی ، او وايي چې کله به چې دبلال رضي الله عنه حال لږ غوندې ښه سو نو په خپل ښکلي آواز سره به یې داسې ویل :

الالیت شعری هل ابیتن ... بودا وحولی اذخر وجلیل

وهل أردن یوما میاه مجنة .... وهل یبدون لی شامة وطفیل

ترجمه: کاشکې خبروای چې کومه شپه په مکه کې تیرولای سم او شاوخوامې اذخر او جلیل بوټي وي او آیا کومه ورځ به مې دمجنې پرچینه ګذرسي او آیا دشامي او طفیل غرونه به بیا ووینم.

---

[263] رحمة للعالمین ۱/ ۱۰۶ زاد المعاد ۲/ ۵۵.

[264] صحیح البخاری ۱/ ۵۵۶.

عائشه رضي الله عنها وايي زه بيا رسول الله ﷺ ته ورغلم اوله دې حال څخه مې خبر کړې ،نو رسول الله ﷺ وفرمايل :اې الله جل جلاله !ته زموږ په زړونو کې دمکې دمحبت په شان اويا له هغه څخه هم زيات دمدينې محبت واچوې اواې خداى !ته دمدينې فضاءاوهوا صحيح اوصحت وركوونكې وګرځوې،اوددې ځاى دغله جاتو په پيمانو كې بركت واچواى اوددې ځاى تبه له دې ځاى پورته كړې اوجحفه كې يې وګرځوې .٢٦٥

الله جل جلاله درسول الله ﷺ دعاقبوله كړه اودمدينې حالات يې بدل كړل دلته دمكې دعوت لړې پاى ته ورسيده اودرسول الله ﷺ دژوند دلومړې برخې حالات اوواقعات موهم ترنظر تير سول .

## «په مدينه كې ژوند»

## (دمدنې دور درو مختلفو حالاتو ته تقسيم سوى دى )

لومړې مرحله چې مختلف مشكلات اوفتنې په كښې راولاړې سوي وى له يوخوا تنى خنډونه بې شميره وه ،له بلې خوا دښمنانو له بهر څخه دمدينې دختمولو كوښښونه كول دامرحله دحديبيې په صلح يعنې دشپږم هجري كال دذى القعدې په مياشت كې پاى پيداكوى دويمه له شرك اوبت پرستانو سره د اوربند اواسلام ته دباچهانو د رابللو مرحله چې دمكې په فتحه يعنې داتم هجري كال درمضان په مياشت كې پاته رسيږي . دريمه دالله جل جلاله په دين كې ډلو ډلو خلكو داخليدو اومدينې ته ديبلابيلو اقوامو اوقبائلو د راتګ اودادرسول الله ﷺ دژوند ترپايه يعنې ديوولسم هجري كال ترربيع الاول پورې ادامه پيداكوي .

## «اوله مرحله»

## (هجرت او دمدينې حال)

هجرت يوازې له فساد ،شر ،فتنې اوملنډو څخه دنجات په معنى نه ؤ بلكه ددې ترڅنګ هجرت په نوې آرام وطن كې ديوې نوې ټولنې دجوړيدو كوښښ اوپيام هم ؤ اوهمدا وجه ده چې پرهرمسلمان باندې دافرض سول چې دخپل توان په اندازه ددې نوى وطن په جوړيدو كې برخه واخلي اوددې وطن په ترقۍ ،آرامۍ اودفاع كې خپل ټول زور په كار واچوي ،اوبيشكه چې رسول الله ﷺ ددې نوې ټولنې يوازنى امام ،مشر اولارښود اوډټولوامورو او كارونو واګې په بشپړه توګه دهمده په لاس كې وې ،رسول الله ﷺ په

---

٢٦٥ صحيح البخاري ١/ ٥٨٨، ٥٨٩.

مدینه کې له درو مختلفو او جلا جلا داسې قومونو سره مخامخ ؤ چې حالاتو یې یوله بل سره ډیر توپیر درلودی مسائل او مشکلات یې هم سره بیل او ګوښه وه دادرې قومونه عبارت ؤ له :(۱) :مکرم ،نیک او غوره اصحاب .(۲) :دمدینې هغه اصلي اوسیدونکي چې تراوسه یې لادشرک څخه نجات نه ؤ ترلاسه کړی . (۳) : یهود .(الف):داصحابو له هغو مسائلو څخه چې رسول الله ﷺ ورسره مخ ؤ یوه هم دا مسئله وه چې دلته دمدینې حالات دمکې له حالاتو څخه بالکل جلا او بیل ؤ، ځکه دوې په مکه کې دیوې کلمې اویوه هدف درلودونکي ؤ خوپه بیلابیلو کورونو کې ویشل سوی ،رټل سوی،غم ځپلي اومظلومان ؤ،دهیڅ شي واک او اختیار یې نه درلودی ،ټول کارونه د دوی د دښمنانو په لاس کې ؤ،دوی هلته ددې وس او توان نه درلودی چې داسې یوه نوی اسلامي ټولنه بیله هغو پښنو نه سي دربدای اوهم داعلت دی چې مکې سورتونه یوازې اسلامي اصول اومبادي په ګوته کوي او داسې امرونه کوي چې هرڅوک به ګوښه توګه به هغه عمل کولی سي اودنیکو اخلاقوو خیراونیکي طرف ته بلنه اوله رذائلو اوبداخلاقو څخه منع کوي خوپه مدینه کې وضعه بدله وه دلته له لومړي ورځې څخه مسلمانان دځپل واک او اختیار خاوندان ؤ هیڅا تسلط اوواکمني نه ورباندې درلوده ، نواوس ددې وخت ؤ چې دوی باید نور دترقي ،آبادي ،اقتصاد،سیاست ، حکومت ،سولې ،جنګ اونورو ژوندنیو امورو په هکله فکر وکړي اونور داپه کار وه چې دوی ته حلال ،حرام عبادت ، اخلاق اونورمسائل په مفصله توګه بیان اوتوضیح کړل سي .

اوس ددې وخت رارسیدلی ؤ چې دوی یوه ټولنه جوړه کړي .داسې اسلامي ټولنه چې هرڅه کې له جاهلي ټولنې څخه مختلفه اودبشري نړۍ له هربلې ټولنې څخه لوړه اوبیله وي اودهغه اسلامي دعوت ممثله اونمائنده ټولنه وي دکوم په لارکې چې مسلمانانو پوره لس کاله ډول ډول کړاوونه اوتکلیفونه ګاللی ؤ اوداخوڅرګنده وه چې ددې ډول یوې ټولنې جوړول د ورځې ،میاشتې اوکال خبره نه ده بلکه دا اوږد وخت په کار لري ترڅو تشریح اوقانون جوړول له تربیې ،تعلیم اوعملي تمرین سره خوا په خوا په تدریجي توګه دتکامل پړاؤ ووهي ی،الله جل جلاله په خپله ددې تشریح کفیل ؤ درسول الله ﷺ وظیفه ددې قانون تنفیذ اوتطبیق دې طرف ته لارښوونه اوله همدې قانون سره سم دمسلمانانو روزنه وه .

هُوَ الَّذِي بَعَثَ فِي الْأُمِّيِّينَ رَسُولاً مِّنْهُمْ يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ. سورة الجمعه آیت (۲)

**ترجمه**:الله هغه ذات دی چې پورته کړی (لیږلی یې دی)په امیانو ناپوهانو کې

یورسول محمد ﷺ له دوی څخه چې لولې پردوی باندې آیتونه ددې (قرآن) او پاکوي دوی (له شرکه له نورو رذیله اخلاقو) اوښيي دوی ته کتاب (قرآن) او احکام (دقرآن) داصحابو کرامو زړونه په رهبر اوقانون پوري تړلي ؤ دهغه احکام به یې په ډیره خوشحالۍ سره شروع کول. وَإِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ آيَاتُهُ زَادَتْهُمْ إِيمَانًا سورة الانفال آیت (۲) **ترجمه**: او کله چې وویل سي پردوی باندې آیتونه (کلام) دالله جل جلاله نو رزیاتوي دغه آیتونه دوی له ایمان ،اوڅرنګه چې دامسائل زموږ دبحث موضوع نه وه نو ځکه یوازي هغو امورو ته اشاره کوو چې یادول یې ضروري بولو ،په هرحال دادمسلمانانو له هغولویو مسئله ده چې رسول الله ﷺ ورسره مخ ؤ اوپه حقیقت کې داپه پراخه پیمانه سره دمحمدي رسالت او اسلامي دعوت هدف اومقصد هم ؤ خو دامسئله عاجله نه بلکه مستقله اودائمي مسئله وه هلته داسي نور مسائل هم ؤ چې عاجل اوفوري حل اواقدام ته یې اړه درلوده په مدینه کي دمسلمانانو ټولګی له دوه ډوله خلګو څخه جوړسوی وه ،یوه ډله انصارؤ چې د خپلي مځکي ،وطن اومال خاوندان ؤ اوپه دې هکله د دوی فکر اوغم دهغه چا دفکر اوغم په اندازه ؤ چې له خپل عیال او اولاد سره یوځای دامن په کور کي شپې اوورځي تیروي ،خو دومره چې د دوی ترمینځ زړه اوکلکه دښمني موجوده وه ،بله هغه ډله مهاجرین ؤ چې هیڅ یې هم نه درلودل ټول یې له لاسه وتلي ؤ یوازي ځانونه یې مدینې ته رارسولي ؤ اوبس ،دلته یې نه ځان ؤ نه ځایګی نه دکار اوکسب درک ؤ اونه یې دومره درلودل چې خپل ژوند ورباندې روان کړي ، ددې مهاجرینو تعداد هم ډیر ؤ ،او ورځ په ورځ پسې ډیریدی ،ځکه دااعلان سوی ؤ چې هرمسلمان بایدمکه پرېږدي اومدینې ته هجرت وکي ،اودا خوهم په ډاګه وه چې دمدینې اقتصادي بنسټ هم دومره پیاوړی نه ؤ چې داډول مشکلات وزغملای سي نوهمدا وه چې یوځل یې اقتصادي حالت مخ پر خرابیدو سو اوپه همدې سختو شرائطو کي اسلام دښمن ځواکونوله بهر څخه له مدینې سره دااقتصادي پرېکړي غوندي لار اوپالیسي غوره کړی اوپه دې سره د وارداتو اندازه کمه اومشکلات نور پسې زیات اوحالات کړکیچن سول (ب) : دویم قوم یعنې دمدینې اصلي اوسیدونکي مشرکان دوی پرمسلمانانو څه واک او حاکمیت نه درلودی ځیني یې داسي ؤ چې دپلرني دین پرېښودو ته زړه نه سوای ښه کولی خوداسلام اومسلمانانو سره یې کینه اودښمني هم نه درلوده بالاخره لږوخت وروسته په اسلام مشرف سول ، په مشرکینو کي ځیني داسي هم ؤ چې زړونه یې له رسول الله ﷺ او مسلمانانو سره له بغض اودښمنۍ څخه ډک ؤ خو په عین وخت کی یې ددې جرأت اوهمت هم نه درلودی چې مخامخ مقابله ورسره وکړي

اوحالاتو دې ته مجبور کړی ؤ چې له مسلمانانو سره دميني اوخلوص څرګندونه وکړي ،ددې ډلې مشرعبدالله بن ابی ؤ، اوس اوخزرج يې دهيچا په مشرنه ؤ راضي سوي دبعاث له جنګ وروسته يې پردې اتفاق کړی ؤ چې نوموړی به خپل مشرټاکي اوعملا يې دده دباچهۍ لپاره تياری پيل کړی ؤ قيمتي ملغري اوغمي يې راټول کړي ؤ ترڅوتاج ورته جوړکړي اوپرتخت يې کښينوي ،خويوځل رسول الله ﷺ مدينې ته تشريف راوړی اوټول قوم دهغه پرخوا ورمات سو نوعبدالله بن ابی داعقيده درلوده چې رسول الله ﷺ دده تخت اوباچهي په لغته ووهله اوله همدې امله يې سخته کينه ورسره درلوده ،خوکله چې پوه سو چې نورشرک دده په ګټه نه دی اوحالات داسي دي چې دشرک په واسطه يې ډيرذنيوي ګټي له لاسه وزي نومجبور سو چې دبدر ترغزا وروسته په خوله اسلام راوړي خوزړه يې هم هغسي له کفر اوشرک څخه ډک ؤ اوکله چې به يې لاس برسو نود رسول الله ﷺ او مسلمانانو پرخلاف به يې له هيڅ ډول فريب اوغدر څخه ډډه نه کوله ، له ده سره هغه کسان هم ملګري ؤ کوم چې دده ناجوړه سوي باچهي کي لوی لوی منصبونه ورته په نظر نيول سوي ؤ دوی به دده دشيطاني پلانونو اوتوطئو په پلي کولو کي ورسره مرسته کوله اوکله کله به له ځينو واقعاتو اوپيښو اوحتی له ځينو کمزورو اوکم عقلو مسلمانانو څخه هم دخپلو شومو اهدافو دتحقق په لارکي ګټه پورته کوله .(ج):دريم قوم يهود ؤ هغه چې دآشوريانو اوروميانو له ظلم څخه حجاز ته راغلی ؤ دوی اصلا عبرانيان ؤ خودلته په حجاز کي له اوسيدو وروسته يې ژبه،عادات دافرادواو قبائلو نومونه يې عربي سوي ؤ .له عربوسره يې دخپلوۍ اړيکي هم ټينګي کړې وی خوله دې ټولو سره سره دوی خپل ملي هويت ساتلی ؤاوپه پورته توګه په عربي ټولنه کي نه ؤ منحل سوي بلکه پرخپل يهودي ملت يعني (اسرائيليت)يې فخر اووياړ کاوه، عرب يې ډيرزيات تحقير او سپکول آن تردې چې دوی ته به يې اميين يعني چاړپان،مرتجعين اورذيلان ويل ،دعربو مالونه يې دځان لپاره روا بلل اوکله چې به يې لاس پربرکېدی نوخوړل به يې .

قَالُواْ لَيۡسَ عَلَيۡنَا فِي ٱلۡأُمِّيِّـۧنَ سَبِيلٞ سورة آل عمران آيت (۷۵) **ترجمه**:وويل (کتابيانو) نسته پر موږباندې په(حق) ددې اميانو کي هيڅ ګناه(چې مالونه يې وخورو) دوی خپل دين پرنشراوترويج کي ډير فعال نه ؤ اود دوی ټول دين پردم،چپ ،فال سرح اوجادو کي خلاصه کېدی ،اويوازې په همدې سره يې ځانونه دپوهي،روحانيت قيادت اوصلاحيت خوندان ګڼل،دوی په کسب اوکارمال ګټلو اولاسته راوړلو کي خاص مهارت درلودی ،دغلې ،دانې،خرما،شرابو اوکپړو تجارت له هم دوی سره ؤ،ټوکر،غلې،دانې اوشراب به

يې راوړل اوپه مقابل کي به يې خوّرما صادروله اود تجارت ترڅنګ يې نور کسبونه هم
کول دعربو څخه به يې. څوچنده ګټه اخيستله ، پردې يې هم اکتفانه کوله بلکه دسودبازار
يې هم ښه تود کړی ؤ ،دعربو مشايخو او مشرانو ته به يې قرضونه ورکول هغه به داپيسې
بې مطلبه اوبې ځايه پرمداحانو، شاعرانو اوځان ښوونه اوستاينه کی خرڅولې ،يهودو
لوړېددې قرضونو په بدل کي د دوی مځکي ،باغونه اوکښتونه ګروکول خوڅوکاله
وروسته به يې دملکيت قبضه وربانديولګوله دوی په فساد ،فتنو ،توطئو اودسيسو کي
ترهرچا مخکي ؤ ،دوی به په ډير مکر اوچالاکي سره شاوخوا پرتې عربي قبيلې يوپه بل کي
سره اچولی اود دوی ترمينځ به يې داړدو جګړو اور بلاوه اوپه ډيره مرموزه توګه به يې
ددې اور لمبې غوړې ساتلی ،عرب به سره جنګيدل او دوی به دخير پرغونډۍ ورته ناست
ؤ خوکه به دکوم طرف پيسې کمي سوی نو دوی به په سود ډيرقرض ورکاوه ترڅو دپيسو
دکمۍ له امله جګړه بنده نه سي ،دوی به په دې سره دوی ګټې کولی يعني په يوه غشي به
يې دوه مرغان ويشتل ،يوبه يې خپل يهودي شخصيت اوهويت ژوندی ساتی اوله بل پلوه
به يې دسود بازار ښه ګرم ساتی او ډيري پيسې اوسرمايې به يې ګټلې . په مدينه کي
ديهودو درې مشهوري قبيلې اوسيدلی .

۱ : بنوقينقاع .دې قبيلې له خزرج سره تړون درلودی اوکورونه يې په مدينه کي دننه ؤ .
: بنونضير . : بنوقريظه . دوی دواړو له اوس سره تړون درلودی اودمدينې په شاوخوا
برخوکي اوسيدل هم دې قبيلو له ډيرپخوا څخه داوس او خزرج ترمينځ دجګړو اوربلاوه
اودبعاث په جنګ کي خوپه خپله دوی هم هريوه له خپل حليف سره په جنګ کي شريکه وه .
طبيعي وه چې يهود به له اسلام اومسلمانانو سره کينه اوعداوت کوي اوله دوی څخه د
خير طمعه بې ځايه وه ځکه نه رسول الله ﷺ له دوي څخه ؤ ترڅو د دوی نژدې اوتوکمي
عصبيت ته چې په ذهن اوزړه کي حاکم اوسکون اواطمينان حاصل سي ، اوله داچې
اسلامي دعوت دسولي او يووالي داسي يوپيغام او آواز ؤ چې مات زړونه يې سره
پيوندول ، دکينو اودښمني اورونه يې مړه کول ، په ټولو کارونو کي دامانت اوامانتداري
غوښتونکي ؤ ،اوپه هرڅه کي يې يوازي دپاک اوحلال شي دخوړلو اجازه ورکوله اوددې
لازمي معنی داوه چې نوربه په مدينه کی عربي قبيلې سره يوکيږي اوپه دې سره به
ديهودو له خيټو پنجو څخه هم آزادي ترلاسه کوي ، چې په نتيجه کي ديهودو تجارت
زيانمن کيږي اود سود له هغوګټوبه بې برخي کيږي چې د دوی دسرمايو اساس وربانډي
ولاړ ؤ ،اودا هم کېدای سوای چې داعربي قبيلې متوجه سي اوهغه مالونوته يې فکرسي

چې يهودو په سود ورڅخه اخيستي ؤ اوله يهودو څخه په سود کې دتللومځکو، باغونواوکښتونو بيرته اخيستلو هڅي وکړي.

يهودو داټول حساب کړی ؤ اوله کومي ورځي څخه چې پوه سول اسلام په مدينه کي ميشت کېدل غواړي نو داټول شيان يې دذهن پرپرده راتيرسول اومدينې ته رسول الله ﷺ له تشريف آوري سره سم يې له اسلام اورسول الله ﷺ سره دښمني پيل کړه ،خودادښمني يې څه موده پټه او وروسته يې ښکاره اوپه ډاګه يې کړه.

ددې موضوع ښه تصوير اوتفسير دابن اسحاق هغه روايت کولی سي چې له حضرت صفيه څخه يې کړی دی ،ابن اسحاق وايي له صفيه بنت حيي بن اخطب څخه روايت دی چې وايي زه پرپلار اواکا(ابوياسر) له ټولواولادونو څخه زياته ګرانه وم اوکله چې به د دوی له بل هريوه اولاد سره زه ورسره مخامخ سوم نوحتما به يې زه اخيستلم ،وايي خوکله چې رسول الله ﷺ مدينې ته راروان ؤ اوپه قباء کي يې له بني عمرو بن عوف سره واړول پلارمي (حيی بن اخطب ) اواکامي ابوياسربن اخطب سهار وختي ورغلل اوآن له لمر لوېدو سره بيرته راستانه سول وايي داسي سست پست له پښنو لوېدلی ،کشال کشال را روان ؤ وايي زه دخپل عادت سره سم ورپه ځغستاسوم خوقسم په خدای دوی دومره غم اخيستي ؤ چې يوه يې هم زماخواته التفات اوتوجه ونه کړه وايي وامي ورېدل چې اکا مي زماپلار ته وايي آيا داهم هغه دی ،پلار مي ورته وايي هو!قسم په خدای داهم هغه دی ،اکامي ورته وويل : آياته يې ښه صحيح پيژنې؟ده وويل :بالکل يې ښه پيژنم ،اکام مي بياوويل : نوته دهغه په هکله څه نظر لرې؟پلارمي ورته وويل دښمني،قسم په خدای تر مرګه به دښمني ورسره کوم ددې خبري تائيد دبخاري هغه روايت هم کوي کوم چې د عبدالله بن سلام رضي الله عنه اسلام راوړلو په هکله يې رانقل کړيدی ،نوموړي ديهودو لوی اوعظيم عالم ؤ اوکله چې خبرسو چې رسول الله ﷺ مدينې ته دبني النجار ميني ته تشريف راوړی نو په تلوار سره د رسول الله ﷺ حضورته ورغلی اوداسي پوښتنه يې ورڅخه وکړه چې جواب يې يوازي نبي ويلای سوای او څرنګه چې يې د رسول الله ﷺ جوابونه واورېدل نوسمدستي پرهم هغه ځای په اسلام مشرف سوی ،بيايې رسول الله ﷺ ته وويل :يهودان خبري جوړونکي او بهتان کوونکي خلګ دي که دوی مخکي تردې چې ته زماپه هکله پوښتني ورڅخه وکړې په دې خبرسول چې زه په اسلام مشرف سوی يم نوبهتانونه به راپسې وتړي ،همدا وه چې رسول الله ﷺ يهود راوغوښتل دوی راغلل ، عبدالله بن سلام رضي الله عنه په کورکي دننه ناست ؤ ،رسول الله ﷺ ورته وويل :عبدالله بن سلام

ﷺ څنګه سړی دی؟او ستاسي په مینځ کي دکوم مقام خاوند دی؟ دوی وويل : هغه دلوی عالم زوی او ترموږ ټولو دزيات علم څښتن دی او هغه ترموږ ټولو غوره او د ډیر غوره سړي زوی دی ، په بل روايت کي راځي چي هغه زموږ مشر او زموږ دمشر زوی دی او په بل لفظ هغه زموږ ترټولو دبهتر او بهترين سړي زوی دی او په بل لفظ هغه زموږ افضل او دافضل سړي زوی دی ، نو رسول الله ﷺ ورته و فرمايل : ښه او س نو دا رته و وایاست که هغه اسلام راوړي نو بيا؟ يهودو دوه دري ځله وويل : الله جل جلاله دي هغه له دې څخه وساتي هم دلته عبدالله بن سلام را ووتی ، او وی ويل : اشهدان لااله الا الله واشهدان محمد عبده ورسوله . کله چي دوی دعبدالله بن سلام رضي الله عنه کلمه واورېدله يو دم يي ژبي بدلي کړی او وی ويل : دا زموږ په مینځ کي ترټولو شرير او دشرير سړي زوی دی، دا ډول يي نوري خبري هم ورپسي وکړی ، عبدالله بن سلام رضي الله عنه په جواب کي ورته وويل:[۲۶۶] اې يهودو !له خدايه وبيرېږی قسم په هغه ذات چي له ده پرته بل دعبادت وړ نسته تاسي په دې ښه پوهيږی چي دا دالله جل جلاله رسول دی او په حقه راغلی دی ، دوی ورته وويل : دروغ دي وويل، داوه په مدينه کي درسول الله ﷺ دژوند لومړي ورځ له يهودو سره لومړي تجربه داؤ دمدين داخلي حالات او له مديني څخه دباندي داسلام ترټولو سخت دښمن قريش ؤ پوره لس کاله د مسلمانانو پرخلاف له هر ډول ظلم ، زياتی ، تهديد او جبر څخه يي کار اخيستی ؤ د مظلومو مسلمانانو دځورولو او خپلو په خاطر يي د وړي کول او اقتصادي پريکړي سياست خپل کړی ؤ ، او دمصيبتونو او کړاوونو ترڅنګ يي د دوی پرخلاف سترې کوونکي عصبي ، نفساني او تبلغاتي جنګ هم پيل کړی ؤ او کله چي مسلمانانو مديني ته هجرت پيل کی نو دوی به يي ځکي او مالونه مصادره کول دوی به يي له خپلو ښځو او اولادونو څخه جلا کول او که به يي پرچا لاس برسو نو ښه به يي تعذيبا وه، داخو لا څه هغوی ددعوت دلارښود ﷺ دمرګ او وژلو اراده هم وکړه او ددې توطئې دپلي کولو لپاره يې ډيري منډي ترنډي هم وکړی او له دې څخه آخوا هغه وخت چي مسلمانان مديني ته ورسېدل او د دوی له ظلمونو څخه يي نجات ترلاسه کی او له دوی څخه (۵۰۰) کيلومتره ليري ولاړل نو قريش دلته هم په آرام کيښنستل او څرنګه چي دوی دحرم او سيدونکی او دبيت الله همسايګان ؤ نو دعربو په مينځ کي په ديني او دنيوي لحاظ دلوړ قدر او مقام خاوندان ؤ ، دلته يي له خپل هم دې اثر او رسوخ څخه په استفادې سره يو سياسي رول لوبول غوښتل ، ولاړ سول او دعربي جزيرې نورمشركان يي دمديني

---

[۲۶۶] صحيح البخاری ۱/ ۵۶۱، ۵۵۶، ۴۵۹.

داوسیدونکوپرخلاف راوپارول او مدینه یې له اقتصادي بحران سره لاس اوګریوان کړه نژدی وه تربشپړې اقتصادي محاصرې لاندې راسي واردات یې ډیر کم سول داهم په داسې حال کې چې دمهاجرینو شمیر ورځ په ورځ مخ پرزیاتیدو وُحقیقت دادی چې دمکې مشرکینو اومسلمانانو د دوی په نوی مینه مدینه کې دجنګ حالات او اسباب برابرسوي وُ او دابه ډیره بې عقلي او بې انصافي وي چې ددې جګړو اود ښمنیو پړه پر مسلمانانو ور وتپل سي.

مسلمانانو حق درلودی چې دخپلو مصادرسوو مالونو په بدل کې دقریشو مالونه مصادره کړي او حق یې درلودی چې د دوی دظلم جواب ورکي اود دوی دژوند دقافلې په وړاندې داسې خنډونه راپیداکړي لکه دوی چې دمسلمانانو دژوند په مخ کې پیداکړي دي ، او حق یې درلودی دخپل ځان او هویت دفاع وکړي او د دوی ټولې هغه توطئې شنډې کړي چې هدف یې داسلام ختمول وي داوُ هغه مشکلات او مسائل چې رسول الله ﷺ مدینې ته درسول ،رهبر،امام او لارښوونکي په صفت له رسیدو ځخه وروسته ورسره لاس اوګریوان وُ رسول الله ﷺ په مدینه کې درسول اورهبر په ډول معامله کوله ،له هرچا او هرقوم سره یې دهغه دمقام او اهلیت سره برابر عمل کاوه ،ځوک چې درحم اوکرم وړ وُ د دوی پرسرېې د رحمت او شفقت لاس راتیره وه اوکه دچاچاره او علاج به یوازې په شدت او سختې وه نو دهغه دوا او علاج به یې په سختې سره کاوه خودابید له یاده ونه باسو چې درحمت او شفقت پله یې ډیره درنه وه اودهمدې حکیمانه قیادت پربرکت په ځولنډو کلونوکې ټول کارونه داسلام اومسلمانانو لاس ته ولویدل ،ویونکو ته په راتلونکو پاڼوکې په دې اړه پوره معلومات ورکو ان شاءالله تعالی.

## «دنوي جامعي جوړښت اوترتیب»

په تیرو صفحو کې مو وویل چې رسول الله ﷺ دجمعې په ورځ دهجرت دلومړي کال دربیع الاول په (۱۲) چې د(۶۲۲م) کال دستمبر له (۲۷) سمون خوري په مدینه کې دنبي النجار میني ته تشریف راوړی اودابوایوب انصاري رضي الله عنه دکور ترمخ یې واړول اووی وفرمایل : هم دتله زموږ منزل دی .ان شاء الله تعالی بیادابوایوب انصاري رضي الله عنه کورته منتقل سو.

## «دمسجدنبوي ﷺ ابادیدل»

تردې وروسته درسول الله ﷺ لومړی کار دمسجدنبوي جوړول وُ ،دمسجد لپاره یې هغه ځای وټاکی په کوم ځای کې چې یې اوښه چوسوی وه ، دغه ځمکه د دوو یتیمانو وه چې

له دوی څخه یې په قیمت واخیستله، رسول الله ﷺ په خپله د مسجد په جوړولو کې فعاله ونډه واخیستله، خښتې او ډبرې به یې ورته راوړلې او داسې یې فرمایل:

اللهم لا عیش الاعیش الاخرة ... فاغفر لانصار والمهاجرة

ژباړه: اې الله جل جلاله زندګې او ژوند خو یوازې د اخرت ژوند دی، نو ته انصاو او مهاجرینو ته بخښنه وکړه. او دا شعر به یې هم زمزمه کاوه.

هذا الحمال لا حمال خیبر ... هذا أبر ربنا وأطهر

ژباړه: دا بار د خیبر بار نه دی دا زموږ د رب پاک او سپیڅلې بار دی

د رسول الله ﷺ کار به د اصحابو کرامو نشاط او فعالیت نور هم زیاتوي او یوه صحابي به د کار په وخت کې داسې ویل:

لئن قعدنا والنبی یعمل ... لذاک منا العمل المضل

ژباړه: که چیرې موږ کښېنو او نبي کار کوي، نو دا به زموږ د ګمراهۍ او بې لارې کاروي پر دې ځای د مشرکینو څه شمیر قبرونه، خرابه، د غرقه او خورما درختې هم وې، رسول الله ﷺ امر وکړ چې قبونه راالړ او پاک کړي، دا خرابې هم هواره کړي، درختې یې وکښلې او لرګي یې د قبلې طرف ته واچول سول، هغه وخت قبله بیت المقدس وه د دروازې دواړې پاې یې له ډبرو څخه جوړې کړې، دیوالونه یې د خټو وخښتو وه، بام یې د خورما په تنو او بلګو نوښت کې په غولې کې یې ریګ او شګې هوارې کړې ټول مسجد یې درې دورازې کړې، د قبلې د مخامخ دیوال او پړ دوالې سل ګزه او د څنګونو دیوالونو اندازه یې هم تقریبا هم دومره وه، تهداب یې نژدې درې ګزه راتلی له مسجد سره یې نژدې د خټو او ډبرو څوخونې هم جوړې کړې، بامونه یې د خورما په تنو او شاخونوپټ کړل، دا دامهات المؤمنین خونې وې، او کله چې تکمیل سوی نو رسول الله ﷺ دا بوایوب انصاري رضي الله عنه له کور څخه ورمنتقل سو.[۲۶۷] دغه مسجد یوازې د لمانځه ځای نه ؤ بلکه دیوه داسې پوهنتون حیثیت یې درلودی چې مسلمانانو به په کې خپل دین زده کاوه او یوداسې غونډځای ؤ چې په خپل زړه کې به یې په ډیره مینه او محبت د داسې یوه عمومي مرکز په ډول ؤ چې مسلمانانو ټول کارونه له همدې ځایه اداره کېدل، د هرڅه قومانده له همدې ځایه وه او په نننۍ ژبه دا یو داسې پارلمان ؤ چې ټول مشورتي او نفیذي مجلسونه به هم دلته

---

[۲۶۷] صحیح البخاری ۱/ ۷۱، ۵۵۵، ۵۶۰، زاد المعاد ۲/ ۵۶.

ترسره کېدل اودي ترڅنګ دامسجد دهغوفقیرانو مهاجرینو کورهم ؤ کوم چې يې نه کور درلودی نه يې مال اونه يې خپل اوخپلوان.

دهجرت په لومړیو کي آذان هم شروع سو،آذان داآسماني آواز چې هرورځ پنځه واره دمځکي اوآسمان ترمینځ ګونګسی کړی اوټول عالم په لړزه راولي په دې هکله دعبدالله بن زید بن عبد ربه دخوب کیسه چې ترمذي،ابوداؤد او ابن خزیمه روایت کړی مشهوره ده.[۲۶۸]

## «دمسلمانانوخپل مینځ کي اخوت»

لکه څرنګه چې رسول الله ﷺ دنبوي مسجدپه جوړولو دغونډیدو اویوکېدو یوعظیم مرکز مینځ ته راوړی همدا ډول يې دانصارو اومهاجرینو په ورورۍ سره په انساني تاریخ کي یوه بله نه هیرېدونکی اوبې ساري کارنامه ترسره کړه ،ابن قیم رحمه الله وايي بیارسول الله ﷺ دانس بن مالک رضي الله عنه په کور کي (۹۰)کسان چې نیم يې انصار اونیم نوریې مهاجرین ؤ سره ورونړه وګرځول ددې ورور ګلوۍ اصل اساس داؤ چې دا وروڼه به یوله بل سره همدردي او غم شریکي کوي اونسبي خپلولي پرځای به دوی یودبل میراث وړي داحکم دبدر غزا تروختِه پاته ؤ ترڅودالله جل جلاله داحکم نازل سو :﴿وَأُوْلُواْ الْأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَىٰ بِبَعْضٍ﴾ سورة الانفال آیت(۷۵) **ترجمه**:اوخاوندان دخپلوۍ ځیني د دوی غوره دي په میراث وړلو سره پرځینو نورودې آیت ددیني ورونړو ترمینځ دمیراث وړلو حکم لغوه کړی ،خو د ورورۍ عقد اوپیمانه هم داسي پرځای پاته ده ،ویل کیږي چې رسول الله ﷺ دوی وار دمهاجرینو ترمینځ ورورګلوي ټینګه کړې وه خوداخبره کمزورې معلومیږي ځکه مهاجرین چې یوله بل سره يې دیني ،وطني نژادي اونسبي ورورې اوخپلوي درلوده وروري دی ډول عقد اوتړون ته اړنه ؤ په داسي حال کی چې انصارو له مهاجرینو خبره اومعامله بیاداسي نه وه.[۲۶۹] لکه امام محمد غزالي رحمه الله چې وايي : ددې ورورۍ معنی داوه چې جاهلي تعاصب او عصبیت له مینځ یوسی ،حمیت اوغیرت که وي نوبايد یوازي داسلام په خاطروي اوبس،د رنګ اونسل وطن اونسب پربناء دبرترې اوامتیازو دور نور ختم دی ځکه دبلندي اوپستي یوزاني معیار انسانیت اوتقوی ده نه بل څه ، رسول الله ﷺ دا وروري یوازي ترژبي او کلماتو پوري محدوده نه وه ساتلی بلکه دې تړون ته يې

---

[۲۶۸] بلوغ المرام دابن حجر عسقلاني لیکنه ص ۱۵.
[۲۶۹] زادالمعاد ۲/ ۵۶.

دعمل داسي جامه وراغوستی وه چې تروینې اومال پوري تړلی وه ، داتړون دژبې اوالفاظو له دائرې څخه وتلی دقربانی، همدردی، اوغم شریکی په ډکر کي داسي پلی سوی ؤ چې دې نوي ټولني ته یې ترټولو لوړمثال وړاندی کاوه .[270] امام بخاري رضي الله عنه روایت کوي چې کله مهاجرین مدینې ته راغلل ، رسول الله ﷺ عبدالرحمن له سعدبن الربیع رضي الله عنه سره د وروری په مزي سره وتړی ،نوسعد خپل ورور عبدالرحمن ته وویل زه په انصارو کي ډېر مال اودا رایي خاوند یم نومال دوې برخي کړه ،همدا راز زه دوې ښځي لرم وګوره کومه یوه چې دی خوښه وي ماته وواېه ،زه هغه طلاق وم اوچې عده یې پوره سوه نوته یې په نکاح کړه ،عبدالرحمن رضي الله عنه ورته وویل : خدای جل جلاله دي ستاپه مال او اولاد کي برکت واچوي ماته بازار راوښیه ده دبنوقینقاع بازار وروښووی دې بازار ته ولاړی او کله چې بیرته راوګرځیدی نو یوه اندازه غوړي اوپنیر یې هم له ځان سره راوړل په همدې ترتیب هغه هرورځ بازار ته تلی څه وخت وروسته داسي ورځ راغله چې دڅه زیړ والي اثر وربانديي ښکاره کېدی ،رسول الله ﷺ ورته وفرمایل داڅه دي ؟ ده ورته وویل:واده مي کړی ،رسول الله ﷺ وفرمایل : څومره مهر دی ورکړی ؟ده وویل :تقریبا پاوبانديي یوه توله سره زر یعني (۱۲) ګرامه .[271]

له حضرت ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی وایي انصارو رسول الله ﷺ ته وویل :ته زموږ دخورماؤ باغونه زموږ دورونو (مهاجرینو) ترمینځ وویشه ،ده وفرمایل :نه نودوی وویل نو تاستی مهاجرین زموږ سره کار وکړی اوموږ به تاسي په میوه کي راسره شریک کړو ،دوی (مهاجرینو)وویل دابالکل صحیح اومقبوله ده .[272]

له دې څخه داښه په ډاګه معلومیږي چې انصارو دخپلو مهاجرینو ورونو دعزت او احترام همکاري اوهمدردي په خاطر له څومره زیات اخلاص ،قرباندي ،میني اومحبت څخه کار اخیستی اوله دې څخه داهم ښه څرګندیږي چې مهاجرینو د دوی دعزت اوهمکاري احسان او کرم څومره قدر اوپاس درلودی ، اود دوی له همکارۍ اواخلاص څخه یوازي دومره ګټه واخیستله چې خپل مات اوګوډ ژوند یې وربانديي راوانولی سوای بیشکه چې دا ورور ولي عظیم ،حکمت،پوخ اوعاقلانه سیاست اودمسلمانانو د زیات شمیر یادسویو مشکلاتو لپاره کافي اوشامل حل ؤ .

---

[270] فقه السیرة ۱۴۰، ۱۴۱.

[271] صحیح البخاري باب اخاء النبي ﷺ بین المهاجرین والانصار ۱۵۵۳.

[272] صحیح البخاري باب اذاقال اکفني مؤنة النخل ۱/ ۳۱۲.

# «د اسلامي اتحاد تړون او عهد»

رسول الله ﷺ لکه څرنګه چې مؤمنان د ورور ولۍ په مزي سره وتړل همدا ډول يې يو بل داسي عهد او تړون ترسره کړی چې دهغه په واسطه يې دجاهليت ټول کشمکش،ناروا قومي اوقبيلوي عصبيتونه له هرډول جاهلانه رسم اورواج سره يوځای له مينځه يوړل ،دادی لاندی ددې تاريخي تړون مادې په لنډه توګه وړاندي کوو.اول : دوی ټول له دوي څخه پرته ټولو انسانانو ته جلا يوامت دي.

دويم :قريشي مهاجرين به دخپلو پخوانيو رواياتو مطابق يو بل ته ديت او دمؤمنانو په مينځ کي به په نيکي او انصاف سره دخپلو بنديانو فديه ورکوي ، دانصارو ټولي قبيلې به هم دپخوا په شان يو بل ته ديت ورکوي او د دوی هرډله او طائفه به دمؤمنانو په مينځ کي په نيکي او انصاف سره دخپلو بنديانو فديه ورکوي.

دريم :مؤمنان به دفديې او ديت په معامله کی خپل بې وسه اوبې کسه لره خپلي نيکي ورکوي او دسخا څخه به يې نه بې برخي کوي .څلورم : ټول رينښتنی مؤمنان به يوموټی ده هغه چا مقابلې ته درېږي چې پردوی ظلم کوي يا غواړي چې دمؤمنانو ترمينځ ظلم ،تيری او فساد خپور کړي پنځم : مؤمنان به ټول يو لاس ددا ډول سړي پرخلاف وي که څه هم هغه ددوی دکوم يوه زوی هم وي .شپږم : هيڅ مؤمن به دکافر په بدل کي بل مؤمن نه وژني اووم : اونه به دمؤمن په مقابل کي دکوم کافر ملاتړ او مرسته کوي اتم:دالله جل جلاله (ذمه) عهد يوه ده ،ديوه معمولي انسان له خوا ورکړل سوی ذمه پرټولو مسلمانانو لازمه او واجبيږي . نهم : هغه يهود چې زموږ پيروي يې غوره کړې د دوی مدد او کومک په کول کيږي نه به پر دوی ظلم کيږي اونه به د دوی پرخلاف دچا ملاتړ کوي لسم: دټولو مسلمانانو سوله يوه ده ،هيڅ مسلمان له بل مسلمان پرته دخدای جل جلاله په لار کي په جنګ کی سوله او جوړه نه کوي،بلکه ټول به يوځای دعدل او برابری پر بناء کوم تړون او عهد سرته رسوي .يوولسم : مسلمانان په هغه وينه کي يوله بل سره برابردي کومه چې څوک يې دخدای جل جلاله په لارکی تويوي .دوولسم : هيڅ مشرک به قريشو ته دځان يامال پناه نه ورکوي اونه به د دوی دساتني په خاطر دمسلمان په وړاندی دريږي .ديارلسم : که چا کوم مؤمن بې موجبه قتل کی اوقتل ورباندی ثابت سو نوهغه قاتل به قصاص کيږي خو که دمقتول ولي راضي سو بيا به نه وژل کيږی . څوارلسم : داټول مؤمنان به دهغه پرخلاف راپورته کيږي ،اوپرته له دې چې دهغه پرخلاف ودريږي په بل څه يې نه مسؤليت اداکيږي اونه بل څه ورته روا دي.پنځلسم : هيڅ يوه مسلمان ته روا نه دي چې دکوم مشکلات

راپیدا کوو نکي یابدعتي مرسته ورکړي اویاپناه ورکړي اوکه يې څوک مرسته کوي یاپناه ورکوي نوپر هغه به دقیامت په ورځ دالله ﷻ لعنت اوغضب وي اودهغه هیڅ به هم نه قبلیږي یعني نه به يې فرض قبلیږي اونه نفل شپاړسم: که تاسي مسلمانان په هر څه کي سره مخالف سواست هغه باید یوازي الله ﷻ او محمد ﷺ ته راجع کړئ[۲۷۳]

## «پر ټولنه باندي معنوی تأثرات»

په دومره عظیم حکمت اوځیرکي سره رسول الله ﷺ ددې نوي ټولني تهداب کېښوی خو دټولني داظاهري بڼه دهغه معنویاتواثر اوتصویر ؤ چې درسول الله ﷺ دصحبت اوملګرتیا په برکت ددې عظیمو پرګنو په برخه سوی ؤ ،رسول الله ﷺ به همېشه ددوی د ښوونې او روزنې ،تزکې اونیکواخلاقو باندی دآراسته کولوزیار اېسته اودوی به يې په مینه ،وروری ،عزت ،شرف اوعبادت اواطاعت سره روزل .یوه صحابي له رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې کوم ډول اسلام ډېر غوره دی ؟یعني په اسلام کي کوم ډول عمل ډېرغوره دی ،رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : خلګو ته خواړه ورکوه پرټولو پېژندګلو اوناپیژندګلو سلام اچوه .[۲۷۴]

عبدالله بن سلام رضي الله عنه وايي کله چې رسول الله ﷺ مدینې ته تشریف راوړی زه ورغلم اوکله مې چې دده مبارک مخ ولیدی نوپوه سوم چې داد کوم درواغجن مخ نه سي کېدای اودده ﷺ لومړي خبره داوه چې وی فرمایل اې خلګو !سلام خورکی ،خواړه ورکړی ،صله رحمي کوی ، دشپې هغه وخت لمونځ کوی چې خلک بیده وي نوپه سلام اوسلامتیا سره به جنت ته داخلیږی .[۲۷۵] رسول الله ﷺ فرمایي هغه څوک به جنت ته داخل نه سي چې همسایګان یې له شراوزیان څخه په امن نه وي ،[۲۷۶] همدا راز فرمایي :کامل مسلمان هغه دی چې نور مسلمانان يې دژبې اود لاس څخه په امن وي[۲۷۷] . بل ځای فرمایي : له تاسو څخه هیڅوک ترهغو کامل مؤمن نه سي کېدی ترڅوېې چې دخپل ورور لپاره هغه څه نه وي خوښ کړي کوم چې دخپل ځان لپاره يې خوښوي .[۲۷۸] رسول الله ﷺ فرمایي : ټول مؤمنان دیوه سړي په ډول دی که دهغه سترګه په دردسي نوټوله جسد يې په درد راځي

---

[۲۷۳] ابن هشام ۱/ ۵۰۲، /۵۰۳.

[۲۷۴] صحیح البخاری ۱/ ۶-۹.

[۲۷۵] رواه الترمذی، ابن ماجه الدارمی، مشکوة المصابیح ۱/ ۱۶۸.

[۲۷۶] مسلم، مشکوة المصابیح ۱/ ۱۶۸.

[۲۷۷] صحیح البخاری ۱/ ۶.

[۲۷۸] صحیح البخاری ۱/ ۶.

،او که یې سر خوږیږي نو ټول بدن یې دردمند کیږي .[۲۷۹] او بل ځای فرمایي : چې یو مؤمن بل مؤمن ته د عمارت او تعمیر حیثیت لري چې په خپل مینځ کې یو بل سره قوي او پیاوړي کوي .[۲۸۰] او فرمایي یو له بل سره بغض ،کینه او حسد مه کوئ و ،یو بل ته شا مه اړوی ، یعنې یو له بل څخه نفرت مه کوی ،د الله جل جلاله بندګانو یو د بل وروڼه اوسی ،هیڅ مسلمان ته روا نه ده چې له خپل مسلمان ورور څخه تر درو ورځو زیات خفه سي .[۲۸۱]

مسلمان د مسلمان ورور دی ،مه پر هغه ظلم کوی او مه یې دښمن ته سپاری ،څوک چې د خپل ورور د حاجت او ضرورت پوره کولو کوښښ کوي ،الله جل جلاله به د هغه ضرورتونه دفع کوي او هغه څوک چې د کوم مسلمان غم او درد دوا کړي الله جل جلاله به له هغه څخه د قیامت د ورځې له غمونو او دردنو څخه کوم غم لیري کوي او څوک چې د مسلمان پرده کوي الله تعالی به د قیامت په ورځ د هغه پرده وکړي .[۲۸۲] د مځکې پر اوسیدونکو رحم وکی تر څو هغه ذات رحم در باندې وکړي چې په آسمان کې دی [۲۸۳]،هغه څوک کامل مؤمن نه دی چې په خپله موړ وي او په خوا کې یې همسایه وږی وی [۲۸۴]،د مسلمان ښکنځل ،فسق او جنګ ورسره کفر ده ،[۲۸۵] په همدې ترتیب سره رسول الله صلی الله علیه وسلم د لاري څخه د ضرري شیانو لیري کول صدقه بولي او دا د ایمان له ښاخونو څخه ښاخ شمیري .[۲۸۶] اصحاب یې خیرات او صدقې ورکولو ته هڅول او د صدقې دومره فضایل یې ورته بیانول چې زړونه به به خپله ورماتېدل ،فرمایل : به یې صدقه ګناهونه داسې له مینځه وړي لکه څرنګه چې اوبه اور وژني .[۲۸۷] رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي کوم مسلمان چې بل لڅ مسلمان په کالو پټ کړي الله جل جلاله به هغه ته د جنت شنه کالي وراغوندي ،او کوم مسلمان چې بل مسلمان ته د لوږې په حالت کې خواړه ورکړي الله جل جلاله به هغه د جنت میوه وروخوري او کوم مسلمان چې بل تږي مسلمان ته اوبه ورکړي الله جل جلاله به هغه ته د جنت مهر سوي پاک شراب وروڅښي [۲۸۸]، له اور څخه ځان

---

[۲۷۹] مسلم مشکوة المصابیح ۲/ ۴۶۶.

[۲۸۰] متفق علیه مشکوة المصابیح ۲/ ۴۶۶.

[۲۸۱] صحیح البخاری ۲/ ۸۹۶.

[۲۸۲] متفق علیه مشکوة المصابیح ۲/ ۴۶۶.

[۲۸۳] سنن ابی داؤد ۲/ ۳۳۵، الترمذي ۲/ ۱۴.

[۲۸۴] البیهقی مشکوة المصابیح ۲/ ۴۲۴.

[۲۸۵] صحیح البخاری ۲/ ۸۳۹.

[۲۸۶] په دې باره حدیث په بخاري او مسلم کې روایت سوی دی مشکوة المصابیح ۱/ ۱۲، ۱۶۵.

[۲۸۷] احمد ترمذي ابن ماجه مشکوة المصابیح ۱/ ۱۶۹.

[۲۸۸] ابوداؤد الترمذی، مشکوة المصابیح ۱/ ۱۶۹.

وساتي .که څه هم دخورما په یوه ټوټه صدقه ورکولو سره وي ، اوکه داهم نه لري نوپه نیکي خبرې سره[289] اوددې ترڅنګ يې له سوال کولو څخه ډځان ساتلو کلک امرهم کاوه دصبر اوقناعت فضایل یې بیانول ، اوسوال کول یې دسوال کوونکي لپاره دمخ داغ ،درز او زخم بللی [290] ،خوله دې څخه هغه فقیر اومحتاج مستثنی دی چې له سوال پرته بل هیڅ چاره نه لري ،رسول الله ﷺ به دعبادتونو فضائل اجراوثواب هم بیانوي اومسلمانان به یې پرده باندي له آسمان څخه رانازلې سوي وحي سره ټینګ تړل ،حې به یې دوی ته ویله اودوی به بیا ده ته ویله ،ترڅو په دې کار سره له پوهي اوتدبر څخه پرته د دوی په زړونو کي د دعوت دحقوقو اورسالت دمسؤلیتونو احساس هم بنه پوخ اوژوندی سي ،په دې ترتیب سره رسول الله ﷺ داصحابو معنویات اوروحیات لوړکړل ،د دوی استعدادونو ته یې نیکه وده ورکړه ، دوی یې له ټولو څخه لوړو اخلاقو ،اقدارو او اعمالو سمبال کړل او دوی یې دفضل اوکمال هغې درجې ته وخېژول چې په انساني تاریخ کي یې له انبیاؤ علیهم السلام پرته مثال نه لیدل کیږي .

عبدالله ابن مسعود ﵁ وایي څوک که کومه لاره غوره کول غواړي نوهغه دې مخکي تللیو رسول الله ﷺ اصحاب ؤ ،دوی ددې امت غوره اوافضله ډله وه ، ترټولو دنیکو اوصافو زړونو ،زیات او ژور علم اوډېر کم تکلف خاوندان ؤ ،الله تعالی دوی دخپل رسول ﷺ صحبت اوخپل دین دقیام اوحاکمیت لپاره غوره کړی ؤ ،نو دهغه فضل اومقام وپېژني ، د دوی متابعت اوپیروي وکي اوداامکان ترانداز د دوی اخلاق اوسیرت خپل کړي ، ځکه دوی دهدایت پرنیکه لار برابر خلګ ؤ ،اوبله داچې زموږ عظیم نبي لاربښوونکی ﷺ په خپله د دومره اوچتو معنوي اوظاهري صفاتو مجد ،عظمت ، فضل نیکو اخلاقو ،غوره کردار اوبې ساري عمل درلودونکی ؤ چې زړونه به ورپوري نښتل اوځانونه اونفسونه به ورڅخه قربانیدل اوکله به چې یې له مبارکي خولې څخه کوم امر صادریدی نواصحابو به سمدستي هغه ته دعمل جامه ور واغوستله ،که به یې دکومي نیکۍ اوهدایت خبره کوله نودوی به سمدستي خپل ځانونه په هغه سره سنیګارول .

په دې کوښښونو اوهلوځلو سره رسول الله ﷺ پردې وتوانیدی چې په مدینه کي یوه نوې ټولنه جوړه کړي داسي ټولنه چې په ټول تاریخ کي ترټولو لوړه اوډزیات شرف درلودنکې ټولنه وه ،اوددې ټولني مشکلاتو ته یې داسي یوحکیمانه حل راوایست چې له اوږدو

---

[289] صحیح البخاري ۱/۲/۱۹۰/۸۹۰.

[290] ابوداؤد، ترمذي، نسائي، ابن ماجه، دارمي، مشکوة المصابیح، ۱/۱۶۳.

زمانو په تورو تیاروکي ستړي انسانیت په کښې داطمینان اوآرامي ساه واخیستله ،ددې نوې ټولنې عناصرو اواجزاؤپه دې ډول لوړو ارشاداتو اومعنویاتو سره تکامل داسې پړاؤوواهه چې نور دزمانې هرډول مقابلې ته تیار ؤ ،په پوره ځوانمردۍ يې دحالاتو مقابله کوله ،بالاخره يې دزمانې مخه اودتاریخ تګ لاره بدله اوپرنیکه لاره برابر او روان کړه.

## «له یهودانو سره تعهد»

کله چې رسول الله ﷺ مدینې ته له هجرت څخه وروسته دنظام ،سیاست اوعقیدې دیووالي په واسطه دنوي اسلامي ټولنې تهدابونه ټینګ کړل نويې خپله توجه له نامسلمانانو قوتونو سره داړیکو ټینګولو خواته واړوله ،درسول الله ﷺ هیله اوهدف دا ؤ چې ټول انسانان دامن نیک بختئ ،خیر اوآرامي لاندې ژوندوکړي اودایې غوښتل چې مدینه اوشاوخوا سیمې تریوې فدرالی اداري لاندې سره رټولي کړي اود زغم،عفوی اوګذشت داسې قوانین يې جوړ کړل چې دهغه وخت له تعصب اوافراط څخه ډکي دنیا کې يې تصور غوندې هم نه سوای کېدلای ،دمدینې ترټولو نژدې ګاونډیان یهودیان ؤ دوی که څه هم په زړه کې له مسلمانانو سره دښمني درلوده خوپه خوله يې لاتراوسه ددې دښمنۍ ښرګندونه نه وه کړې ، نو رسول الله ﷺ له دوی سره داسې تړون لاسلیک کړی چې دهغه په رڼاکې یهودو ته ددین اومال پوره آزادي ورکړل سوی وه ،اوله دوی سره ددښمنۍ مال اوجائیداد ضبطولواوافراې کولو له سیاست څخه بالکل ډډه سوی وه ،داتړون دمسلمانانو دخپل مینځې تړون کوم چې مخکې تیرسو په ضمن کې ترسره سوی ؤ ،ددې معاهدې ځینې مهم سرټکي په لاندې ډول دي

## «دتړون بعضي مادې»

۱: دبني عوف یهود له مسلمانانو سره یودي ،یهود به په خپل دین اومسلمانان به په خپل دین عمل کوي ،داددوی اود دوی دپیروانو اوغلامانو حق دی ،له بني عوف څخه علاوه دنورو یهودو هم همدا حقوق دي. ۲: مسلمانان اویهود هره ډله بیله بیله دخپلو مصارفو اواخراجاتو مسؤلیت اوضمانت په غاړه لري ،

۳ : هرڅوک چې ددې معاهدې دکوم طرف پرخلاف جنګ اعلان کړي دمعاهدې ټول اطراف به دهغه پرخلاف درېږي. ۴:ددې معاهدې دتړون کوونکو اړیکي به خیرخواهي ،نصیحت اوګټې رسولو پربناء ولاړې وي نه دګناه پراساس. ۵ : هیڅوک هم دخپل حلیف په وجه مجرم نه شمیرل کیږي. ۶ : له مظلوم سره به مرسته اوکومک کول کیږي. ۷:ترڅوچې جنګ روان وي ترهغو پورې به یهودله مسلمانانو سره دجنګ په خرڅ او

مصرف کي پوره ونډه اخلي ۸: دمعاهدې پرتولو اړخونو باندي په مدینه کي فتنه اوفسادرا ولاړول او وینه تویول حرام دي ۹: که دمعاهدې داړخونو ترمینځ کومه داسي منازعه راپیداسي چې دخطراوفساد احساس ورڅخه کیږي نوده‌غه فیصله به الله ﷻ او رسول الله ﷺ کوي ۱۰: قریشو او د دوي همکارانو ته به پناه نه ورکول کیږي ۱۱: هرڅوک که پرمدینه حمله وکړي نو د معاهدې ټول اطراف به د دوی پرخلاف یوځای جنګ کوي ،اوهرڅوک به دخپل طرف دفاع اوساتنه کوي ۱۲: داتړون دظالم اومجرم لپاره دپناه اونجات سبب نه سي کېدای.[۲۹۱] په دې تړون سره مدینه اوشاوخوا سیمي دیوه فدرالي حکومت تراداري لاندي راټولي سوی ،ددې حکومت مرکز مدینه اورئیس یې رسول الله ﷺ ؤ چې واک اوخبره دمسلمانانو په کي چلیده ،اوپه دې سره مدینه واقعا دمسلمانانو اواسلام مرکز وګرځیده په ټوله سیمه کي دامن اوآرامي دقیام او برقراري په خاطر له نورو قبائلو سره هم دحالاتو او واقعاتو مطابق معاهدې وسوی ،چې په راتلونکوصفحو کي به یې یادونه وکړو ،ان شاء الله

## «مسلحانه مبارزه»

په مخکي پاڼو کي مو ویل چې دمکې کفارو پرمسلمانانو څه ډول ظلم اوزیاتوب کوي اوله دوی سره یې دهجرت په وخت کي څه ډول وحشیانه معامله کوله نور دداډول ظلمونواو تیریو له امله کفار ددې مستحق ؤ چې مالونه یې ضبط اودجنګ لاره ورسره ونیول سي ،دوی لاپر سدنه ؤ راغلی ظلم اووحشت یې نه پرېښووی بلکه چې مسلمانانو د دوی له ظلم او څخه نجات ترلاسه کي ،اوپه مدینه کي دامن دکور خاوندان سول ،دوی سمدستي عبدالله بن ابی بن سلول ته چې هغه وخت لامشرک ؤ لیک راولیږی ،نوموړي ترهجرت مخکي دانصارو رئیس ؤ ،که رسول الله ﷺ هجرت نه وای کړی اوانصارو ایمان نه ؤ وړباندي راوړی نوعبدالله بن ابی به یې خپل باچاټاکلی وای دقریشو لیک ډیر توند ؤ چې په کښبي راغلي ؤ تاسي زموږ ملګري ته پناه ورکړی ده قسم په خدای چې یابه ورسره جنګیږی اویابه یې له وطنه څخه شړی اوکه نه نو موږ ټول درځوترڅوستاسي ټول جنګیالي ووژنو او دښځو عزت او حرمت مو ترپښو لاندي کړو.[۲۹۲] دلیک له رسیدو سره سم عبدالله بن ابی دخپلو مشرکینو دامر دتنفیذ اوپلي کولوپه خاطر متې راونغښتلی ،دده زړه له مخکي څخه رسول الله ﷺ ته ډک ؤ ځکه ده ګومان کوی چې رسول الله ﷺ یې

---

[۲۹۱] ابن هشام ۱/ ۵۰۳، ۵۰۴.

[۲۹۲] ابوداؤد باب خبر النضر.

باچهي ورخرابه كړي وه ،عبدالرحمن بن كعب وايي كله چې عبدالله ابن ابي او ورسره مشركينو ملګرو ته يې داخبر ورسيدى ،نوله رسول الله ﷺ سره دجنګ كولو لپاره راټول سول ،خوكله چې رسول الله ﷺ په موضوع خبرسو ورغلى او ورته وى ويل : دقريشو اخطار اوتهديد پرتاسي ډير ژور اثر كړى دى خوتاسي په خپله خپل ځانونه دومره زيانمن كوى چې قريشو تاسي ته دومره لوى زيان اوضرر نه سي در رسولاى ،آياتاسي غواړى له خپلو زامنو او وروڼو سره جنګ وكړى مشركينو چې درسول الله ﷺ داخبر واوريدى نوبيره سره خواره سول.[293]

په دې سره عبدالله بن ابي دجنګ اراده پرېښووه ،ځكه وى ليدل چې ملګري يې وترپيدل اويا داچې په خبره پوه سول اوسرېې خلاص سو نوداښكاره وه چې نوموړي له قريشو سره سرخوځاوه اوكله چې يې مناسب فرصت پيداكى نودمسلمانانو اومشركانو ترمينځ به يې دشر اوفتنې اور بلاوه ،دده سره ديهودو همكاري هم وه خورسول الله ﷺ به تل ددوى دشر او فتنې پر اور دخپل حكمت يخې اوبه اچولې اوفساد به يې سرپورته كولو ته نه پرېښووى.[294]

## «د سعدبن معاذ رضي الله عنه او دابوجهل يو دبله اختارونه»

څه وخت وروسته سعدبن معاذ رضي الله عنه دعمرې داداكولو په نيت مكې ته ولاړى هلته دامية بن خلف ميلمه سو،اواميه ته يې وويل : داسي مناسب اودفرصت وخت راته ګوره چې طواف وكړم ، هغه غرمې ته په نژدې وخت كي حرم شريف ته بوتلى ،هلته ابوجهل ورسره مخامخ سو او اميه ته يې وويل : ته ګوره دلته په مكه كي په امن اوآرامي سره طواف كوى په داسي حال كي چې زموږ بې دينانو ته موپناه وركړى ده اودامو هم پټيلي ده چې د دوى مرسته اوكومک به هم كوى ، خوقسم په خداى كه ته له ابوصفوان سره نه واى نو بيرته به ژوندى نه واى تللى ، سعد په لوړ آواز جواب وركى ،قسم په خداى كه ته ماله دې څخه منع كړى زه به دې له هغه څه څخه منع كړم چې تاتع تردې ډير سخت او درونډ وي يعني له مدينې څخه تيره سوى ستاسي تجارتي لار.[295]

## «دقريشو دجانب څخه مهاجرينو ته تهديدى اختار»

---

[293] نفس المصدر.

[294] صحيح البخارى ۲/ ۶۵۵، ۶۵۶، ۹۱۶، ۹۶۴.

[295] صحيح البيخارى كتاب المغازى ۲/ ۵۶۳.

بیاقریشو مسلمانانو ته داسې اخطاراوتهدید ولیږۍ چې ګوري په دې غره نه سي چې مدینې ته راځخه ولاړاست موږ پسې درځو اوهم الته موتس نس کوو.[۲۹۶]

داهسې لفظي دتهدید اواخطار نه وه، رسول الله ﷺ دقریشو له فتنو اوفسادو ارادو ځخه ښه خبرؤ نوځکه به یې ټول شپه په ړنو سترګو تیرو له اویابه داصحابو ترپهرې لاندې بیده کېده، مسلم شریف له حضرت عائشې ﷺ ځخه روایت کوي وایي چې رسول الله ﷺ مدینې ته دراتګ وروسته یوه شپه هم داسې ویښ ناست ؤ او وی فرمایل: کاشکي له اصحابو ځخه مې یوه صالح سړی نن شپه پیره راباندي کړی وای، عائشه ﷺ وایي موږ په هم دې حالت کې ؤ چې دوسلې کړپ کړوپ مو واورېدی، رسول الله ﷺ وفرمایل: ځوک يې ؟ده وویل سعدبن ابي وقاص ﷺ یم رسول الله ﷺ ورته وویل ولې راغلی یې؟ده وویل هسې په زړه کې مې درسول الله ﷺ په هکله بیره راپیداسوه نو راغلم چې پیره درباندې وکړم نوبیا رسول الله ﷺ دعاورته وکړه اوبیده سو.[۲۹۷] داپیره اوبیداري دکومې یوې یا دوو شپو خبره نه وه بلکه رسول الله ﷺ هو داحال ؤ له عائشې ﷺ ځخه روایت دی فرمایي پر رسول الله ﷺ باندې به دشپې پیره کېدله ترځو دا آیت نازل سو: وَاللّٰهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ. سورة المائدة. **ترجمه**: الله تعالی تادخلګو ځخه ساتي، نورسول الله ﷺ خپل مبارک سرله قبې ځخه را ویستی او وی فرمایل: اې خلګو! ورځی ولاړسی الله تعالی زماحفاظت کوي.[۲۹۸] داسې هم نه وه چې داخطر یوازې رسول الله ﷺ ته متوجه ؤ بلکه ټول مسلمانان تربیرې او خطرې لاندې وه، ابی ابن کعب روایت کوي وایي کله چې رسول الله ﷺ او اصحاب یې مدینې ته ورغلل اوانصارو پناه ورکړه نوټول عرب د دوی پرخلاف سره یو موټې سول، نو مسلمانان به نه دشپې اونه د ورځې له خوا بغیر دسلاح ګرځېدل.

## «دالله ﷻ دطرف ځخه مسلمانانوته دجنګ اجازه»

په دې حساسو اوخطرناکو حالاتو کې چې دمسلمانانو وجود ترخطر لاندې ؤ اوداسې ښکارېده چې قریش پرسد نه راځي اوپه هیڅ قیمت هم خپل کبر اوظلم نه پرېږدي په همدې وخت کې الله تعالی مسلمانانو ته دجنګ اجازه ورکوي خو دا جنګ ورباندې فرض کوي نه بلکه ورته وایي: أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا وَإِنَّ اللّٰهَ عَلَىٰ نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ ۳۹. سورة الحج **ترجمه**: حکم ورکول سوی دی دقتال هغو کسانو ته چې قتال ورسره کول کیږي

---

[۲۹۶] رحمة للعالمين ۱/۱/۶.

[۲۹۷] مسلم باب فضل سعدبن ابی وقاص ﷺ ۲/ ۲۸۰، وصحیح البخاری، ۱/ ۴۰۴.

[۲۹۸] جامع التفسير ابواب التفسير ۲/ ۱۳۰.

(دکفارو له خوا) په دې سبب چې بېشکه پردوی ظلم سوی دی ،اوبېشکه چې الله ﷻ پرمرسته د دوی ښه قادر دی ،داآیت له هغو آیتونو سره نازل سو چې مسلمانانو یې په دې پوهول چې ددې اجازې هدف جنګ دجنګ په خاطر نه بلکه اصلي هدف یې دادی چې باطل له مینځه یوړل سي ، اود الله ﷻ احکام اوشعائر پرځای سي ، الله ﷻ په قرآن کریم کي فرمایي :

ٱلَّذِينَ إِن مَّكَّنَّٰهُمۡ فِي ٱلۡأَرۡضِ أَقَامُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُاْ ٱلزَّكَوٰةَ وَأَمَرُواْ بِٱلۡمَعۡرُوفِ وَنَهَوۡاْ عَنِ ٱلۡمُنكَرِۗ. سورة الحج آیت (٤١) . **ترجمه** : دغه مهاجر هغه کسان دي چې که چیري قدرت ورکوو موږ دوی ته په مځکه کي دښمن باندي دغلبې په اعتبار ،نوقائموي دوی (سم اداکوي له سره له ټولو حقوقو)لمونځ او ورکوي به زکات اوامرحکم په کوي (خلګوته) پرمعروف (نیک شرعي کار)سره اومنع کوي به خلګ له بدکار څخه .

صحیح خبره داده چې دجنګ دا اجازه ترهجرت وروسته په مدینه کي نازله سوې ده ،خودامو ونه سوای کړای چې دنزول معین اودقیق تاریخ یې وټاکو .

دجنګ اجازه خو وسوه خوپه داسي حالتوکي چې دقریشو زور اوزیاتی ښه په جوش کي ؤ ،د حکمت تقاضا داوه چې مسلمانان دمکې اوشام ترمینځ دقریشو تجارتي لاري ترخپلې ولکی لاندي راولي ،رسول الله ﷺ ددې هدف دتحقق لپاره دوی لاري غوره کړې١ :دمکې اوشام ترمینځ دلاري پرسر اویا ددې لاري اومدینې تر مینځ پرتو قبیلوسره همکاري اویایوپر بل دعدم تجاوز اونه تیري تړونونه ترسره کول ، مخکي موله یهودو سره د رسول الله ﷺ له معاهدې څخه یادونه وکړه له وسله والي مبارزې څخه مخکي هم دې ته ورته یو تړون له جهینه قبیلې سره هم سوی ؤ ددې قبیلې میني له مدینې سره په درو برخو کي پرتې وې همدا راز رسول الله ﷺ له نورو قبائلو سره هم دخپلو عسکري عملیاتو په وخت کي تړونونه لاسلیک کړي دي چې په راتلونکي کي به یې یادونه وکړو٢ : دې لاري ته دګزمې او ګښتي ګروپونو لیږل .

## «د بدر څخه وړاندي سرایاوې اوغزوات»[٢٩٩]

[٢٩٩] مؤرخین وهغه ته چې پخپله رسول الله ﷺ پکښې وتلی وو اوجګړه یې کړي وه هغه ته غزا وایي اوپه کوم کي چې به یې بل چاته قومنده ورکړي وه هغه ته سریه ویل کیږي.

دجنګ داجازې له نزول څخه وروسته مسلمانانو دپورته یادو سویو دواړو پلانونو دتطبیق په خاطر عملا په عسکري تحرکاتو لاس پورې کړې شاوخوا ته به یې دکشف او ګزمې ډلې لیږلې ترڅوله یوخوا دمدینې له شاوخوا برخوڅخه مکې ته غځیدلې لارې ځانته معلومې کړي اوله بلې خوا دلته پرتو قبیلو سره دهمکارۍ تړونونه لاسلیک کړي اودمدینې مشرکینو یهودواو نورو اعرابو (کوچیانو) ته داوښیې چې نور مسلمانان دپخوا په ډول کمزوري نه دي بلکه دوی دقوي ځواک اوقدرت خاوندان ګرځیدلي دي او ددې عسکري تحرکاتو بل هدف داهم ؤ چې قریش وییروي ،اوسدې سرته راولي ترڅو دکبر اوغرور له نیلي څخه راکښته سي اودخپل اقتصاد اومهمو ژوندنیو لارو په هکله دخطر احساس وکړي اودسولې لاره غوره کړي له مسلمانانو سره دجنګ اراده پرېږدي دالله جل جلاله په لاره کي نور خنډونه را ولاړ نه کړي په مکه کي دمسلمانانو له تعذیب اوځورولو څخه لاس په سرسي اومسلمانان پرېږدي چې په پوره آزادي سره په عربي جزیره کي دالله جل جلاله پیغام وخلګو ته ورسوي.

## «په مختصره توګه دسرایاؤ یاداوري»

۱: دسیف البحر سریه : دهجرت لومړی کال درمضان په میاشت کي چې د(۶۲۳م) کال د مارچ له میاشتي سره سمون خوري ،رسول الله صلی الله علیه وسلم مهاجرینو دیرش کسیزه ګروپ چې مشري یې د حضرت حمزه رضي الله عنه پرغاړه وه ،په دې وګومارل چې دقریشو دهغې درې سوه کسیزي قافلې مخه ونیسي په کومه کي چې ابوجهل په کښي ؤ اودشام څخه را روانه وه مسلمانان چې کله دعیص[300] له خوا دسیف البحر منطقې ته ورسیدل نوله کفارو سره مخامخ سول دواړو طرفونو دجنګ تیاري ونیولو خومجدي بن عمرو الجهني چې له دواړو طرفونو سره یې تړون درلودی راغلی او دوی یې له جنګ څخه واړول ، دحضرت حمزه رضي الله عنه بیرغ لومړی بیرغ ؤ چې رسول الله صلی الله علیه وسلم پورته کړی ،رنګ یې سپین او وړونکي یې ابومرشد کنازبن حصین الغنوی ؤ.

## ۲: درابغ سریه

---

[300] عیص دعین په زیرسره دینبع اومروه چې دسرې بحیرې سره واقع دي په مابین کي دیوې علاقې نوم دی.

دهجرت دلومړي کال دشوال په میاشت کې چې د(۶۲۳م) کال داپریل له میاشتي سمون خوري ،رسول الله ﷺ دعبیده بن حارث بن المطلب په مشري دمهاجرینو په شپیته کسیزه ډله تیاره کړله اووی لیږله ، داډله دابوسفیان په مشري دقریشوله دوه سوه کسیزه کاروان سره درابغ په سیمه کې مخامخ سول یوپربل یې غشي واورول خولاس په لاس جنګ ونه سو په دې سریه کې دکفارو له لښکر څخه دوه کسان(مقداد بن عمرو البهراني رضي الله عنه اوعتبه بن غزوان المازني رضي الله عنه)له مسلمانانو سره یوځای سول دوې دواړو مخکې لاپه اسلام مشرف سوی ؤ اوله کفارو سره په دې خاطر راوتلی ؤ ترڅو ځانونه مسلمانانو ته ورسوي ، دعبیده رضي الله عنه بیرغ سپین او وړونکي یې سطع بن اثایه بن المطلب بن عبدمناف رضي الله عنه ؤ .

**۳ :دخرار سریه:** [301]دهجرت په لومړي کال دذی القعدې په میاشت کې چې د(۶۲۳م) کال دمئي له میاشتي سره سمون خوري ،رسول الله ﷺ دحضرت سعدبن ابي وقاص رضي الله عنه ترمشري لاندې دسپرو یوشل کسیزه ډلې ته امر وکی چې دقریشو دکاروان مخ ته ورسي خودا یې ورته وفرمایل : چې خرار ترسیمي اخوا ته به نه تیریږي دوی پیاده حرکت وکی دشپې یې مزل کوی او د ورځې به چیري غلي کېدل ترڅو دپنځمي ورځې په سهار خرار ته ورسېدل اوهلته خبر سول چې کاروان پرون له دې سیمي څخه تیر سوي دي دسعدبن ابي وقاص رضي الله عنه بیرغ سپین او علمبرداري یې مقداد بن عمرو ؤ .

**۴ : دابواء یاودان غزا:** [302]د دویم هجري کال دصفر په میاشت کې چې د(۶۲۳م) کال داګست له میاشتي سره سمون خوري ،رسول الله ﷺ په خپله له اویا کسانو مهاجرینو سره ووتی ،سعد بن عباده رضي الله عنه یې په مدینه کې خلیفه وټاکی ،رسول الله ﷺ غوښتل دقریشو دکاروان مخه ونیسی ،ترودان پورې ورسیدی خو دکوم خطر سره مخامخ نه سو ،په دې غزاکې دبني ضمرة له رئیس عمرو بن مخشی الضمري سره تړون وسو ،ددې تړون متن دادی .

---

[301] خرار دخاء په زور سره اودراء په تشدید سره له جعفی سره نژدې دیوه ځای نوم دی.

[302] ودان دمکې اومدینې ترمابین دیوې علاقې نوم دی د دې ځای اورابغ ترمابین ۲۹ میله مسافه ده او ابواء دودان طرف ته یوه علاقه ده.

دابني ضمر ته د رسول الله ﷺ ليک دی ،د دوی سرونه اومالونه په امن دی ،که چاحمله ورباندي وکړه نومرسته به يې کيږي خوکه دوی دالله ﷻ د دين پرخلاف جګړه وکړی نو بيا ورسره کومک اومرسته نسته دامعاهده ترهغه وخته داعتبار وړ ده ترڅو ددرياب اوبه وجود لري يعني دهمېشه لپاره معتبر ګڼل کيږي ،اوهرکله چې رسول الله ﷺ له دوی څخه مرسته وغواړي نو دوی به يې مرستې ته ورځي.[۳۰۳]

دادرسول الله ﷺ لومړنی غزا وه،ده مبارک پنځلس ورځي له مديني څخه د باندي تيري کړی ،بيرغ يې سپين او وړونکی يې حمزه بن عبد المطلب ؓ وُ.

**۵ : دبواط غزا:** ددويم کال درييع الاول په مياشت کي چې د(۶۲۳م) کال دستمبر له مياشتي سره سمون خوري ،رسول الله ﷺ له دوو سوو اصحابو کرامو سره دقريشو دکاروان مخ ته ورغلی،په دې کاروان کي اميه بن خلف الجمحي اودقريشو سل نور کسان اودوه زره پنځه سوه اوښان وُ،رسول الله ﷺ مخکي ولاړی ترڅو درضوی له طرفه بواط ته ورسدی خوله څه واقعې سره مخامخ نه سو ، رسول الله ﷺ په دې غزا کي حضرت سعد بن معاذ په مدينه کی خپله خليفه ټاکلی وُ ،ددې غزا بيرغ سپين اوعلمبرداريې حضرت سعدبن ابي وقاص ؓ وُ.

**۶:دصفوان غزا:** ددويم کال درييع الاول په مياشت کي چې د(۶۲۳م)کال دستمبر دمياشتی سره سمون خوري دجابر دلفهري زوی لرز له يوشمير مشرکانو سره دمدينې په څير پرڅايونو حمله وکړه اوڅه شمير څاروي يې بوتلل ، رسول الله ﷺ له اويا کسه اصحابو سره ورپسې ووتی اودبدر له طرف دصفوان سيمي ته ورسيدی خوکرزيې له لاسه وتلی وُ او بيرته بې جګړې راستون سو داغزا دلومړنی بدر په نامه يادېږي داوار يې زيدبن حارثه ؓ په مدينه کي خپل خليفه وټاکی ،بيرغ يې سپين او وړونکی يې علی ابن ابي طالب ؓ وُ.

**۷ : دذی العشيرة غزا:** دهجرت د دويم کال دجمادي الاولی اوجمادی الاخر په مياشت کي چې د(۶۲۳م)کال دنومبر سره سمون خوري ،رسول الله ﷺ له (۱۵۰) يا(۲۰۰) مهاجرينو سره ووتی رسول الله ﷺ هيڅوک هم دځان سره په زور نه

---

[۳۰۳] المواهب الدينيه ۱/ ۷۵، شرحه للزرقاني.

ؤ بیولی ، ټول په خپله رضا او خوښۍ روان سول ، له دوی سره یوازي دیرش اوښان ؤ چې په نوبت به ورباندي سپرېدل ، د دوی هدف دهغه کاروان نیول ؤ چې له مکې څخه شام ته روان ؤ ،داسي خبرراغلی ؤ چې داکاروان له مکې څخه روان سوی دی،په دې کاروان کي دقریشو خاص اوقیمتي مالونه ؤ،رسول الله ﷺ مخکي ولاړی ترڅو دذی العشیرې[۳۰۴] سیمي ته ورسیدی هلته خبرسو چې کاروان څو ورځي مخکي تیرسوی دی ، اوهم هغه کاروان دی چې له شام څخه دبیرته ستنید وپه وخت کي یې رسول الله ﷺ مخ ته ورغلی ؤ کاروان نجات وموندی ، خودبدر لویه غزا پیښه سوه ، دابن اسحاق په خوله دا وار رسول الله ﷺ دجمادي الاول وروستیو کي وتلی اودجمادي الاخر په لومړیو ورځو کي بیرته راستون سوی ؤ ،اوکېدای سي هم دا دمؤرخینو ترمینځ ددې غزا دنیټې په هکله داختلاف سبب وي . په دې غزا کي نبي کریم ﷺ له بني بدلح اوپه بني ضمره کي د دوی له حلیفانو سره دعدم تجاوز تړون هم لاسلیک کړی ،ابوسلمه بن عبدالاسد المخزومي یې په مدینه کي خپل خلیفه پرې ایښی ؤ ،بیرغ یې سپین او وړونکي یې حمزه بن عبدالمطلب رضي الله عنه ؤ .

**۸: دنخله سریه:** د دویم هجري کال رجب په میاشت کي چې د(۶۲۴م) کال دجنوري له میاشتی سره سمون خوري رسول الله ﷺ دعبدالله بن جحش اسدي رضي الله عنه ترمشري لاندې د مهاجرینو یو دولس کسیزه ګروپ دنخله سیمي ته ولیږی له دوی سره شپږ اوښان ؤ چې په نوبت به ورباندي سپرېدل ، رسول الله ﷺ دګروپ قومندان ته یو خط لیکلی ؤ اوامریې ورته کړی ؤ چې دالیک به تر دوو ورځو مزله وروسته ګوری ، عبدالله رضي الله عنه دوې ورځي مزل وکی بیایې خط خلاص کی چې داسي په کي لیکلي ؤ ،کله چې دې زما دالیک ولوستی نو مخکي ولاړسه ، دمکې اوطائف ترمینځ په پرتې نخلې سیمي کي واړوه ، هلته دکاروان څارنه کاوه اوموږ ته خبر راکوه ، خط یې ووایه او وی ویل : امرمو په سترګو قبول دی خپل ملګري یې خبر کړل خودایې ورته وویل : چې زه تاسي نه مجبور کوم څوک که شهادت

---

[۳۰۴] ذی العشیره دینبع وخواته دیوې علاقې نوم دی.

غواړي نو راسره ځي دي او که چېري دچا مرګ خوښ نه وي نو بيرته دي ستون سي خوزه به ځم ،ملګري يې هم ټول ورسره روان سول ،دلارې په اوږدو کي سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه او ملګري يې عتبه بن غزوان خپل اوښ ورک کړی او دهغه په لټه کي له ګروپ څخه پاته سول .

عبدالله بن جحش رضي الله عنه مخکي ولاړی او نخلې ته ورسيدی چې ګوري دقريشو يو کاروان چې مميز ،څرمني دعبدالله بن مغيره دوه زامن عثمان او نوفل او دبني مغيره مريی حکيم بن کيسان يې ملګري ؤ، مسلمانانو په خپل مينځ کي سلا او مشوره وکړه چې څه بايد وکړو نن درجب اخري شپه ده ، که اوس ورسره وجنګيږو نو دشهر حرام بې حرمتي کيږي او که يې نن پريږدو نو بيا دحرم حدود ته داخليږي ،بالاخره معاهده پردې وسوه چې همدا نن به مقابله ورسره کوو ،اوله دوی څخه کوم يوه عمرو بن الحضرمي وويښتی او مړيې کړی ،عثمان او حکيم يې بنديان کړل ، نوفل ورڅخه وتښتيدی ،بيايې کاروان له بنديانو سره يوځای مدينې ته راوستی ی،له دې مال څخه يې خمس جلا کی دا په اسلام کي لومړی خمس او لومړني بنديان ؤ،رسول الله صلى الله عليه وسلم د دوی دا کار وغندی او ورته وی وفرمايل : ماخو په شهر حرام کي دقتال امر او اجازه نه وه درکړی اودکاروان دبنديانو په هکله يې فيصله محفوظه وساتله په دې پيښې سره مشرکينو ته فرصت په لاس ورغلی چې د مسلمانانو پرخلاف خپله زهرجن تبليغات لاپسې زيات کړي ،اودا پروپاګند يې شروع کی چې مسلمانانو دشهر حرام احترام نه ساتي ، اوداالله عزوجل له خوا حرام حلال ګرځوی په دې هکله يې ډير څه ويل ترڅو دقرآن کريم آيتونه نازل سول ،دا مسئله يې حل کړه او په ډاګه يې کړه چې دمسلمانانو دې کار په انډول دکفارو جرم او ګناه ډيره لويه ده .

يَسْأَلُونَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيهِ قُلْ قِتَالٌ فِيهِ كَبِيرٌ وَصَدٌّ عَن سَبِيلِ اللهِ وَكُفْرٌ بِهِ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَإِخْرَاجُ أَهْلِهِ مِنْهُ أَكْبَرُ عِندَ اللهِ وَالْفِتْنَةُ أَكْبَرُ مِنَ الْقَتْلِ. سورة البقرة آيت (۱۱۷)

**ترجمه**: پوښتنه کوي خلک ستاڅخه اې محمد صلى الله عليه وسلم ! له مياشتي حرامي څخه له جنګ کولو په دې کي چې روا دی که ناروا ؟ووايه اې محمده صلى الله عليه وسلم ! دغو پوښتو

نکو ته چې جنګ کول په دې اشهرِ حرام کې عمدًا لویه ګناه ده او که منع کول له لارې (دین) دالله ﷻ څخه او کافر کېدل په الله ﷻ او منع کول له مسجد حرام څخه ایستل داهل دمسجد حرام له ده څخه ګناه ډېره لویه ده په نزد دالله ﷻ له قتاله په اشهر الحرام کې او فتنه له دین څخه دخلګو ایستل ډېره لویه ګناه ده تر جنګ.

قرآن کریم په دې آیتونو سره داواضح کړه چې دمسلمانانو جنګیالي دسیرت او اخلاقو په هلکه چې کفارو دانارې په کار اچولي دي ټولې بې ځایه او بې بنیاده دي ،ځکه قریشو له اسلام سره په دښمني او پر مسلمانانو باندې په ظلم ،زیاتي سره ټول حرمتونه تر پښو لاندې کړي دي آیا قریشو له هجرت څخه وروسته دمسلمانانو دمالونو دضبط او غصب او د رسول الله ﷺ دقتل او وژلو فیصله په همدې مکه کې نه وه کړې ؟او څه وسول چې د دوی له خو تر پښنو لاندې سوي حرمت بیرته راپیدا سنو او څه وسول چې اوس ددې شیانو دحرمت ماتول دشرم او عیب خبره وګرځېده ؟بېشکه دمشرکانو له خوا دانارو او بې بنیاده پروپاګند د دوی دبې شرمۍ او بې حیایۍ یوه نمونه ده تردې وروسته رسول الله ﷺ دواړه بندیان ایله کړل او د وژل سوي سړي خپلوانو ته یې دهغه دیت ورکړی .[305] داوی له بدر څخه مخکې پېښې سوې غزاګانې او سرېې په دې ټولو کې دمالونو لوټ او د خلګو وژلو ته خبره نه وه رسیدلې ،ترڅو پورې چې دمشرکینو کرز بن جابر فهري ترمشرۍ لاندې دمسلمانانو څارويو نه ؤ لوټ کړي نوبناء ددې شروع هم دمشرکینو له خوا سوې ده دا خو پرېږده چې تردې مخکې ې څه کړي ؤ ،دعبدالله بن جحش له سرېې څخه وروسته دمشرکینو په زړه کې رښتني بیرې ځای ونیوی لوی خطر یې سترګوت ودرېدی او څه بیره چې درلوده هم هغه وسول ، او په دې باور سول چې دمدینې قیادت ویښ او باحکمته قیادت دی ،د دوی ټول تجارتي حرکات یې ترکلکې څارنې لاندې نیولې دي او اوس مسلمانان ددې توان لري چې آن درې سوه میله مخکې ولاړسي او بیاهلته مشرکان ووژني یا یې بندیان کړي او مالونه یې له

---

[305] تفصیلات ددې غزوات او سرایاوو له همدې لاندې کتابونو څخه را اخستي دي :زادالمعاد ۲/ ۸۳/ ۸۴/ ۸۵/ ابن هشام ۱/ ۵۶۱/ تا ۶۰۵. رحمة للعالمین ۱/ ۱۱۵/ ۱۱۶/ ۲/ ۲۱۵/ ۲۱۶/ ۱/ ۴۶/ تا ۴۷۰، دامرجعونه دغزواتو او سرایاوو دي ترتیب کونکو دشمیر په باره باندې اختلاف کړی دی خو موږ دابن قیم او علامه منصور پوري په تحقیق اعتماد لرو.

ځان سره یوسي ، او دوی تجارت تردائمي خطر لاندي دی خوله دي ټولو سره سره دوی خپله دکبر او حماقت لاره نه پرېښوه او پرځای ددې چې دبن ضمره او جهینه په څیر دسولي او اخلاص لاره ونیسي د دوی کینه او دښمني نوره هم پرجوش راغله ،مشران یې دخپلو تهدیدونو او اخطارونو دپلي کولو لپاره میدان ته را وراندي سول او اراده یې وکړه چې دمسلمانانو پروطن حمله وکړي او هم هلته په خپل وطن کي یې تصفیه کړي ، دمسلمانانو وینوته د دوی هم داتنده وه چې دوی یې دبدر ترمیدانه را ورسول ،دعبدالله بن جحش رضي الله عنه له سریې وروسته یعني د دویم هجري کال دشعبان په میاشت کي پر مسلمانانو باندي جنګ او قتال فرض سو او په هکله یې داځرګند آیتونه رانازل سول .

وَقَاتِلُواْ فِي سَبِيلِ اللّهِ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَكُمْ وَلاَ تَعْتَدُواْ إِنَّ اللّهَ لاَ يُحِبِّ الْمُعْتَدِينَ ۔ وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ وَأَخْرِجُوهُم مِّنْ حَيْثُ أَخْرَجُوكُمْ وَالْفِتْنَةُ أَشَدُّ مِنَ الْقَتْلِ وَلاَ تُقَاتِلُوهُمْ عِندَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ حَتَّى يُقَاتِلُوكُمْ فِيهِ فَإِن قَاتَلُوكُمْ فَاقْتُلُوهُمْ كَذَلِكَ جَزَاء الْكَافِرِينَ فَإِنِ انتَهَوْاْ فَإِنَّ اللّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لاَ تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ لِلّهِ فَإِنِ انتَهَواْ فَلاَ عُدْوَانَ إِلاَّ عَلَى الظَّالِمِينَ. سورة البقرة .

**ترجمه:** او جنګ کوئ اې مؤمنانو په لاره دالله کي له هغو کسانو سره چې جنګ کوي له تاسي سره او مه کوئ زیادت پرهیڅا باندي ،بیشکه چې الله جل جلاله نه خوښوي ظلم کوونکی له حده او وژنی دوی په هرځای کي چې یې پیدا کړی ، وباسی دوی له هغه ځایه چې ایستلي دي دوی تاسی او فتنه یعني شرک او له دین څخه اړول ، ډیر سخت دی له وژلو څخه ،او جنګ مه کوی له دوی سره په نزد دمسجد الحرام کي تر هغه پوري چې وجنګیږي دوی له تاسي سره په دغه حرم کي ،نو که جنګ وکي دوی ستاسي سره نو وژني دوی هم داسي (لکه تیري سوي جزا) جزاده دکافرانو ، نو که منع راوړي له شرکه نو الله به یې وبخښي ،نو بیشکه الله ډیر بخښوونکی پوره رحم لرونکی دی،او جنګ کوئ تاسي له دوی سره ترهغه پوري چې فتنه پاته نه سي اوسي دین (حکم) خاص الله جل جلاله لره،نو که چیري وګرځېدل (دوی له شرکه نو تاسي تجاوز مه کوی پردوی باندي ،نو نسته هیڅ تیری مګرخوسته جزا دظلم پرظالمانو باندي په دې پسې لږوخت وروسته الله جل جلاله بل ډول آیتونه رانازل کړل چې په هغو کي یې دجنګ طریقه

وښوولہ او مسلمانان یې د جنګ طرف تہ بلل او پہ دې هکلہ یې احکام ورتہ بیانول هغہ مبارک آیتونہ دادي.

فَإِذَا لَقِيتُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا فَضَرْبَ الرِّقَابِ حَتَّىٰ إِذَا أَثْخَنتُمُوهُمْ فَشُدُّوا الْوَثَاقَ فَإِمَّا مَنًّا بَعْدُ وَإِمَّا فِدَاءً حَتَّىٰ تَضَعَ الْحَرْبُ أَوْزَارَهَا ذَٰلِكَ وَلَوْ يَشَاءُ اللَّهُ لَانتَصَرَ مِنْهُمْ وَلَٰكِن لِّيَبْلُوَ بَعْضَكُم بِبَعْضٍ وَالَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَلَن يُضِلَّ أَعْمَالَهُمْ سَيَهْدِيهِمْ وَيُصْلِحُ بَالَهُمْ وَيُدْخِلُهُمُ الْجَنَّةَ عَرَّفَهَا لَهُمْ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِن تَنصُرُوا اللَّهَ يَنصُرْكُمْ وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ. سورة محمد

**ترجمہ**: نو کلہ چې مخامخ سواست پہ جنګ کي لہ هغو کسانو سره چې کافران سوي دي نو وهی وهل د ورمیږونو (د هغو) تر هغہ پوري چې ښہ ډېر مو ووژل دوی او پر غالب سواست نو وتړی دوی بیا سخت محکم کړی تړل د دوی چې ور څخہ خلاص نہ سي، نو بیا احسان ورسره وکړی احسان کول، وروستہ لہ بندي کولو او تړلو څخہ یې او یا تاسي فدیہ کړی دوی فدیہ کول پہ عوض کي یې مال واخلی یا مسلمانان بندیان را خلاص کړی، جنګ ورسره کوی تر هغہ پوري چې کښېږدي (جنګیالان) د جنګ وسلې خپلي دغہ (حکم الله پہ دوی کي) دی او کہ ارادہ فرمایلی وای الله د بدل اخیستلو نو خامخا بہ بدل اخیستی وای الله لہ دوی سره بې لہ جنګہ او مګر امر یې درتہ وکی پہ جهاد لہ دوی سره، لپاره د دې چې آزموینہ وکړي الله د ځینو ستاسو پہ ځینو نورو پہ جنګ کي، او هغہ کسان چې وژل سوي دي پہ لاره کي د الله، نو لہ سره ضایع نہ کړي الله عملونہ د دوی، ژر بہ سمہ لار وښیي دوی تہ الله پہ دنیا او آخرت کي او ښہ بہ کړي مال د دوی پہ دارینو کي او داخل بہ کړي الله ﷻ دوی پہ جنت کي چې معلوم کړي دی الله ﷻ دغہ جنت دوی تہ، اې هغہ کسانو! چې ایمان یې راوړی دی (یعني اې مؤمنانو!) کہ کومک وکړی تاسي لہ دین د الله او رسول د الله سره نو کومک بہ وکړي الله ﷻ ستاسي سره پہ غلبہ پر دښمن او ثابت بہ کړي قدمونہ ستاسي پہ ځای د جنګ کي، پہ دې پسې الله تعالی د هغہ خلګو مذمت وکی او وی غندل کوم چې د جنګ د حکم پہ اورېدو سره بیري اخیستي ؤ او لہ ډېر خوف څخہ زړونہ ریږدېدل. الله ﷻ فرمایي:

فَإِذَا أُنزِلَتْ سُورَةٌ مُّحْكَمَةٌ وَذُكِرَ فِيهَا الْقِتَالُ رَأَيْتَ الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ يَنظُرُونَ إِلَيْكَ نَظَرَ الْمَغْشِيِّ عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ فَأَوْلَىٰ لَهُمْ. سورة محمد

**ترجمہ**: نو کلہ چې نازل کړل سي یو سورة محکم او یاد کړل سي پہ هغہ کي جنګ نو وینی بہ تہ هغہ کسان چې وي پہ زړونو د دوی کي ناروغي د نفاق ګوري تا تہ لکہ کتنہ د هغہ

چاچې بې هوښي راغلي وي پرهغه باندي له بيري دمرګ څخه ،هلاکت دی وي دوی لره حقيقت دادی چې دجنګ فرضيت اوجنګ ته دتياري امراودې طرف ته هڅونه دهغه وخت دحالاتو اوشرائطو له غوښتني سره بالکل مطابق اوبرابره خبره وه ،که له حالاتو خبر اوځيرک کوم قومندان هم وي نوهغه به هم خپل لښکرته ددې فوق العاده اوعاجلو حوادثواوحالاتو دمقابلې لپاره خپل پوځ ته داحضاراتو نمبراول اوآماباش حکم صادره وه ،نوپه هرڅه عالم اوترهرڅه لوړ الله جل جلاله به ولي داسي له حالاتوسره برابر حکم نه کاوه ،داواقعيت دی چې حالاتو دحق اوباطل ترمينځ ديوې سرنوښت ټاکونکي او فيصله کوونکي جګړې غوښتنه کوله خصوصا دعبدالله بن جحش رضي الله عنه له سريې وروسته کومه چې دمشرکينو پرغيرت اوحميت لوی اوملا ماتوونکی ګذارو اوکوم چې ټول مشرکان يې په سرو سکروټواړولي ؤدجنګ دآيتونو له سياق اوسباق څخه داڅرګنديده چې نور دداسي خونړيزو جګړو وخت رالنډسوی دی چې بری اوبرلاسي به په کي دمؤمنانو وي ،ګوره الله جل جلاله مؤمنانو ته څه ډول حکم کوي چې مشرکان له هغه ځايه وباسی له کوم څخه چې تاسي ايستلي ياست ،بياهغوی ته دفاتح لښکر په حيث څه ډول دبنديانو دترلو ،نيولو او ددښمنانو ترمکملي خاتمې پوري دجنګ کولولار ښوونه کوي ،داټول دې طرف ته اشاره وه چې وروستی بری به دمسلمانانو په برخه وي خوداخبره هم داسي داشارو ترپردو لاندي پټه وساتله ، ترڅوهرمسلمان دالله جل جلاله په لاره کي دخپلي جذبې عملي ښکارونه وکړل سي .

په همدې ورځوکي يعني ددويم هجري کال دشعبان په مياشت کي الله تعالی دبيت المقدس پرځای کعبة الله دمسلمانانو قبله وګرځوله ، ددې فائده داسوه چې هغه کمزور اومنافق يهود چې يوازي دشراوفتنې درا ولاړولو په خاطر مسلمانان سوی ؤ بيرته خپل حالت ته وګرځيدل اوله مسلمانانو څخه جلاسول ، اوپه دې سره دمسلمانانو ليکي له ډيرو غدارانو څخه پاکي سوی ،دقبلې بدلول دې ته هم اشاره کوله چې اوس يوه نوی داسي مرحله شروع کېدونکې ده چې پرقبله باندي دمسلمانانو ترتسلط اوحاکميت څخه مخکي پای پيدا کوي ،ځکه داد ډير حيرت اوتعجب خبره ده چې دکوم قوم قبله دي د دوی دښمنانو ترولکې لاندي وي اوکه فرضا د دوی ترقبضې لاندي وي نوبايد حتما د دوی له تسلط څخه آزاده کړل سي .

له دې اوامرو اواشاراتو وروسته دمسلمانانو حرکت اونشاط زيات سو ،دالله جل جلاله په لاره کي يې دجهاد جذبې په مستۍ راغلی اوله دښمن سره دپريکنده جګړې لپاره ليوال سول .

# «د بدر عظیمه غزا»
## (د اسلام اولین جنګ)

دغزا سبب: دعشیري په غزا کي مو وویل چي دقریشو یو کاروان چي دمکي څخه شام ته روان ؤ درسول الله ﷺ دلاسه ووتی خولکه چي هم دا کاروان له شام څخه بیرته راستنیدی نو رسول الله ﷺ طلحه بن عبیدالله رضي الله عنه اوسعید بن زید رضي الله عنه دکاروان دخبر راوړلو په خاطر د شمال طرف ته ولیږل دوی توحوراء پوری ولاړل اوهم الته پاته سول ترڅو دابوسفیان کاروان ورسره تیرسو، دوی په ځغستا ځانونه مدینې ته ورسول اورسول الله ﷺ یې خبر کی.

په دې کاروان کي دقریشو ډیرمالونه ؤیعني زر اوښان چې دپنځو سو زرو طلائي دینارونو (دوه سوه شپته ینم کیلوسره زر) په اندازه سامان وربان‌دي بار ؤ په داسي حال کي چي یوازي څلویښت ساتونکي ورسره ؤ.

دادمدینې دخلګو لپاره طلائي موقع وه خودمکې دکفارو لپاره له دې دومره ډیر مال څخه محرومېدل ملا ماتونکی نظامي، سیاسي او اقتصادي ضربه وه، هم دا وجه چي رسول الله ﷺ مسلمانانو ته وفرمایل: دادقریشو په مال اوسامان بار کاروان دی، مخ ته یې ورسی کېدلی سي الله تعالی هغه تاسي ته دغنیمت په ډول درکړي.

خونبي کریم ﷺ دکاروان مخ ته ورتلل پرهیچاهم لازمي نه کړل، تهول یې خپلي خوښي ته پرېښوول، ځکه په دې وخت کي داګومان نه کېدی چې دقافلې پرځای به دبدر په میدان کي له کفارو سره یوه پرېکنده جګړه صورت پیداکړي، له همدې امله ډیر اصحاب په مدینه کي پاته سول ځکه دوی فکر کاوه چې درسول الله ﷺ دا عملیات به له پخوانیو عملیاتو سره څه توپیرونه لري اوپه همدې سبب دجنګ څخه پرپاته سوو کسانو باندي څه عتاب اوملامتیا هم نه وه.

## «د اسلامي لښکر حساب اوپر ډلو تقسیمېدل»

رسول الله ﷺ دروانیدو لپاره تیارسو، له ده سره (۳۱۳ یا ۳۱۴ یا ۳۱۷) کسان ؤ له دې جملې څخه (۸۲ یا ۸۳ یا ۸۶) مهاجرین نورانصار چې (۶۱) له اوس او (۱۷۰) له خزرج قبیلې څخه ؤ، دې لښکر دجنګ څه انتظام نه ؤکړی اونه یې پوره تیاری نیولی وه، په ټول لښکر کي یوازي دوه آسان چې یې دزبیربن عوام رضي الله عنه اوبل یې دمقداد بن اسود کندي رضي الله عنه ؤ اودپاته کسانودهرو دوو یا درو پرسر یو اوښ رسیدی، ځکه ایله اویا اوښان ورسره ؤ، رسول الله ﷺ اوعلي رضي الله عنه اومرثد بن ابی مرثد غندوی رضي الله عنه درې سره پریوه

اوبن په نوبت سره سپرېدل. رسول الله ﷺ لومړی دمدينې دساتلو اولمانځه داداکولولپاره ابن أم کلثوم خپل خليفه وټاکی خوکله چې روحاء ته ورسيدی نو ابولبابه عبدالمنذر رضي الله عنه يې د مدينې والي په حيث وروليږی.

دلښکر عمومي بيرغ سپين اوعلمبرداريې مصعب بن عمير قرشي عبدري رضي الله عنه ؤلښکر يې پردوو برخو ياغونډو نو تقسيم کړی.

۱: دمهاجرينو غنډ چې بيرغ يې له حضرت علی رضي الله عنه سره ؤ.

۲: دانصارو غونډ اوعلمبرداريې سعدبن معاذ رضي الله عنه ؤ دراسته اړخ قوماندان يې زبير بن عوام رضي الله عنه دچپه اړخ قوماندان يې مقداد بن عمرو اوساقي رضي الله عنه مشري يې قيس بن ابي صعصعه ته سپارلې وه اودلښکر عمومي قومنداني درسول الله ﷺ په خپل لاس کي وه.

## «دبدر په طرف دلښکر ليږل»

رسول الله ﷺ ددې غير مجهز لښکر سره روان سو، له مدينې څخه ووتی اومکې ته غځيدلی عمومي لاره يې ونيوله، مخکي تر روحاء پوري ورسيدی اوکله چې له هغه ځايه خوځيدی نو دمکې دلاري چپه خوايې پرېښووه او راسته خواته وګرځيدی نازيی ته ورسيدی، دبدر په طرف دنايی له يوې برخي تيرسو اوصفراء دتګي اونازيی ترمينځ پرته احقان نومي وادي يې ووهله بياله تنګي تيرسواوبيرته دصفراء پرخوا مخ ته ولاړی له هغه ځای څخه يې دجيهنه قبيلې دوه کسان بسيس بن عمر اوعدي بن ابی الزعباء دکاروان په هکله دمعلوماتو راټولو په خاطر دبدر طرف ته وليږل.

## «په مکه مکرمه کي خطري اعلان»

له بل طرفه دکاروان مشرابوسفيان په ډيراحتياط سره دحالاتو څارنه کوله، هغه پوهيدی چې دمکې لاره دډيرو خطرونو سره مخامخ ده، هروخت يې په اوضاع ځان پوه کوی، اوله نورو کاروانونو څخه يې دلاري په هکله معلومات اخيستل او بالاخره په دې خبرسو چې رسول الله ﷺ خپل اصحاب پرقافلې باندي دحملې لپاره تيارکړي دي، نوسمدستي يې ضمضم بن عمرو غفاري ته پيسې ورکړی اومکې ته يې وليږی ترڅوقريش دکاروان دنجات اومرستي لپاره راوبولي ضمضم په ډيرتلوار ځان مکې ته ورسوی اوهلته يې دعربو له عاداتو سره سم داوښ پزه اوخپل کميس کی، کجاوه ی چپه کړه اوپراوښ لوړ ودريدی اوپه لوړآوازيې ناري کړی اې قريشو! قافله، قافله محمد ﷺ او اصحاب يې له ابوسفيان سره ستاسي پرمالونو حمله کوي فکر نه کوم چې په لاس به درسي کومک ........کومک

## «دمکې خلک جنګ ته دتیارۍ په حال کې»

ددې آواز په اورېدو سره دمکې ټول مشرکین په حرکت راغلل اووی ویل محمد ﷺ
او اصحاب يې فکر کوي چې داهم ابن حضري کاروان دی ؟قسم په خدای چې ژر به پوه
سي چې زموږ معامله بل ډول ده ټول به دې پوه سول چې یا به هرڅوک په خپله ځي او یا ځان
عوض به لیږي خو زیاترو جنګ ته تلل غوښتل خصوصا مشرانو او رئیسانو ،په دې سره له
ابولهب پرته نور ټول مشران جنګ ته تیار سول ،ابولهب د ځان په عوض کي خپل قرضداره
ولیږی قریشو شاو خوا عربي قبیلې هم له ځان سره ملګري کړې او له بني عدي پرته چې
یو سړی يې هم جنګ ته و نه وتی نور ټول قریش قبیل جنګ ته روان سول .

## «دمکې دلښکر تعداد»

دروانیدو په وخت کي ددې لښکر شمیره (۱۳۰۰) جنګیالیو ته رسیده چې سل آسان
(۶۰۰) زغري او بې شمیره اوښان ؤ عمومي قومندان يې ابوجهل او د قریشو (۹) مشرانو
دلښکر لوژستیکي امور تمویل او رسد په غاړه اخیستی ؤ دوی به هره ورځ نه(۹) او لکه
لس اوښان حلالول .

## «دبني بکر قبیلې سره لانجه او دښمني»

کله چې لښکر دتلو تیاری و نیوی نو قریشو ته یو ځل له بني بکر سره خپله دښمني او لانجه
ورپه یاد سوه او بیرېدل چې هسي نه دوی دشاله خوا حمله ورباندی و نه کړي او په دې سره به
دوی له دوو خواوو څخه راګیر سي نژدې ؤ چې داتشویش يې له مخکي تګ څخه پښیمانه
کړي په همدې وخت کي شیطان دبني کنانه دمشر سراقه بن مالک بن جعشم المدلجلي په
شکل کي ورته راغلی او ورته وی ویل زه ستاسي ملګری یم او ضمانت درکوم چې کنانه به
دشاله خوا ستاسي په حق کي داسي څه نه کوي چې تاسي يې نه خوښوی .

## دشیطان داطمنان څخه وروسته

له دې اطمینان وروسته دکفارو لښکر په ډیر کبر او غرور له مکې څخه روان سو قرآن مجید
ددوی حالت ته اشاره کوي او فرمایي : بَطَرًا وَرِئَاءَ النَّاسِ وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ .
او لکه چې رسول الله ﷺ فرمایي له خپل زور او وسلې سره په داسي حال کي له الله تعالی
او رسول الله ﷺ سره يې د دښمني بیرغ پورته کړی ؤ دمدینې په طرف روان وه : وَغَدَوْا عَلَىٰ
حَرْدٍ قَادِرِينَ دټولو زړونه له کینې ،غوسې او غضب څخه په جوش راغلی ؤ ترڅو له رسول

الله ﷺ او اصحابو څخه ددې انتقام اوپور واخلي چې دوې څنګه اوپه کوم جرأت سره د دوی پر کاروان ستر ګي ښخي کړي دي.

لنډه دا چې په ډيره بيړه دشمال په طرف دبدر خوا ته ولاړل، دعسفان له وادي قديد او مجفې څخه تيرسول، هلته يې دابوسفيان له طرفه داسي خبرترلاسه کي چې هغه ورته وايي تاسي دخپلو مالونو، کاروان او افرادو دساتلو په خاطر راوتلي ياست الله تعالی هغه ټول وساتل او نجات يې ورکی نو تاسي بيرته ستانه سی.

## «دکاروان نجات»

هلته ابوسفيان په ډيراحتياط اوتدبير سره پرعمومي لار روان ؤ، دڅارني اوکشف عمليات يې څوچنده کړي ؤ خوکله چې بدرته رانږدې سول، نوخپله دقافلې ترمخ سو وړاندي ولاړی او مجدي بن عمرو يې وليدی اودمدينې دلښکر په هکله يې معلومات ورڅخه وغوښتی، هغه ورته وويل: ماخوڅه ناآشنا څوک نه دی ليدلی، يوازي دوه سپاره ؤدلته راغلل له هغه غونډۍ سره يې غوښان چوکړل ژيي يې له اوبو ډک کړل اوبيرته ولاړل، ابوسفيان سمدستي هغه ځای ته ورغلی اوداوښانو بچي يې را واخيستلی او مات يې کړی که ګوري چې دخورما مندکي په کي دي نو وی ويل قسم په خدای چې دادمدينې وابښه دي، بيايه تلوار خپل کاروان ته ورغلی، دبدر په چپه خواکي عمومي لاره يې پرېښووه اوپه لويديځ کي دساحل په طرف روان سو اوپه دې يې قافله دمدينې له لښکر څخه خلاصه کړه اودمکې مشرانوته يې هغه پيغام ورواستوی کوم چې هغوی ته په مجفه کي ورسيدی.

## «په بيرته واپسيدو کي دابوجهل اوملګرو اختلاف»

دابوسفيان له پيغام وروسته دمکې لښکر دبيرته ستنيدو تکل وکی خوابوجهل په ډير کبر او غرور سره وويل نه والله که ترهغو واپس سوترڅو بدرته نه يو تللي اوهلته مودرې شپې نه وي تيري کړي هلته به څو اوښان حلالوو، خلګو ته به ډوډۍ ورکوو، ترڅو عرب زموږ دراتګ دبدبې او غونډېدو خبر واوري اودتل لپاره زموږ رعب وربانديي پريوځي خواخنس بن شريق دابوجهل له دې خبري سره سره دبيرته ستنيدو اعلان وکی خوچانه واورېدی بالاخره يوازي دبني زهرة له تقريبا درې سوه کسانو سره ستون سو، ابن شريق دبنو زهرة حليف اوپه دې وخت کي د دوی قومندان ؤ دبدر په غزا کي دبنوزهره قبيلې يوه فرد هم ګډون ونه کی داخنس په دې نظر اوعمل دبنو زهره خلک له حده زيات خوشحاله ؤ اوهميشه يې ده ته خاص احترام او اطاعت درلودی.

او دبنو هاشم خلکو هم دبیرته ستنیدو اراده وکړه خوابوجهل په ډیره سخته اوتونده لهجه ورته وویل : تاسي به زموږ څخه نه جلاکیږئ اوترهغوبه راسره یاست ترڅوموږ ټول نه یو ستانه سوي ، دبنوزهره له جلاکیدو وروسته دمکې لښکرپاته شمیره تقریبا زرکسان دبدر په طرف روان سول ، مخکي ولاړل اودهغه غونډۍ شاته یې واړول چې دبدر په وادي کي دننه له جنوبي خولي (العدوة القصوی) سره پرته ده .

## «بیله جګړې بله چاره نسته»

نبي کریم ﷺ لا دلاري په اوږدو کی دډفران له سیمي سره ؤ چې استخباراتو دکاروان او مکي لښکر خبرونه راوړل ، ده مبارک ﷺ ته په دې خبرونو کي له غور اوڅېړني وروسته داثابته سوه چې بیله جګړې بله چاره نسته ، او اوس یوه داسي یوه جرأتمندانه ، غیرتي اومدبرانه اقدام ته ضرورت دی چې دشرک دلښکر دا غرور ورمات کړي ، ځکه که چیري قریش هم داسي پرېښوول سي چې په دې سیمه کي دغرور اوفساد نیکي وزغلوي ، نوپه دې سره به په عسکري ډګرکي د دوی لاس نورهم مضبوط اوپه سیاسي میدان کي به یې نفوذ اواثر زیات سي ، اود دوی په مقابل کي به دمسلمانانو شان اوعظمت زیانمن کېدی بلکه اسلامی حرکت به دیوه بې روحه کالبوت حیثیت غوره کوي اود اسلام دښمنانو ته به نوره داآسانه وه چې پرمسلمانانو باندي دحملې اوتیري جرأت وکړي ، اوبله مهمه خبره داچې مسلمانانو ته ددې ضمانت چاورکوی چې دمکې لښکربه دمدینې په طرف وړاندي نه ځي اوهم التته به پردوی حمله اوتیری نه کوي ، هیچاهم داضمانت نه سوای ورکولی ، که په دې حساس وخت کي که مسلمانانو ابتکار له لاسه ورکړي وای نو دخلکو په مېنځ کي به د دوی هیبت اوعظمت ډیر زیانمن سوی وای .

## «په خطرناک وخت کي غونډه جوړول»

په دې خطرناک اوناڅاپه رامخ ته سوي وخت کي نبي کریم ﷺ دمشورتیا شوری غونډه دایره کړه ، ده په خپله پرحالاتو رڼا واچوله ، اوله اصحابو سره یې په دې هکله نظریات تبادله کړل ځیني خلګ داسي هم ؤ چې په حالاتو له خبرېدو وروسته بیري واخیستل زړونه یې په رپیدو راغلل ، اوداهم هغه کسان دي چې الله تعالی د دوی په هکله فرمایي :

كَمَا أَخْرَجَكَ رَبُّكَ مِن بَيْتِكَ بِالْحَقِّ وَإِنَّ فَرِيقاً مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ لَكَارِهُونَ يُجَادِلُونَكَ فِي الْحَقِّ بَعْدَمَا تَبَيَّنَ كَأَنَّمَا يُسَاقُونَ إِلَى الْمَوْتِ وَهُمْ يَنظُرُونَ . سورة الانفال

**ترجمه:** هم داسي لکه چې ستاربّ ته له خپل کور څخه له حق سره راويستی، او يو ډلي مسلمانانو ته داکار سخت ښکاريدی ، اودهم دې حق يعنی جګړې په هکله يې له معلوماتو وروسته په همدې حق کي ستاسره مناقشه کوله اوداسي ښکاريده لکه چې په رڼو سترګو مرګ ته بيول کيږی .

خودلښکر دقومندانانو موقف بل ډول ؤ ،حضرت ابوبکرصديق رضي الله عنه ولاړ سو ډيري ښې خبري يې وکړی وروسته حضرت عمر رضي الله عنه ولاړسو دې ته ورته نيکي خبري يې وکړی بيامقداربن عمرو رضي الله عنه وويل :يارسول الله صلى الله عليه وسلم ! موږ درسره يو هغه وکړه چې الله جل جلاله يې امرکړی دی قسم په خدای موږ کله هم دبنو اسرائيلو په ډول نه درته وايو چې ته اوستارب جنګ ته ولاړ سی اوموږ به دلته ناست يو ،نواوس موږ دادرته وايو ته اوستارب جنګ جنګ ته ولاړسی موږ هم په جنګ کی درسره يو قسم په خدای جل جلاله که امرراته وکړی چې تربرک الغماد پوري درسره ولاړسو هم به ترهغه ځايه ستاسره اوږه په اوږه جنګ ته ادامه ورکوو .

رسول الله صلى الله عليه وسلم مننه ورڅخه وکړه اودعايې ورته وفرمايله ،دادرې سره مشران مهاجرين ؤ اوڅرنګه چې په دې لښکر کی دمهاجرينو تعداد لږؤ نورسول الله صلى الله عليه وسلم غوښتل دانصارو رايه هم معلومه کړی ځکه له يوخوا په جګړه کي د دوی رول اساسي ؤ اوله بلي خوا دعقبې دمعاهدې پراساس دوی په دې نه ؤ مجبورچې له مدينې څخه دباندې جنګ ته داخل سي نوهمدا وجه وه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د دوی درې سره وو خبرواوريدو وروسته وفرمايل :اې خلګو ستاسي څه رايه ده ؟دده مقصدانصارؤ دانصارو مشراو علمبردار سعدبن معاذ رضي الله عنه درسول ا لله صلى الله عليه وسلم په مطلب پوه او وی فرمايل : لکه چې ستا اشاره زموږ خواته ده يارسول الله صلى الله عليه وسلم ! ده وفرمايل هو !سعد رضي الله عنه وويل موږ ايمان درباندي راوړی اوستا تصديق مو کړی دی اوددې شاهدي مو ورکړی چې څه تا راوړي دي هغه ټول حق دي او پردې مو دخپل اطاعت اوپيروي عهد اوپيمان درسره کړی ،يارسول الله صلى الله عليه وسلم څه چې غواړی هم هغه وکړه ،قسم په خدای چې ته يې په حقه راليږلی يې که وغواړی چې په دې بحرکی ځانونه واچوو نوموږ به ټول له تاسره يوځای ځانونه په بحرکي واچوو ،ددې پروانه لرو چې سبامو له دښمن سره مخامخ کړی موږ په جنګو کي ډېر صبر اودمقابلې په وخت کی دځوانمردی اوپايمردی خاوندان يو کېدای سي الله جل جلاله زموږ هغه جوهرتاته در وښيي په کوم سره چې ستامبارکي سترګي يخي او روښي کيږي ، نودخدای جل جلاله په برکت سره حرکت وکړه .

په یوبل روایت کي داسي راځي چې سعدبن معاذ رضی الله عنه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته وویل فکر کوم
چي ته له دې څخه ببیریږي چې انصار به یوازي په خپل وطن کي ځانونه ستاپه دفاع کي
ملزم ګڼي زه دانصارو خبره کوم او د دوی جواب وایم ولاړ سه چیري چې دی زړه وي ته
پوره واک لری چې له خپلي خوښۍ سره سم دهرچاسره اړیکي ټینګي کړی او که غواړی
چې له چاسره اړیکي وشلوی نووی شلوه ، زموږ له مالونو څخه دخپلي خوښۍ په اندازه
څه واخله او څه چې دی زړه وي هم هغه راکړه او موږ ته هغه مال چې راڅخه وای خلی دهغه
په نسبت ډیر غوره دئ چې راته پریږدي او په څه چې ته امرکوی هغه موږ ته منظور دی والله
که تر برک الغماد پوري ولاړسی نوموږ به هم درسره روان یو او که وغواړی نو په دې بحر
کي به ستاسره یوځای ځانونه ډوب کړو ،رسول الله صلی الله علیه وسلم دحضرت سعدبن معاذ رضی الله عنه له
خبرو ډیر ډاډه اوراضي سو بیایې وفرمایل حرکت وکی ،اوزیري واوری! الله تعالی زما
سره له دې دوو شیانو (کاروان یالښکر) څخه دیوه وعده کړی ده،قسم په خدای دادی لکه
چې زه هم دا اوس ددې خلګو یعني مشرکینو دوژلو ځایونه وینم.

## «داسلام لښکر وبدر ته نژدې اړول»

ددې وروسته بیارسول الله صلی الله علیه وسلم له ذفران څخه مخ ته ولاړی، اود اصافر غرونه یې ووهل
اود دیت په نوم وادي ته کښته سو ،وروسته دحنان نومي غونډۍ ته په راسته خواکي مخ ته
ولاړی اوبدرته نژدې یې واړول.

## «دسیدالبشر صلی الله علیه وسلم له خوادڅارني عملیات»

په همدې ځای کي رسول الله صلی الله علیه وسلم له خپل ملګري ابوبکرصدیق رضی الله عنه سره یوځای
دکشف اوڅارني لپاره ووتی ،اودقریشو دلښکرو په شاوخواسیمو کي یې یوعربي
سپین ږیری ولیدی رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل دقریشو او محمد صلی الله علیه وسلم په هکله څه
معلومات لری؟دراز پټ ساتلوپه خاطر یې د دواړو لښکرو پوښتنه ورڅخه وکړه
،هغه سپین ږیري ورته وویل لومړی داراته ووایاست چې تاسي څوک یاست
؟رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل لومړی ته خبر راته ووایه بیابه موږ ځانونه درمعرفي کړو
،سپین ږیري وویل داددې په بدله ده ، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل :هو!سپینږیري
وویل خبرسوی یم چې محمد صلی الله علیه وسلم او اصحاب یې په فلانۍ ورځ راخوځیدلي دی که
داخبر رښتیا وي نونن به محمد صلی الله علیه وسلم په فلانۍ سیمه کي وي هم هغه ځای یې
ښوولی ؤ په کوم ځای کي چې دمدینې لښکر پروت ؤ،اودمکې دلښکر په هکله

خبرراکړل سوی چې هغه په فلانۍ ورځ حرکت کړی ،که خبرورکوونکی ریښتونی وي نودوی به نن په فلاني ځای وي ،هم هغه ځای یې وربښوولی ؤکوم ته چې قریش رارسیدلی ؤاوکله چې یې خبره خلاصه کړه نودوی ته یې وویل تاسي څوک یاست؟تاسي له چاڅخه یاست رسول الله ﷺ ورته وفرمایل موږ له اوبو څخه یو دایې وویل او روان سو سپین ږیري له ځان سره وایي دکوم اوبو ،آیادعراق له اوبو .

## «دمکې لښکر په باره دضروري معلوماتو لاسته راوړل»

دهمدې ورځي په ماښام رسول الله ﷺ دمهاجرینو درې سرداران علی رضي الله عنه اوزبیربن عوام رضي الله عنه اوسعدبن ابی وقاص رضي الله عنه له یوشمیر اصحابو سره په دې مکلف کړل چې ولاړسي اود دښمن په هکله تازه معلومات راوړي ،هغدبدر اوبوته ورغلل اوهلته دمکې لښکر دوه کسان ؤچې لښکر ته یې اوبه وړلی ،درسول الله ﷺ عسکرو هغوی دواړه ونیول اوله ځان سره یې راوستل ، رسول الله ﷺ دغه وخت لمونځ کوی ،نو اصحابو تحقیقات ورڅخه شروع کړل ، بندیانو ورته وویل :موږ دقریشو سقاوان یو اوپه اوبو پسې راغلی ؤ ،اصحابو دانه منل اوګومان یې کوی چې دابه دابوسفیان دکاروان خلګ وي،ځکه دوی لاتراوسه پرکاروان دقبضې هیله اوطمعه درلوده پر دواړو یې وهل شروع کړل ترهغه وخته یې ووهل ترڅودې ته اړ سول چې ووایي چې موږ دابوسفیان کسان یو نوبیایې پرېښوول ،کله چې رسول الله ﷺ لمونځ خلاص کی اصحابو ته یې په تهدید امیزه لهجه وویل :کله چې یې رښتیا درته وویل : نووهل مواوکله چې یې دروواغ درته وویل نوپرې موښوول، دوی رښتیاوایي دا دواړه دقریشو کسان دي .

بیایې هغو دواړو ځوانانو ته مخ ور واړاوه او ورته وی فرمایل : دقریشو په هکله معلومات راکړی ،دوی ورته وویل :قریش ددې وادي په وروستۍ خوله کي دپرتې غونډۍ شاته دی ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل :شمیره یې څومره ده ؟دوی وویل په دقیق شمیره یې نه پوهیږو ده وفرمایل :د ورځي څواښان حلالوی؟ دوی ورته وویل:یوه ورځ (۹) اویوه ورځ(۱۰) ،نو رسول الله ﷺ وفرمایل :ددوی تعداد د (۹۰۰) څخه تر(۱۰۰۰)مینځ اټکل کیدای سي،بیایې بندیانو ته وفرمایل : له دوی سره کوم مشران راغلی دی ؟دوی وویل : له دوی سره دربیعه زامن اوعتبه اوشیبه

،ابو البختري بن هشام، حکيم بن حزام ، نوفل بن خيلا ، حارث بن عامر ، طعيمه بن عدی ، نضر بن حارث ،زمعه بن اسود ،ابو جهل بن هشام ، اميه بن خلف او داسي نور ،بيارسول الله ﷺ خپلو اصحابو ته مخ کی او وی فرمايل : مکې دخپل زړه ټکري (دځيګر ټوټې) ورته راليږلی دي.

## «دباران اورېدل دمشرکينو لپاره وبال او عذاب»

الله تعالی په همدې شپه باران وکی هم داباران دمشرکينو لپاره وبال او عذاب ؤ دوی يې له مخکي تګ څخه منع کړل ،او دمسلمانانو لپاره رحمت ؤ د دوی زړونه اوبدنونه يې ورپاک کړل ځمکه يې ورته برابره کړه ،تر څنګ يې يو ريګ کلک سو ،حالات برابر او زړونه يې مضبوط سول.

## «لښکر ته دمخته تګ قومانده»

نبي کريم ﷺ خپل لښکرته دمخته تګ قومانده ورکړه ترڅو له مشرکينو څخه مخکي د بدر ميدان ته ورسيږي ،اودوی ته اجازه ورنه کړي چې پر اوبو قبضه وکړي ،لښکر مخکي ولاړی او ماخستن يې دبدر له ټولو نژدې چينې سره واړول په دې وخت کي حباب بن منذر لکه دنظامي امورو دمتخصص په حيث رسول الله ﷺ ته وويل په دې ځای کي چې تاواړول آيا الله ﷻ دلته داړولو امر درته کړی دی؟او موږ هم دلته پرپاته کېدو باندي مامور يو،د مخکي او وروسته تګ اجازه نه لرو؟او که تاخپله دجنګي حکمت او تدبير پر اساس غوره کړی دی؟رسول الله ﷺ وفرمايل هو! دازما نظر او جنګي تاکتيک دی.

نو ده ورته وويل:يارسول الله ﷺ !دامناسب ځای نه دی لښکر ته امروکړه چې قريشوته ترټولو لنډې چينې سره واړوي هلته موږ بيانوري ټولي چينې پټوو اوپرخپله چينه به حوض جوړ ؤ او بيا به له قريشو سره په جنګ لاس پوري کوو هغه وخت به زموږ سره اوبه وي او دوی به داوبو څخه محروم پاته وي ،رسول الله ﷺ وفرمايل : تا ډيره ښه مشوره راکړه دهغه وروسته رسول الله ﷺ لښکر ته دمخته تلو امر وکی او په نيمايي شپه يې دښمن ته ترټولو پر نژدې چينه واړول ، هلته يې داوبو ډنډونه جوړ کړل ، اونوري ټولي چينې يې پټي کړی.

## « دلښکر دعمومي قوماندانۍ ساتنه »

وروسته تردې چې مسلمانان ځای پرځای سول، سعد بن معاذ رضي الله عنه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته وړاندیز وکړ چې دخاصو او عاجلو حالاتو سره دمقابلې او احتمالي ماتې دجبران لپاره دقیادت لپاره یو خاص مرکز جوړسي، خپل وړاندیز یې داسې وړاندې کړی چې یارسول الله صلی الله علیه وسلم خوښه دې نه ده چې ستاسې لپاره یو څپره جوړه کړو، ته به په کښې تشریف لرې او ستا سپارلۍ به هم دلته تیار درته ولاړه وي، بیابه موږ له دښمن سره دجنګ ډکر ته ننوزو که چیرې الله جل جلاله عزت راکی او پردښمن باندې موبریالي کې نو دابه هغه څه وي چې موږ یې غواړو، او که داسې ونه سول نو بیابه ته پرخپله سپارلۍ سپور اوله موږ څخه پاته سویو کسانو سره یو ځای سې، یا نبي صلی الله علیه وسلم زموږ دقوم څخه هغه کسان وروسته پاته دي چې موږ له تاسره تردوی ډېره مینه نه لرو، که چیرې هغوی خبروای چې ته به له دښمن سره مخامخ کیږې نو هیڅکله به هم پاته سوي نه وای، الله عزوجل به ددوی په واسطه ستا ساتنه کوي، دوی به ستا خیر غواړي او په جهاد کې به ستا ملګري وي، رسول الله صلی الله علیه وسلم دحضرت سعد رضي الله عنه ستاینه وکړه او د خیر دعایې ورته وفرمایله، اومسلمانانو خپل عظیم قائد صلی الله علیه وسلم ته دجنګ دمیدان شمال ختیځې خواته دغونډۍ پرسر یوه حاکمه نقطه کې څپره جوړه کړه او دسعد بن معاذ رضي الله عنه ترمشرۍ لاندې دانصارو ځوانانو یو ګروپ پردې مؤظف سو چې د قیادت دمرکز یعنې دلښکر دعمومي قوماندانۍ ساتنه او حفاظت وکړي.

## «دلښکر ترتیب او په سکون سره دشپې سباکول»

وروسته رسول الله صلی الله علیه وسلم خپل لښکر ترتیب او تنظیم کړی[306]، دجنګ په میدان کې وګرځیدی او په خپل مبارک لاس سره به یې اشاره کوله چې داسبا دفلاني د وژل کیدو ځای دی ان شاء الله[307] او دادفلاني، ورپسې رسول الله صلی الله علیه وسلم هلته دیو درختي سره لمونځ کوي مسلمانانو ټول په ډاډ او راحت شپه سباکړه، زړونه یې له سکون او هیلو څخه ډک وه او ددې طمعه یې درلوده چې سبا دخپل رب رحمت او کرم دسرپه سترګو وویني.

---

[306] جامع الترمذی ۱/۲۰۱.
[307] مشکوة المصابیح ۲/۵۴۳، له مسلم شریف څخه.

إِذْ يُغَشِّيكُمُ النُّعَاسَ أَمَنَةً مِّنْهُ وَيُنَزِّلُ عَلَيْكُم مِّنَ السَّمَاءِ مَاءً لِّيُطَهِّرَكُم بِهِ وَيُذْهِبَ عَنكُمْ رِجْزَ الشَّيْطَانِ وَلِيَرْبِطَ عَلَىٰ قُلُوبِكُمْ وَيُثَبِّتَ بِهِ الْأَقْدَامَ. سورة الانفال.

**ترجمه**: یاد کړه هغه وخت چې دالله دطرفه دامن په خاطر خوب دربانديٍ راغلی اودآسمان څخه یې اوبه درباندې نازلي کړې ،ترڅو تاسي په کړې اودشیطان مرداري درڅخه لیري کړي او زړونه مو سره وتړي اوقدمونه مو وربانديٍ استوار اوثابت وګرځوي داشپه دجمعې مبارکي شپه وه چې ددویم هجري کال درمضان میاشتي له او ولسمي سره سمون خوري اورسول الله ﷺ دهمدې شپې په (٨ یا ١٢) له مدینې څخه راروان سوی ؤ.

## «دجنګ په میدان کي له داخلي اختلاف سره مخامخ کیدل»

قریشو هلته په العدوة القصوی کي شپه سبا کړه اوسهار ټول له غونډۍ څخه را کښته او دبدر په طرف روان سول یوڅو کسان یې درسول الله ﷺ دحوض پرخوا راغلل ،نورسول الله ﷺ وفرمایل پرېږدی له حکیم بن حزام پرته نور ټول چې له دې حوض څخه یې اوبه څښلي وی مړه سول ،حکیم وروسته په اسلام مشرف سو اوکله به یې چې کلک قسم اخیستی نو ویل به یې قسم په هغه ذات چې ماته یې دبدرپه ورځ نجات راکی ، کله چې قریش ډاډه سول نو عمیر بن وهب الجمحي ته یې وظیفه ورکړله چې له دمدینې دلښکر په قوت او اندازه ځان پوه کړي ،عمیر پرخپل آس سپور اوداسلامي لښکر ترقرار ګاه را وګرځیدی وروسته قریشو ته ورغلی ورته وی ویل : دوی څه کم یاڅه زیات درې سوه کسان دي خواجازه راکړې چې وګورم چې دوی کوم کمین اویانور کومک خونه لري؟آس یې دوادي په مینځ کي تردېره وځغلووی هیڅ یې هم ونه لېدل ،بیرته راغلی او ورته وی ویل : ما څه ونه لیدل ،خواې قریشو !ماداسلامي پلاوي ولیدلی چې دمرګ پیغام یې درلودی د مدینې اوښانو خالص مرګ راوړی دی ،دا داسي خلک دی چې له توروپرته هیڅ ملجا او پناه ګاه نه لري ،دقوت راز یې هم په تورو کي دی ،زه قسم اخلم چې د دوی څخه هیڅوک ترهغوی نه مري ترڅو یې ستاسو څخه څوک وژلی نه وي نو که چیري دوی ستاسي دسر کسان ووژني نوبیابه دژوند خوند اوارزښت څه وي؟ نو دا درته وایم

چې ښه فکر وکی دلته دابوجهل پرخلاف یوبل مخالف راولاړ سو،دوی دابوجهل دنظر پرعکس غوښتل بې له جنګه بیرته مکې ته ولاړسي ،حکیم بن حزام په دې هکله دخلګو په مینځ کي فعالیت شروع کی عتبه بن ربیعه ته ورغلی او ورته وی ویل ابو الولیده !ته دقریشو مشراوسرداریې ټول ستاخبره اوري نوته ولي یوداسي نیک کارنه کوی چې ترقیامته دي نو ښه پریادیږي ،ده وویل حکیمه دابه کوم کار وي ،ده ورته وویل هغه داچې داخلک بیرته واستوی اوپه سریه نخله کي دوژل سوي عمرو بن الحضرمي چې ستاحلیف ؤ معامله ته پرخپله غاړه واخلی ،عتبه وویل صحیح ده داخبره زما قبوله ده ته زما له خوا ددې ضامن یې هغه زماحلیف ؤ زه دهغه دیت اوضایع سوی مال ضامن اوذمه وارهم یم ،بیاعتبه ورته وویل : راځه حکیمه چې ابن حنظلیه ته ورسو، ابن حنظلیه دابوجهل مور وه ځکه زه دخلګو په معاملاتو کي له ده پرته له بل هیچا څخه دمخالفت اومشاجرې تشویش نه لرم ،بیاعتبه بن ربیعه ولاړسو اوخلګو ته په خطاب سره یې وویل :اې قریشو !تاسي له محمد ﷺ اواصحابو سره یاست ، دجنګ څخه څه نه سي ګټلی اونه په دې سره کومه خاصه کارنامه ترسره کولی سی،که چیري تاسي هغه ووژنی نوهم داسي مخونه به ووینی چې لیدل یې نه خوښوی ځکه دهرچا به یادتره زوی یادماما زوی اوبل خپلوان وژلی وي ،نوبیرته ولاړسی او محمد ﷺ له نورو عربو سره پریږدی وګوری که عربو هغه وواژه نوستاسي هیله به پوره سي اوکه داسي ونه سول نوبیابه هم تاسي په داسي حالت کي ورسره مخامخ کیږی چې له ده سره به موښه نه وي کړی چې کړل مویې،حکیم بن حزام ابوجهل ته ورغلی هغه خپله زغره برابروله او ورته وی ویل : ابوالحکمه ! عتبه داپیغام درته رالیږلی دی ابوجهل ددې خبري په اوریدو سره د ې وغوړمیدی او وی ویل : دمحمد اواصحابو په لیدو سره دعتبه سینه پړسیدلی ده یعني بیري اخیستی دی دانه منو قسم په خدای ترهغوبه ونه ګرځو ترڅو الله جل جلاله زموږ او محمد ترمینځ فیصله نه وي کړي عتبه داخبره ځکه کړې چې هغه محمد ﷺ اواصحاب اوښ خواره ګڼي اوبله داچې دده زوی ابوحذیفه چې مخکي مسلمان اومهاجر سوی ؤ هم له دوی سره دی اوله همدې کبله تاسي د دوی څخه بیروي کله چې عتبه دابوجهل په خبرو خبرسو نو وی ویل : ابوجهل بیري

اخیستی دی هغه به یوه شی چې دچا سینه له بیري پړسیدلی ده دا ډارن زه یم او که
هغه ؟ابو جهل له دې بیري چې هسي نه دا مخالفت زوروړونه نیسي ،په حرکت راغلی
او ژر یې په سریه نخله کي دوژل سوي عمرو ورور عامر بن الحضرمي ته احوال
ورولیږی چې وګوره ستا حلیف یعني عتبه غواړي چې خلک بیرته واستوي ، تاخو
خپل انتقام په خپلو سترګو لیدلی ،ولاړسه او خلک له خپل مظلومیت اود ورور
دمرګ له انتقام څخه خبر کړه په دې پسې عامر ولاړ سو خپل کوټي یې لڅي کړی
اوچیغه یې کړه،وا عمراه،واعمراه ! خلک یو وار سره راټول سول معامله سخته
او دجنګ اراده پخه سوه او دعتبه دعقل مندي خبره هم هیره سوه او په دې ترتیب سره
جوش پرهوش یعني جذبه پرعقل برلاسی سوه او هغه مخالفت هم ختم سو .

## «دلښکرونو سره مخامخ کیدل او دسیدالبشر ﷺ هدایت»

کله چې مشرکین راښکاره سول او دواړه لښکره یو بل ته مخامخ ودرېدل ،رسول الله
ﷺ وفرمایل :یاالله جل جلاله !داقریش چې په ډېر کبر او غرور سره دلته په داسي حالت
کي راغلی چې ستاسره دښمنی اوستارسول تکذیبوي یاالله جل جلاله ستاکومک
غواړو، هغه چي تا یې وعده راسره کړی ده ،یاالله ! هم هغه کومک نن راسره وکړه
،رسول الله ﷺ چي کله عتبه بن ربیعه ولیدل چې پریوه سره اوښ سپور دی نو وی
فرمایل : که چیري په دې خلګو کي له چاسره خیر وي نو هغه به دسره اوښ له خاوند
سره وي که خلک دده خبره ومني نو پرسیده لاره به تللي وي بیارسول الله ﷺ د
مسلمانانو لیکي برابرول شروع کړل،په همدې وخت کی یوه عجیبه پیښه وسوه،
هغه داسي چې له رسو ل الله ﷺ سره یو غشی ؤ چي خلک به یې په برابر ول ،همدا
غشی یې دسواد عزیه چې دصف څخه وتلی ؤ په نس ورچخ کړه او ورته وی فرمایل
سواده!برابرسه،سواد وویل یارسول الله ﷺ زه خودي خوږ کړم نو بدله غواړم ،
رسول الله ﷺ خپله مبارک نس ورته لڅ کی او وی فرمایل بدله دي واخله سواد یو
وار پر را وګرځیدی اونس مبارک یې ورمچ کی،رسول الله ﷺ ورته وفرمایل :
ولي دي داسي وکړل ؟سواد عرض وکی یارسول الله ﷺ !حالات خو وینی چې څه
ډول دي،ما غوښتل چې ستاسره می اخري معامله داوي چې زما پوستکی ستاله
مبارک جلد سره ولګیږي ،بیارسول الله ﷺ دخیر دعا ورته وکړه ،کله چې یې صفونه

برابرکړل نو ورته وی فرمایل: ترهغوبه جنګ نه شروع کوی ترڅوزما آخريني قومنده نه وي صادره سوی ،بیا یې دجنګ په هکله خصوصي لارښوونه ورته وکړه اووی فرمایل :کله چې دقریشو ټولی تاسي ته رالنډ سول نودغشو باران وربادي وکړی دغشو ساتلو خیال کوی یعني بې فائدې غشي مه ولی اوترهغو توري مه وهی ترڅو دوی دربادي راچاپیره سوي نه وي ،بیایې له ابوبکر رضي الله عنه سره څپري ته تشریف یووړی اوسعدبن معاذ رضي الله عنه دساتني له ګروب سره دڅپري په خوله ولاړ ؤ.

دمشرکینو له مینځه ابوجهل په دې ورځ دفتحي دعاوکړه اووی ویل :اې خدایه! زموږ څخه هغه ډله ماته اوټوټې ټوټې کړی چې دخپلوی دمزي شلوونکي وی اوهغه څوک مات کړی چې موږته یې داسي څه راوړي دي چې موږ یې نه پیژنو ،اې خدایه ! هرڅوک چې تاته ډیرګران او نژدې وي هغه نن بریالي کړه ،الله تعالی دې ته په اشارې کولو سره فرمایي :

إِن تَسْتَفْتِحُوا فَقَدْ جَاءَكُمُ الْفَتْحُ وَإِن تَنتَهُوا فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَإِن تَعُودُوا نَعُدْ وَلَن تُغْنِيَ عَنكُمْ فِئَتُكُمْ شَيْئًا وَلَوْ كَثُرَتْ وَأَنَّ اللَّهَ مَعَ الْمُؤْمِنِينَ سورة الانفال

**ترجمه** :اوس که منع سی نوهم داستاسي لپاره ډیره ښه ده اوبیاوګرځی نوهم هغه حماقت تکرار کړی نوموږ به هم هغه سزا تکرار کړو اوستاسي ډله که هرڅومره زیاته هم وي ستاسي په درد به هیڅ ونه سي خوړلای ،الله جل جلاله دمؤمنانو ملګری دی.

## «دحمزه رضي الله عنه دتوري واری»

ددې جنګ لومړنی قرباني اسودبن عبدالاسد المخزومي ؤ داډیرشریر اوبداخلاق انسان ؤ په دې وخت کي دلښکر له مینځ راووتی اووی ویل په خدای دي مي قسم وي چې یابه د دوی له حوض څخه اوبه څښم یابه یې رنګوم اویابه هم هلته مرم، مقابلې ته یې حمزه رضي الله عنه راووتی اوله حوض سره نژدې یې داسي دتوري ګوزار پر وکی چې پښه یې په پونډۍ کي غوڅه وپریکړه اودشاپرتخته ولویدی خوهغه په داسي حال کي چې له پښې څخه یې ویني داري وهلې په خپړو خپړو حوض ته ځان ورسوي اوغوښتل یې حوض ونړوي اوخپل قسم پوره کړي خوحمزه رضي الله عنه بل ګوزار وربادي وکی اوهم هلته په حوض کي دننه په وینو کي ډوب سو.

## «درې مسلمانٌ او درې كفار په مقابله كې»

دالومړى قتل ؤ چې دجنګ او وربانديې بل سو، په دې پسې دقريشو دسردارانو ديو كورنۍ درې غړي دربيعه زامن عتبه اوشيبه اوولید بن عتبه میدان ته راووتل او دمقابلې نازه يې وكړه، په جواب كې يې دانصارو درې ځوانان دحارث اوعفراء زامن عوف رضي الله عنه اومعوذ رضي الله عنه او عبدالله بن رواحه رضي الله عنه ميدان ته ور ووتل، دوى وويل تاسي څوك ياست؟ دوى جواب وركى موږ انصار يو، دوى وويل تاسي قدرمن سيالان ياست، موږ ستاسي سره غرض نه لرو موږ خپل تربرونه غواړو، بيايې ږغ وكى اې محمده! صلى الله عليه وسلم موږ ته دخپل قوم څخه زموږ سيالان رامخكي كړه، رسول الله صلى الله عليه وسلم امرو كى اووى فرمايل: عبيده بن حارث رضي الله عنه، حمزه رضي الله عنه او علي رضي الله عنه را ووزى دوى رامخكي سول اوكله چې كفاروته ور نژدى سول ورته وى ويل تاسي څوك ياست؟ دوى ځانونه ورته معرفي كړل دوى وويل تاسي قدرمن سيالان ياست بيايې مقابله شروع سوه، عبيده رضي الله عنه چې ترټولو مشرؤ دعتبه بن ربيعه او حمزه رضي الله عنه دشيبه او علي رضي الله عنه د وليد مقابلې ته ودريدى، حمزه رضي الله عنه او حضرت علي رضي الله عنه په ډيرلږ وخت كې خپل سيالان دمرګ كندې ته وروغورځول، خودعبيده رضي الله عنه اومقابل طرف ته ترمينځ دتورې ګوزارونه تبادله سول اودواړه سخت ټپيان سول، په دې وخت كى حمزه رضي الله عنه او علي رضي الله عنه پر عتبه راوګرځيدل اوويې واژه، عبيده رضي الله عنه يې له ځان سره يووړى، دهغه پښه پريسوى وه اوله خبرو لوېدلى ؤ بالاخره دجنګ په څلورمه ياپنځمه ورځ كله چې مسلمانان دمدينې په طرف روان ؤ دصفرا په سيمه كې شهيد سو، حضرت علي رضي الله عنه به قسم ياداوه اوويل به يې چې دالاندنى آيت د دوى په حق كې نازل سوى دى. ﴿هذان خَصْمَانِ اخْتَصَمُوا فِي رَبِّهِمْ﴾

**ترجمه**: دا دواړه مخالفان دي چې دالله جل جلاله په اړه يې مخالفت سره كړى دى.

## «عامه حمله»

ددې مقابلې پاى دمشركينو لپاره ديولوى غميزې پيلامه وه، دوى په يوه وار تكړه اوپياوړې درې مشران دلاسه وركړل، ټول يوځل له قهر اوغوسې څخه په جوش راغلل اوپرمسلمانانو يې وروداننګل، مسلمانان په داسې حال كې چې له رب څخه يې په پوره عجز اوزاريو دمرستې اونصرت سوالونه كول، پرخپلو ځايونو ټينګ

ولاړۇ ژبي يې داحد احد په ويلو لندى وى او ځرنګه چې دوى په دفاعي حالت کې ؤ نو کفارو ته يې ډير تاوانونه ورسول.

## «دجنګ په حالت کې دسيدالبشر ﷺ دعا»

کله چې رسول الله ﷺ صفونه برابر کړل او خپلي خيمې ته راغلی له هم هغه وخته يې خپل رب ته دسوال لاسونه پورته کړى ؤ او د کړي وعدې دپوره کولو غوښتنه يې ورڅخه کوله او داسې يې فرمايل: اې خدايه زماسره خپله وعده پوره کړه، خدايه! زه ستا څخه دعهد او وعدې سوال کوم. او کله چې جګړه ښه ګرمه سوه رسول الله ﷺ دادعا وفرمايله: اې پروردګاره! که نن داډله هلاکه سوه نوبيابه ستا عبادت ونه سي خدايه که ستا اراده وي نوله ننه وروسته به هيڅ کله هم ستا عبادت ونه سي، ده مبارک دومره خشوع او خضوع کوله چې آن څادريې له مبارکو اوږو راولويدى، ابوبکر رضي الله عنه هغه بيرته ورسم کى او ورته وى ويل: بس کړه يارسول الله ﷺ تا له خپل رب څخه په ډير اصرار سوال وکى له بلي خوا الله جل جلاله هم خپلو ملائکوته وحي وفرمايله:

أَنِّي مَعَكُمْ فَثَبِّتُوا الَّذِينَ آمَنُوا سَأُلْقِي فِي قُلُوبِ الَّذِينَ كَفَرُوا الرُّعْبَ .سورة الانفال ايت ١٢

**ترجمه:** ستاسي سره يم، مؤمنانو ته ثبات ورکړى او زه به دکفارو په زړونو کي ويره واچوم او خپل رسول الله ﷺ ته يې داسې وفرمايل:

أَنِّي مُمِدُّكُم بِأَلْفٍ مِّنَ الْمَلَائِكَةِ مُرْدِفِينَ.

## دسيدالبشر ﷺ په دعا دملائکه وو نزول

رسول الله ﷺ يوه شيبه پړمخي پروت ؤ ژريې خپل سر راپورته کى او وى فرمايل: زيري مي درباندي ابوبکره! دادى جبرائيل عليه السلام له مخي سره يې ګرد او غبار راولاړ سوى دى، او ابن اسحاق په روايت کي راغلي دي رسول الله ﷺ و فرمايل ابوبکره! خوشحاله اوسه دالله عزوجل مرسته درته راورسيده، دادي جبرئيل عليه السلام په داسي حال کي چې داس قيزه يې نيولى او له پښو څخه يې ګرد او دوړي پورته کيږي را روان دى، يارسول الله ﷺ له خيمې څخه په داسي حال راووتى چې زغره يې اغوستى او داخبري يې پرخوله وي:

سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ .سورة القمر **ترجمه**: نږدې ده چې دغه ټولګی شکست وخوري او په شا وتښتي ،په ډېر جوش او هیبت سره روان ؤ ،یوموټي شګې یې واخیستی د قریشو خواته یې مخ ور واړوی او وی فرمایل : شاهت الوجوه .اوشګي یې د دوی په طرف ور وشنیدلی دا شګې د ټولو مشرکینو په سترګو ،سږمو او خولو کې ورموښتې ،الله جل جلاله په دې هکله وفرمایل :وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلَكِنَّ اللهَ رَمَى .سورة الانفال آیت (١٧) **ترجمه**: حقیقت دادی چې تا ونه ویشتل بلکه الله جل جلاله وویشتل.

## «ځوابي حمله او دجنت زیری»

په همدې وخت کې رسول الله ﷺ خپل لښکر ته دجوابي حملې قومنده ورکړه او ورته وی فرمایل : شدوا. یعني پرې ور ودانګی ،په هغه ذات دې مې قسم وي چې محمد ﷺ نفس دده په واک کې دی ،هرڅوک چې نن له دښمنانو سره جنګ کوي بیا په داسې حال کې ووژل سي چې دجنګ په میدان کې دښمن ته مخامخ دثواب په نیت ټینګ او صابر ولاړ او له میدان څخه تښتیدلی نه وي الله جل جلاله به یې جنت ته داخلوي،دخپل لښکر حماسې را پاروي او فرمایي :ولاړسی دهغه جنت په طرف ولاړ سی چې دمځکې او آسمانو په اندازه پراخ دی ،په دې وخت کی عمیر بن حمام وویل : ولې دې بخ بخ وویل ؟ده ورته وویل یارسول الله ﷺ دا یې یوازې په دې هیله او امید وویل:چې زه همدې جنت ته له داخلیدونکو څخه یم ،رسول الله ﷺ ورته وفرمایل:ته جنتي یې ورپسې هغه له خپلې توبرې څخه څودانې خرماوې را ویستلې او خوړلې یې،بیا یې وویل که زه دومره ژوندی پاته سم چې دا خرماوې وخورم نو دا به هم ډېر اوږد ژوند وي ،ژرېې پاته خرماوې وخورځولی او د مشرکینو په صفونو ورګډ سو ترهغو وجنګیدی ترڅو شهید سو .[٣٠٨]

همدا راز د مشهورې ښځې عفراء زوی عوف بن حارث رضي الله عنه له رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې یارسول الله ﷺ الله تعالی دبنده په کوم کار ډېر خوشحاله کیږي چې وخاندې؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل :په دې سره الله جل جلاله ډېر خوشحاله کیږي چې بنده بیله زغرې او ډال څخه لاس په دښمن په صف کې ورګډ کړي یعني

---

[٣٠٨] مسلم ٢/ ١٣٩، مشکوة المصابیح ٢/ ٣٣١.

پر دښمنانو حمله وکړي ،نوعوف رضي الله عنه خپله زغره وکښله اوتوره په لاس ددښمن په
ليکو ورګډ سو ترهغو وجنګيدی ترڅو دشهيدانو له کاروان سره يوځای سو.
کله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم دجوابي حملې قومنده ورکړله هغه وخت د دښمن څو حملې
تيري سوی وی ،د دوی جوش اوخروش مخ په سړيدو ؤ ،نودا يوداسي باحکمته
تاکتيک وه چې د مسلمانانو دموقف په ټينګولو کي ژور اثردرلودی ،ځکه دوی ته
په داسي وخت کی حملې اويرغل امرورکړل سوی ؤ چې د دوی دجهاد روحيه ځوانه
اوپه پوره زور کي وه ،همدا وه چې پرکفارو يې داسي سخته اوپرېکنده حمله وکړه
چې ددوی ليکي يې ورماتي او ککرې يې پر مځکه راوغورځولی داسلام د
سپاهيانو جوش اوخروش لاپسې ډير سو،کله چې دوی خپل عظيم رهبرپه داسي
حال کي وليدی چې زغره يې په تن کي په ډير کلک عزم اولوړهمت را روان دی
اوفرمايي : سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ .سورة القمر **ترجمه**: نږدی ده چې دغه ټولګی
شکست وخوري اوپه شا وتښتي .مسلمانانو ډيره سخت جنګ وکی ملائکو يې هم
مرسته کوله ،ابن سعد له عکرمه رضي الله عنه څخه په يوه روايت کي وايي په دې ورځ به موږ
کتل چې دسړي سرپرېکيږي خودانه معلوميږي چې چاواهی ، اودبل سړي لاس به
پرېکيدی اودانه معلوميده چې چاوواهه ، ابن عباس رضي الله عنه وايي چې يومسلمان
دجنګ په ميدان کي يوکافر تعقيباوه او ورپسې ؤ ،په دې وخت کی ناڅاپه پر
مشرک باندي د دوړې (متروکې)دګوزار آواز واورېدل سو ديوه سپاره ږغ پورته
سو چې وايي څيزمه! وړاندي ځه ،مسلمان هغه مشرک وليدی چې پرشا ولويدی ،
دې ورته راغلی وی ليدی ، چې دهغه پزه زخمي اومخ يې داسي څيري سوی ؤ لکه
په مترکه چې وهل سوی وي ،اوداټول زخمونه يې نوي اوتازه ؤ ،دا انصاري مسلمان
راغلی اورسول الله صلى الله عليه وسلم ته يې ټوله قصه بيان کړه ، ده وفرمايل : ته رښتيا وايی دا
دريم آسماني کومک اومدد ؤ .[٣٠٩]
ابوداؤد مازني وايي : زه په يومشرک پسې وم چې وې وهم ، خومخکي تردې چې
زما توره ور ورسيدله دهغه سر دتن څخه جلاسو ،نوزه پوه سوم چې بل چاوواژه

---

[٣٠٩] مسلم ٢/ ٩٣، داسي نورهم

،یو انصاري حضرت عباس رضي الله عنه بندي کی او دځان سره یې راوستی ،عباس رضي الله عنه
وویل والله که زه دې سړي بندي کړی یم ،زه یو داسي سړي بندي کړم چې پرسریې
ویښتان نه وه ،ښائسته او روڼ مخ اوپریوه تور اوسپین آس سپور ؤ ،زه اوس هغه
دلته نه وینم ،انصاري وویل : یارسول الله صلی الله علیه وسلم داما بندی کړی دی ،ده ورته وویل
چوپ سه الله تعالی دکریمي ملکي په واسطه ستا مرسته کړې ده .

## «دجنګ دمیدان څخه دشیطان لعین تیښته»

شیطان چې دسراقه بن مالک بن جعشم مدلجي په شکل کي دقریشو سره راغلی ؤ
ترهغو له دوی سره حاضر ؤ ترڅو یې ملائکي ولیدلی چې پرمشرکینو باندي څه
کوي نو په دې وخت کي یې شا واړوله اود تیښتي لاره یې ونیوله ، دلته حارث بن
هشام هغه راونیوی ځکه ده ګومان کوی چې سراقه دی ،خوابلیس پرځیګر داسي
ګوزار ورکی چې لیري یې وغورځاوه اوپه تیښته له میدان څخه ووتی ،مشرکینو
ورته وویل سراقه چیري ځې؟تاخوویلي ؤ چې زه به ترپایه درسره ولاړ اوملګری یم ،
ده ورته وویل : زه هغه څه وینم چې تاسي یې نه وینی زه له خدایه بیریږم الله تعالی
سخت عذاب ورکوونکی دی ،بیاهم داسي تښتیدی ترڅو یې ځان په بحرکي ډوب
کی .

## «دکفارو مکمل شکست»

دمشرکینو په مینځ کي ماته ګډه سوه ، ټول بیري اوپریشانۍ ونیول اودمسلمانانو
د ملا ماتوونکو ګوزارونو په وړاندي د دوی قوت اومقاومت ختم سو ، جنګ
دختمیدو حالت ته نژدی کیدی ،کفارو دجنګ د ډګر څخه دتیښتي کوښښونه کول
،مسلمانان ورپسې ؤ ،څوک به یې ورڅخه وژل اوڅوک به یې ژوندي نیول ،په دې
ترتیب سره دکفر اوشرک لښکر له پرېکنده اوکاملي ماتي سره مخ سو.

## «دجنګ په حالت کي خپلو ملګروته دابوجهل وینا»

ابوجهل چې کله په خپل لښکر کي دماتي نښانې اوآثار ولیدل نوهڅه یې کوله چې
ددې عظیم طوفان مخ ته بند واچوي ،خپلو عسکروته یې په ډیر کبر اوغرور سره
آواز وکی ګوری دسراقه ماته اوتیښته ستاسي دماتي سبب نه سي هغه دمخکي
څخه له محمد صلی الله علیه وسلم سره سازش کړی ؤ اوګوری دعتبه ،شیبه او ولید په وژل کیدو

خپل همت له لاسه ورنه کړې ،دوی بې ځایه بیره وکړله په لات اوعزی دي مي قسم
وي چي ترهغو به بیرته ستانه نه سو ترڅو مو دوی په رسیو تړلي نه وي تاسي د دوی
دوژلو کوښښ مه کوی بلکه دوی ژوندي ونیسي ترڅو دوی ته د خپلو کړو مزه ور
وڅکو، خودېر ژر ده ته دخپل کبر اوبې ځایه غرور حقیقت ښکاره سو اودده دلښکر
لیکي دمسلمانانو دحملو په مخکي دړي وړي ،تیت اوپرک سوی ، هو! دابوجهل
شاوخوا یو ګروپ پاته ؤ اوپرده یې دتورو او نیزو کلا راګرځولی وه ،خو د
مسلمانانو دایمان اوتوري زور دشرک داکلاهم ونړوله اوسترطاغوت پرآس سپور
دمسلمانانو مخ ته راښکار سو ،داهغه وخت ؤ چې مرګ هم ورته رارسیدلی ؤ اوددې
انتظارېې کوی چې دوه انصاري ځوانان دده سر پرېکړي او مړکي یې وینی وڅښي.

## «دابوجهل قتل»

عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه وايي زه دبدر په ورځ په صف کي دننه وم ، که ګورم چې
راسته اوچپه اړخ ته مي دوه تنکي ځوانان ولاړدي زه د دوی په لیدو حیران سوم په
همدې وخت کي له دوی څخه کوم یوه پټ راته وویل : کاکاجانه!ابوجهل راوښیه
،ماورته وویل وراره !په ابوجهل څه کوی؟ده وویل زه خبرسوی یم چې هغه درسول
الله صلی الله علیه وسلم په حق کي نامناسبه ژبه استعمالوي اوخپلو خبروته یې ادامه ورکړه ویل یې
قسم په هغه ذات چې زمانفس دهغه په لاس کي دی که زه ابوجهل ووینم ترهغو به یې
پرې نه ږدم ترڅو چې زموږ دواړو څخه یو مړسوی نه وي کوم ته چې مرګ مخکي
لیکل سوی وي یعني ترهغو چې یازه مړنه یم اویامي هغه وژلي نه وي ،عبدالرحمن
رضي الله عنه زیاتوي زه دځوان دې خبروته ډیرحیران سوم ،بیا وايي دلته یې هغه دویم ځوان
هم په پټه همدا ډول خبري راته وکړې ،وايي لږ څه وروسته مي ابوجهل ولیدی چې
دخلکو په مینځ کی ګښته پورته کیږي نو دوی دواړو ته مي وویل نه وینی؟ هغه دي
هغه څوک چې تاسي یې پوښتنه کوی ،عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه وايي دوی دواړه
ور ورځغستل اود تورو ګوزارونه یې پرو کړل او وی واژه بیادواړه رسول الله صلی الله علیه وسلم
حضورته ورغلل ده مبارک پوښتنه ورڅخه وکړه چې ستاسي څخه کوم یوه وواژه
؟دی هریوه ویل ما وواژه ،ماوواژه ، رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل : آیاتاسي خپلي
توري پاکي کړیدي؟ دوی ورته وویل نه ، رسول الله صلی الله علیه وسلم یې توري وکتلی او وی

فرمایل : تاسي دواړو وژلی دی ، خو دابو جهل مال او سامان یې معاذ بن عمرو بن جموح ته ورکلی ، دا دواړه تنکي ځوانان وروڼه ؤ چې دیوه نوم یې معاذ بن عمرو بن جموح او دبل نوم یې معوذ بن عفراء بن عفراء ؤ .[310]

ابن اسحاق وایي معاذ بن عمرو جموح وویل ماله مشرکینو څخه واورېدل چې وایي ابو الحکم ته څوک نه سي ور رسیدای ، ځکه هغه دغه وخت دخپلو سپاهیانو د تورو او نیزو په داسي یوه دایره کي دننه ؤ چې مشرکینو له هغي وني سره تشبیه کوي چې رسیدل ورته ممکن نه وي ، وایي ماچې دا واورېدل نو خپل هدف مي په نښه کی ، ځان مي ورته برابر کی او کله چې موقع په لاس راغله نو حمله مي ورباندي وکړله او داسي ګوزار مي ورکی چې پښه یې په پوندۍ کي غوڅه ماته سوه او لیري ولویده ، پښه یې داسي والوته لکه چې کوم سړی دژرېو ماتوونکي سوټي له ګوزار څخه الوزي ، معاذ وایي په دې وخت کي یې زوی عکرمه وار راباندي وکی او زما لاس یې غوڅ پرېکړی ، لاس مي خالي په پوستکي بند ؤ خو څرنګه چې زه په جنګ بوخت وم ډیر فکر مي ورته نه ؤ ، ټوله ورځ مي جنګ وکی او لاس هم داسي راپسې ځړیدی ، کله چې یې درد زیات سو پښه مي ورباندي کښېښوه کش مي کړی او لیري مي وغورځوی .[311] بیا معوذ ورغلی او ابوجهل یې چې په دغه وخت کي چې مازخمي کړی ؤ یو داسي وار یې وکی چې هم هلته پرېوتی خو ساه لا په کښي چلیدله ، معوذ ترهغوو جنګیدی ترڅو شهید سو ، او کله چې جنګ پای ته ورسیدی ، نو رسول الله ﷺ وفرمایل څوک به وګوري چې ابوجهل څه کړي دي؟ خلک ورپسې ګوري چې دادی عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه ورباندي برابر سو او ابوجهل اخیري سلګۍ وهلی ، عبدالله بن مسعود رضي الله عنه یې پرغاړه پښه ورکښېښوو له ترږیري یې ونیوی چې سریې ورپرېکړي او ورته وې ویل : دخدای دښمنه ! خدای څنګه سپک کړی ؟ ده ورته وویل آیا تر هغه چاغوره څوک سته چې ستا په لاس وژل سوی وي .

---

[310] صحیح البخاری ۱/ ۲،۲/ ۴۴۴/ ۵۶۸، مشکوة المصابیح ۲/ ۳۵۲، دابو جهل مال یه ځکه یوو ته ورکړ چي هغه بل په همدي غزوه کي شهید سوی وو خود ابو جهل توره یه وعبد الله بن مسعود رضي الله عنه ته ورکړه ځکه سریه هغه دتن څخه جدا کړ سنن ابوداؤد ۲/ ۳۷۳.

[311] معاذ دحضرت عثمان رضي الله عنه تر وخته ژوندی وو.

يعني داڅه سپکاوی نه دی چې څوک دخپل له لاسه ووژل سي، بیایې وویل کاشکي دبزګرانو پرځای بل چاوژلی وای؟زیاته یې کړه ،وایه نن بری دچادی ؟ده ورته وویل : بری دالله اود رسول الله ﷺ دی ،بیایې ابن مسعود رضي الله عنه ته چې دده پرغاړه یې پښه ورایښی وه وویل شپونکیه! نن ډیر لوړ اوخطرناک ځای ته پورته سوی یې ،عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه به په مکه کي رمه پیوله . تردې خبري وروسته عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه دابوجهل سر پریکړی ،اودرسول الله ﷺ حضور ته یې وړاندي کی ، اوعرض یې ورته وکی یارسول الله ﷺ دادی دالله ددښمن دابوجهل سر،رسول الله ﷺ درې واره داسي وفرمایل : الله الذی لااله الاهو. بیایې وویل : الله اکبر،ثناء او صفت دی هغه خدایه لره چې خپله وعده یې رېښتني کړه دخپل بنده کومک یې وکی اویوازي الله جل جلاله ټولو کفاروته ماته ورکړله ، بیایې ماته ووویل راځه راوی ښیه بیاولاړی اودهغه جسد مي وروښووی ،هلته یې وفرمایل دا ددې امت فرعون ؤ .

## «په دې جنګ کي دزیات پیښولیدل»

مخکي مو دعمیر بن حمام رضي الله عنه اوعوف بن حارث رضي الله عنه دوې مثالي کارنامې ترنظر تیري کړې په دې غزاکي نوري هم داسي پیښي سوي دي چې دعقیدې ،قوت او مبدأ عظمت له ورایه پکي معلومیږي ، په دې جنګ کي زوی له پلار سره ورور له ورور سره سنګرنیولی ؤ څودعقیدې اواصولو داختلاف له وجي یوبل ته توري له تیکو را ویستی ،اوپه همدې جنګ کي مظلومان دظالمانو مخ ته ودرېدل اوخپل زړونه یې ښه وریاندي یخ کړل .

۱:ابن اسحاق وایي له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت کوي چې رسول الله ﷺ اصحابو ته وفرمایل زه پوه یم چې بني هاشم اوڅه نور خلک دلته پرراتلو باندي مجبور سوي دي دوی زموږ سره جنګ ته اړتیا نه لري ،نوکه هرچاته دبني هاشم کوم سړی په لاس ورغی نه دي یې وژني اوچاته که ابوالبختري په مخه ورغی هغه دي هم نه وژني ،اوچاته عباس بن عبدالمطلب په مخه ورغی هغه دي هم نه وژني ،ځکه دوی په زور اوجبر راوستل سوي دي ، ابوحذیفه بن عتبه وویل موږ به خپل پلرونه ،زامن ،ورونه اونور خپلوان وژنو او عباس به پرېږدو ،قسم په خدای که هغه زما مخ ته راغلی نوپه توره به یې سوری کړم ،دا خبره رسول الله ﷺ ته ورسیده هغه مبارک

عمر ﷺ ته وفرمایل ابوحفصه !ایادرسول الله ﷺ داکا مخ په توره وهی ؟
عمر رضی الله عنه وویل اجازه زاکړه ، چې سریې په توره پرېکړم ،والله چې هغه منافق سوی
دی ، وروسته به ابوحذیفه ویل زه له هغي خبري څخه آرام او مطمئن نه وم ،له کومه
مي چې هغه خبره دبدر په ورځ کړې وه اولاتراوسه ورڅخه په بیره اوخوف کي یم
،خویوازي دومره ویلای سم ،چې کېدای سي شهادت زما دهغي خبري کفاره سي
،همداوه چې نوموړی دیمامه په جنګ کي په شهادت ورسیدی .
۲ :دابوالبختري وژل په دې خاطر منع سوی وه چې نوموړي له هغوکسانو څخه ؤ
چې په مکه کي یې رسول الله ﷺ ته تاوان اوضررنه رسوی ،نه یې په لاس اونه یې
په ژبه څه ضرر ور رسولی دی اوداهم هغه سړی دی چې دبنوهاشم اوبنومطلب
پرخلاف لیکل سوي ظالمانه معاهدې په ماتولو کي یې مهم رول لوبولی دی
،خوابوالبختري په همدې جنګ کي ووژل سو اوداداسي چې په جنګ کي بخدر بن
زیادالبلوي ورباندي برابر سو،له ابوالبختري سره دده یو ملګری هم وه دواړه
یوځای جنګ کوی ،مخدر ورته وویل ابوالبختري! رسول الله ﷺ موږ ستاله وژلو
څخه منع کړي یو،ده وویل :اوزمادملګري له وژلو هم ؟بخدر ورته وویل نه
دملګري خلاصون دي نسته ،ده وویل نوچې داسي ده اوس به موږ دواړه یو ځای
مرو ،بیایې جنګ پیل کی ، نوبخدر مجبور سو چې هغه ووژني .
۳ : عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه اوامیه بن خلف دجاهلیت د دوران کلک ملګری ؤ
دبدر په ورځ عبدالرحمن بن عوف خپل دمکې ملګری امیه ولیدی چې دخپل زوی
علی لاس یې نیولی دی له عبدالرحمن سره څوزغري وې چې غنمیت کړې یې وې
اوله ځان سره یې وړلې ،امیه چې هغه ولیدی نو ورته وې ویل :آیاماته دي څه
حاجت نسته؟ زه تردې زغرو درته هغونه اوبهتریم ، ماکله همداسي بده ورځ نه ده
لیدلې، آیاتاسي شیدو ته ضرورت نه لرې ؟یعني که زه چاپندي کړم نوپه فدیه کي
به ښې شیدې ورکوونکې اوښانې ورکړم ، عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه زغري وغور
ځولې او دواړه بندیان یې دځان سره رهي کړل ،عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه وایي په
داسي حال کي چې زه دامیه اودهغه دزوی ترمینځ روان وم راته وی ویل
عبدالرحمانه! داچې په سینه کي یې دفیل مرغ ښکه تومبلی ده څوک دی ،ماورته

وویل هغه حمزه بن عبد المطلب رضي الله عنه دی ده وویل همدغه پرموږ باندی ناتار جوړ کړی ؤ او همدغه موږ تباه کړو.

عبدالرحمان بن عوف رضي الله عنه وايي مادوی دواړه بيول: چې دحضرت بلال رضي الله عنه سترګي ورباندی ولګيدی اوامیه هم هغه څوک ؤ چې پربلال رضي الله عنه يې په مکه کي ډیر ظلمونه کړی ؤ، دلته بلال دکفر مشر امیه بن خلف اوس به یازه ژوندی یم اویادي، ماورته وویل بلاله ! دازما بندي دی ده وویل نن به یازه مرم اویادې، دتوري زویه زما خبره نه اوری، ده وویل یابه زه ژوندی پاته کیږم اویادي، بیایې په لوړ آواز چیغه وکړه، یاانصار الله ! دادکفر سرلښکر امیه بن خلف دی، نن به یازه مرم اویادي، عبدالرحمان بن عوف رضي الله عنه وایي یووار خلګ راباندي راټول سول موږ یې محاصره کړو، زه له امیه څخه دفاع کوم خویو چاتوره راتیره کړه اودامیه زوی یې پرپښه وواهه، هغه پرمځکه ولویدی، په دې وخت کي امیه داسي یوه چیغه وکړه چې په خپل ژوند کي مي داسي هولناکه چیغه نه وه اوریدلی، عبدالرحمن وایي ماامیه ته وویل اوس دځان چاره په خپله کوه، خولکه چې دنجات لاره دي نسته، زه اوس هیڅ نه سم کولی، همدا وه چې خلګو تر تورو وایستی اود دواړو کار یې ورخلاص کی، عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه به وروسته ویل: الله جل جلاله دي پربلال رحم وکړي، زما زغري هم ولاړی اوپه بندي يې هم وځورولم، په زاد المعاد کي راځي چې عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه امیه ته وویل: پرپوزه هغه پرپوتی اوعبدالرحمن رضي الله عنه ځان ورباندي واچوی، نورو خلګو هغه له لاندي څخه په تورو واهه ترڅو مړسو، په دې وخت کي دعبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه پښه هم زخمي سوی وه.[312]

۴ : په همدې ورځ حضرت عمر رضي الله عنه خپل ماما عاص بن هشام بن مغيره وواژه.

۵ : ابوبکر صدیق رضي الله عنه خپل زوی عبدالرحمن ته چې هغه وخت لامشرک ؤ بږغ وکی اې خبيثه زما مال اودارې چیري ده؟ عبدالرحمن ورته وویل:

لم يبق غير شكة ويعبوب ... وصارم يقتل ضلال الشيب

**ترجمه**: له وسلې تیر رفتار آس اوله هغي توري پرته بل هیڅ هم نه دي پاته کوم چې زړه ګمراهي دمرګ کندي ته اچوي.

---

[312] زادالمعاد ۲/ ۸۹.

۶ : کله چې مسلمانانو دکفارو نیول اوبندیانول پیل کړل ،رسول الله ﷺ په خپله خیمه کې تشریف درلودی ، اوسعدبن معاذ رضی الله عنه توره په لاس پیره ورباندې کوله ،رسول الله ﷺ د خلکو دکړو له امله دسعد په مخ کې دناخوښۍ اثار ولیدل ، ورته وی فرمایل :سعده! لکه دمسلمانانو داکاردې خوښ نه سو؟سعدعرض وکړ هو! یارسول الله ﷺ له مشرکینو سره دا اول جنګ اولومړنۍ موقعه وه چې الله تعالی موږ ته په لاس راکړه زه د دوی له ژوندي پاته کېدو څخه ددوی په وژل کېدو اوتباهۍ ډېرخوښ یم.

۷ :په همدې ورځ دعکاشه بن محصن الاسدي توره ماته سوه او کله چې درسول الله ﷺ حضور ته راغلی نو هغه یولرګی ورکی او ورته وی فرمایل :عکاشه رضی الله عنه ! څه په دې سره جنګیږه ،عکاشه رضی الله عنه دالرګی واخیستی او وی غورځوی که ګوري چې په یوه اوږده مضبوطه اوتکه سپینه توره بدل سوی دی اوپه همدې توره ترهغو پوري وجنګیدی ترڅوالله تعالی مسلمانانو ته بری ورپه برخه کړه ، دغه توره په العون مشوره وه ،عکاشه به هرجنګ ته له همدې توري سره تلی ،ترڅود ردت په جنګو کې په داسې حال کې شهید سو چې همداتوره یې په لاس کې وه.

۸ : دجنګ له ختمیدو وروسته مصعب بن عمیر العبدری رضی الله عنه خپل ورور ابي عزیز بن عمیر ولیدی ،نوموړي دمسلمانانو پرخلاف له جنګ څخه وروسته بندي سوی ؤ ،یوه ورځ یې انصارون لاسونه ورتړل ، نومصعب انصاري ته وویل ددې سړي په واسطه خپل لاسونه مضبوطه کړه ، دده مور مالداره ده ،کېدای سي دده په بدل کې ښه فدیه درکړي ،ابو عزیز خپل ورور مصعب ته وویل زما په باب دي همدا وصیت اوسفارښت دی ؟مصعب رضی الله عنه په جواب کې ورته وویل ستاپرځای دانصاري زما ورور دی.

۹ : کله چې امر وسو چې دکفارو جسدونه دې په کنده کې واچول سي اوعتبه بن ربیعه دکندې په طرف کشیدی ،رسول الله ﷺ دعتبه زوی ابو حذیفه مخ ته وکتل ،که ګوري هغه خفه اوغمګین ښکاري اوښه یې اوښتی ده ،رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : ابوحذیفه ! کله چې دپلار په هکله دې په زړه کې څه درګرځي ؟ده وویل نه یارسول الله ﷺ والله که مې په زړه کې دپلار اودهغه دمرګ په هکله څه شک

او تشویش وي خوخبره داده چې زما پلار یو پوه دور اندیشه ،حلیم او دفضل خاوند ؤ او زما هلیه داوه چې ددې پوهي او نورو ښو خصلتونو په وجه به په اسلام مشرف سي خو اوس مي چې دده داحال ولیدی او زما دهیلي پرخلاف کافر تر دنیا تیر سو نو ربښتیا هم غمجن سوم ، رسول الله ﷺ حذیفه رضي الله عنه ته دخیر دعا وفرمایله ،نیکي او خوږي خبري یې ورته وکړې .

## «دمشرکینو و مړیو ته دسید البشر ﷺ وینا»

جنګ دمشرکینو په پوره او کاملي ناکامۍ او دمسلمانانو په پرېکنده بري سره پای ته ورسیدی په دې غزاکي له مسلمانانو څخه (۱۴) کسان چې شپږ یې مهاجر او اته یې انصار ؤ په شهادت ورسیدل ، خو مشرکینو ته ډیر تاوان رسیدلی ؤ اویا (۷۰) کسان یې وژل سوي ؤ او اویا نور یې دمسلمانانو په لاس بندیان سوي ؤ او ددې مړو او بندیانو زیاتره برخه مشران او مخور خلک ؤ ،کله چې دجنګ اور مړ سو ،رسول الله ﷺ تشریف راوړی ، دمشرکینو مړو ته ودرېدی او وی فرمایل : تاسي زما تر ټولو بد او خراب خپلوان واست ،تاسي زه په داسي حال کي تکذیب کړم چې نورو خلکو ریښتني وبللم ، تاسي یوازي پریښووم او نورو خلکو زما مرسته وکړه تاسو له خپل کور څخه ویستلم خو نورو خلکو پناه راکړه ،بیا یې امر وکی چې دبدر په یوه کنده کي دی واچول سي ،له حضرت ابو طلحه رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ په امر دبدر په ورځ دقریشو (۲۴) مشران او سرداران دبدر په یوه مرداره او خبیثه کنده کي واچول سول ، درسول الله ﷺ دا عادت ؤ چې کله به کوم قوم برلاسی سو یعني جنګ به یې وګټی نو درې ورځي به هم هلته دجنګ په میدان کي پاته کېدی ،دبدر دغزا چې دریمه ورځ سوه نو رسول الله ﷺ له امر سره سم دده سپاري تیاره سوه ،زین او کچاوه پر کښېښوول سوه ، رسول الله ﷺ هم داسي پیاده روان سو ، اصحاب ورسته ورپسې روان ؤ مخکي ولاړی او دهغي کندي پر څنډه ودرېدی،دوی (مړیو)ته یې دهریوه نوم او دپلار نوم اخیستی آیا په دې سره خوشحالیږې چې تاسي دالله جل جلاله او دهغه درسول ﷺ اطاعت کړی وای؟ځکه زموږ رب زموږ سره وعده پوره کړه او دڅه وعده چې یې راسره کړې وه هغو ترلاسه کړه ، آیا تاسي هغه څه په حق سره ولیدل کوم چې ستاسي رب یې وعده درسره کړې وه .

دلته عمر رضي الله عنه وويل يارسول الله ﷺ آياته له بې روحه جسدونو سره خبري کوى؟ رسول الله ﷺ وفرمايل قسم په هغه ذات چي دمحمد ﷺ نفس دده په لاس کي دى دوى زما خبري ترتاسو ښه اوري اوپه بل روايت کي راځي چې تاسي دوى ښه اورېدونکى نه ياست خواخلګو جواب نه سي ورکولاى[۳۱۳]

## «مکې ته دکفارو دشکست خبررسيدل»

دبدرله ميدانه څخه کفار هري خواته وتښتيدل ، هرڅوک دځان په غم اخته ؤ پرکومه چې به يې مخ ونيوى پرهم هغه خوا به تښتيدى په خوړونو اودرو کي تيت پرک سول ، خودټولو به ورو ستى منزل مکه وه خودشرم اوخجالت څخه لاره ورڅخه ورکه وه چې څه ډول مکې ته داخل سي ابن اسحاق وايي لومړى سړى چې مکې ته يې دقريشو دماتي خبر راوړى حيسان بن عبدالله ؤ دې چې ورغلى خلګو ورته وويل څه خبردي راوړى دى ، ده وويل دعتبه شيبه ،ابوالحکم ، اميه بن خلف او نورو سردارانو دمرګ خبري مى راوړى دى ،کله چې ده دقريشو دسردارانو نومونه اخيستل صفوان بن اميه په حجر(حطيم) کي ناست ؤ ،وى ويل قسم په خداى که دا په هوښ کي وي ،تاسي زماپه هکله پوښته ورڅخه وکړى ،دوى ورته وويل په صفوان بن اميه څه وسول ؟ده وويل هغه خودادى په حطيم کي ناست دى ،قسم په خداى چې مايې پلار او ورور وليدل چې ووژل سول ،درسول الله ﷺ مولى ابورافع وايي زه دحضرت عباس غلام وم ، اسلام زموږ کورني ته داخلو ،ماعباس رضي الله عنه او ميرمني يې أم الفضل ټولو اسلام راوړى ؤ خوحضرت عباس رضي الله عنه خپل دين پټ ساتى ،ابولهب بدرته نه ؤتللى اوکله چې يې دماتي خبر واورېدى نوالله تعالى ډير خوار او ذليل کړى ،خوموږ دقوت اوعزت احساس کوى ،زه يو کمزورى سړى وم دزمزم په حجره کی به مي غشي جوړول ، قسم په خداى چې زه ناست وم اوغشي مي جوړول أم الفضل هم دلته ناسته وه موږ ددې خبرپه اورېدو سره ډير خوشحاله ؤ چې يوځل ابولهب راغى ،پښې ورپسې کشيدى ، دحجرې پريوه څنډ کښينستى شايې زما شاته وه هغه لاهم دلته چې ږغ وسو ،ابوسفيان بن حارث بن عبدالمطلب راغى

[۳۱۳] متفق عليه مشکوة المصابيح ۲/ ۳۴۵.

بولهب ورته وویل دلته راسه تابه حتما خبر راوړی وي ،ابورافع وایي ابوسفیان
راغلی اوله ابولهب سره کښېنستی نورټول خلک ورته ولاړ دي ،ابولهب ورته وویل
وراره وایه دخلکو څه حال ؤ ده ورته وویل : څه حال ؤ ،خبره داده چې موږ له داسي
یوه قوم سره مخامخ سوی ؤ چې په مقابله کي یې زموږ زور وتلی ؤ موږ خپل ځانونه
دوی ته حواله کړی ؤ خوښه ددوی وه چې څنګه مو وژني اوڅنګه مو بندیانوي
خوقسم په خدای زه له دې ټولو سره سره خپل خلک نه ملامتوم ځکه موږ له داسي
سپینو خلکو سره مخامخ سوی ؤچې دمځکي اوآسمان ترمینځ پرتورو اوسپینو
آسانو سپاره ؤ والله که دوی یاځه پرېښوول اونه یې څوک مخ ته ټینګیدای سوای ،
ابورافع وایي مادخیمې څنډه پورته کړه ،اوومي ویل والله چې دملائکي دي
،زیاتوي یې او وایي ابولهب لاس پورته کړی اوپرمخ یې کلکه څپیړه راکړه زه هم ور
ولاړ سوم او ورسره په جنګ سوم اوځرنګه چې زه کمزوری وم نو پورته یې کړم
اوبرمځکه یې وغورځولم اوسرېیره راباندي کښېنستی اوهلم یې په دې وخت کي
أم الفضل ولاړه سوه اودخیمې یوه ستن یې را واخیستله ابولهب ته یې پرسر داسي
ګوزار ورکی چې سریې ډیرزیات مات سو ، بیایې ورته وویل داچې مالک یې نسته
،نوکمزوري دي ولیدی ،په دې ګوزار سره ابولهب ذلیل اوسپک ولاړسو ،قسم په
خدای چې تردې وروسته یوازي اووه ورځې ژوندی ؤ چې الله تعالی په عدسه
مبتلا کړی (عدسه یوقسم دانه یا یوقسم طاعون دی چې عرب یې په بدفالی نیسي)
او له همدې عدسې څخه مړسو اوترمرګ وروسته درې ورځې هم داسي پروت ؤ
زامنویې لاس نه وروړی نه یې څوک خواته ورنږدې کېدل اونه یې چاد ښخولو فکر
کوی ،خوکله چې یې زامن دخلکو له شرم څخه وبیرېدل اوفکر یې وکی که یې
همداسي پرېږدي نوخلک به خبري ورپسې وکړي ،نومجبوره سول چې یوه کنده
ورته وکیندي بیایې له لیري څخه په یوه لرګي سره په دې کنده کي واچوی اوله
لیري څخه یې ډبري وړباندي وغورځولی ،په دې ترتیب سره دبدر په میدان کي
دکفارو د رسوایي اوماتي خبرمکې ته ورسیدی ، دې خبر دمکې پر اوسیدونکو
ډیر بداثر وکی ،آن تردې چې دوی پرمړو باندي ژړا منع اعلان کړه داپه دې خاطر
چې دمدینې خلک ددوی په ژړا نورپسې خوشحاله نه سي.

یوه په زړه پورې واقعه دا هم ده چې په دې غزاکې داسود بن مطلب درې زامن وژل سوي ؤ نوموړي په ستر گو ړوند ؤ او زړه یې غوښتل چې د زامنو پر مرگ ښه په چیغو چیغو وژاړي یوه ښه یې دیوې ښځې دژړا آواز واورېدی نو سمدستي یې خپل غلام ورولیږی او ورته وی ویل وگوره چې پر مړو باندي دژړلو اجازه ورکړل سوی ده او که څنگه ؟ آیا قریش پر خپلو مړو ژاړي چې زه پر خپل زوی ابو حکیم وژاړم، زما سینه له ډیره غمه پرچاودېدو ده ،غلام یې ولاړی کله چې بیرته راغی نو ورته وی ویل دا دهغې ښځې دژړا آواز دی چې په خپل ورک سوي اوښ پسې ژاړي ،دلته وسید له او دوس څخه یې ووتله او پر خوله یې دا شعرونه جاري سول .

أتبكي ان يضل لها بعير .... ويمنعها من النوم السهود

فلا تبكي على بكر ولكن .... على بدر تقاصرت الجدود

على بدر سراة بني هصيص .... ومخزوم ورهط أبي الوليد

وبكي ان بكيت على عقيل .... وبكي حارثا أسد الاسود

وبكيهم ،ولا تسمي جميعا .... وما لأبي حكيمة من نديد

الا قد ساد بعدهم رجال .... ولولا يوم بدر لم يسودوا

**ترجمه**: دا پردې ژاړي چې اوښ یې ورک سوی دی ؟ او پر هغه باندي یې بې خوابي خوب ورک کړی دی ،پر اوښ مه ژاړه ،بلکه پر بدر وژاړه چیري چې قسمتونه ایري سویدي ،هو! پر بدر وژاړه چیرته چې دبني هصیص ،بني مخزوم او ابولید دقبیلې سردارن دي که ژاړې نو پر عقیل وژاړه ، او دټولو نومونه مه اخله ،او دابو حکیم خو هیڅ مثل او سیال نه ؤ ،وگوره تردوي وروسته داسي خلک سرداران سول که دبدر ورځ نه وای نو کله به سرداران سوی نه وای .

## «و مدینه ته دفتحې دزیري دپاره دوه کسان لیږل»

کله چې د مسلمانانو فتح او بری پر برخه سوو نو رسول الله ﷺ د مدینې او سیدونکو ته دعاجل زیري لپاره دوه کسان ولیږل چې یو یې عبد الله بن رواحه رضي الله عنه چې د مدینې دلوړي برخې اوسیدونکو ته او بل یې زید بن حارثه رضي الله عنه ؤ چې د مدینې لاندني برخې اوسیدونکو ته دزیري لپاره لیږل سوی ؤ ،هلته په مدینه کې یهودو او منافقانو په

خپلو درواغو خبرو او پروپاګند سره پر مدینه بده ورځ جوړه کړې وه ،آن تردې چې دوی د رسول الله ﷺ د مرګ خبر هم خپور کړی ؤ او کله چې يوه منافق زيد بن حارثه رضي الله عنه د رسول الله ﷺ پر اوښ (قصوا) باندې سپور وليدی نو وی ویل محمد ﷺ وژل سوی دی او دا يې اوښ دی ، موږ خو يې پيژنو دا هم زيد بن حارثه رضي الله عنه دی چې راتښتېدلی دی او له ډېرې بيرې څخه يې هيڅ هم ترخوله نه وزي ، په هر حال دواړه زيرې راوړونکي راورسېدل ، مسلمانان پر راټول سول او د دوی خبرو ته غوږ سول بالاخره په دې باوري سول چې د مسلمانانو فتح او برې په برخه سوی دی .

په مدينه کي هرې خواته خوښۍ او خوشحالي خپره سوه ،د تکبير او : لااله الا الله . ناري پورته سوی مدينه ټوله له خوښي څخه په حرکت راغله ، مشران مسلمانان د بدر لارې ته ورغلل ترڅو خپل عظيم رهبر محمد رسول الله ﷺ ته د دې لوې فتحې مبارکي ووايي ، اسامه بن زيد رضي الله عنه وايي موږ ته د فتحې خبر هغه وخت را ورسيدی چې موږ په مدينه کي د رسول الله ﷺ په لور رقيه رضي الله عنها چې د عثمان رضي الله عنه په نکاح کي وه خاورې اړولی ،او د رقيې رضي الله عنها د خدمت لپاره زه هم رسول الله ﷺ له حضرت عثمان رضي الله عنه سره پرې اېښی وم .

## «د غنيمت د مالونو پر سر د مسلمانانو په مينځ کي اختلاف»

رسول الله ﷺ تر جنګ وروسته درې ورځې نور هم په بدر کي پاته سو او له دې ځايه لانه ؤ روان سوي چې د غنيمت د مالونو پر سر د مسلمانانو په مينځ کي اختلاف پيدا سو او کله چې دا مخالفت او اختلاف زيات سو ،نو رسول الله ﷺ امر وکی چې ټول بايد د غنيمت مالونه ده ته وسپاري ، سپاهيانو د رسول الله ﷺ امر عملي کی او ټول شيان يې ورتسليم کړل وروسته وحي راغلی او دا مشکل يې حل کی ،له عباده بن صامت رضي الله عنه څخه روايت دی وايي له رسول الله ﷺ له مدينې څخه ووتلو او بدر ته ورسيدو له خلکو (کافرانو) سره جنګ وسو، الله تعالی دښمنانو ته ماته ورکړله نو زموږ څخه يوه ډله خلک داسي ؤ چې دوی کافران پسې اخيستی ؤ او وژل به يې خو بله ډله داسي وه چې په غنيمتونو پسې سوی ؤ ،راټولول او جمع کول به يې يوه بله ډله خلک پر رسول الله ﷺ راټول سوی ؤ هسي نه چې دښمن په فريب او چم سره ضرر ور ورسوي ، دوی د رسول الله ﷺ ساتنه کوله خو کله چې شپه سول خلک سره

راټول سول نوهغو کسانو چې دغنیمتمالونه یې راوړي ؤ، وویل موږ خومالونه راټول کړی دي ،نوپه دې کي دهیچا برخه هم نسته اوهغوکسانو چې په دښمنانو پسې وتلي ؤ وویل : په دې مالونوکي ستاسي برخه زموږ تربرخي ډیره نه ده ځکه داموږ ؤ چې دښمنان مومات کړل اوله دې مالونو څخه مولیري وساتل ، اوهغه کسانو چې درسول الله ﷺ ته تاوان ونه رسوي درسول الله ﷺ په ساتنه او دفاع مشغول ؤ دامشکل راپیدا سو ترڅووحي رانازله سوه اوپه دې اړه یې داسي فیصله وکړه.

يَسْأَلُونَكَ عَنِ الأَنفَالِ قُلِ الأَنفَالُ لِلّهِ وَالرَّسُولِ فَاتَّقُواْ اللّهَ وَأَصْلِحُواْ ذَاتَ بِيْنِكُمْ وَأَطِيعُواْ اللّهَ وَرَسُولَهُ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ سورة الانفال.

**ترجمه**: پوښتنه کوي دوی له تاڅخه اې محمده ﷺ !له(حکمه) دغنائمو څخه ،ووایه دي ته چې دا اموال دغنیمتونو خاص الله جل جلاله لره دي اورسول (دالله جل جلاله) لره دي (چې تقسیم کړل سي سم له شرعي اصولوسره) نوبیرېږی تاسي له الله جل جلاله څخه او اصلاح کړی تاسي دهغه حال چې په مینځ کي ستاسي کي دي ،یعني په خپلو منځونو کي دوستي سره وکړئ اونزاع پرېږدی اوحکم ومنی تاسي دالله جل جلاله اوحکم ومنی تاسي درسول الله ﷺ که یاست تاسي مؤمنان په حقه سره ،اوتردې وروسته رسول الله ﷺ دغنیمت مالونه دمسلمانانو ترمینځ سره وویشل.[314]

## «دمدینې په لارکي دسیدالبشر ﷺ امر اود صحابه کرامو اجراء»

رسول الله ﷺ په بدر کي له درې ورځو اقامت وروسته دمدینې په طرف ولاړی مشرکان بندیان اودغنیمت مالونه هم ورسره ؤ ،اوددې نګراني یې عبدالله بن کعب رضي الله عنه ته سپارلی وه اوکله چې دصفراء د درې له تنګي څخه ووتل نوددې تنګي اونازیه سیمي ترمینځ پرتې یوې غونډۍ باندي یې واړول اودغنیمت له مال څخه یې خمس یعني پنځمه برخه جلاکړه اونور پاته یې په مساویانه توګه پرمسلمانانو وویشل ، رسول الله ﷺ دصفراء په دره کي دنضر بن حارث د وژلو حکم صادر کړی ،نوموړي دبدر په ورځ دمشرکینو بیرغ پورته کړی ؤ اودې دقریشو له هغه

---

[314] مسند امام احمد ۵/ ۳۲۳/ حاکم ۲/ ۳۲۶.

لویو مجرمینو او اسلام دښمن عناصرو څخه ؤ چې رسول الله ﷺ ته یې تاوان او تکلیف رسوی، حضرت علي رضی الله عنه د رسول الله په امر د ده سر ووهه، تردې وروسته چې کله رسول الله ﷺ عرق الظبیه ته ورسیدی.

هلته یې د عقبه بن ابی معیط د وژلو امر صادر کړی، دا هغه څوک ؤ چې رسول الله ﷺ ته یې ډیر تکلیفونه رسولي ؤ او موږ مخکي دا ډول پیښو ته هم اشاره کړی ده، دا هم هغه رذیل انسان ؤ کوم چې د لمانځه په وخت کي یې پر رسول الله ﷺ باندي د اوښ لری اچولی ؤ او دا هم هغه شیطان ؤ چې په خپل څادر سره یې رسول الله ﷺ زندی کړی ؤ او که چیري ابوبکر رضی الله عنه نه وای راغلی نو نژدې وه چې رسول الله ﷺ یې شهید کړی وای، کله چې رسول الله ﷺ د ده د وژلو امر وکی نو عقبه ورته وویل: محمد ﷺ! زما د کوچنیانو لپاره به څوک وي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل اور[۳۱۵]، ویل کیږي چې د ده سر عاصم بن ثابت انصاري رضی الله عنه او په بل روایت کي علي بن ابي طالب رضی الله عنه ووهی، د جنګي تاکتیک او استراتیژي له مخه ددې دوو رذیلانو وژل څکه ضروري ؤ چې دا دواړه نه یوازي جنګي اسیران ؤ بلکه په نني ژبه جنګي مجرمان هم ؤ.

## «د مبارکۍ ډلې»

کله چې رسول الله ﷺ روحاء ته راورسیدی، د مسلمانانو هغه مشران یې استقبال او مبارکي ویلو ته حاضر سول چې له مدینې څخه د همدې غرض په خاطر راوتلي ؤ، په دې وخت کي سلمه بن سلامة مبارکي ویونکو مسلمانانو ته وویل تاسي موږ ته د څه مبارکي راکوي؟ قسم په خدای موږ داوښانو په څیر له زړو سپین ږیرو سره مخ سوی ؤ، پر دې خبره رسول الله ﷺ تبسم وکی، او وي فرمایل: وراره! دوی د قوم مشران ؤ، اسید بن حضیر رضی الله عنه عرض وکی چې یا رسول الله ﷺ! حمد او ثناء دي وي هغه خدای چې ته یې برلاسی او بریالی کړی او ستا سترګي یې رڼې اویخي کړی، یا رسول الله ﷺ قسم په خدای زه له بدر څخه په دې ګومان نه یم پاته سوی چې ته به له دښمن سره جنګ کوی، زما دا خیال ؤ چې یوازي د کاروان خبره ده او که زه خبر وای

---

[۳۱۵] دا حدیث په صحیح کتابونو کي روایت سوی دی سنن ابی داؤد د هغه د شرحي عون المعبود سره مطالعه کړئ ۱۲/۳.

چې له دښمن سره مقابله ده نو هيڅکله به نه واي پاته سوی ،رسول الله ﷺ وفرمايل ته رښتيا وايې ،وروسته رسول الله ﷺ په داسي حال کي مديني منورې ته سرلوړی کامياب او منصور ننووت چې پر دښمنانو کوم چې په مدينه کي دننهٔ اويا دباندي ؤ هيبت او بيره لويدلی وه ،ددې عظيمي فتحې په نتيجه کي دمديني منورې ډير خلک په اسلام مشرف سول او ابن سلول او ملگري يې هم په همدې وخت کي په ظاهري توګه دمسلمانانو ليکو ته داخل سو ،مديني ته درسول الله ﷺ له تشريف راوړلو څخه يوه ورځ وروسته بنديان هم را ورسېدل ،دوی يې پر خپلو اصحابو وويشل او امرېې ورته وکی چې له بنديانو سره ښه او نيکه معامله وکړی ،اصحابو درسول الله ﷺ دامر دتعميل په خاطر له بنديانو سره دومره نيکي کوله چې په خپله به يې خرماوي خوړلی او بنديانو ته به يې ډوډۍ ورکوله ،هغه وخت په مدينه کي خرماوي ترټولو ارزانه او بې ارزښته وی خو ډوډۍ ډيره قيمتي او مهمه وه .

## «دبنديانو په باره دااصحابو سره مشوره»

کله چې رسول الله ﷺ مديني ته را ورسيدی نو دبنديانو په هکله يې له اصحابو سره مشوره وکړله چې څه بايد ورسره وسي ،ابوبکر رضي الله عنه عرض وکی چې يارسول الله ﷺ دغه بنديان زموږ ورونه ،داکازامن او خپلوان دي ،زمارأيه داده چې فديه ورڅخه واخيستل سي ،ځکه دابه دکفارو په مقابل کي له يوخوا زموږ لپاره مالي او اقتصادي تقويه او کومک وي اوله بلي خوا کيدای سي الله تعالی دوی ته هدايت وکړي او زموږ مرستندويه سي .

رسول الله ﷺ وفرمايل ته څه وايې يا ابن خطابه !ده وويل زه دابوبکر رضي الله عنه نظرنه تائيده وم بلکه زه وايم چې ماته فلانی (نوموړی دحضرت عمر رضي الله عنه قريب ؤ) په لاس راکړی چې سر يې ووهم او حضرت علي رضي الله عنه ته عقيل بن ابي طالب وسپاری چې سر يې له تنه جلاکړي ،اوعباس حضرت حمزه ته په لاس ورکړی چې غاړې يې پرېکړي ترڅو الله تعالی ووينې چې زموږ په زړونو کي دکفارو او مشرکينو لپاره رحم او مهرباني هيڅ ځای نه لري ،بنديان خود مشرکانو مشران، سرداران دي يعنی هريوه ته خپل قريب په لاس ورکړی چې کار يې ورخلاص کړي .

حضرت عمر رضي الله عنه وايي رسول الله صلى الله عليه وسلم د حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه رايه غوره وبلله اوزما نظر يې ونه مانه اوفيصله يې وكړه ، چې له بنديانو څخه فديه واخلی ، حضرت عمر رضي الله عنه وايي سبا سهار رسول الله صلى الله عليه وسلم اوابوبكر رضي الله عنه ته ورغلم كه ګورم دوی دواړه ژاړي ،ماورته وویل يارسول الله صلى الله عليه وسلم ولي ؟ته اوملګرى دي پرڅه ژاړئ؟ پوه مي كړه كه دژړا وجه راته ښكاره سوه نوزه به هم درسره وژاړم اوكه دژړا وجه نه وه نوستاسي حضراتو پرژړا به وژاړم. رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : پرهغه څه ژاړم چې دفديې قبلولو له امله ستاملګرو ته پيښ سوی دی ماته د دوی عذاب تردې درختي (يوې درختي ته يې اشاره وكړه) هم لنډ رابنوول سوی دی ،الله جل جلاله دايتونه نازل كړي دي :

مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَن يَكُونَ لَهُ أَسْرَى حَتَّى يُثْخِنَ فِي الأَرْضِ تُرِيدُونَ عَرَضَ الدُّنْيَا وَاللَّهُ يُرِيدُ الآخِرَةَ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ سورة الانفال

**ترجمه**: نه ښايي نبي لره داچې وي ده لره بنديان (چې فديه ورڅخه واخلی)ترهغه وخته چې قوي سي په مځكه كی (دكفارو د ډير قتل اوجرحي په سبب) اماده كوی تاسي(اې مؤمنانو) اسباب ددنيا په اخيستلو دفديې سره او الله جل جلاله اراده لري تاسي لره دثواب دآخرت دكفارو دقتل په سبب او الله ښه غالب،قوی(په انفاذ داحكامو ،ښه حكمت والادی چې هركارپه تدبيرا و مصلحت سره كوي ازلي حكم له جانبه دالله چې لومړی ليكل سوی دی په لوح محفوظ كي) نوخامخا رسيدلی به وای تاسي په عوض دهغه فديې چې اخيستی ده تاسي عذاب ډير لوی اوهغه نوشته چې دالله له طرف يې سبقت كيۍ داوچې :

فَإِمَّا مَنًّا بَعْدُ وَإِمَّا فِدَاء .سورة محمد آيت (٤) **ترجمه**:چې يااحسان ورباندي وكړي اويايې دفديې په بدل كي خوشي كړي.داآيت دبنديانو په مقابل كي دفديې اخيستلو اجازه وركوي ، اوهمدا وجه وه چې اصحاب دفديې قبلولو په وجه په عذاب نه سول،بلكی يوازي عتاب اوسرزنش ورباندي نازل سو، هغه هم په دې خاطر چې دوی كفارو له ښو ځپلو اوډيروژلو څخه مخكي اسيران كړل اوبله داچې دوی له داسي خلكو څخه فديه واخيستله چې نه يوازي جنګي بنديان ۇ بلكي

جنګي لوی مجرمان هم ؤ ،داسي جنګي مجرمان چې دجنګ ننی قانون يې هم بيله محاکمې نه پرېږدی اوڅرګنده ده چې پردا ډول مجرمينو يابه داعدام حکم کيږي اويابه په دائمي بند محکومیږي ، په هرحال دابوبکر رضي الله عنه له مشورې سره سم له بنديانو څخه فديه واخيستل سوه دفديې اندازه له څلور زره اودرې زره درهمو څخه تر زرو درهمو پورې تاکل سوی وه ، او څرنګه چې دمکې خلک په ليک ،لوست پوهېدل اودمدينې خلک ورڅخه محروم ؤ نودا فيصله هم وسوه هغه بنديان چې دفديې اداکولو وس نه لري نوهغه دې دمدينې لسو هلکانو ته ليک لوست ورزده کړي اوکله چې دهلکانو ليک لوست زده کړی نوهمدا ددې بندي فديه سوه ،رسول الله ﷺ پرځينو بنديانو ځانګړی احسان اومنت هم کښيښووی ،دوی يې بيله فديې آزاد کړل ،له دې جملې څخه مطلب بن حنطب ،صيفي بن ابي رفاعة اوابو غزة الجمحي ؤ ،داوروسته بيا داحد په غزا کي بنديان سول ،ددې تفصيل مخ ته راروان دی همدا راز رسول الله ﷺ پرخپل زوم ابی العاص هم احسان وکی ،هغه يې ايله کی خوداشرط يې ورباندې کښيښووی چې دزينب رضي الله عنها مخه به نه نيسي ، يعني اجازه به ورکوی ،چې هجرت وکړي ، ددې وجه داده چې زينب رضي الله عنها دخپل ميړه ابی العاص دايله کېدو اوفديې ادا کولو په خاطر څه اندازه رالېږلی وه ،په دې شيانوکي يوامیل هم ؤ (دغه اميل په اصل کي دخديجې رضي الله عنها ؤ کله چې يې خپلي لور زينب رضي الله عنها دابو العاص کور ته رخصتوله نودا اميل يې ورکی) کله چې رسول الله ﷺ داميل وليدی نو زړه يې ډېر نرم سو اوله اصحابو څخه يې دابوعاص دايله کېدو اجازه وغوښتله ،اصحابو قبوله کړه ،خورسول الله ﷺ پرابو العاص دا شرط کښيښووی چې زينب رضي الله عنها ته به اجازه ورکوی چې مدينې ته راسي ،ابوالعاص پرخپل شرط وفا وکړه ،اوزينب رضي الله عنها مدينې ته مهاجره سوه ،رسول الله ﷺ زيد بن حارثه رضي الله عنه اويو انصاري ته وظيفه ورکړه چې ولاړ سي اود ياجج په دره کي ترهغو انتظار سی ترڅو زينب درباندی راسي نوبيايې له ځان سره راولی ،دوی ولاړل اودرسول الله ﷺ لورېې راوستله ، ددې هجرت قيصه ډيره اوږده اوترحد زياته دردونکی ده.

دبنديانو په ډله کي مشهور او تيز ژبانه خطيب سهيل بن عمرو هم ؤ، حضرت عمر ﷺ رسول الله ته عرض وکی چې دده دمخ دواړه غاښونه ورمات کړه، چې ژبه يې بنده بنده کيږي، او بيا به هيڅ ځای هم ستا پرخلاف خپل مغرضانه خطبه نه سي ويلای، خو نبي ﷺ د حضرت عمر ﷺ وړانديز رد کی، ځکه دا دمثلې په جمله کي راځي او په دې سره د قيامت په ورځ د الله ﷻ د کرفت بيره وه.

سعد بن نعمان ﷺ دعمري اداکولو لپاره مکې ته ولاړی، هلته ابو سفيان بندي کی دابو سفيان زوی عمرو هم په دې بنديانو کی ؤ نو هغه يې خپل پلار ابو سفيان ته ور وليږی او په بدل کي يې سعد بن نعمان ﷺ آزاد کی.

## «ددې غزا په باره دانفال سورت نازل سو»

ددې غزا په هکله دانفال سورت نازل سو، او که چيري دا تعبير درست وي نو ويلای سو چې دا سورة په حقيقت کي پردې غزا باندي يوه الهي تبصره وه خو دا داسي تبصره وه چې له هغو تبصرو سره يې ډير توپير درلودی، کوم چې باچهان او دلښکر قومندانان يې له فتحې وروسته خلکو ته اوروي، الله تعالی په پيل کي دمسلمانانو نظر دهغو تقصيراتو او اخلاقي کمزوريو په طرف را وګرځوی، کوم چې لاتراوسه له دوی سره موجودي وی او ځيني خويې په همدې وخت کي له دوی څخه پيښي سوی وی، داهم په دې خاطر چې مسلمانان ځانونه له دې نقايصو څخه پاک کړي او دکمال او عظمت لوړ مقام ته پورته سي، په دې پسې له مسلمانانو سره دالله تعالی دنصرت او غيبي کومک يادونه وکړه، ددې هدف داؤ چې مسلمانان په خپل قوت او شجاعت غره نه سي. کبر او غرور يې زړونو ته لارپيدا نه کړي، بلکه دوی بايد تل پر الله ﷻ توکل ولري، او دالله او رسول الله ﷺ په وړاندي تسليم او فرمانبردار وو سيږي، ورپسې يې هغو لوړو او غوره اهدافو ته اشاره وفرمايله، دکومو لپاره چې رسول الله ﷺ دې خونړي جګړې ته ننوتی ؤ او هغه صفات او اخلاق يې په ګوته کړل دکومو په وجه چې دوی ته فتحه اوبری ورپه برخه سوی وه او يا دهغې په ذريعه جنګونه ګټل کيدای سي، بيا يې مشرکينو منافقينو، يهودو او جنګي بنديانو ته خطاب فرمايلی، ډير فصيح او بليغ نصيحت يې ورته کوي، ترڅو دوی دحق په وړاندي تسليم سي، او پرحقيقت اعتراف وکړي، وروسته يې

مسلمانان مخاطب ګرځولي دي او د غنيمت په هکله يې اساسي او څرګند اصول او قوانين ورته بيان کړي دي ، په دې پسې يې د جنګ او سولې هغه قوانين او اصول توضيح او تشريح کړي دي چې په دې وخت کې اسلام دعوت اړتيا ورته درلوده ، دا د دې لپاره چې د مسلمانانو جيګ بايد د جاهليت له جنګ څخه جلا او په لوړه سويه وي او مسلمانان بايد په اخلاقي ، عملي او ټول نورو اړخونو کې له نورو څخه مخکې او وړاندې وي او دنيا بايد په دې پوه سي چې اسلام خالي نظريه نه ده بلکه اسلام خپل پيروان پرټولو هغو اصولو او مقرراتو په عملي توګه سنګاروي د کومو چې د غه دين غوښتونکي دي او نور خلګ ورته رابولي ، بيايې د اسلامي حکومت د قانون او دستور د ځينو موادو يادونه وکړه او له دې څخه دا په ډاګه کيږي چې د اسلامي حکومت له حدودو څخه د ننه او د باندي او سيدونکو مسلمانانو ترمينځ څه توپير وجود نه لري .

## «په راتلونکي کي نوري پيښي»

د دويم کال د رمضان په مياشت کي د رمضان روژه او صدقه فطر فرض سوه ، د زکات د مختلفو نصابونو تفصيل او بيان هم راغی ، د صدقه فطر ، صدقې او زکوة د نصاب په فرضيت او بيان سره د هغه فقيرو او بې وسه مهاجرينو ډير مشکلات او ستونزي حل سوی له کومو سره چې د سفر او کارتوان او قدرت نه ؤ ، ترټولو د خوشحالۍ خبره او ډير نيک تصادف دا ؤ چې مسلمانانو لومړنی اختر چې د دويم هجري کال د شوال په لومړۍ ورځ ؤ هغه وخت ولمانځه چې دوی د بدر په ميدان کي لويه فتحه او کاميابي هم ترلاسه کړې وه ، څومره بختور ؤ دغه اختر چې الله جل جلاله مسلمانانو ته د بري او عزت له تاج ورپه سر کولو څخه وروسته راوستلی ؤ ، څومره زړه راکښوونکی ؤ د هغه لمانځه صحنه چې مسلمانانو له خپلو کورونو څخه په داسي حال کي ورته راوتلي ؤ چې پرژبو يې د توحيد ، تکبير او تحميد کلمې جاري وی ، هو مسلمانان په داسي حال کي د اختر لمونځ په هغه ميدان کي اداکوي چې د تکبيرناري يې آسمان ته پورته سوی او زړونه يې د الله تعالی له ميني ډک او د الله تعالی د نعمتونو او مهربانيو له امله يې شکرونه اېستل ، د عجز سرونه يې ورته

ټېټول او سترګي يې دخپل رب دلازيات رحمت اورضا په طرف کړې کړې وي ، الله تعالى خپلو دې نعمتونو ته اشاره کوي اوداسي فرمايي :

وَاذْكُرُوا إِذْ أَنتُمْ قَلِيلٌ مُّسْتَضْعَفُونَ فِي الْأَرْضِ تَخَافُونَ أَن يَتَخَطَّفَكُمُ النَّاسُ فَآوَاكُمْ وَأَيَّدَكُم بِنَصْرِهِ وَرَزَقَكُم مِّنَ الطَّيِّبَاتِ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ سورة الانفال

**ترجمه**: اوياد کړئ تاسي هغه وخت چې تاسي لږضعيفان (مغلوبان ګڼل سوي واست په ځمکه کي) بيريدلاست تاسي له دې څخه چې وبه تښتوي په تيزي سره تاسي خلک يعني مغلوب به کړي تاسي قريش يافارس ياروم ، نوځاى درکړى الله جل جلاله تاسي ته اوقوت يې درکى تاسي ته په کومک سره او روزي يې درکړه تاسي ته له (پاکو شيانو څخه لکه غنائم) لپاره ددې چې تاسي شکر اداکړى .

## «دبدر اوأحد ترمابين فوجي عمليات»

بدر دمسلمانانو اومشرکينو ترمينځ لومړى پرېکنده وسله واله نښته وه، په دې غزا کي فتحه اوبري دمسلمانانو په برخه سو، ددغه جنګ له نتائجو څخه دوې ډلي خلک ډېر غمجن او ناآرامه وه ، لومړى هغه ډله مشرکين وُچې په جنګ کی مستقيما تاوانيان سوى وُ، دمال اوسر ډېرتاوان ور اوښتى وُاودويمه ډله يهود وه ،ځکه دوى ته دمسلمانانو عزت اوکاميابي خپل دين اواقتصادي موجوديت ته لوى خطر او ملامتونکى ګوزار باله ، نو ددوى ټولو پر زړونو اوربل سوى وُ اوله ډېرغم اوغوصې څخه په ځان نه پوهېدل .

لَتَجِدَنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَدَاوَةً لِّلَّذِينَ آمَنُوا الْيَهُودَ وَالَّذِينَ أَشْرَكُوا .سورة المائده آيت (۸۲)

**ترجمه**: له مسلمانانو سره ترټولو زياته دښمني ديهودو اومشرکانو ده ،اوپه مدينه کي داسي کسان هم وُ چې په ښکاره يې له مجبوريت اودخپل وقار ساتلو په خاطر اسلام راوړى وُ خو په پټه اوواقعيت کی له مشرکينو اويهوذو سره ملګري وُ،داد ابى ابن سلول ډله ده ،دې دريمي ډلي هم مسلمانانو سره لکه د دوو نورو ډلو په شان زياته کينه اودښمني درلوده ،څلورمه ډله خلک هم وُ،دوى مدينې شا وخوا ميشت بدويان اوکوچيان وُ،دوې ته کفر او اسلام اهميت نه درلودى ،د دوى ژوند پرغلا اوچور روان وُ اودمسلمانانو له دې فتحي اوبري څخه ډېر په تشويش کي

سول ، ځکه دوی فکر کوی که چیرې په مدینه کې یوپیاوړې حکومت قائم سي نو بیاخوبه حتما له چور او چپاول څخه د دوی لاسونه ورلنډوي ، په داسي حال کې چې د دوی د روزی ګټلو طریقه او لاره همدا ده ، نو د دوی زړونه هم د مسلمانانو له دښمنۍ او عداوت څخه ډک سول ، په دې ترتیب سره مسلمانان له ټولو خواوو څخه له خطرونو او تهدیدونو سره مخ سول ، خو مخکې یادو سوو ډلو له مسلمانانو سره د معاملې بیلي بیلي لاري ونیولی ، هري ډلي هغه طریقه غوره کړه چې د خپلو اهدافو د تحقق لپاره یې مناسبه بلله ، د مدینې او شا و خوا برخو هغو خلګو چې په ښکاره یې ځانونه اسلام ته منسوبول د مسلمانانو پر خلاف د فتنو ، دسیسو ، توطئو او نورو مشکلاتو راوړلو لاره خپله کړیوه ، هلته د مکې کفارو د انتقام او غچ اخیستلو لپاره متې رانغښتلي او د حملې تیاري یې نیوله او لکه چې مکې مسلمانانو ته د حال په ژبه داسي پیام ورلیږلی ؤ .

ولابد من يوم أعز محجل ..... يطول استماعي بعده للنوادب

**ترجمه**: داسي یوه ړنا او ځلانده ورځ ډیره ضروري ده چې له هغې وروسته ترډیره وخته پر مړو ژړېدونک ژړا اورم وروسته همداسي وسول ، یو کال وروسته د مکې مشرکینو د مدینې په پولو کې د احد په نامه مشهور جنګ تود کی کوم چې د مسلمانانو پر هیبت او منزلت ډیر منفي اثر واچوی ، خو مسلمانانو د دې ټولو خطرونو مقابلې ته ودرېدل او د دې خطرونو په ختمۍ کولو کې یې داسي رول ولو باوه چې د رسول الله ﷺ په قیادت ، عظمت ، ویښتانه د خطرونو په پوره پیژندنه او ادراک د خطرونو د له منځه وړلو په خاطر دده پر حکیمانه تدبیر او تخطیط دلالت کوي چې په راتلونکو صفحو کې به لنډه اشاره هم ورته وکړو .

## «د کدر په علاقه کې د بني سلیم غزا او د هغوی پاته غنائم»

د بدر له غزا وروسته د مدینې استخباراتو رسول الله ﷺ ته لومړی دا خبر راوړی چې غطفان قبیلې یوه څانګه چې بني سلیم پر مدینه باندی د حملې تیاری نیسي ، نو رسول الله ﷺ له دوو سوو کسانو سره په ناڅاپه توګه د دوی مقابلې ته ور روان

سول او د کدر[۳۱۶] ترسیمي مخکی ورغله ،بنوسلیم په ځان کي دمقابلې توان ونه لیدی او وتښتېدل ، اوپنځه سوه اوښان یې دلته پرځای پرېښوول ،مسلمانانو هغه ونیول ، وروسته رسول الله ﷺ له خمس اخیستلو وروسته هغه پرلښکر وویشل ، هرچاته دوه اوښان ورسېدل ،په دې وخت کي یې د(یسار) په نامه یو غلام هم ونیوی چې بیایې آزاد کړی،رسول الله ﷺ دلته د درو ورځو تر تیرولو وروسته بیرته مدینې ته راغلی .

داغزا له بدر څخه تر راستنېدو اووه ورځې یعني د دویم هجري کال دشوال په میاشت کي پېښه سوې وه ، رسول الله ﷺ په دې غزا کي سباع بن عرفطه او په بل روایت کي ابن ام مکتوم رضي الله عنه[۳۱۷] په مدینه کي خپل خلیفه ټاکلی ؤ .

## «دسیدالبشر ﷺ دقتل پلان اوتدبیر جوړیدل»

دبدر په غزاکي دماتي له امله کفار ټول په لړزه راغلی ؤ ،اور پربل ؤ او که له رسول الله ﷺ سره دښمني اوکینې څخه دجوش کټوي په ځیر خوټیده ،بالاخره دوه قهرمانان یا غښتلي ځوانان فیصله کوي اوتصمیم نیسي چې د دوی په ګومان د دوی دخلاف اوبدبختي ،ذلت اوسپکاوي اصلي عامل یعني رسول الله ﷺ به له مینځه وړي ،له بدر څخه کمه موده وروسته عمیر بن وهب جمحي له صفوان بن امیه سره په حطیم کی ناست ؤ عمیر خودمکې هغه شیطان ؤ چې رسول الله ﷺ اواصحابو ته یې ډیر تکلیف رسوی او زوی یې وهب په بدر کي نبدي سوی ؤ ،دلته یې په بدر کي دوژل سوو کفارو قصه وکړه ،نو صفوان ورته وویل :له دې وروسته په ژوندکي خیر اوخوند نسته ، عمیر ورته وویل رښتیادي وویل ،قسم په خدای که داقرض راباندي نه وای چې وجه یې هم نه ورته لرم او دا اولاد مي نه وای چې له مرګ وروسته ورباندي بیرېږم نو همدااوس پراوښ سپرېدم ترڅومي محمد ﷺ وژلي وای زما بهانه هم جوړه ده زوی مي له دوی سره بندي دی،صفوان دا فرصت غنیمت وګاڼه ،ورته وی ویل : قرض دي پرما زه یې اداکوم ستا اولاد به هم زما له

---

[۳۱۶] کدر داسې یو مرغه دی چي دهغه په رنګ کي یوه اندازه خړوالی دی او دا د مکی اوهم شام په تجارتي لاره کي دنجد په علاقه کي دبنوسلیم یو اوبه خور وو.

[۳۱۷] زادالمعاد۲/ ۹۰،ابن هشام ۲/ ۴۳/ ۴۴، مختصر سیرت الرسول ص ۲۳۶.

اولاد سره یوځای وي یعني لکه زما دخپل اولاد په شان به وي، اوترڅو چې ژوندي
وي کفالت اوسرپرستي به یې کووم اوداسي به نه سي پیښنه چې زه څه ولرم او دوی
ته یې ورنکړم .بیاعمیر ولاړی توره یې تیره کړه اوزهر جنه یې کړه مخ دمدینې په
طرف روان سو ،کله چې هلته ورسیدی اودمسجد له دروازې سره یې اوښه چوکوله ،
په دې وخت کي حضرت عمر رضي الله عنه چې دمسلمانانو سره یې دبدر په غزا کي دالله
تعالی دکرم اونصرت خبري کولی متوجه سو اوسترګي یې پرعمیر ولګیدلی ،وی
ویل داسپی ،داداالله دښمن دڅه شر اوفتنې لپاره راغلی دی ،سمدستي رسول الله
ﷺ ته ورغلی او ورته وی ویل : یارسول الله ﷺ دخدای دښمن عمیر توره په لاس
راغلی دی ،رسول الله ﷺ وفرمایل رایې ولی ،حضرت عمر رضي الله عنه راغی اوعمیر یې
له غاړي سره دده دتوري ترتسمي ونیوی اوڅوکسانو انصاروته یې وویل ولاړسی
له رسوله سره کښیني ،ددې خبیث خواته متوجه وسیږی ، ځکه داباوري اومطئمن
سړی نه دی ،بیایې عمیر درسول الله ﷺ حضورته وړاندي کړی کله چي رسول الله
ﷺ ولیدی نو وی فرمایل : عمره! دې پریږده اوعمیره رانژدې سه هغه ورغلی او
ورته وی ویل :سهار په خیر ،رسول الله ﷺ وفرمایل عمیره !الله تعالی ستاسي
ترتحیی غوره تحیه چې داهل جنت تحیه ده راکړي ،اوهغه اسلام دی ،بیایې ورته
وفرمایل عمیره ولي راغلی یې؟ده وویل ستاسي دې بندي راوستلی یم نیکي
ورسره وکړی ،رسول الله ﷺ ورته وفرمایل :نوداتوره دي ولي په غاړه کي اچولی
ده؟ عمیر وویل خدای دي داتوري په بلاووهیي ،ددې تورو موږ ته څه ګټه
راورسیده، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل :رښتیا وایه دڅه لپاره راغلی یې؟ده
وویل زه یوائې دهمدې غرض لپاره راغلی یم ،رسول الله ﷺ ورته وویل :نه داسي
نه ده ،ته اوصفوان چې په حطیم کي سره ناست واست ، دقریشو دقلیب(کندي)
خاوندان مویادکړل ،بیاتا وویل که زما دپور او اولاد غم نه وای نو رسول الله ﷺ
دمرګ لپاره به ورغلی وای ،بیاصفوان ستاقرض اود اولادبوجه پرخپله غاړه
واخیستی ، ترڅو تاماووژنی ،خوالله تعالی ستادشوم هدف نه ترسره کوي ، ددې په
اوریدوسره عمیروویل : زه شاهدي ورکوم چې ته دالله جل جلاله رسول یې ،یارسول الله
ﷺ !کله چې به تا دوحي اوآسمان خبر راوړی نوموږ به نه منی ،خواخبره چې زما

اوصفوان پرته بل هیچا هم اورېدلی نه ده ،قسم په خدای چې ته الله تعالی په خبرکړی یې ،ثناء اوصفت دي وي هغه خدای ﷻ لره چې داسلام په طرف یې زما لاربښوونه وکړه اودې ځای ته یې راوستلم ،وروسته یې دشهادت کلمه وویله ،نورسول الله ﷺ اصحابو ته وفرمایل : خپل وروړ ته دین ور زده کړی ، قرآن ورته وواياست ،اوبندي یې آزاد کړی ،هلته په مکه کي صفوان خلګو ته وویل ډیر ژر به داسي پیښني خیرواوری چې دبدر غم به مو وربانديې هیرسي ،اوتل به یې له خلګو څخه دعمیر په هکله پوښتني کولی ، بالاخره یوه سپاره په دې خبرکړی چې عمیر مسلمان سوی دی ،نوصفوان قسم وکی چې نو ربه نه ورسره خبري وکړي اونه به څه ګټه ور ورسوي ،عمیربیامکې ته راغلی اوهم هلته دیره سو،خلګ یې اسلام ته رابلل اودده په لاس ډیرکسان مسلمانان سول او اسلام یې قبول کی .[318]

## «دبنی قینقاع غزوه»

په تیرو صفحو کي مو له یهودو سره درسول الله ﷺ دمعاهدې یادونه وکړه ،رسول الله ﷺ په خپل ټول وس سره ددې معاهدې دعملي کولو هیله او امید درلودی او دتطبیق په میدان کي یې له یوه مسلمان څخه هم داسي کوم کارنه دی سوی چې دنوموړي معاهدې له کوم بند اومادې سره دي تناقض ولري ،خویهودو کوم چې تاریخ یې ټول له غدر،خیانت ،بې وفایي اوعهد شکني څخه ډک دی،داځل هم وفاونه سوه ،ډیرژر خپل پخواني حالت واوښتل، دمسلمانانو په مینځ کي یې دتوطئو،پریشانیو، فتنوو اوسازشونو را ولاړولو هلي ځلي شروع کړی،راځي د یهودو ددې ډول مکاریو یومثال هم ترنظر تیر کړو .

## «یهود او دهغوی دمکرونو،فریبونو یوه نمونه»

ابن اسحاق وایي یو وار یهودي شاس بن قیس چې ډیر سپین ږیری ،غټ کافر اود مسلمانانو ترټولولوی دښمن ؤ،داصحابو له یوه مجلس سره تیریدی ، که ګوري چې هلته داوس اوخزرج ډیرخلګ ګډ سره ناست دي ،یوله بل سره خبري اتري کوي ،یهودي چې داولیدل چې اسلام داد جاهلیت په دوران کي سره دښمني قبیلې یې څه ډول سره یوکړي دي ، دمیني اومحبت په مزي یې سره تړلي دي نوپه زړه کي یې

---

[318] ابن هشام ۱/ ۶۶۱، ۶۶۲، ۶۶۳.

دعداوت او حسد داور لمبې بلې سوی ، وی ویل دلته دبنو قیله سرداران سره یوسوي دي ،قسم په خدای ددوی له اتحاد اویووالي څخه وروسته زمونږ تیکه اوګذران ډیرګران دی دافکر یې وکی اوهغه یهودي ځوان ته یې چې له ده سره ؤ وویل د دوی مجلس ته ورسه !ورسره کښینه دبعاث دجنګ اوله هغه څخه مخکې حالاتو یادونه وکړه اوهغه اشعار ورته ووایه کوم چې دواړو طرفونو یعني اوس اوخزرج په دې هکله ویلي ؤ ،هغه ځوان ولاړی اوهمداسي یې وکړل،نواوس او خزرج خبري اومناقشې پیل کړی، یوپربل یې دفخر او ویاؤ څرګندونه کوله ، سره مخالف سول ترڅوله دوی څخه دوه کسان راپورته سول ،یودبل پرخلاف یې خبري وکړلې ،بالاخره یوبل ته وویل :که غواړی نوهمدا اوس به بیادهم هغه خپل منځني جنګ اور بیا را تازه کړو ،دواړي قبیلې په غوصه سوی او سره ووی صحیح ده نوراځي چې دحرة میدان ته چې سره معلومه یې کړو ،اوناري یې وکړلې، سلاح یې راوړی ،تول راووتل اونژدي وه چې دجنګ اوربل سي ،داخبر رسول الله ﷺ ته ورسیدی ،هغه مبارک له شمیر مهاجرینو سره یوځای تشریف راوړی اووی فرمایل : اې مسلمانانو !الله جل جلاله درپه یاد کړی ،خدای ته وګوری بیادجاهلیت ناره او دعوه، هغه هم په داسي حال کي چې زه ستاسي په مینځ کي موجود یم ، او وروسته ترهغه چې الله تعالی په اسلام مشرف کړلاست ، له جاهلیت څخه جلا اوله کفر څخه یې نجات درکی اوپه زړونو کي یې یودبل مینه اوالفت درواچوی ،هم داوه چې دوی (اوس اوخزرج) هم پوه سول چې دایو شیطاني حرکت وسوسه اوددښمنانو چم اوفریب ؤ ،ژر په حقیقت پوه سول ،له سترګو څخه یې اوښکي را رواني سوی،یل بل یې په غیږ کي سره ونیول اوبیاله رسول الله ﷺ سره په پوره اخلاص اواطاعت په داسي حال کي روان سول چې الله تعالی داسلام ددښمن شاس بن قیس له مکر اوفریب څخه نجات وره برخه کی .[۳۱۹]

دادمسلمانانو په مینځ کي دیهودو دفریبو اوفتنو یوه کوچنۍ نمونه وه ، اودهغي سلسلې یوه کړی، وه کوم چې یهودیانو داسلامي دعوت دمخنیوي لپاره په کار اچولې وه،دوی ددې شوم هدف اومقصد لپاره مختلفي لاري اوډیري منصوبې

---

[۳۱۹] ابن ... ۱/ ۵۵۵، ۵۵۶.

جوړې کړې وي بې اساسه او دروغجن تبليغات به يې کول، سهار به يې ايمان راوړي ماښام به بيرته کافران سول، دا ددې په خاطر چې له کمزورو مسلمانانو سره داسلام په هکله شکوک اوشبهې راپيداسي اوپرهغو مسلمانانو به يې اقتصادي فشار راوړي اوژوند به يې تنګوي له کومو سره به چې دوی مالي معامله درلوده، که به د دوی پور پرباندې ؤ نو سهار اوماښام به يې دروازې ته ولاړ اودپورد اداکولو غوښته به يې ورڅخه کوله ،او که دمسلمان قرض به پردوی ؤ نونه به يې ورکوی ،په ظلم اوزياتي سره به يې خوړي ،چې خپل دين پرې اېښې دی نواوس زموږ اوستاسې څه معامله نسته[320] ،دابايد په ياد ولرو چې يهودو داډول کارونه اوفتنې له بدر څخه مخکې شروع کړې وې داسره له دې چې له رسول الله ﷺ سره يې معاهده هم درلوده ،ديهودو ددې ناوړه اعمالو په وړاندې رسول الله ﷺ اواصحابو له صبر اوزغم څخه کاراخيستی اوداطمعه يې درلوده چې کېدای سي دوی دهدايت اوحقيقت لاره غوره کړي اوبله داچې رسول الله ﷺ غوښتل په سيمه کې امن اوآرامي حاکمه کړي.

## «دبني قينقاع له طرفه عهد مات شو»

کله چې يهودو وليدل چې الله عزوجل دبدر په ميدان کې دمسلمانانو بې اندازې مرسته وکړه،عزت اوشوکت يې ورپه برخه کې اودهرچاليري وي که نژدې په زړه کې داسلام او مسلمانانو دهيبت اوعظمت اثر پرېوتی نو د دوی په زړونوکې ددښمنی اوحسد اور په لمبوسو، نويې خپل عداوت پټ نه سوای کولی ،په ښکاره يې دبغاوت بيرغ پورته کی او دمخامخ مقابلې ميدان ته راووتل ،په يهودو کې ترټولو کينه ناک اوډيرشرير (کعب بن اشرف ؤ) چې وروسته به يې خبرې وکړو ، اوترټولو زياته شرير اوطائفه دبن قينقاع قبيله وه ،داقبيله په مدينه کې دننه اوسيدله ،کلی يې ددې په نامه يادېدی ،د دوی زياتره خلک يا زرګران ؤ ياآهنګران اويا لوښې جوړونکې کلالان ؤ اودهمدې کسب اوکار له برکته له هريوه سره دجنګ ساز اوسامان هم ؤ ،دوی اووه سوه جنګيالان درلودل ، په غيرت کې هم تر نورو يهودو

---

[320] مفسرينو عليهم الرحمة دآل عمران او نورو سورتونو په تفسير کې ديهودو له دې ډول عملونو څخه يادآوري کړې ده.

غبنتلي ؤ اوهم دوی تړهولو مخکي عهد او پیمان مات کی ،وروسته تردې چې الله ﷻ مسلمانان په بدر کي بریالي او برلاسي کړل نو ددې یهودو طغیان او سرکښي زیاته سوه ،د مسلمانانو پرخلاف یې خپل شرارتونه او خباثتونه زیات کړل ،د هیڅ ډول ګډوډۍ څخه یې لاس نه اخیستی ، هرمسلمان چې به د دوی بازار ته ورتلی رشخند به یې په وهی او تکلیف به یې ورسوی آن تردې چې ددې خبیثانو له شرڅخه مسلماني ښځي هم په امن نه وې ،کله چې د دوی سرکښي او شرارتونه ترحد زیات سول ،رسول الله ﷺ راټول کړل او وعظ او نصحیت یې ورته وکی او دحق او هدایت طرف ته یې راوبلل،دظلم او بغاوت له بدانجام څخه یې وبیرول ، خودوی له خپل شر اوتکبر څخه لاس وانه خیستی ، او خپله بدمعاشي یې جاري ساتله ،ابوداؤد اونور له ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت کوي وایي کله چې دبدر په ورځ رسول الله ﷺ قریشو ته ماته ورکړله او بیا مدینې ته راغی ،یهود یې دبني قینقاع په بازار کي سره راټول کړل او ورته وی فرمایل : اې یهودو ! مخکي تردې چې دقریشو له سرنوشت سره مخامخ سی اسلام راوړی ، دوی ورته وویل :اې محمده ﷺ !ګوره دادی په غوره کي نه کي او په دې غره نه سی چې یوڅوله جګړو سره ناآشنا قریشان دي ووژل ، ته که زموږ سره دجنګ ډګر ته ووځي نو پوه به سی چې موږ څوک یو اوباور به وکړی چې مخکي له دې څخه زموږ په ډول خلګو سره نه یې مخ سوی،نو په دې اړه الله ﷻ دا آیتونه رانازل کړل :

قُل لِّلَّذِينَ كَفَرُواْ سَتُغْلَبُونَ وَتُحْشَرُونَ إِلَىٰ جَهَنَّمَ وَبِئْسَ الْمِهَادُ قَدْ كَانَ لَكُمْ آيَةٌ فِي فِئَتَيْنِ الْتَقَتَا.

سورة آل عمران

**ترجمه**: ووایه:اې محمده ﷺ ! هغو کسانو ته چې کافران سوي دي ،ژر به مغلوب کړل سی تاسي په وژلو یا شړلو سره په دنیاکي او جمع به کړل سی (وبه شړول سی په عقبی کي) طرف د دوږخ ته ،او بدځای د هستوګني دی (دغه دوږخ)په تحقیق سره دي تاسي ته لوی عبرت (نمونه اې کتونکو !)په هغو دوو فرقو کي چې سره مخامخ سولی په بدر کي لپاره دجنګ یوه فرقه چې جنګ یې کاوه په لاره دالله کي اوبله فرقه وه چې کافره وه ،لیدل به دوی هغوی لره دوه چنده دهغوی په لیدلو

دسترګوسره اوالله قوت ورکوي په نصرت سره مرسته خپله سره هرچاته چې اراده وکړي دنصرت،بیشکه په دې لازیات اوکم لیدوکي خامخا عبرت دی لپاره دخاوندانو دبصیرت.

معلومه ده چې دبنوقینقاع ددې جواب معنی په حقیقت کې دجنګ اعلان ؤ، خو رسول الله ﷺ اومسلمانانو له صبر اوزغم څخه کاراخیستی اودفرصت انتظاریې کوی ،ځو دنبي قینقاع یهود نوهم سپین سترګي سول اوپه ډیر لږ موده کې په مدینه کې یوه داسې فتنه راولاړه کړه چې لومړی یې هم دوی وخوړل اوپه خپلولاسونویې ځانونه دمرګ او اور خوله ته ورټیل وهل ،ابن هشام له ابن عون څخه روایت کوي وایي ،یوعربي ښځي څه سامان دخرڅلاؤ لپاره دبني قینقاع بازارته راوړی اودیوه زرګرله دکان سره کښېنستله،یهودو دفتنې په خاطر غوښتنل چې مخ یې ورلڅ کړي ،خو نوموړي خپل مخ نه لڅاوه ،نوهمداوه چې زرګر ولاړسو اوپه پټه یې ددې ښځي دکالو دشابرخه یې ددې په شاپوري وروتړله ،داپه خبره نه وه اوکله چې ولاړه سوه نوبې پردې سوه ،دیهودو له خنداؤ څخه خولې وازې سوی ، ښځي چیغه وکړه یومسلمان داچیغه واورېده سمدستي راغی اوهغه یهودي زرګر یې ووژی ،ورپسې یهود راټول سول اودامسلمان یې په شهادت ورسوی ،بیادمسلمانان خپلوانو نورو مسلمانانو ته د یهودو په مقابل کې دفریاد چیغه وکړه اونتیجه یې داسوه چې دمسلمانانو اوبني قینقاع یهودو ترمینځ شراوجنګ جوړسو .

## «محاصره بیاتسلمې اووطن څخه جدائي»

نورنوددې واقعې وروسته دنبي کریم ﷺ دصبراوزغم کاسه ډکه سوه،ابولبابه بن عبدالمنذر رضي الله عنه یې دمدینې خلیفه وټاکی ،دلښکر بیرغ یې حمزه بن عبدالمطلب ته ورکی،اودبني قینقاع په طرف یې حرکت وکی اود دویم هجري کال دشوال له نیمایي څخه چې یې دهفتې ورځ وه د دوی محاصره یې شروع کړله ، دامحاصره ترذالقعدې پوري یعني پوره پنځلس ورځي اوږده سوه ،بالاخره الله تعالی دیهودو په زړونوکي بیره واچوله ،ټول تسلیم سول ځانونه،مالونه او اولادونه یې درسول الله ﷺ امراوفیصلې ته وراندي کړل،رسول الله ﷺ سمدستي دیهودو دتړلو امر صادرکی او دوی ټول سره وتړل سول ،په دې وخت کې دمنافقینو مشرابی ابن سلول

را وړاندي سو او په ډېر ټینګار سره یې له رسول الله ﷺ څخه د دوی د عفوې او ایله کولو غوښتنه وکړه او ورته وی ویل : اې محمده ﷺ ! زما له حلیفانو سره نیکي وکړه ځکه بنو قینقاع له خزرج قبیلې سره عهد درلودی ، رسول الله ﷺ جواب ورنه کی هغه (ابن سلول) خپله غوښتنه بیا تکرار کړه ، خو رسول الله ﷺ مخ ورځخه واړوی ، منافق په دې هم پوه نه سو بلکه را وړاندي سو او خپل لاس ونه یې د رسول الله ﷺ په ګریوان کي ور واچول ، رسول الله ﷺ ډېر غوصه سو او وی فرمایل پرې مي ږده ، خو ارسی پرمي ږده ، خو منافق په پوره سپین سترګي خپله غوښتنه تکرار وله او ویل یې ، ترهغو دي نه پرېږدم ترڅو زما دوستان معاف نه کړی ، دادرې سوه زغره لرونکي او څلور سوه بې زغري ځوانان چې زه یې له ... و او تورو ژغورلی یم په یوه ورځ وژنی ؟ قسم په خدای چې زه د زمانې له ګردشونو ... څخه بیره نه لرم ، په پای کي رسول الله ﷺ له نومړي منافق سره چې د اسلام ښکار ... و څخه یې تقریبا یوه میاشت تیره سوی وه د نرمۍ او بخښني معامله وکړه او د ... ه په مخ کي یې ټول یهودان وبخښل خودایې ورته وویل چې په مدینه ... اوشاوخ ... ا سیمو کي داوسیدو اجازه نه لري په دې ډول سره دوی (یهودیان) له مدینې څخه ... پرشا سول او د شام په اذرعات نومي سیمي کي یې واړول چې یو زیات ... شمېر یې ... څه وخت وروسته په هلاکت ورسیدل ، رسول الله ﷺ د دوی مالونه ... و ... ځ ... دادونه قبضه کړل او له هغې جملې څخه درې لیندۍ ، درې زغري درې توري او درې نیزې یې د ځان لپاره خوښي کړی ، نور غنیمتونه یې چې د محمد بن مسلمه په واسطه راټول سوی ؤ د خمس په حساب وویشل .

## «د سویق غزاء او هم د سویق د غزا د تسمیې وجه»

په داسي حال کي چې صفوان بن امیه ، یهود او منافقان د اسلام پرخلاف په توطئو او هلوځلو بوخت ؤ ، ابوسفیان دیوه داسي تحریک او عمل په لټه کي ؤ چې خطر او تکلیف یې کم خو اثر او نوم یې ډېر ؤ ، ترڅو له یو خوا د خپل حیثیت او منزلت بیا راژوندی کړي او له بلي خوا د دوی د زور او توان ښکارندوی سي او قسم یې خوړلی ؤ نذریې ایښی ؤ چې ترهغو به له جنابته ځان نه پرېولی ترڅو یې پر حضرت محمد ﷺ حمله نه وي کړی ، همداؤ چې پرخپل قسم باندي د وفا پر اساس له د وو

سو و سپرو سره روان سو او دقناة نامي سيمي په برني خواكي پراته (نيب) نومي غره په لمن كي يې چي له مدينې څخه تقريبا دوولس ميله ليري پروت ؤ واړول خو څرنګه چې پرمدينه باندي دښكاره او مخامخ حملې توان او جرأت يې نه درلودى نوديوه غلچلي اوترويستي پلان دعملي كولو په لټه كي سو، دشپې په تياره كي دمدينې ته ننوتى، د يهودو دمشرحيى بن اخطب كورته ورغلى، هغه له بيري څخه دروازه نه ورخلاصوله، وروسته دبني نضير قبيلې ديوه بل مشر اوخزانه دارسلام بن مشكم دواړه يې ور وټكوله، هغه كورته دننه كړى، ښه ميلمستايې وركړه، شراب يې په وڅښلا ودخلكو پټ اوښكاره حالات يې ورته بيان كړل بيا ابوسفيان دشپې په آخيري برخه كي خپلو ملګرو ته ورغلى اوله هغه ځاى څخه يې يوه ډله راوليږله، دوى دمدين عريض نومي سيمي ته ننوتل او هلته يې دخرما ځيني درختي پريكړي ځينو نورو ته يې اور واچوى اويوانصاري يې چې له خپل حليف ملګري سره يې په كښت كي كار كوى ووواژه او وروسته بيرته دمكې په طرف وتښتيدل، كله چې رسول الله ﷺ له پيښي څخه خبرسو نوپه چټكي سره پسې ووتى خو ابوسفيان اوملګري يې ډيرپه تيزي سره تښتيدلي ؤ اوپه دې خاطر چې ځانونه خلاص اوبار سپک كړي دخپلي توښې اوخوراک زياته برخه يې دسويق (دغنمو يا وربشو ميده اوړه) توبري يې په لاره كي غورځولي وى، رسول الله ﷺ د دوى په لټه پسې روان ؤ آن تر (قرة الكدر) پوري ولاړى خو دوى په تيښته بريالى سوى ؤ، مسلمانانو د دوى دواړو توبرې راټولي كړى اوبيرته مدينې ته راغلل اودهمدې توبرو له وجي دغه غزا د (سويق غزا) په نامه ونومول سوه اودبدر له غزا څخه دوې مياشتي وروسته يعني د دويم هجري كال دذى الحجې په مياشت كي پيښه سوى ده اوداځل هم رسول الله ﷺ په مدينه كي ابولبابه رضي الله عنه خپل خليفه ټاكلى ؤ.

## «د ذى امر غزا په دريم كال دهجرت»

داغزا د دريم هجري كال دمحرم په مياشت كي واقع سوى ده، له احد څخه مخكي اودبدر له غزا وروسته درسول الله ﷺ ترمشري لاندي ترټولو لويه عسكري حمله وه، ددې غزا سبب دا ؤ چې رسول الله ﷺ خبرترلاسه كړى چې دبنو ثعلبه او محارب زيات شمير كسان پرمدينه باندي دحملې لپاره تياري نيسي، رسول الله ﷺ ددې

خبري په اوږدو سره سم ثلور نيم سوه سپاره اوپياده له ځان سره رهي کړل ،عثمان بن عفان رضي الله عنه يې دخليفه په توګه پرېښووی اوخپله ددښمن په طرف وګرځيدی ،دلاري په اوږدو کي اصحابو دبنو ثعلبه قبيلې جبار نومي سړی ونيوی اودرسول الله ﷺ حضورته يې ورووستی ، رسول الله ﷺ هغه ته دااسلام بلنه ورکړله اوپه اسلام مشرف سو ،بيارسول الله ﷺ هغه دحضرت بلال رضي الله عنه په لاس ورکی ترڅو د دښمن ترسيمي پوري مسلمانانو ته لار وښيي ،هلته دښمنانو درسول الله ﷺ دراتګ دخبر له اوږدو سره سم خپل ځانونه پرېښوول او شاوخوا غرونو ته وتښتيدل ،رسول الله ﷺ مخکي ولاړی اوتر(ذی امر) نومي چينې پوري چې دښمنانو دراټوليدو لپاره ټاکلی وه ورسيدی اوهلته يې واړول او ددې په خاطر چې دغليم په زړه کي نوره هم بيره او ډار واچوي اودخپل زور اوتوان اندازه ور وښيي ،پوره يوه مياشت يعني د دريم هجري کال دصفر مياشت يې ټوله هم الته تيره کړه او ورسته بيامدينې ته بيرته راغلی.[۳۲۱]

## «د کعب بن اشرف ترور او دهغه قتل»

کعب بن اشرف هغه يهودي ؤ چې تربل هرچا له اسلام اومسلمانانو سره زياته دښمني اوکينه درلوده اورسول الله ﷺ ته په تاوان رسولوکی به ترټولو وړاندي ؤ،دنوموړي مور له بني نضير اوپه خپل دطيی قبيلې له بنهان کورنۍ څخه ؤ، ډير مالدار او د آرام ژوندخاوند،د عربو په مينځ کي يې پرشاعر برسيره په حسن او ښکلا کي هم شهرت درلودی ، کلا يې دبنونضير آبادي ترشادمدينې دجنوبي برخي په ختيځ کي پرته وه ،کله چې يې دبدر په غزا کي دمسلمانانو دبري او د قريشي سردارانو دماتي اومړيني خبر واورېدی نو وی ويل آيا داخبره رښتيا ده هغه دعربو مشران اودخلګو باچهان ووژل سو ؟که دا رښتيا وي چې محمد ﷺ دوی مات کړی او وژلي دي نوبياخومرګ ترژوند بهتردی ،اوکله چې له پيښي څخه ښه باوري سو نوژبه يې راويستله په رسول الله ﷺ اومسلمانانو پسې بدرد اودکافرو ستاينه يې کوله ، دوی يې غچ اوانتقام اخيستلو ته هڅول ،په دې يې هم زړه يخ نه سو ،مکې ته ولاړی هلته د ابی وداعه السهمي دوزي مطلب ميلمه سو،دقريشو پرمړيو يې ډيروژړل اوپه غم کي يې اوږده

---

[۳۲۱] ابن هشام ۲/ ۴۴.

شعرونه وويل او كو ښښ يې كوئ چې د كفارو په زړونو كي د رسول الله ﷺ د دښمني اور هم تازه كړي او په همدې وخت كي ابوسفيان او نورو مشركانو ورڅخه وپوښتل چې زموږ دين دى خوښ دى او كه د محمد ﷺ دين؟زموږ څخه كوم طرف پرحق بولي؟ده په جواب كي ورته وويل :تاسي ترمحمد ﷺ غوره ياست او حق په جانب ياست او همدا وه چې الله تعالى دا آيتونه نازل كړل .

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتَابِ يُؤْمِنُونَ بِالْجِبْتِ وَالطَّاغُوتِ وَيَقُولُونَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا هَٰؤُلَاءِ أَهْدَىٰ مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا سَبِيلًا . سورة النساء

**ترجمه**:آيا نه دي كتلي تا هغه كسانو ته چې وركړل سوي ده دوى ته برخه له كتاب څخه ايمان راوړي دوى پربت او پرشيطان او وايي دوى په حق د هغو كسانو كي چې كافران سوي دي ،دا كفار ښه لاره موندونكي دي له هغو كسانو څخه چې مؤمنان دي له جهته دلوري ،كعب بن اشرف دا ټول په مكه كي ترسره كړل بيامدينې ته ولاړى او هلته يې خپله اوږده ژبه په مسلمانانو پسې راويستله،آن تردې چې داصحابو په پاك لمنو پسې يې قصيدې او غزلي وويلې او دوى يې ډير په تنګ كړل ، په همدې حالاتو كي رسول الله ﷺ وفرمايل :دكعب بن اشرف له شر څخه به مو څوك خلاص كړي،او له دې غم څخه به مو څوك آرام كړي؟ځكه نوموړي الله عزوجل او د هغه رسول الله ﷺ ته آزار او تكليف رسولى دى،په جواب كي محمد بن مسلمه ،عباد بن بشير،دكعب رضاعي ورور ابو نائله چې نوم يې سلكان بن سلامه ؤ، حارث بن اوس او ابوعبس بن حبر دې كارته خپله امادګي وښووله ، او همدې ډلي د محمد بن مسله ترمشري لاندي دكعب دقتل لپاره كار شروع كى ، نو روايات وايي چې رسول الله ﷺ وويل څوك به مو دكعب له شره وژغوري؟ځكه ده الله جل جلاله او دهغه رسول الله ﷺ ته اذيت رسولى دى نو محمد بن مسلمه ولاړ سو او وى ويل يارسول الله ﷺ دا كار به زه كوم ، او زيا ته يې كړله غواړي چې وي وژنم،رسول الله ﷺ وفرمايل هو! محمد بن مسلمه رضي الله عنه وويل د پلان د تطبيق په خاطر د څو خبرو اجازه راكړه ،رسول الله ﷺ ورته وفرمايل څه هرڅه چې وايي ورسره وى وايه بيامحمد بن مسلمه رضي الله عنه دكعب بن اشرف كورته ورغلى او ورته وى ويل دا سړى(اشاره يې د رسول الله ﷺ خواته وه)له موږ څخه صدقه غواړي او كه رښتيا درته ووايم نو موږ يې ډير ستومانه او په جنجال اخته كړي يو، كعب ورته وايي دا به مو نورهم ترستوني كړي ،محمد بن مسلمه رضي الله عنه په جواب كي ورته وايي اوس څه وكوو، اوس خو دا سوي دى او د هغه پيروي مومنلى ده او مناسبه به نه وي چې لاره ور څخه جلا كوو،اوس به ورسره يو

او کورو به چې د کار نتیجه یې څه خیژي ،اوس راغلی یو ترڅو یو یا دوه وسقه غله په پور راکړې (یو وسق شپیته صاعه کیږي چې تقریبا د ۱۵۰ کیلوګراموسره برابردی) کعب ورته وویل صحیح ده ،خوڅه شی به په ګروي راکړې ،ابن مسلمه رضی الله عنه ورته وویل څه غواړې؟ هغه ورته وویل ښځې په ګرو راکړه محمد بن مسلمه ورته وایي په داسې حال کي چې ته په عربو کی تر ټولو ښائسته ځواني لرې نوښځې به څرنګه درته ګرو کړو ، کعب وایي نوبیامو بچیان راسره ګرو کړئ ،ابن مسلمه وایي بچیان به څنګه ګرو کړو سبابه خلګ پیغور ورکوي چې داپه یو یا دوو وسقوغله ګرو سوي ؤ ،داخوستر عیب اوننګ دی ،څه موږ به خپله وسله درته ګرو کړو ، کعب په دې سلاسو دواړو نیته سره وټاکله چې محمد بن مسلمه به وسله ورته راوړې ،ابو نائله هم د محمد بن مسلمه رضی الله عنه په ډول پلان جوړ کړی ؤ ،کعب ته ورغلی څه وخت یې له یوځای بل ځای څخه شعرونه سره واورول ،اوبیا یې ورته وویل یاره!زه خو دیو ډیري مهمي خبري اوضرورت په خاطر درته راغلی یم اوپه دې شرط یې درته وایم چې پټه به یې ساتی ،کعب ورسره ومنله اوډاډ یې ورکئ چې ارز به نه افشا کوم ،ابونائله ورته وویل ددې (اشاره یې رسول الله ﷺ ته وه) راتګ خو زموږ لپاره غم اومصیبت سو،ټول عرب مودښمان سول ټولو په یوه خوله اویه لاس زموږ پرخلاف کاروایي وکړله ،لارې راباندې وتړل سوی ،دومره سختي راباندې راغله چې ځان اواولاد موپه خطر کې دی ،بربادي ده اوتباهي،خبري وسوی اوپه پای کي یې داهم ورته وویل زمایو څونور ملګری هم دي اوبالکل زما په ډول رأیه اونظر لري،غواړم هغه هم راولم ترڅو څه شي درباندي خرڅ اوپرموږ احسان وکړی ،په دې ترتیب سره محمد بن مسلمه رضی الله عنه اوابونائله وکولای سوای کعب په خپل دام کې راګیرکړي ،اوس که دوی له وسلي اوملګرو سره ورځي نو کعب به یې بد نه ګڼي.

بالاخره د دریم هجري کال دربیع الاول په څوارلسمه شپه داټولګی درسول الله ﷺ خدمت ته حاضره سوه اودسپوږمۍ په سپینه رڼاکې رسول الله ﷺ په خپله تربقیع غرقد پوري ولاړی اوپه دې مبارک قول سره یې رخصت کړل (دالله په نامه حرکت وکړی) اې خدایه ! ته د دوی مرستندوی سی ،بیاخپل کورته بیرته راغلی اوهلته یې په لمانځه اودعاشروع وکړه ،ترڅو الله جل جلاله دوی په خپل مقصد کې بریالي کړي ،نوموړي مجاهدین دکعب کلاته ورغلل ،ابونائله دږغ پروکی چې راووزه ، کعب راپورته سو چې دباندي راووزي ،ښځې چې نوی واده کړه وه ورته وویل په دې وخت کی چیري وزي ،داآواز ماته خطرناک ښکاره سو ،کعب ورته وایي مه بیریږه دازما وروړ محمد بن مسلمه اوبل مي رضاعي ورور

ابونائله دی ،بله داچې نرکه دتوري ګوزار ته هم وغوښتل سي ورځې اوپښه پرشا نه ږدي،داخبره يې وکړه اودباندي په داسي حال کي راووتی چې فضايې په خوشبو يې اخيستی وه،هلته ابونائله خپلو ملګرو ته ويلي ؤ کله چې کعب راسي نوزه به يې دسر بويولو په بهانه ويښتان رانيسم اوکله مي چې په دې بهانه ټينګ راونيوی نوتاسي به وربانديي ګوزارونه وکړی ،کعب راغلی څه وخت يې خبري اتري ورسره وکړی ،ابونائله ورته وويل خوښه مونه ده دعجوز نومي درې يعني خوړ ته ولاړ سو دشپې داپاته برخه به هلته تيره کړو ، ده وويل صحيح ده ،نوروان سول ،دلاري په اوږدو کي ابونائله وايي په ژوند کي مي داډول اعلی اوبهترينه خوشبويي نه ده ليدلی ،کعب ته دې خبري ډير خوند ورکی اووی ويل :زه دعربو ترټولو زياته خوشبويه ښځه لرم ،ابونائله ورته وويل اجازه ده چې سردي بوی کړم ،نو ده يې لاس په ويښتانو کي دننه کړی اوخپله هم او ملګرو ته يې هم وربوی کړی ،لږ ساعت وروسته يې بيا ده ده په اجازه همداکار تکرار کړی ،ترڅو کعب ښه ډاډه سو اودوی لږ نورهم مخکي ولاړل نوبيايې اجازه ورڅخه وغوښتله ،کعب اجازه ورکړه نولاس يې په ويښتانو کي وربند کی اوټينګ يې ونيوی اوخپلو ملګرو ته يې وويل وهی !داد الله دښمن هغوی دتورو څو ګوزارونه پر وکړل ، خوتوري يې تيری پرې سوی اويو يې هم کارو اقع نه سو،په دې وخت کی محمد بن مسلمه ﷺ خپل کنلګ ته لاس کی اوله نامه څخه يې لاندي داسي کلک واز پروکی چې ترشايې ووتی ،اود الله ﷻ دښمن داسي يوه چيغه وکړله چې هرچا واوريدله اوهم دلته ځای پرځای سو .

دمسلمانانو له دې ټولی څخه يو حارث بن اوس دخپلو ملګرو دتورو په څوکو زخمي سوی ؤ اووينې ورڅخه روانی وی ،نو ملګري يې روان سول اوکله چې دعريض ډاګ ته ورسيدل پام يې سو چې خارث خو ورسره نسته څه وخت ورته ودريدل چې هغه هم ورپسې راورسيدی نو دوی هغه پورته کی او روان سول خو کله چې بقيع الغرقد ته ورسيدل په لوړ آواز يې دتکبير ناره وکړه،رسول الله ﷺ د دوی داناره واوريده اوپوه سو چې هغه دالله ﷻ دښمن يې وژلی دی ،نوپه خپله يې تکبير ووايه اوکله چې دوی ورته راورسيدل ورته وی فرمايل بريالي اوسيږی،دوي په جواب کی ورته وويل : اوته هم بريالی اوسيږه يارسول الله ﷺ اودکعب سريې دده مبارک حضورته وړاندي کړی ،ده دخدای ﷻ شکر پرځای کی اودحارث پرزخم يې خپلي مبارکي ناړي وموږلی هغه سمدستي جوړاوروغ سو بيايې هيڅ درد نه کوی ، دکعب وژلو ديهودو په زړونو کي بيره اوخوف واچوی اوټول په دې پوه سول چې رسول الله ﷺ دامن دښمنان عهد ماتوونکي اوفتنه اچوونکي نه

پرېږدي ترڅو په مدينه کي فساد خپور کړي، لومړی نصيحت ورته کوي او که نصيحت اثر پرونه کي نو بيايې په او سپنيز سوک برابروي، يهود دومره وبيرېدل چې دخپل دې سرکښ مشرپه وژلو نه يوازي چوپ او آرام پاته سول بلکه کوښښ يې کوی چې ځانونه پرعهد اوترون پابند وښيي، په دې ډول سره رسول الله ﷺ تريوه وخته پوري د مدينې له داخلي مشکلاتو اوستونزو څخه بې غمه سو او ډېرو هغو خطراتو مخه ونيول سوه چې په مدينه کي يې دپيښېدو امکانات ډېرزيات ؤ اوس رسول الله ﷺ فرصت درلودی چې له بهرنيو مشکلاتو او خطرونو سره مقابله وکړي.

## «دبحران غزاپه دريم کال دهجرت»

دا يو لوی عسکري تحرک ؤ، هغه داسي چې د دريم هجري کال دربيع الاخر په مياشت کي رسول الله ﷺ د درې سوو کسانو په مشري بحران نومي سيمي ته وتلی ؤ، داسيمه د حجاز په فرع نومي ځای کی يو معدنياتي مقام دی، رسول الله ﷺ دهمدې کال ربيع الاخير اوجمادي الاولی مياشتي هم دلته تيري کړی او بيا مخکي له دې چې جنګ وسي مدينې ته بيرته راغلل. [۳۲۲]

## «دزيدبن حارث رضي الله عنه سريه په دريم کال دهجرت»

دا له احد څخه مخکي دمسلمانانو وروستی نظامي خوځښت ؤ چې د دريم هجري کال په جمادي الاخرکي واقع سوی دی او تفصيل يې داسي دی، قريش دبدر له غزا وروسته ډېر پرېشانه او بدحاله ؤ د اوړي په را رسيدو چې شام ته د دوی دکډې اوکوچ وخت، نو هم پرېشانه سول، ددې کال دتجارتي قافلې مشر صفوان بن اميه قريشو ته وويل محمد ﷺ او اصحابو يې زموږ تجارتي لاره بنده کړې ده، نه پوهېږو څه ورسره وکړو، ساحل خوهم د دوی دکنټرول لاندي ده دوی هم الته وجود لري او ددې منطقې (سرې بحيرې دساحل) اوسيدونکو هم سوله عهد ورسره کړی دی، نه پوهېږو په کومه لاره ولاړسو؟ که دلته په مکه کي پاته کېږو نو څه چې لرو هغه به وخورو، بيابه څه کوو، زموږ ژوند خوپه دوبي کی شام اوپه ژمي کي حبشې ته پرتجارت ولاړ دی، قريشو په دې باره کي مشورې کولی، اسود بن عبدالمطلب وويل: صفوانه! دساحل لاره پرېږده بلکه نه نجد څخه تيريدونکی

---

[۳۲۲] ابن هشام ۲/ ۵۰، زادالمعاد ۲/ ۹۱، دهمدې غزا دسبب په باره باندي ځينی وايي چې سيدالبشر ﷺ ته اطلاع راغله چې بنی سليم پر مدينه باندي حمله کوي ډېرپه زورسره راجمع سوي دي او نور مصادر لکه ابن هشام چې وايي چې سيدالبشر ﷺ دقريشو په طلب پسې وتلی وو ابن القيم داقول غوره کړی دی او دا هم صحيح دی ځکه دبنی سليم مينه په نجد کي له فرع نومي ځای علاقی څخه ازاده پروته وه.

دعراق اوږده او سخته لاره ونیسه، دغه لار چې دمدینې په ختیځ کې تیره سوې وه، قریشو ته معلومه نه وه نو اوسود پیشنهاد وکړی چې دبني بکر بن وائل قبیلې فرات بن حیان دلاروي په حیث ورسره بوزي.

دقریشو داتجارتي کاروان دصفوان په مشرې پردې نوي لار روان ؤ خو رازیې پټ پاته نه سو او خبره مدنیې ته راورسیده، چې مسلمان سوی سلیط بن نعمان دشرابو څښلو په یوه مجلس کې (دغه وخت شراب لانه ؤ حرام سوي) له نعیم بن مسعود سره یوځای سو کله چې نعیم مست او خمار سو نو دتجارتي کاروان او نوي لاري ټوله قصه یې وکړه، سلیط په ډیره چټکي سره دمدینې لاره ونیوله، ترڅو رسول الله ﷺ له موضوع خبر کړي، رسول الله ﷺ دخبر له اورېدو سره سم زید بن حارث رضي الله عنه په مشري یو سل کسیزه ډله تیاره کړه او د کاروان مخ ته یې ورولیږله زید رضي الله عنه وخوځیدی او د نجد په سیمه کې له قرد نومي چینې سره یې پر کاروان ناڅاپه حمله وکړله، ټول مالونه یې ونیول، صفوان او ملګري یې پښې سپکي کړې او دتښتې لاره یې ونیوله، مسلمانانو دقافلې لاروي او په بل روایت دوه نور کسان هم ژوندي ونیول، او تقریبا دسلو زرو په قیمت غنیمتونه یې چې لوښي او سپین زر په کښې ؤ له ځان سره راوړل، رسول الله ﷺ خمس ورڅخه جلا کی او نوري دسریې په غړو وویشل، او هغه لاره وی فرات بن حیان په اسلام مشرف سو[۳۲۳] له بدر وروسته دقریشو لپاره دا یو بل لوی غم او مصیبت ؤ حالت یې ډیر خراب سو، له هري خوا غم او خفګان وربا ندی راغی، اوس یې په وړاندي یوازې دوې لاري پاته وې، لومړی دا چې نور دکبر او غرور له ټاله څخه راکښته سي او له مسلمانانو سره دسولې او مصالحت لاره غوره کړي، بله داوه چې دداسي یو جنګ اوربل کړي چې دمسلمانانو قوت او زور ویلي کړي او دهستي له صفحې څخه یې وباسي، ترڅو دقریشو له لاسه تللی مجد او دبدبه بیرته راژوندي کړی، دقریشو سرکښانو هم دا دویمه لار غوره وبلله، دانتقام اوغچ ناره یې پورته کړه او له مسلمانانو سره یې دپرېکنده جنګ تیاري شروع کړله او له دې څخه مخکې داحد دغزا لپاره تمهید او سبب سو.

## «دانتقامي جنګ لپاره دقریشو تیاریدل»

دبدر په ډګر کې دقریشو ماتې او هم دلته د دوی دمخورو مشرانو مړیني دمکې دمشرکینو په زړونو کې اوربل کړی ؤ او دهریوه په زړه کې دانتقام او غچ اخیستلو لمبې بلې وې، خو ددې په خاطر چې غم له مسلمانانو څخه پټ وساتي نو په ښکاره یې پرخپلو مړو ژړاګاني

---

[۳۲۳] ابن هشام ۲/ ۵۰ فقه سیرة ص ۱۹، رحمة للعالمین ۲/ ۲۱۹.

بندي کړی وی او دخپلو بندیانو فدیه یې هم ځنډوله ، خوپردې ټول سره سلا سول چې
پرمسلمانانو به خپل زړونه یخوی او دیوخونړۍ جنګ اور به بلوی او دهمداسي یوعام
جنګ لپاره یې تیاری شروع کړی ،داسي یوجنګ ته خو د دوی هریو تږی ؤ خوعکرمه بن
ابوجهل ،صفوان بن امیه ابوسفیان بن حرب اوعبدالله بن ابي ربیعه په دې کارکي ترټولو
مخکي ؤ،جنګ ته دتیاري په سلسله کي دقریشو دمشرانو لومړی کار داؤ چې هغه
تجارتي کاروان یې په خپل لاس کی ونیوی کوم چې دبدر دغزا سبب سوی ؤ ،هغه چې
دابوسفیان په مشري له شام څخه سلامت بیرته راغلی ؤ په دغه کاروان کي زر اوښان
اوپنځوسوزرو دینارو په بیه نور مالونه ؤ دمالونو خاوندانو ته یې وویل :تاسي ته
معلومه ده چې محمد ﷺ ځومره زیان راواوړی سرداران یې ووژل نو ددې مالونو په
ذریعه په جنګ کي زموږ مرسته وکړی کېدای سي انتقام ورڅخه واخلو ، دوی هم ورسره
ومنله اوداټول مالونه یې دجنګ لپاره تخصیص کړل الله تعالی په دې هکله فرمایي

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ لِيَصُدُّوا عَن سَبِيلِ اللَّهِ فَسَيُنفِقُونَهَا ثُمَّ تَكُونُ عَلَيْهِمْ حَسْرَةً ثُمَّ يُغْلَبُونَ

سورة الانفال.

**ترجمه:** بیشکه هغه کسان چې کافران سوي دي نفقه کوي(لګوي) دوی مالونه خپل
لپاره ددې چې منع کړي دوی خلک له لاري دالله ﷻ څخه نو ژر به هم ولګوي دغه مالونه
بیابه سي (دغه انفاق) پردوی حسرت (پښیماني چې مال یې ځي اومطلب یې نه په
حاصلیږي)بیابه په آخر کي مغلوب سي ،په دویم قدم یې احابیش اوکنانه اوتهامه خلک
خپلي خوښي ته پرېښوول چې دمسلمانانو پرخلاف په جنګ کي ځومره برخه اخلي ،دوی
ټول یې په مختلفو طریقو سره دې طرف ته وهڅول ،آن تردې چې صفوان بن امیه دعربو
هغه شاعر مات کی کوم چې دبدر په غزا کي بندي سوی ؤخورسول الله ﷺ بې فدیې په
دا شرط آزاد کړی ؤ چې بیابه درسول الله ﷺ پرخلاف کوم اقدام نه کوی،صفوان هغه ته
هوورکړله ترڅوعربي قبیلې دمسلمانانو پرخلاف راپورته کړي اوددې کارپه بدل کي یې
وعده ورکړله که له څخه ژوندی راغی نودومره څه به درکړم چې مالا مال به سی اوکه
مړسوی نودټولو کفالت اوسرپرستي دي زما په غاړه ده ،نوموړي شاعر(ابوعزة) هم له
رسول الله ﷺ سره خپل شرط مات کی اوشروع یې وکړه عرب یې په شعرونو سره داسلام
مقابلې ته رابلل اود دوی په زړونو کي دانتقام او دښمني اوروته تازه کول ،مشرکانو
دهمدې کار لپاره یوبل شاعر چې نوم یې (متسافع بن عبدمناف صجی)ؤ هم ګومارلی ؤ

،ابوسفیان هغه وخت دمسلمانانو پرخلاف نورهم زیات ښوریدلی اوپاریدلی ؤ کله چط دسویق له جنګ وروسته نامراد را وګرځیدی او نه یوازي دا چې خپل هدف یې ترلاسه نه کړی بلکه خپل ډیرامکانات یې هم له لاسه ورکړل ، ددې ترڅنګ دزیدبن حارثه ﷛ ناڅاپي حمله اوپه همدې سریه کي قریشوته زیات ځاني اومالي تاوان اوښتي خبره نوره سخته کړه ،له ډیره غمه دمشرکینو زړونه په چاودېدو سول همدا وه چې په ډیره بیړه اوبې صبري یې دیولوی جنګ تاري ونیوله.

## «دقریشو دلښکر تعداد او دجنګ اسباب»

دیوه کال په تیرېدو سره له قریشو اوذ دوی دملګرو اواحابیشو پوره دې زره کسان جنګ ته تیار سوی ؤ د دوی دمشرانو دامناسبه وبلله چې دجنګیالانو دتشویق او دجنګ په ډګر کې دناموس دساتني حماسو راپارولو په وجه یوشمیر ښځي هم له ځان سره بوزي ،اوپه دې حساب سره پنځلس ښځي ورسره رواني سوی ،له دې لښکر سره درې زره اوښان ،دوه سوه جنګي آسان چې پرڅوله لار څوک وربانډي سپاره نه سول او ووه سوه زغري هم وی ،دجنګ عمومي قوماندان ابوسفیان ؤ ،دسپرو مشر خالدبن ولید اومعاون یې عکرمه بن ابي جهل او بیرغ یې له بنو عبدالدار سره ؤ.

## «دمکې لښکر دحرکت په حال کی»

دمکې لښکر په داسي حال کي دمدینې منورې پرخوا حرکت وکی چې په زړونو کي دانتقام اورلمبې وهلی اودیوې سختی خونړیزي جنګ خبري یې کولی.

درسول الله ﷺ اکا حضرت عباس ﷛ دقریشو ټول نظامي تحرکات اوتیاریاني په ډیر غور سره مطالعه کړې اوکله چې د دوی لښکر دمدینې په طرف ولاړی نوهغه په ډیر بیړه سره رسول الله ﷺ ته خبرولیږی ،دحضرت عباس ﷛ خط وړونکی له مکې څخه ترمدینې پوري تقریبا پنځه سوه کیلو متره اوږده فاصله په درو ورځو کي ووهله اوځان یې رسول الله ﷺ ته ورسوی چې هغه وخت رسول الله ﷺ دقباء په مسجد کي تشریف درلودی ،دحضرت عباس ﷛ خط یې ورکی اوکعب بن ابی ﷛ ورته ووایه ،رسول الله ﷺ امروکی چې داخبره پټه وساته او خپله په ډیر تلوار سره مدینې ته راغی ترڅو په دې هکله له انصارو اومهاجرینو سره مشوره وکړي.

### «داضطراري حالاتو لپاره دمسلمانانو تیاری»

مدینه دفوق العاده اواضطراري حالت په اساس دپوره تیاري په حال کي سوه ،ته بة وایی نمبر اول احضارت نیول سوي دي ،مسلمانانو دلمانځه په وخت کي هم وسله له ځانه نه

لیري کوله دانصارو یوې ډلې اوله څغي جملې څخه سعدبن معاذ رضي الله عنه ،اسید بن حضیر رضي الله عنه اوسعد بن عباده رضي الله عنه وسله په لاس اودرسول الله ﷺ په دروازه کي به یې ټوله شپه پیره کوله ، نور ګروپونه مدینې ته دراتلونکو لارو اوبندرونو ساتلو لپاره پرپیره ګومال سوي ؤ ترڅو دښمن په ناڅاپه توګه حمله ونکړي ، همدا راز دهغو لارو دڅارلو لپاره هم ګزمې ټاکل سوې وې کومي چې ددښمن دراتګ اوحملې احتمال ورته موجودؤ .

## «دمکې لښکر دمدینې په سیمو کي»

دمکې لښکرپرلویځه عمومي لار دمدینې خواته روان ؤ اوکله چې د(ابواء)سیمي ته ورسیدی نودابوسفیان ښځي هنده بنت عتبه پیشنهاد وکی چې درسول الله ﷺ دقدرمني مور قبرلټ کړي ،خودلښکر مشرانو ددې کار له بدو عواقبو څخه دځان ساتلو په وجه داخبره ونه منله ،لښکرپرمخ تک وکی اودمدینې لمن ته ډیر رانژدی سو ،کله چې له عقیق نومي درې څخه تیر سو نولږ راسته خواته کوږ سو اوهمداسي مخکي ولاړی ترڅو د احد غرته تژدې دمدینې دشمال درې په څنډه قناة نومي سیمي دښوره رارزي په مینځ کي پراته عینین سیمي کي یې واړول ،داوخت دجمعې ورځ ددریمي هجري کال دشوال شپږمه وه .

## «په مدینه کي دفاعي مشورتي جرګه»

درسول الله ﷺ استخباراتو دمکې لښکرو تحرکاتو خبرونه وخت پروخت مدینې ته راوړل اخرنی خبرې داؤ چې مشرکینو داحد له غره سره واړول ، نوپه دې وخت کي رسول الله ﷺ نظامي مشورتي شوری دائره کړه ترڅو لازمي دفاعي فیصلي وکړي ،په مشوره کي رسول الله ﷺ خپل خوب هم بیان کی اوداسي یې وفرمایل : (قسم په خدای چې ما ډیر ښه خوب لیدلی دی ،خوب مي لیدی چې یوغوایی حلال سي دتوري په تیغ کي مي درزوي اولاس په یوه کلکه زغره کي ورکړم) بیایې غویې دڅوکسانو اصحابو او دتوري درز یې دخپلي کورنۍ دکوم غړي په شهادت اوزغره یې په مدینه تعبیر کړه ، او حاضرینو ته یې وویل :چې زما رأیه خوداده چې هم دلته په مدینه کي پاته سو اوسنګرونه ونیسو ،که مشرکان په خپل ځای کي پاته سي نوهیڅ ګټه به ونه کړي اودابه ترټولو خراب ځای ورته ثابت سي اوکه فرضا مدینې ته راننوزي نومسلمانان به په ټولو لارو او کوڅو کی مقابله ورسره وکړي اوښځي به یې هم دبامونو له سرڅخه ولي اوهمداپه حقیقت کي ترټولو معقوله اوګټوره رأیه ده

دمنافقینو سردار اورئیس عبدالله بن ابي چې دخزرج قبیلې دمشرانو په ډله کي غونډي ته راغلی ؤ درسول الله ﷺ له رأيي سره موافقه وکړله اوهمدا رأیه یې غوره وبلله کېدای

سي دنو موږي موافقه په دې خاطر وه چې په داسي يوه طريقه ځان له جنګه وباسي څوک په پوه نه سي اوداسي به نه وه چې ګويا ده د رسول الله ﷺ نظر د جنګي تاکتيل او استراتيژي له عمله غوره بللی وي ، په هرحال الله تعالی غوښتل د منافقينو له مخ څخه پرده پورته کړي ترڅو کفر او نفاق يې ټولو ته ښکاره او معلوم سي ، ځوځينو قدرمنو حضرات خصوصا هغه اصحاب چې د بدر له فيضه څخه بې برخي سوي ۇ داغوښتل چې مسلمانان بايد له مدينې څخه دباندي د دښمن مقابله وکړي ، له دې څخه ځينو په ډېر اصرار رسول الله ﷺ ته داسي عرض کوي چې موږ خو داسي ورځ له خدايه په سوال غوښتله ، دادی اوس يې دلته لنډه راوستلی ده ، ورځو به اوله مدينې څخه دباندي به له دښمن سره جنګيږو ، ترڅو ونه وايي چې موږ مخ ورڅخه واړوی د دې په جوش راغلو اصحابو په سرکي د رسول الله ﷺ اکا حضرت حمزه سيد الشهدآء رضي الله عنه ۇ ده ته د خپل او د بدر په غزا کي د خپلي توري د خرپ او شرنګ اندازه ليګيدلی وه ، رسول الله ﷺ ته يې وويل : قسم په هغه ذات چې کتاب يې ورباندي نازل کړيدی چې زه به ترهغو پوري څه ونه خورم تر څومي له مدينې څخه دباندي له دښمنانو سره وسله واله مقابله نه وي کړې[۳۲٤] نو د رسول الله ﷺ د اکثريت په وړاندي د خپلي رأيي څخه تيرسوا و فيصله پردې سوه چې له مدين څخه دباندي به د دښمن مقابله کوي .

## «واسلامي لښکر ته دسيدالبشر ﷺ نصيحت او د جنګ ډګر ته روانيدل»

رسول الله ﷺ د جمعې لمونځ اداکړ ، خلکوته يې دوعظ او نصيحت په ضمن کي د زيات تکليف او کوښښ امرو کړ ، او ورته وی فرمايل : چې بری يوازي په صبر او حوصله ترلاسه کيدای سي ، او د دښمن سره يې د مقابلې لپاره د تياري حکم صادر کی ، خلک د رسول الله ﷺ د ارشاداتو په اوريدو سره خوشحاله او مطمئن سول ، په همدې ورځ يې د ماځيګر لمونځ هم په مدينه کي اداکی ، خلک راټول سوي ۇ او د عوالي نومي سيمي او سيدونکي هم راغلي ۇ ، په لمانځه پسې رسول الله ﷺ له خپلو يارانو ابوبکر صديق رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه سره يوځای کورته ننوتل ، دوی لنګوټه ورپه سر کړله ، کالي يې ورواغوستل ځان يې ښه مسلح کړی دوې زغري يې واغوستی او توره په لاس راووتی ، کله چې رسول الله ﷺ کورته ننوتی نو سعد بن معاذ رضي الله عنه او اسيد بن حضير رضي الله عنه خلکو ته وويل : تاسي رسول الله ﷺ له مدينې څخه دباندي وتلو ته مجبور کی ، خبره بيرته ده وسپاری ، دوی هم پر خپل اصرار پښيمانه سول او کله چې رسول الله ﷺ راووتی دوی ورته وويل : يارسول

---

[۳۲٤] السيرة الحلبية ٢/ ١٤.

الله ﷺ مونږ ته لازمه نه وه چې ستا د رأيې مخالفت وکړو ،اوس خوښه ستاده که غواړې په مدينه کي د ننه سنګر ونه ونيسو نو زمونږ هم خوښه او رضاده ،رسول الله ﷺ په جواب کی ورته وويل :دا د رسول له شان سره نه ښايي چې يو وار وسله راواخلي يا زغره واغوندي او بيامخکي تردې چې الله عزوجل دده او دښمن ترمينځ فيصله وکړي بيرته کښيني[۳۲۵] او بيا وروسته رسول الله ﷺ لښکر پر درو ډلو وويشی .

۱ : د مهاجرينو ډله :چې بيرغ يې مصعب بن عمير عبدري رضي الله عنه ته ورکی .

۲ : د انصارو داوس قبيلې ډله : چې بيرغ يې اسيد بن حضير رضي الله عنه ته ورکی .

۳ : د انصار دخزرج ډله : چې بيرغ يې حباب بن المنذر ته ورکی .

دټول لښکر شميره زر کسان ؤ چې سل يې زغره لرونکي ،پنځوس يې سپاره ؤ که څه هم بعضي روايات وايي چې په دې غزاکي له مسلمانانو سره آسونه نه ؤ[۳۲۶] په مدينه کي د پاته کېدونکو لپاره يې عبدالله ابن ام مکتوم رضي الله عنه د لمانځه امام وټاکی او د جنګ د ډګر په طرف دراوانيدو اجازه يې ورکړله او په دې ترتيب سره اسلامي لښکر په داسي حال کی دشمال په طرف حرکت وکی چې دواړه سعدان يعنی (سعدبن معاذ رضي الله عنه اوسعدبن عباده رضي الله عنه )وسله په لاس او زغره په تن د رسول الله ﷺ ترمخ مخ روان ؤ او کله چې اسلامي لښکر له ثنية الوداع څخه تير سو د رسول الله ﷺ سترګي پر يوه وسله بنده ټولی ولګيدی چې له نور لښکر څخه جلا روان دي پوښته يې وکړه چې دا څوک دي ؟په جواب کي ورته وويل سول چې دا دخزرج دوستان يهود دي[۳۲۷] او غواړي د مشرکينو پر خلاف په جنګ کی برخه واخلي رسول الله ﷺ وپوښتل چې آيا دوی مسلمانان سوي دي؟په جواب کي ورته وويل سول نه ،اسلام يې نه دی راوړی نو رسول الله ﷺ د دوی د بيرته واپس کېدو امر وکی او خوښه يې نه سوه چې د مشرکينو پر خلاف جنګ کي له کفارو څخه مرسته وغواړي .

---

[۳۲۵] رواه احمد ، نسائي، حاکم، ابن اسحاق.

[۳۲۶] د پنځوسواسونو خبره ابن القيم په الهدی نومی کتاب کی ۲/ ۹۲ کي نقل کړی ده خو ابن حجر وايی چې دا خبره بالکل غلطه ده او موسی بن عقبه په تائيد سره وينا کوی چې په احد کي د مسلمانانو سره يو آس هم نه وو واقدي وايی چې په احد کي يو اس د رسول الله ﷺ او بل د ابوبرده وو ۷/ ۳۵۰.

[۳۲۷] دا د ابن سعد روايت دی او وايي چې دا يهود دبني قينقاع له قبيلي څخه وو طبقات ۲/ ۳۴، په داسي حال کي چې دا قبيله مخکي له مديني څخه شړل سوي وه.

## «دلښکر معاینه او د کم عمره صحابه کرامو خروج»

کله چې دوی شیخان نومې ځای ته ورسیدل نو نبي کریم ﷺ د خپل لښکر معاینه شروع کړله او هغه کسان یې له لښکر څخه جلا کړل چې عمرونه یې کم او د جنګ توان یې نه درلودی په دې ټولۍ کې عبدالله ابن عمر رضي الله عنه، اسامه بن زید رضي الله عنه اسد بن ظهیر رضي الله عنه زید بن ارقم رضي الله عنه عرابه بن اوس رضي الله عنه عمروبن حزم رضي الله عنه ابوسعید خدري رضي الله عنه ،زید بن حارثه الانصاري رضي الله عنه سعد بن حبه رضي الله عنه هم شامل ؤ ،که څه هم دبراء بن عازب نوم هم په دې ډله کې اخیستل کیږي خو امام بخاري په هغه روایت کې چې له ده څخه یې نقل کوي پردې دلالت کوي چې نوموړی په دې غزا کې برخه اخیستی وه ،دکشرانو او کم عمره ځوانانو له جملې څخه یې یوازې رافع بن خدیج رضي الله عنه او سمره بن جندب رضي الله عنه ته اجازه ورکړله چې په جنګ کې برخه واخلي ، او دا هم ځکه چې رافع رضي الله عنه یو ډیر ماهر غشي ویشتونکی ؤ نو په همدې سبب په جنګ کې داشتراک اجازه ورکړل سوه ، په دې وخت کې سمره رضي الله عنه وویل : ماته هم اجازه راکړه ځکه زه تر رافع رضي الله عنه قوي او پیاوړی یم او هغه راغور ځولی سم،رسول الله ﷺ وفرمایل :راسی په غیږ سره ورسی چې کوم یو ډیر قوي دی ،ددوی ترمینځ مقابله روانه وه چې سمره رضي الله عنه بریالی سو او رافع رضي الله عنه یې راچپه کړ په دې ترتیب ده ته هم اجازه ورکول سوه چې په جنګ کې ګډون وکي.

## «دمدینې او احد ترمابین پر سیدالبشر ﷺ باندې خاصه پیره»

په همدې ځای باندې شپه سوه ،دماښام لمانځه پسې دماخستن لمونځ یې اداکړی او بیاهم دلته بیده سول،پنځوس کسان یې دمحمد بن مسلمه رضي الله عنه ترمشرۍ لاندې دپیرې لپاره وټاکل او ذکوان بن قیس رضي الله عنه په خاصه توګه پر رسول الله ﷺ پیره کوله.

## «دعبدالله بن ابی ابن سلول بغاوت او سر کشي»

نبي کریم ﷺ تر سپیده داغ لږ څه دمخه حرکت شروع کی ،دسهار لمونځ یې په شوط نومې ځای کې اداکی او دغه وخت دښمن ته دومره ورلنډ سوی ؤ چې یو بل یې ښه لیدل او په همدې حساسو شیبو کې دمنافقانو مشرله خپلو درسوو ملګرو سره بغاوت وکی او دا خبره یې بهانه ونیوله چې رسول الله ﷺ زما رأیه ومنله نو اوس ولې او دڅه لپاره ځانونه وژنو، دوی ټول بیرته له لارې څخه وګرځیدل ، او څرګنده ده چې ددوی دبغاوت او بیرته ګرځیدو سبب هغه نه ؤ کوم چې دوی عنوان نیولی وه ،او که رښتیا دوی پرهمدې خپه سوي وه نو بیاتردې ځایه ولې راتلل؟اصلا د دوی هدف دا ؤ چې دلته له دښمن سره نژدی په مسلمانانو کې هله ګوله را ولاړه کړي ، او په لښکر کې ماته ګډه کړي او دښمنان

نوروربانديراتيزاو زړورسي اوپهٔ دې ترتيب سره به درسول الله ﷺ او ملخصو اصحابو ډله منځه وړلو امکانات ډيرزيات سي او که داوسول نو ميدان به بيا دې منافق ته خالي وي او دده راج به چليږي.

نژدې وه چې منافقان په خپل دې شوم هدف کې کامياب سي، له اوس ځخه دبني حارث او له خزرج ځخه دبنوسلمه پښې سستې سوې، دپرشاتګ په هڅه کي سول خو دميدان پرېښودو په وخت کي الله تعالى ددوې زړونه راتکيه کړل اوپه الهي کومک سره ددې جوګه سول چې درسول الله ﷺ خواته په ميړانه ودريږي الله تعالى دې حالت ته پرقرآن حکيم کي داسي اشاره کوي:

إِذْ هَمَّت طَّآئِفَتَانِ مِنكُمْ أَن تَفْشَلاَ وَاللّهُ وَلِيُّهُمَا وَعَلَى اللّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ .سورة آل عمران

**ترجمه**: کله چې قصد وکړی درو ډلو له تاسي ځخه ددې خبري چې بې زړه سي دوی له جنګ حال داچې الله کومک کوونکې د دوی ؤ او خاص پرالله دي مؤمنان توکل وکړي.

دجابر رضي الله عنه پلار عبدالله بن حرام ډيره هڅه وکړه چې منافقان خپلي دندي ته متوجه کړي ور پسې ورغلی اوبيرته راتګ ته يې هڅول او ورته ويل يې: راسي! بيرته راوګرځی د خدای په لاره کي وجنګيږی اويادفاع وکړی، منافقانوپه جواب کي ورته وويل که موږ پر دې باوري وای چې تاسي جنګيږی نوموږ به بيرته نه ګرځيدو، په دې سره عبدالله رضي الله عنه ځني راروان سواوداسي ويل: خدای مو زموږ ځخه ورک کړه اې دخدای دښ ننانو الله جل جلاله به خپل رسول الله ﷺ تاسوته نه اړ باسي، قرآن حکيم منافقينوته په اشاره کولو سره فرمايي:

وَلْيَعْلَمَ الَّذِينَ نَافَقُواْ وَقِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْاْ قَاتِلُواْ فِي سَبِيلِ اللّهِ أَوِ ادْفَعُواْ قَالُواْ لَوْ نَعْلَمُ قِتَالاً لاَّتَّبَعْنَاكُمْ هُمْ لِلْكُفْرِ يَوْمَئِذٍ أَقْرَبُ مِنْهُمْ لِلإِيمَانِ يَقُولُونَ بِأَفْوَاهِهِم مَّا لَيْسَ فِي قُلُوبِهِمْ وَاللّهُ أَعْلَمُ بِمَا يَكْتُمُونَ . سورة آل عمران.

**ترجمه**: اوبل لپاره ددې ؤ چې ښکاره کړی الله هغه کسان چې نفاق يې کړی ؤاو وويل سول دغو بيرته تلونکو منافقانو ته چې راځی احد ته غزا وکړی، له کفاروسره په لاره دالله جل جلاله کي يادفاع وکړی ددښمن ځخه له نفسونو، اومالونو اوکورونو خپلو، نوووېل دې منافقانو که موږ پوهېدای په جنګ نو خامخا به موږ متابعت کړی وای ستاسي، دوی کفر ته په دغه ورځ کی چي دغه خبره يې کوله ډيرنژدې ؤ، له دوی ځخه په نسبت سره دايمان وايي دوی منافقان په خولو خپلو سره هغه خبره چې نسته پرې تصديق په زړونو د دوی کي او الله جل جلاله ښه پوه دی په هغه ځه هم چې پټوي يې دوی په زړونو خپلو کی له حسد او کفره ځخه..

## «پاته (۷۰۰) تنه لښکر داحد پر طرف»

دعبدالله بن ابی له ماتي اوپرشاتګ وروسته رسول الله ﷺ پاته لښکر چې اووه سوه تنهٔ د احد په طرف روان کړل ،خو څرنګه چې ددښمن سپاهیان په څو ځایونوکي احد ته په غځیدلي لاره کي پراته ؤ نورسول الله ﷺ وفرمایل داسي څوک به وي چې موږ په یوه لنډه خوا په داسي لاره بوزي چې پرمشرکانو ورنه سو ؟په جواب کي ابوخثمیه وویل :زه تیاریم یارسول الله ﷺ بیایې دمشرکینو دلښکرو لویدیځي خواته دبني حارث په دښته اوکښتونو کی غځیدلي لنډه لاره ونیوله اوکله چې اسلامي لښکر دیوه منافق مربع بن قیظي چې په سترګو هم ړوند ؤ پرباغ تیریدی هغه راولاړ سو اومسلمانانو ته یې خاوري ورپاشلی اوویل یې : که ته دخدای رسول ﷺ یې نو باغ ته دننوتلو اجازه نه درکوم ،ځیني کسان پرراټول سول چې وی وژني خورسول الله ﷺ ورته وفرمایل مه یې وژنی ،داپه سترګو او زړه دواړو ړوند دی .رسول الله ﷺ همداسي مخکي ولاړی ترڅو د درې خواته داحد دغره په یوه خوړکي ځای پرځای سو چې مخ یې دمدینې اوشاېې داحد دپوښتوخواته وه اوپه دې ترتیب سره ددښمنانو لښکر دمدینې اواسلامي لښکر ترمینځ واقع سوو .

## «دفاعي پلانونه اوپنځه سوه ماهر غشي ویشتونکي»

په همدې ځای کی رسول الله ﷺ خپل لښکر دجنګ لپاره تیار اوپه منظمولیکو برابرکی اود عبدالله بن جبیر بن نعمان انصاري رضی الله عنه په مشري یې پنځوسو ماهر غشو ویشتونکو ته وظیفه ورکړله چې قناة د درې په جنوبي څنډه پراته غره کي سنګرونیسی ،دغه غرچې وروسته د (جبل الرماة) په نامه یادسو داسلامي لښکر جنوب لویدیځ طرف ته دقومندې له مرکز څخه ۱۵۰متره لیري پروت ؤ ،دې پنځوس کسیزه ډلي قومندان ته درسول الله ﷺ لارښووني په هغه کندو کي ددوی دتوظیفو هدف اوغرض ښه په ګوته کوي ، ورته فرمایي : په خپلو غشو سره د دښمن آسان زموږ څخه منع کړی اودې ته یې پرې نهږدی چې دشاله طرف راباندي راسي ، که هرڅوکوو موږ بریالي سوو اوکه دوی بریالي سول خوتاسي خپل ځای مه پرېږدی،ګوری ستاسي له خوا دښمن راباندي رانه سي [۳۲۸] ، بیایې غشي ویشتونکو ته امروکی تاسي به خپله خوا ټینګه ساتی خپل سنګر به نه پرېږدی ، که موږ ټول وژل کیدو هم تاسی به مرستي ته نه رائی ، اوکه مو ولیدل چې غنیمتونه راټولوو

---

[۳۲۸] ابن هشام ۲/ ۶۵، ۶۶.

هم به تاسو دغنیمت دپاره نه راځئ[۳۲۹] او دبخاري رحمه الله په روایت کي راځي چې رسول الله ﷺ ورته وفرمایل :که موولیدل چې مرغان زموږ غوښي وړي بیابه هم خپل ځایونه نه پرېږدی ،او ترهغو به نه راځی ترڅو ما راغوښتي نه یاست او که مو ولیدل چې دښمن ته مو ماته ورکړله او دړي وړي مو کړي بیابه هم له سنګر څخه ترهغو نه پورته کیږي ترڅو ماحال درته لیږلی نه وي[۳۳۰] هغه یوازنی لار چې دښمن کولای سي دشاله خوا را وګرځي او مسلمانان محاصره کړي دهمدغه کندو لاره وه چې رسول الله ﷺ داپنځوس کسیزه ډله په کښینولی وه او داسي کلکي څرګندی عسکري لارښووني یې ورته وکړی چې دوی باید هم الته په سنګر کی وي ترڅو دالاردښمن پرمخ هم داسي بنده پاته وي نور لښکریې داسي برابر کي ،منذر بن عمرو یې په میمنه ،زبیرعوام رضی الله عنه چې مقداد بن اسود یې معاونت کوي پرمیسره وټاکی ،ددې ترڅنګ زبیربن عوام دا دنده هم لرله چې دمشرکانو دسپرو چې خالد بن ولید یې مشري کوله مخه هم ونیسي او دلښکرو په لومړني لیکه کي یې داسي کسان ځای پرځای کړل چې په غیرت او میړانه کي یو په زر شمیرل کېدل د رسول الله ﷺ جنګي پلان اوبرنامه دومره دقیقه اوبشپړه وه چې دبل هیڅ یوه مشر او عسکري قومندان په وسه پوره نه ده چې داسي یوپلان اوبرنامه طرحه کړي ،اوداپه خپله درسول الله ﷺ دقیادت په عظمت اوعسکري امورو پربښه پوهه دلالت کوي ،سره له دې چې دجنګ میدان ته له دښمن څخه وروسته راغی خودلښکر لپاره یې ترټولو غوره او مهم ځایونه اشغال کړل اوهغه داسي چط وروستني اوراسته خواته یې غرواقع ؤ چپه او ورستی خوایې په غشو وشتونکو حمایه وساتله ، اوپه عمومي توګه داځای لوړ ؤ داحتمالي ماتی په وخت کی ښه حمایه کېدای سوای اومسلمانانو دتیښتي پرځای هم دلته ځان ټینګولای اوله اسارت څخه ژغورلی سوای اوکه دښمن د دوی دسنګرونو دنیولو کوښښ کړی وای نو په ډېرو تلفاتو به یې هم داکار ترسره کړی نه وای او ددې برعکس یې دښمن یو داسي ځای ته ایسار کړی ؤ چې که بریالی هم وي نو دفتحي ګټي لکه غنیمتونه ،بندیان اونوریې نه سوای ترلاسه کولای،اوکه مسلمانان وربانديې برلاسي سي نو بیایې دخلاصون اوتیښتي لاره نه وه ،همدا راز رسول الله ﷺ دخپل لښکر شمیر کمښت په لومړی لکه کي دهغومشهورو میړنو پرځای کولو باندی جبیره کي په دې ترتیب سره

---

[۳۲۹] داله ابن عباس رضی الله عنهما څخه داحمد ، طبرانی ، اوحاکم روایت دی فتح الباری ۷/ ۳۵۰،.

[۳۳۰] صحیح البخاری کتاب الجهاد ۱/ ۴۲۶.

رسول الله ﷺ خپل لښکر د دریم هجري کال دشوال په اوومه د دوشنبې په ورځ ددښمن مقابلې ته تیار اوبرابر کړ.

## «دسیدالبشر ﷺ لطره لښکر یانو ته دغیرت تبلیغ»

نبي کریم ﷺ امر وکړ چې ترهغو به جنګ نه شروع کوي ترڅو ما امر درته کړی نه وي او په داسي حال کې چې دوی زغري یې اغوستي وې، سپاهیانو ته یې دجنګ په ډګر کې دخبر اوثبات لارښوونه کوله اود دوی په زړونو کې دهمت او میړاني روح پوکړ، یوه ډیره تیره توره یې راویستله اوخپلو اصحابو ته یې وفرمایل: داتوره څوک په دې شرک اخلي چې حق یې اداکړي؟څوکسانو لکه علی بن ابی طالب رضی الله عنه ،زبیربن عوام رضی الله عنه اوعمر بن خطاب رضی الله عنه ور ولاړ رسول چې توره ورڅخه واخلي ،په دې ضمن کې ابودجانه سماک بن خرشه رضی الله عنه ور ولاړ سو او وې ویل: چې یارسول الله ﷺ ددې توري حق څه دی ؟ده ورته وفرمایل: چې ددې توري حق دادی چې پردښمنانو ترهغو ګوزارونه وکړې ترڅو بنه کږه وږه سي نو عرض یې وکړ قبوله مي ده زه به یې همدا حق پرځای کړم او بیا رسول الله ﷺ توره هم ده ته ورکړله ، ابودجانه رضی الله عنه ډیر زړور سړی ؤ دجنګ په وخت کې به په ډیر غرور اوخیال روان ؤ یوه سره لنګوټه یې درلوده اوکله چې به وتړل نو خلګ به پوه سول چې اوس به ترمرګه جنګیږي اوکله چې یې له رسول الله ﷺ څخه توره واخیستله نو هغه لنګوټه یې وتړله اودلښکر په مینځ کې په کبر اوغرور روان سو،په دې وخت کې رسول الله ﷺ وفرمایل: الله تعالی له داډول حالت څخه (له دښمن سره دمقابلې تروخت)پرته دا رنګه تګ بالکل نه خوښوي.

## «دمکې دلښکر نظیم عمومي قومندان یه ابوسفیان»

مشرکانو خپل لښکر دلیکو په حساب برابرکړ ،عمومي قومنده یې له ابوسفیان سره وه اودلښکر په زړه کې یې نیولې وه ،پرمیمنه یې خالدبن ولید اوپرمیسره یې عکرمه بن ابي جهل ټاکلی ؤ په داسي حال کې چې پیادو قواوو مشرصفوان بن امیه اودغشو ویشتونکو مشرعبدالله بن ربیعه ؤ ،بیرغ دبني عبد الدار له یوې ډلې سره ؤ اودا منصب دوی ته دقصي بن کلاب له وخت څخه په میراث پاته ؤ اوهیچا داحق نه درلودی،چې په دې هکله جنجال ورسره وکړي ،خودجنګ عمومي قومندان ابوسفیان د بدر په غزاکې دقریشو بده ورځ اودبیرغ وړونکي (نضربن حارث ) اسارت وریه یاد وي اوددې په خاطر چې عبدالدار پرغیرت راولي ورته وایي ، تاسي دبدر په ورځ هم دبیرغ وړونکي واست اوومولیدل چې په څه حالت کې راګیرسوی ؤ ،جنګیالي خلګ همېشه دبیرغ له طرفه ضربه ویني ،یعني کله

چې یې بیرغ ولویږي نو دوی هم تباکیږي نو اوس به یا بیرغ په ښه میړانه لوړساتی او که دا نه سی کولای نه موږ ته یې راکړی چې ساتني ضمانت یې درکوو.
ابو سفیان په دې خبرو سره خپل هدف ترلاسه کی، بنو عبدالدار راوپارېدل او په ډیره غوصه یې ورته وویل بیرغ تا ته درکوو، سبا به ګوری چې موږ څه کوو او ربښتیا چې دوی د جنګ په میدان کې تر هغو وجنګېدل تر څو ټول تباه سول.

## «د قریشو سیاسي فریبونه او چلونه»

د جنګ تر شروع مخکې قریشو کوښښ وکی چې په خپله چالبازي سره د مسلمانانو ترمینځ جلاوالی او نفاق پیدا کړي، ابو سفیان انصارو ته داسې حال ورولیږی چې موږ او زموږ دا کازوی محمد ﷺ سره پریږدی، تاسې غرض مه لری، موږ تاسې سره د جنګ ضرورت نه وینو، خو انصارو په خپل فولادي ایمان سره د دوی دا توطئه له خاورو سره خاوري کړه او ابو سفیان ته یې داسې څه واورول چې ښه په خفه سو. د جنګ اور پربلیدو ؤ، دواړه لښکري یو بل ته ورلنډې سوی، په دې وخت کې قریشو د مسلمانانو په مینځ کې د نفاق اچولو یوه بله ناکامه هڅه وکړه او هغه داسې چې د جاهلیت په زمانه کې د اوس قبیلې یو خائن او مزدور شخص چې نوم یې (عمر بن صیفي ؤ) او په ابو عامر راهب سره مشهور ؤ او رسول الله ﷺ د فاسق نوم وربا ندې ایښې ؤ را میدان ته سو نو موړي له اسلام او رسول الله ﷺ سره ښکاره دښمني درلوده او کله چې اسلام راغی نو هغه و نه سوای زغملای او له مدینې څخه ووتل قریش یې د رسول الله ﷺ مقابلې ته راټولول او تشویقول او دا وعده یې ورکوله چې که زما قوم ماووینې نو اطاعت به مي وکړي او زما خواته به ودرېږي، دا احد په غزاکې دا حابیشو او غلامانو سره اول سړی ؤ چې د مسلمانانو مقابلې ته یې راوځغستل، دا احد په میدان کې راواړاندې سو خپل قوم ته یې ځان داسې ور وښووی، اې داوس خلګو! زه ابو عامر یم، دوی په جواب کې ورته وویل: خدای دې مه ښادوه، نامراده اوسېږې اې فاسقه! ده چې دا واورېدل وی ویل زما څخه وروسته زما قوم په شراوبدی اخته سوی دی او کله چې جنګ ونښتی نو له خپل قوم سره سخت وجنګېدی او مسلمانان یې په ډبرو ویشتل، په دې ترتیب سره د قریشو دویمه توطئه هم د خاورو سره خاوري سوه او د دوی دا سیاسي چالبازي او ناکامي توطئې پر دې دلالت کوي چې د دوی په زړونو کې د مسلمانانو بیره او هیبت پروت ؤ او د سپاهیانو شمیر او وسلو ډیروالي هم د دوی زړونه ډاډه کړي نه دي.

## «دقريشو ښځې هم دجنګ په ميدان کې»

دقريشو ښځو هم په جنګ کې خپل رول ولوبوی ،دغه ډله ښځې چې دابوسفيان ښځې هندې يې مشري کوله دلښکر په مينځ کې ګرځيدی، ډولونه اودريې يې وهلې ،خلک يې په غيرت راوستل، جنګ ته يې هڅول، دقهرمانانو حماسې يې را پارولې، دنيزه بازانو،تورزنو او غشو ويشتونکو احساسات يې په جوش راوستل اوکله به يې دبيرغ وړونکوته داسې الفاظ ويل.

ويها بنى عبدالدار ... ويها حماة الادبار ... ضربا بكل بتار

**ترجمه**:اې دعبدالدار زامنو !اې دلښکر د وروستو ليکو ساتونکوپه خپلو تيرو تورو ښه ميړني ګوزارونه وکړی ،کله به يې دخپل قوم حماسې داسې راپارولې .

ان تقبلوا نعانق .... ونفرش النمارق

اوتدبروا نفارق .... فراق غيروامق

**ترجمه**: که دښمن ته ورمخکې سواست غيږ په غيږ به سو اوقانچې به درته وغوړوو اوکه مو شاکړه ورته نوبيامو درسره جدايې ده نه پُخلا کيدونکې جدائې.

## «دجنګ لوړی لمبې او دزبير بن عوام ﷺ غيرت»

دواړه لښکره نورهم يوبل ته ورنژدی سول،دجنګ نغارې وډنګيدی او د مشرکانو بيرغ وړونکې طلحه بن ابي طلحه العبدری لومړی سړی ؤ چې دجنګ اور ته يې خاشه ووهله دايوډير زړور اوغيرتي انسان ؤ،مسلمانانو به دلښکر ګډ ورته وايه ، په داسې حال کې پراوښ سپور ؤ رامخ ته سو اودمقابلې ځيګر يې وټکوی ،هيچا يې هم مقابلې ته زړه نه سوای ښه کولی خوزبير بن عوام ﷺ دزمري په څير ورولاړ سو او ورټوب يې کړل پراوښ ورسپور سو اوسمدستي يې پرمځکه رانسکور کی ، سر يې په توره ورڅخه جلا کړ، نبي کريم ﷺ چې دامېړنې مقابله وليدله ،دتکبير چيغه يې پورته کړله مسلمانانو هم تکبير ورسره وايه اودزبير ﷺ ستاينه وکړله وی فرمايل :

ان لكل نبى حواريا .وحوارى الزبير.

**ترجمه**: هرنبي يوخاص دوست اوملګری لري زما دوست اوملګری زبير دی .[٣٣١]

---

[٣٣١] السيرة الحلبيه ٢/ ١٨.

## «د کفري علمبردارانو مرګ او د کفري بیرغ پر ځمکه لویدل»

په دې ترتیب سره د جنګ اور هرطرف ته بل سو خو ډېر زور یې د مشرکینو د بیرغ پر شاوخوا و د دوی علمبردار او د بني عبدالدار مشر طلحه بن ابي طلحه ووژل سو، ورور یې عثمان را وړاندې سو بیرغ یې پورته کی او دا شعر یې وو ایه.

ان علی أهل اللهوا حقا.... أن تخضب الصعدة اوتندقا

**ترجمه**: د علمبردارانو وظیفه داده چې نیزې یې ښې په وینو سرې سي او یا هم غوټې ماتې سي، په همدې وخت کي حضرت حمزه رضی الله عنه وړباندې ټوپ کړل او پر مټ یې داسي واریې پر وکی چې لاس یې ځني جلا او آن تر نامه پوري ټیري سو او سږې یې راښکاره سو، دې ولویدی وروسته بیرغ ابوسعد بن ابي طلحه پورته کی چې سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه ور وړاندې سو او په ستوني کي یې په غشي وویشتی ژبه یې ترخوله را ووتله او ځای پر ځای مړسو، بل روایت داسي دی چې ابوسعد میدان ته رامخکي سو او مسلمانانو ته یې د مقابلې بلنه ورکړله وروسته حضرت علي رضی الله عنه ور وړاندې سو توري یې سره وارولی تر څو حضرت علي رضی الله عنه په خپل مرګوني ګوزار سره پر ځمکه رانسکور کړی، وروسته یې وراره مسافع بن طلحه بن ابی طلحه بیرغ پورته کی خو هغه هم د عاصم بن ثابت بن ابی الافلح په غشي ووژل سو، بیا یې ورور کلاب بن طلحه بیرغ ته لاس کی جنګ یې شروع کی تر څو زبیر بن عوام رضی الله عنه ورته رامخ ته سو او وی واژه، بیا بیرغ د دوی دواړو ورور جلاس بن طلحه واخیستی خو طلحه بن عبدالله هم ډېر وخت ورنه کی او په یوه ګوزار یې نسکور کی او په بل روایت سره دا هم د عاصم بن ثابت رضی الله عنه په غشي ووژل سو، دا شپږ سره کسان د ابوطلحه عبدالله بن عبدالله بن عبدالدار له کورنۍ څخه وُ چې ټول د مشرکینو د توغ او بیرغ څخه د دفاع په میدان کي ووژل سول، بیا د همدې کورنۍ غړی بنوعبدالدار، ارطاة بن شرحبیل بیرغ پورته کی تر څو هغه هم د حضرت علي رضی الله عنه یا حمزه رضی الله عنه په وار سره ووژل سو، بیا شریح بن قارظ بیرغ پورته کی هغه هم دیوه منافق چې قزمان نومیدی او د تعصب پر اساس جنګ ته راغلی وُ په لاس ووژل سو، بیا ابو زید عمرو ابن عبد مناف العبدری د شرک بیرغ په لاس کي واخیستی هغه د قزمان په لاس مړسو، په ده پسې د شرحبیل بن هاشم العبدري زوی بیرغ پورته کی خو هغه هم د همدې قزمان په ګوزار ووژل سو، په دې ترتیب سره د بنوعبدالدار پوره لس علمبرداران په همدې ډګر کي ووژل سول نور له دوی څخه څوک پاته نه وُ چې بیرغ لوړ وساتي، همدا وه چې د دوی یو حبشي غلام (مریی) چې صواب نومیدی بیرغ پورته کی او تر خپلو بادارانو په زیاته میړانه تر هغو وجنګیدی

ترڅو دواړه لاسونه یې پرېسول خو بیابې هم کوښښ کوی چې په غاړه اوسینه بیرغ لوړ وساتي او په همدې حالت کي یې داخبره پرخوله وه چې اې خدایه !اوس خو به مي عذر درته مقبول وي او بیا په هلاکت ورسیدی ، دصواب له وژل کېدو وروسته بیرغ پرمځکه ولویدی او بیا چا ونه سوای کولای چې دکفر دانسکور بیرغ بیرته راپورته کړي .

## «دجنګ نور حالتونه»

په داسي حال کي چې دجنګ زیات زور دمشرکینو دبیرغ پرشا وخواؤ خو داحد د ډګر په نورو برخوکي هم جنګ روان ؤ ،مسلمان دایمان په وسله سنبال او د اسلام په مینه مست دیوه داسي سیل په ډول ؤ چې ډېر کلک بندونه هم ورته ټینګیدای نه سوای او هر یوه یې داحد دغزا اشعار (امت امت) زمزمه کول ،یعني مړ کړه ،مړکړه، ابودجانه رضی الله عنه چې پرسر یې سره پټۍ تړلې وه او درسول الله صلی الله علیه وسلم توره یې په دې نیت په لاس کي نیولې وه چې حق یې اداکړي راوړاندي سو ،وجنګیدی دمشرکینو په صفونو کي ورننوتی ،هرمشرک چې به یې مخ ته راتلی ځای پرځای به یې واژه ، دکفر لښکر یې تار په تار کړل ، زبیر رضی الله عنه وایي هغه وخت چې رسول الله صلی الله علیه وسلم توره ابودجانه رضی الله عنه ته ورکړله او ماته یې رانه کړله نو ما په خپل زړه کي وویل زه یې دعمه صفیې رضی الله عنها زوی او دقریشو مهم غړی وم ورغلم توره مي ځني وغوښتله خو هغه ابودجانه ته رضی الله عنه ورکړله ،نو ګورم به چې ابودجانه څه کوي؟ ابودجانه مي څاری که ګورم چې سرېې په سره پټۍ وتاړه په دې وخت کي انصارو وویل :ابودجانه دمرګ پټۍ راویستله را وړاندي سو او داشعریې وایه :

أنا الذی عاهدنی خلیلی .... ونحن بالسفح لدی النخیل

لن لا القوم الدهر فی الکیول .... اضرب بسیف الله والرسول

**ترجمه**: زه هغه یم چې خلیل (دوست) مي دغره په لمن او دخرماؤ له باغ سره عهد راسره کړی چې همیشه به دلښکر په مخ کي وم او هیڅکله به دلښکر شاته نه جنګیږم او دالله جل جلاله او درسول الله صلی الله علیه وسلم په توره به پر دښمنانو ګوزارونه کوم ، ابودجانه هم داسي مخکي روان ؤ،هرمشرک چې به یې مخ ته راتلی سم دلاسه به یې واژه ، او دمشرکینو په ډله کي یو سړی داسي ؤ چې زخمیان به یې لټول او وژل به یې ،ما په دې وخت کي خدای جل جلاله ته سوال وکی چې ابودجانه پر دې کافر ور برابر کړه ،همدا وه چې دوی دواړه سره مخامخ سول ،یو پر بل یې ګذارونه وکړل خو سره تیر او بیر سول ،دې مشرک بل وار ورباندي وکړی خو ابودجانه په خپل ډال سره ځان ځني وژغوره ،دکافر توره په ډال کي بنده سوه ،ابودجانه داسي وار

وربانډي وکی چې کافر ځای پر ځای مړ سو ،ابو دجانه مخ په وړاندي روان ؤ دکفر صفونه يې څيرل ترڅو د مشرکينو د ښځو قوماندانۍ ته ورسيدل ، خو هغه نه پيژندله چې دا ښځه ده او په دې هکله ابو دجانه وايي يو څوک مي وليدی چې په خلګو کي ډير کلک کلک وارونه کوي ،زه ورمخ ته سوم او کله مي چې توره وربانډي پورته کړله چې وار پرو کړم چيغه يې کړه که ګورم چې ښځه ده ،لاس مي ونيوی اوزړه مي و نه منله چې د رسول الله ﷺ په توره ښځه ووژنم ، دا ښځه هنده بن عتبه وه،زبير وايي ما وليدل چې ابو دجانه پرهنډې توره پورته کړه خو بيايې لاس ورڅخه ونيوی ،په دغه وخت کي ماهم وويل :بيشکه چې الله او رسول ﷺ تربل هر چا ښه پوهيږي [۳۳۲] ،حمزه رضي الله عنه هم د سورډلي زمري په ډول جنګيدی ، په ډيره ميړانه اوښې باکي سره يې د شرک د لښکر زړه ته ځان ورسوی او د کافرانو هغه ډير زړور جنګياليان يې هم داسي په مخکي لوېدل لکه د طوفان په مخکي چې اوبه توئيږي ،حمزه رضي الله عنه نه يوازي د مشرکينو څو تنه علمبرداران له پښو واچول بلکه د دوی نور ډير ميړني يې هم رانسکور کړل خو په پای کي په داسي حال کي چې په ډيره ميړانه يې د کافرانو مقابله کوله په يوه غچلکي اويوه نامرد په ګوزار سره په شهادت ورسيدی

## «دحضرت حمزه رضي الله عنه زړه دردوونکی شهادت»

دحضرت حمزه رضي الله عنه قاتل وحشي بن حرب په دې هکله وايي زه د جبيربن مطعم غلام وم په بدر کی دده اکا طعيمه بن عدي هم ووژل سو اوکله چې قريش داحد په طرف روان سول ،نو بادار مي راته وويل : که زما دا کا په بدل کي د محمد ﷺ اکا حمزه رضي الله عنه دي وواژه نو ته آزاد يې وحشي زيا توي او وايي نو زه په همدې طمعه له خلګو سره روان سوم ،زه يو حبشي ماهر نيره ويشتونکی وم ، حمزه رضي الله عنه په لټه کي سوم که ګورم چې د خړ اوښ په شان د خلګو صفونه ماتوي هيڅوک يې مخ ته دريدای نه سي ،قسم په خدای چې زما سترګي پرهمده ښځي وی،ځان مي ورته برابروي او په دې خاطر چې رانږدې سي د درختې يا کومې ډبرې شاته به پټيدم په دې وخت کي سابع بن عبدالعزی زما تر مخه وروړاندي سو ،اوکله چې دحضرت حمزه رضي الله عنه سترګي پر ولګيدی نو ورته ويې ويل :را وړاندي سه د سنت سوي مور زويه او په يوه وار يې سرله تنه ځني جلا کی ،نو ما هم خپله نيزه برابره کړه ،او ښه مي په نښه وربانډي ونيوله ،اوپر ور ايله مي کړه ،نيزه يې پر نس داسي برابره سوه چې ترشايې ووتله ، هڅه يې وکړله چې زما خوا ته راسي خو نه توانيده،په همدې حالت کي مي پرېښو وی

---

[۳۳۲] ابن هشام ۲/ ۶۹.

ترڅو مړ سو ،تردې وروسته ورغلم نیزه مې ځني راوکښله او بیرته لښکر ته راغلم او آرام کښېنستم ځکه له بل چا سره مې کار نه ؤ ،حمزه ﷛ مې په دې خاطر وواژه چې آزاد سم او کله چې مکې ته ورسیدم آزاد سوم.[۳۳۳]

## «په جنګ کې د مسلمانانو کامیابي»

سره له دې چې د حضرت حمزه ﷛ شهادت د مسلمانانو لپاره نه جبران کېدونکې خساره وه خو بیاهم د جنګ په میدان کې برلاسی دهم دوی وه ،ابوبکر ﷛ ،عمر ﷛ ،علي ﷛ زبیر ﷛ مصعب ﷛ طلحه بن عبیدالله بن جحش ﷛ ،سعد بن معاذ ﷛ ،سعد بن عباد ﷛ ،سعد بن الربیع ﷛ او انس بن النضر ﷛ او داسې نور په میړانه جنګېدل چې کافران ووژني او د مشرکینو مورال د ومره رالوېدلی ؤ چې نور د ټینګېدو نه ؤ.

## «د حنظله ﷛ محبت ترنوي واده له جهاد سره»

د دې ورځې له قهرمانو سره تیرو څخه یو هم حنظله غسیل ﷛ ؤ دادهغه ابو عامر راهب زوی ؤ چې په فاسق مشهور سوی ؤ او څو صفحې مخکې یې یادونه سوې ده ،حنظله ﷛ نوی واده کړی ؤ او په داسې حال کې یې د جنګ آواز واورېدی چې له خپلې ښځې سره پروت ؤ ،سمدستي یې د ښځې غیږه پرېښوول او د جنګ ډګر ته روان سو ،هلته چې له کفارو سره مخامخ سو پرهغوي ناتار جوړ کی،په لښکر ورننوتی او ابوسفیان ته یې ځان ورسوی نژدې وه چې ابوسفیان رانسکور کړي خوشداد بن اوس وار وربانديي وکی او حنظله یې په شهادت ورسوی.[۳۳۴]

## «په جنګ کې د غشو ویشتونکې صحابه وو غیرت»

دهغو غشو ویشتونکو ټولی چې رسول الله ﷺ د (رماة) دغره په کندو کې ځای پرځای کړې وه ،په جنګ کې ډیرمهم رول درلودی او حالات یې د مسلمانانو په ګټه ساتلي ؤ،د کفارو سپرو د خالدبن ولید په مشرۍ چې ابوعامر الفاسق یې مرسته کوله درې ځله هڅې وکړې چې د اسلامي لښکر چپه وزر مات کړي ترڅو د مسلمانانو شالوړي ته لار پیدا کړي او ناتار په ګډه کړي خو غشو ویشتونکو د غشو باران پر جوړ کی او درې سره حملې یې ورناکامې کړې.

---

[۳۳۳] ابن هشام ۲/ ۶۹، ۷۲. صحیح البخاری ۲/ ۶۸۲، همداوحشي بیادطآئف له غزا وروسته مسلمان سو او په همدې نیزه سره یې سلیم الکذاب قتل کړ دروم پرخلاف په مشهور جنګ یرموک کې یې هم برخه درلوده.

[۳۳۴] فتح الباری ۷/ ۳۴۶.

## «دمشرکانو ماتیه او پرشاتګ»

خونړیزه جګړه روانه وه، کم شمیر اسلامي لښکر حالات ترخپل کنټرول لاندې راوستلي ؤ، په مشرکینو کي له هري خوا ماته ګډه سوه، او داسي وار خطاؤ لکه درې زره کسیزه لښکر چې یې له دیرش زره مسلمانانو سره مخ وي، مسلمانان د شمیر او وسلي د کمبود او کمښت سره سره په پوره میړانه او پایمردي جنګېدل، قریشو ډېر زور واهه، چې د مسلمانانو مخه ونیسي، حمله یې دفع کړي خو هیڅ یې هم نه سوای کولای، بې وسه سول، ارادې یې ماتي او پښې یې سستي سوې، زړونه یې لوېدل او په یوه کي هم دومره جرأت نه ؤ چې د صواب له لاسه لوېدلی بیرغ راپورته کړی، همداوه چې د تیښتي لاره یې ونیوله، ترپ یې ترخرپ غوره وګاڼه، هغه د غچ، انتقام، عزت او دبدبې هغه ټولي باتي لاپي یې هیري سوې او د جنګ له میدانه په ځغستا سول، ابن اسحاق وایي چې الله جل جلاله مسلمانانو ته بری ورپه برخه کړل، کفاریې د توري په شوکه له میدانه ویستل، حتمي ماته یې په ګډه کړه، عبدالله د خپل پلار زبیر رضی الله عنه له خولې واي چې قسم په خدای چې ماهنده او نوري ښځي لیدلی چې پایڅي یې ترپونډیو پورته کړی او د تیښتي په حالت کي وی او هیڅوک هم ورسره نه ؤ چې له اسارت او نیولو څخه یې وژغوري[۳۳۵]، امام بخاري رحمه الله علیه له براء بن عازب رضی الله عنه څخه روایت کوي او وایي کله چې له مشرکینو سره مخامخ سوو نومات موکړل او وتښتېدل ،لېدل مي چې ښځي یې په ډېر تلوار تښتي او خپلي جامې یې دومره ورټه وهلی چې پایزیبونه یې ښه ښکارېدل.[۳۳۶]

مسلمانان ورپسې ؤ کفاریې په تورو وهل او ورڅخه پاته غنیمتونه یې راټولول.

## «غشي ویشتونکي دغټي غلطۍ سره مخامخ»

په داسي حال کي چې اسلامي لښکر د بدر په ډول دیوه بل عظیم او بې نظیر بري او فتحي په چوکاټ ولاړ ؤ، د هغه پنځوس کسیزي غشي ویشتونکي ډلي اکثریت یوه داسي غلطي کوي چې وضعه او حالات پوره بدلوي، مسلمانانو ته ډېرتاوانونه اړوي، او د احد په ډګر کی ګټل سوي هیبت او منزلت زیانمنوي او تردې لویه دا چې نژدې وه هم دا غلطي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د شهادت سبب سي، لکه مخکي چې مو بیان وکي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دې غشي ویشتونکو ته په ډېرو کلکو الفاظو امر کړی ؤ چې خپل سنګر به نه پرېږدي، د فتحي او ناکامۍ په دواړو حالاتو کي به پرخپل ځای ټینګ پاته کیږي، خوله دې جدي امر سره

---

[۳۳۵] ابن هشام ۲/ ۷۷.

[۳۳۶] صحیح البخاری ۲/ ۵۷۹.

سره کله چې دوی ولیدل چې مسلمانان دغنیمت مالونه راټولوي ،یوځل د دوی په زړونوکي ددنیا مینه راښکاره سوه یوبل ته وویل :غنیمت دي غنیمت!راځی مسلمانان بریالي خوسول نودځه انتظار کوی؟خو قوماندان یې عبدالله بن جبیر ﷺ درسول الله ﷺ امروره یادي او ورته وایي درسول الله ﷺ امرموهیرکی ؟خوزیات شمیریې دې یادوني ته غوږ کیښنووی اوویل یې نور موږ ورځو ترڅو خپله برخه غنیمت په لاس راوړو ،همداوه چې څلویښت کسان غشي ویشتونکي له کندو څخه راکښته سول اوپه نور لښکر ورګډسول ترڅو غنیمتونه راټول کړي، اوس دمسلمانانو شاخالي وه یوازي عبدالله بن جبیر ﷺ له خپل نهو ملګرو سره په ټینګ عزم پر خپل ځای پاته ؤ او دایې اراده وه چې ترهغو به دلته یو ترڅو ټول دلته مړه سوي نه یو اویارسول الله ﷺ راغوښتي نه یو ..[337]

## «خالدبن ولید او اسلامي لښکر»

خالدبن ولیدله دې ښائسته موقع څخه پوره ګټه پورته کړله ،په ډیره چټکي سره پر مسلمانانو راوګرځیدی ،عبدالله بن جبیر ﷺ اوملګري یې له منځه یووړل او پر نورو مسلمانانو یې دشاله خوا برید وکی،آسونه یې داسي وشیشدل چې مشرکان پوه سول چې حالات بدل سوي دی نوهغوهم پرمسلمانانو مخ را واړه وی دعلقمه الحارثیه لور عمرة په ډیر چټکي دبیرغ خواته ورغله له خاورو یې راپورته کی ، یو وار کفار پررا وګرځېدل ،یوبل ته یې ناري کړی،را غونډسول اوپه دې ترتیب سره مسلمانان دشا اومخ څخه د کفارو ترمحاصرې لاندي راغلل.

## «دمحاصرې په دوران کي دسیدالبشر ﷺ غیرت مند دریځ»

په دې وخت کي رسول الله ﷺ له نهه کسیزه ډلی سره دلښکرپه ورستی برخه کي ؤ جنګ یې څاري[338] اوکتل یې چې مسلمانانو کفار په مخه کړی دی چې ناڅاپه دخالدبن ولید سپرو برید پر وکړی ،نواوس یې یوازي دوې لاري په مخکي وي لومړی داچې په دغه بیړه له خپل ډلي سره کوم محفوظ ځای ته ځان وباسي ،اولښکر خپل قسمت اوتقدیر ته پریږدي ، دویمه لار دا وه چې ژوندی په خطر کي واچوي همدې ځای ته خپل اصحاب رابولي ، یوه قوي جبهه ورڅخه جوړه کړي ترڅو محاصره ماته اولښکر داحد غره ته وباسي ، همدلته یوځل بیا درسول الله ﷺ بې مثله میړانه اوعظمت څرګندیږي ،خپلو اصحابو ته نازه کوي ،اې د خدای بندګانو !داپه داسي وخت کي چې ښه پوهیدی چې

---

[337] صحیح البخاری ١/ ٤٢٦.

[338] صحیح مسلم ٢/ ١٠٧، رسول الله ﷺ داحد په ورځ دخان دپاره ٧ انصار اودوه قریش ملګري کړل.

داناري به ترمسلمانانو مخکي کفار آوري خو ددې پروايې ونه کړه اوخپل اصحاب يې راوبلل ،اودهمدې ږغ په اورېدو سره مخکي له دې چې مسلمانان راورسيږي ،کفار ورته متوجه سول اورسول الله ﷺ ته يې ځانونه ورسول.

## «په مسلمانانو کي وار خطائي اوشکست»

کله چې مسلمانانو ددښمن ترمحاصرې لاندي راغلل نويوشمير يې دومره وارخطااوبې واره سول چې له ځان پرته نور هرڅه ورڅخه هيرسول ،دجنګ ميدان يې پرېښوو، دتېښتي لاره يې ونيوله ځيني ترمدينې ورسېدل نوريې دغره وڅوکي ته وختل اويو شمير بيرته شاته راوګرځيدل اوله مشرکانو سره داسي ګډسول چې کافر اومسلمان نه پيژندل کيږل،تردې حده چې مسلمانانو يوبل سره ووژل ،امام بخاري رحمه الله له حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت کوي اووايي چې داحد په ورځ په لومړۍ ورځ مشرکانو ماته وخوړله ،په همدې وخت کې شيطان چيغه وکړله اې دخداى بندګانو شاته متوجه وسيږئ، يعني له دې خوا څخه ځانونه وساتي ،همدا وه چې دلومړي صف کسان راوګرځيدل اوله وروسته صف سره په جنګ سول ، حذيفه رضي الله عنه وليدل چې پلار يې دمسلمانانو ترحملو لاندي دى،چيغه يې وکړله،اې دالله بندګانو! دازما پلار دى ،دازما پلار دى ،خو چانه اورېدل اوهغه مسکين يې وواژه ،حذيفه رضي الله عنه الله جل جلاله دي تاسي وبخښي ،[339]عروة رضي الله عنه وايي قسم په خداى جل جلاله چې په حذيفه کي دمرګ تروڅي خير موجود ؤ ددې ډلي په مينځ کی يوډول هرج اومرج رابيداسو ،خلګ يې بې نظمه سول له ډيرو څخه يې لاره ورکه سوه ،نوپوهيدل پرکومه ولاړسي ، په همدې وخت کي يوچاپه لوړآواز ږغ وکی چې محمد ﷺ په قتل ورسيدی ،نوهم داوه چې هغه پاته نورهم له هوښه ووتل ، مورال يې مات سوزړونه يې ولوېدل،له ډيري بې وسی اوسستی څخه يې وسله وغورځوله اوجنګ يې بند کی ،دځينو په زړونو کي دا راوګرځيدل چې ولاړسی له عبدالله بن ابی سره يوځای سي ترڅوهغه له ابوسفيان څخه امان ورته واخلي ، انس بن النضر رضي الله عنه راغلی اوداکسان يې وليدل ورته وی ويل دڅه انتظار کوی ؟دوی وويل رسول الله ﷺ په شهادت رسيدلی ، حيران يو څه وکو،ده ورته وويل : نواوس ژوندون څه کوی پورته سی اوپرهغه څه ځانونه ووژنی پرکوم چې رسول الله ﷺ ځان په شهادت ورسوی اوزياته يې کړله چې اې الله جل جلاله

---

[339] بخاری ١/ ٢- ٥٣٩، ٥٨١، اونور روايات واني چي سيدالبشر ﷺ وغوښتل چي حذيفه ته دپلار ديت ورکري حذيفه ﷺ په جواب کي ورته وويل دا ديت دي زما دطرفه ومسلمانانو ته صدقه شي سيدالبشر ﷺ په زياته اندازه خني راضی شو سيرت الرسول للشيخ النجدی ص ۲۴۶.

زه ددې مسلمانانو له کړو څخه عذر اوبخښنه غواړم اودمشرکانو له کړو څخه دځان برائت اعلانوم ،بیامخکې ولاړی ترڅوسعد بن معاذ ﷺ سترګې پرولګیدی ږغ یې پروکی چېرې یا ابوعمره؟انس ﷺ ورته وویل آه دادجنت بوی چې داحد له خوارائحي ،بیاهم داسي وړاندې ولاړی اوترهغو وجنګیدی ترڅوپه شهادت ورسیدی ، اودومره وارونه یې خوړلي ؤ چې دجنګ په پای کي نه پیژندل کېدی،خوخوریې دګوتو پرېندو وپیژندی دده پربدن تراتیا زیات دنیزې ،توري اوغشي ټپونه ول.[340]

همداراز ثابت بن صلاح هم خپل قوم ته ږغ وکی چې اې انصارو که چیري محمد ﷺ وژل سوی وي نوخدای خوژوندی دی اونه مري پورته سی پردین وجنګیږی ،الله ﷻ موحامي او ناصر دی ،همدا وه چې یوه ډله انصارو ورپورته سول اوګډه یې دخالد بن ولید پرډلي حمله وکړه اوترهغوورسره وجنګېدل ترڅوخالدبن ولید هغه په شهادت ورسوی ، اونور ملګري یې هم ټول ورسره شهیدان سول[341] ،له مهاجرینو څخه یوسړی ولیدل چې یوانصاري په خپلو وینو کي لت پت پروت دی ،مهاجر ورته وویل : فلانیه! خبریې چې محمد ﷺ په قتل رسیدلی دی؟انصاري جواب ورکی ،هووی ویل که محمد ﷺ وژل سوي دی نوخپل یې اداکی اوس تاسي پرخپل دین غیرت اوننګ وکړي اووجنګیږي[342] هم دابې مثاله میړانه اوډاډ ګیرنه ددې سبب سوه چې یوځل بیا دمسلمانانو زړونه پورته سي په هوښ کی راسي ، عقل یې بیرته سرته ورسیږي نوریې له منافقانو سره دیوځای کېدوفکرونه پرېښوول، خپلي وسلې یې بیرته راپورته کړی اوپرکفارو یې وروغځستل ،په دې وخت کي په دې هم پوه سول چې درسول الله ﷺ دمرګ خبر هم درواغ دی په دې نور هم تقویه او زړور سول پرکفارو ورولوېدل ،ډیر سخت وجنګېدل اوپه پای کي یې بریا په برخه سوه ،چې له محاصرې څخه ووزي اودقیادت مرکزته ځانونه ورسوي ، دمسلمانانو دریمه ډله داسي وه چې یوازي درسول الله ﷺ په غم کي وه اوپه هیڅ شي کي یې فکر نه کوی آن دمحاصرې له شروع څخه یې ځانونه خپل لاربنود حضرت محمد ﷺ ته ورسول ، ددې ډلي په سرک کي ابوبکرصدیق ﷺ ،عمر ﷺ علي ﷺ اونورصحابه کرام وه ،دوی دجنګ په لومړي صف کي وه خوکله چې پوه سول چې درسول الله ﷺ ژوندپه خطر کي دی نوسمدستي پرراچاپېر سول اوله رسول الله ﷺ څخه ددفاع په خط کي ودرېدل.

---

[340] زاد المعاد ۲/ ۹۳، ۹۶، صحیح البخاری ۲/ ۵۷۹.
[341] السیرة الحلبیة ۲/ ۲۲.
[342] زادالمعاد ۲/ ۹۶.

## «په سخت جنګ کې د سيدالبشر ﷺ دفاع نه (٩) کسانو کوله»

په داسي حال کي چې پر اسلامي لښکر د محاصرې کړۍ راګرځيده او مسلمانان د مشرکينو د حملو ترمينځ داسي واقع سوي ؤ لکه دژرندي د دوو پلو ترمينځ ،د رسول الله ﷺ شاوخواته هم سخت جنګ روان ؤ اولکه مخکي چې مو وويل د محاصرې په شروع کي له رسول الله ﷺ سره يوازي نهه کسان وجود درلودی خو کله چې يې مسلمانانو ته رږغ وکی چې زماخواته راسی زه رسول الله ﷺ يم مشرکانو دا رږغ واورېدی رسول الله ﷺ وپيژندی او ورباندي راټول سول داځکه چې ددوی ترمينځ ډيره کمه فاصله وه حمله يې ورباندي وکړه اومخکي تر دې چې مسلمانان راورسيږي مشرکينو خپل زور په کار واچوی ترڅو رسول الله ﷺ ته ځان ورسوی ،هم دلته له رسول الله ﷺ سره موجود نهه کسان په ډير ميړانه اوغيرت دفاع کوي اود مشرکينو په وړاندي دومره کلک مقاومت کوي چې دميني، سرښندني اوميړاني په ميدان کي يې ساري نه ليدل کيږي .

صحيح مسلم له حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت کوي وايي چې رسول الله ﷺ سره داحد په ورځ يوازي اووه کسان انصار اودوه قريش پاته وه اوکله چې جنګ ډيرسو اوکفار را لنډسول نو رسول الله ﷺ وفرمايل څوک به ددوی (مشرکينو) مخه ونيسي ،که چا داکار وکی دهغه لپاره جنت دی ،اوياهغه به په جنت کي زماملګری وي ،دهمدې خبري په اورېدو سره يو انصاري رامخته سو اوترهغو پوري وجنګېدی ترڅو شهيد سو جنګ لاپسې توديدی او مشرکين د رسول الله ﷺ خواته رالنډېدل ،رسول الله ﷺ هغو دوو قريشو ته وفرمايل : موږ له خپلو يارانو سره انصاف ونه کی،[٣٢٣] هغو اوو انصارو آخرنی سړی عمارة بن يزيد بن السکن چې دومره په ميړانه وجنګيږي ترڅو ټول زخمي زخمي سو اوپرمځکه ولويدی.[٣٢٤]

## «دسيدالبشر ﷺ په ژوند کي سخت حالت او د مشرکينو دپاره موقع»

دابن السکن له لوېدو وروسته له رسول الله ﷺ سره يوازي دوه تنه قريش پاته وه ،امام بخاري رضي الله عنه اوامام مسلم رحمه الله له ابوعثمان څخه روايت کوي ،دجنګ په دې ورځو کي

---

[٣٢٣] صحيح مسلم باب غزوة احد ٢/ ١٠٧.

[٣٢٤] تريوه اندازه ځنډ و روسته دمسلمانانو يو ګروپ دسيدالبشر ﷺ خواته راورسيدی کفار يې دعماره رضي الله عنه څخه په شا کړل اوعماره يې دسيدالبشر ﷺ وخواته راوړی سيدالبشر ﷺ هغه ته خپلي پښي تکيه کړي اويه داسي حال کي په شهادت باندي ورسيدی چې سر يې د سيد البشر ﷺ پرپښه مبارکه ايښي وه ابن هشام ٢/ ٨١.

يوه ورځ سره يوازي طلحه بن عبيّد الله ﷺ اوسعدبن ابي وقاص ﷺ پاته ؤ اودادرسول الله دڅوند ترټولو سخته کړۍ وه اوهمدادمشرکينو لپاره يوښائسته موقع هم وه دوی ټول زور په کار واچوي ترڅوله فرصته ګټه واخلي ټولو درسول الله ﷺ په طرف حمله ورو‌ړه اوکوښښ يې کوی چې هغه مبارک له منځه يوسي، عتبه بن ابي وقاص ډبره پورته کړه اورسو ل الله ﷺ يې دمبارک مخ پريوه طرف وويشتی اولاندي رباعي غاښ يې شهيد سواولاندي مبارکه شونډه يې هم زخمي سوه، عبدالله بن شهاب زهري ورمخ سو، اورسول الله ﷺ يې پرمبارک تندي زخمي کی په همدې وخت کي يوبل بدبخت عبدالله بن قمئه چې پراس سپور راغلی اود رسول الله ﷺ پرمبارکه اوږه يې دومره سخت دتوري واروکی چې رسول الله ﷺ پوره يوه مياشت ورڅخه په تکليف ؤ خوبياهم دتوري په وارسره دده مبارک غبرګي زغري پرې نه سوی اوهغه بدبخت دښمن بل دتوري همداسي کلک واری وکی اودرسول الله ﷺ پرمبارک مخ سترګي ته نژدی برابرسو، اودزغري والاخولی دوی کړۍ يې په هډوکي ننوتی هغه بد بخته له وارسره داهم وويل دا دړواخله زه دقمئه زوی يم په جواب يې رسول الله ﷺ په داسي حال کي چېويني يې له مخ مبارک څخه پاکولی ورته وويل: الله دی ټوټې ټوټې کړه[345] امام بخاري رحمه الله روايت کوي اووايي چې په دې غزا کي درسول الله ﷺ رباعي غاښ په شهادت ورسيدی، مبارک سريې زخمي سو، ويني ورڅخه رواني وی او ده مبارک فرمايل: هغه قوم به څنګه کامياب سي چې دخپل نبي مخ يې زخمي کی اورباعي غاښ يې ورشهيد کی، په داسي حال کي چې نبي کريم ﷺ دوی دالله طرف ته رابولي، نو الله جل جلاله داآيت په دې اړه را نازل کړی:

لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ أَوْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ أَوْ يُعَذِّبَهُمْ فَإِنَّهُمْ ظَالِمُونَ سورة آل عمران

**ترجمه**: نسته تالره له امره هيڅ شي بلکه الله اختيارلري (دهرشي) يابه رجوع وکړی الله په قبلولو دتوبې سره په دوی باندي يابه عذاب وي الله دوی نو بيشکه دوی ظالمان دي.

---

ابن قمئه دجنګ څخه
[345] الله جل جلاله دسيد البشر ﷺ دا دعا قبوله کړه ابن عائذ روايت کوي چي تردي وروسته چي وروسته کورته راغلی بيادخپلي رمي وليدلوته ورغلی هغه يه دغره په لمن کي پيداکړه اوپه ګډ سو په دي وخت کي يو ښکر لرونکي ازګری ورته راغی حمله يه ورباندي وکړه په ښکر باندي يه وواهه ترغره يه لاندي واچاوی ټوټه ټوټه سو فتح الباري ۷/ ۳۷۳، طبراني روايت کوي چي الله جل جلاله يو غرورباندي مسلط کړ ترهغويه په ښکر باندي واهه چي ټوټه ټوټه سو.

طبراني رحمه الله روایت کوي چې رسول الله ﷺ په دې ورځ وفرمایل په هغه قوم دی الله جل جلاله لوی عذاب نازل کي کوم چي دخبل رسول ﷺ مخ يې زخمي کی ،بیاڅه وخت چوپ پاته سو وروسته يې وفرمایل :اللهم اغفر لقومي فانهم لايعلمون .[۳۴۶]

ژباړه اې الله جل جلاله زما قوم ته بخښنه وکړې ځکه دوی نه پوهیږي ،همدا ډول په صحیح مسلم کي روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

رب اغفر لقومي فانهم لايعلمون.[۳۴۷] **ترجمه**:اې الله زما قوم ته مغفرت وکړه ځکه دوي نه پوهیږي [۳۴۸]په دې کی هیڅ شک نسته چې کفارو کلکه اراده کړې وه چې رسول الله ﷺ په شهادت ورسوي خو هغه دوه قریشان سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه اوطلحه بن عبيد الله رضي الله عنه په دومره میړانه همت اوغیرت وجنګېدل چې دکفارو داشوم هدف يې له خاورو سره خاوري کی او دوی دواړه عربو مشهور غشي ویشتونکي ؤ ،اوپه دداسي میړانه يې مقابله کوله چې په غشو سره حمله کوونکي مشرکین له رسو ل الله ﷺ څخه پرشاتګ ته يې مجبور کړه سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه ته خورسول الله ﷺ خپله دغشو توبره خلاصه کړه او ورته وی فرمایل :وله! زمامور اوپلار دي ترتاقربان وي ، دسعد رضي الله عنه دمقام اهلیت اوصلاحیت اندازه له دې څخه ښه معلومیږي چې رسول الله ﷺ بل هیچاته هم داسي نه دي ویلي چې زمامور او پلار دي دواړه ترتاقربان وي[۳۴۹] ،دطلحه بن عبيد الله رضي الله عنه په اړه نسائي له جابر رضي الله عنه څخه روایت کوي چې پررسول الله ﷺ دمشرکينو ددې حملې او ورسره دځوانصارو دموجودیت په یادوني سره روایت کوي چې جابر رضي الله عنه وايي :مشرکین رسول الله ته راورسیدل نوده وفرمایل څوک به د دوی مقابله وکړي ؟طلحه رضي الله عنه وویل زه جابر رضي الله عنه زیاتوي اووایي انصارور وړاندې سول اولکه مخکي چې مو دمسلم شريف په روایت کي ولیدل يوپه بل پسې په شهادت ورسېدل اوکله چې انصار ټول شهیدان سول نوطلحه رضي الله عنه ورمخ ته سو ،جابر رضي الله عنه وایي بیا طلحه رضي الله عنه لکه دیوولسو تنوغوندي جنګېدی په همدې وخت کي په لاس کي خوږسو اوګوتي يې پرې سوی اوله خولې څخه يې دحس آواز ووتی ،رسول الله ﷺ ورته وفرمایل که دې بسم الله ویلی وای نوخلګو به درته کتل اوته به ملائکو پورته کولی،راوي وايي بیاالله تعالی مشرکین پرشاکړل[۳۵۰] په اکلیل کي دحاکم

---

[۳۴۶] فتح الباري ۷/ ۳۷۳.

[۳۴۷] صحيح مسلم باب غزوة احد ۱/ ۸۱.

[۳۴۸] كتاب الشفاء بتعريف حقوق المصطفى ۱/ ۸۱.

[۳۴۹] صحيح البخاری ۱/ ۴۰۷، ۲/ ۵۸۰، ۵۸۱.

[۳۵۰] فتح الباری ۷/ ۳۶۱، سنن النسائي ۲/ ۵۲، ۵۳.

روایت دی وایي چې طلحه رضي الله عنه د احد په ورځ ۳۹ یا ۳۵ ټپه وخوړل ،د شهادت او ومځني کوتي یې شلي سوی وی[٣٥١] ،امام بخاري رحمه الله له قیس بن ابي حزم څخه روایت کوي وایي ما ولیدل چې د طلحه رضي الله عنه لاس شل سوی ؤ او په همدې لاس سره یې د احد په ورځ له رسول الله ﷺ څخه دفاع کړی وه .[٣٥٢] امام ترمذي رحمه الله روایت کوی چې په دې ورځ رسول الله ﷺ د طلحه رضي الله عنه په هکله فرمایل که څوک غواړي چې داسي شهید ته وګوري چې ژوندی د مځکي په مخ ګرځي نو طلحه بن عبید الله رضي الله عنه ته دي وګوري .[٣٥٣] ابوداؤد الطیالسي له عائشي رضي الله عنها څخه روایت کوي چې وایي ابوبکر صدیق رضي الله عنه به چې کله د احد ورځ یادوله نو فرمایل به یې چې دا ورځ ټوله د طلحه رضي الله عنه ورځ وه .[٣٥٤]

همدا راز ابوبکر رضي الله عنه دده اړه فرمایلي دي :

یا طلحه بن عبید الله قد وجبت لک الجنان وبوأت المها العینا[٣٥٥]

ژباړه : اې د عبید الله زویه طلحه رضي الله عنه !تا ته جنت واجب سو او له حورو سره دي کورجوړ کی په همدې سخت ګړي کي الله تعالی له غیبه نصرت نازل کی په صحیح بخاري او مسلم کی له سعد رضي الله عنه څخه روایت دی او وایي د احد په ورځ مي رسول الله ﷺ ولیدی چې دوه داسي کسان یې دفاع کوي چې سپین کالي اغوستي او په ډیره میړانه جنګیږي او ما هغه کسان نه مخکي لیدلي ؤ او نه مي وروسته ولیدل او په بل روایت کی راځي چې هغه دوه کسان جبرائیل علیه السلام او میکائیل علیه السلام ؤ .[٣٥٦]

## «پر سیدالبشر ﷺ شاوخوا د اصحابو راجمع کیدل»

دا ټولي پیښي په ډیره چټکي او ناڅاپي توګه د سترګو په رپ کي ترسره سوی او که نه د رسول الله ﷺ غوره جنګیالي اصحاب کرام چې د جنګ په لومړي صف کی ؤ د جنګ د حالت له بدلیدو او د رسول الله ﷺ د آواز له اوریدو سره سم د خپل رسول الله ﷺ په طرف په ډیره بیړه راوګرځیدل تر څو رسول الله ﷺ له څه ناګواره پیښي سره مخ نه سي خو دوی په داسي حال کي را ورسیدل چې رسول الله ﷺ زخمي سوی ؤ شپږ تنه انصار په شهادت رسیدلی او او وم کس پر مځکه زخمي پروت ؤ ،سعد رضي الله عنه او طلحه رضي الله عنه په ډیره میړانه دفاع

---

[٣٥١] نفس المصدر الاول ۷/ ۳۶۱.

[٣٥٢] صحیح البخاری ۱/ ۵۲۷، ۲/ ۵۸۱.

[٣٥٣] مشکوة المصابیح ۲/ ۵۶۶، ابن هشام ۲/ ۸۶.

[٣٥٤] فتح الباري ۷/ ۳۶۱.

[٣٥٥] مختصر تاریخ دمشق ۷/ ۸۲ من هامش شرح شذور الذهب ص ۱۱۴،.

[٣٥٦] صحیح البخاری ۲/ ۸۵۰.

کوله اوپه جنګ بوخت ؤ نو ټول پر رسول الله ﷺ راټول سول ،خپل ځانونه اووسلې يې دده مبارکه څخه د دفاع په خاطر لکه ديوال داسي راګرځولي ؤ ،د دښمن ګوزارونو ته يې ځانونه ډال کړي ،حملې يې پرشا وتمبولې او ابوبکر صديق رضي الله عنه دغار ملګری يې لومړی شخص ؤ چې رسول الله ﷺ ته يې ځان راورسوی .

ابن حبان له ام المؤمنين عائشې رضي الله عنها څخه روايت کوي اوفرمايي داحد په ورځ ټول خلک له رسول الله ﷺ څخه ليرې سوی ؤ اوزه اول سړی وم چې بيرته رسول الله ﷺ ته ور وګرځيدم اوکه ګورم چې يوڅوک يې په دفاع کي په جنګ بوخت دي ،په زړه کي مي وويل : چې دابه طلحه وي ،په همدې وخت کي ابوعبيده بن جراح رضي الله عنه راپسې راورسيدی ، هغه لکه دمرغه په ډول تيزرا روان ؤ ، داوړو ځانونه رسول الله ﷺ ته ورسول که ګورو چې طلحه بې په مخکي لوېدلی ،رسول الله ﷺ راته وفرمايل : دخپل ورور غم وخوری ،ده ته جنت واجب سو ،ابوبکر رضي الله عنه وايي بيامونږ طلحه ته مخ کړه اوعلاج مويې شروع کی ،له ديارلسو څخه يې زيات زخمونه خوړلي ؤ ،[٣٥٧] داپه دې ورځ په جنګ کي دطلحه رضي الله عنه دغيرت ،شجاعت،همت او استعداد يوبل دليل دی ،په همدې سخت وخت کي رسول الله ﷺ ترشاوخوا يو شمير قهرمانان اصحاب راغونډسول په دې ډله کي ابودجانه رضي الله عنه ، مصعب بن عمير رضي الله عنه ،علي ابن ابي طالب رضي الله عنه ،سهل بن حنيف رضي الله عنه ،مالک بن سنان رضي الله عنه (د ابوسعيد خدري رضي الله عنه پلار) ام عمارنسيبه بنت کعب المازنية رضي الله عنها ،قتاده بن النعمان رضي الله عنه ،عمر بن خطاب رضي الله عنه حاطب بن ابی بلتعه رضي الله عنه او ابو طلحه رضي الله عنه شامل ؤ .

## «دمشرکينو حملې دګرميدلو په حالت کي»

دلته دمشرکينو شميرشيبه پرشيبه زياتيدی اوحملې يې تونډې کولې پر مسلمانانو فشار دومره زيات سو چې رسول الله ﷺ له هغه کندو څخه په يوه کنده کي ولويدی چې ابوعامر د همدې شرارت لپاره کيندلې وی ،په مبارکه ګونده کي يې وبرېښيدل ،حضرت علي رضي الله عنه لاس ورکی اوطلحه بن عبيدالله رضي الله عنه په غيږکي راونيوی ، ترڅو راپورته سو، ودرېدی نافع بن جبير رضي الله عنه له مهاجرينو څخه يوسړی به ويل داحدپه ورځ مي لېدل چې غشي له هرطرف راورېدل اورسول الله ﷺ يې په مينځ کي ؤ خوټول به ورڅخه چپيدل ،يعني اصحابو به يې دفاع کوله اوپه همدې ورځ مي عبدالله بن شهاب الزهري وليدچې ويل يې محمد ﷺ راوښاياستاوس به يازه ژوندی پاته کيږم اويا هغه داپه داسي حال کي چې رسول الله ﷺ يې بالکل په خوا کي ولاړ ؤ ،اوهيڅوک هم ورسره نه ؤ خوهغه ورڅخه

---

[٣٥٧] زادالمعاد ٢/ ٩٥.

تیر سو صفوان وربانديي په قهر سو چې ولي ورڅخه تیر سوی ؟هغه په جواب کي ورته وویل قسم په خدای کي مي لیدلی وي ، قسم په خدای لکه چې هغه زموږ څخه ساتل سوی دی ، په دې پسې موږ څلورو کسانو عهد وکی او د عبدالله په مرګ پسې ور روان سوو خو ونه توانیدو چې هغه ووژنو .[۳۵۸]

## «زیاته قهرماني او بې مثاله قرباني»

په همدې ورځ مسلمانانو د قرباني او فداکاري میړاني او سربازي په ذکر کي داسي قهرماني او کارنامې ترسره کړې چې په تاریخ کي یې مثال نه لېدل کیږي ، ابو طلحه ځان د رسول الله ﷺ مخ ته لکه سپر داسي نیولی ؤ ،په خپله سینه یې د دښمن غشي له رسول الله ﷺ څخه دفع کول ،انس رضي الله عنه وايي چې د احد په ورځ خلک دماتي په حال کي له رسول الله ﷺ څخه جلا سول خو ابو طلحه په داسي حال کي یو ډال ورسره ؤ د رسول الله ﷺ مخ ته ولاړ ؤ ،هغه ډیر ماهر غشي ویشتونکی ؤ ،په ډیر زور سره یې غشي ویشتل په دې ورځ یې دوې یا درې لیندۍ ماتي کړې ،دلته له مسلمانانو څخه یو سړی تیریدی او د غشو توبره وور سره وه رسول الله ﷺ ورته وفرمایل چې غشي ابو طلحه ته ورکړه ، رسول الله ﷺ به چې کله سرپورته کی چې خلک ووینې نو ابو طلحه رضي الله عنه به ورته وویل چې مور او پلار مي دې ترتا قربان وي سر مه پورته کوه هسي نه د دښمن کوم غشی درباندي برابر نه سي ،زما غاړه ستا تر غاړې قربان .[۳۵۹] همدا ډول انس رضي الله عنه روایت کوي چې ابو طلحه رضي الله عنه او رسول الله ﷺ دواړو په یوه ډال له ځان څخه دفاع کوله ،ابو طلحه ډیر غشي ویشتل او کله چې به یې غشی و ویشتی نو رسول الله ﷺ به سر راپورته کی او کتل به یې چې غشي یې چیري ولګیدی ،[۳۶۰] ابو دجانه رضي الله عنه د رسول الله ﷺ مخ ته ودریدی خپله شایې رسول الله ﷺ ته ډال کړه غشي به راتلل او ورباندي لګېدل به خو دې مبارک به له ځایه نه ښوریدی ، حاطب بن ابي بلتعه رضي الله عنه په عتبه بن ابي وقاص هغه چې د رسول الله ﷺ مبارک غاښ یې شهید کړی ؤ پسې سو ،تعقیب یې کی او د توري داسي وار یې ورباندي وکی چې سریې غوڅ قلم کی آس او توره یې ور څخه واخیستل ،سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه ډیر کوښښ وکی چې خپل ورور عتبه ووژني خو حاطب ورمخ ته سو او د هغه کار یې ور خلاص کړی .

---

[۳۵۸] زاد المعاد ۲/ ۹۷.
[۳۵۹] صحیح البخاری ۲/ ۵۸۱.
[۳۶۰] نفس المصدر ۱/ ۴۰۶.

سهل بن حنیف رضی الله عنه یو میړنی غښتلي ویشتونکی ؤ، له رسول الله ﷺ سره یې د مرګ بیعت وکی او په ډیره میړانه یې د مشرکینو په وړاندي مقابله کوله، رسول الله ﷺ په خپله هم غښتلي ویشتل، قتاده بن النعمان رضی الله عنه روایت کوي چې رسول الله ﷺ له خپلي لیندۍ څخه دومره غشي وویشتل چې دا یوه څنډه یې بالکل نرۍ او یا ماته سوې وه، بیا هم دا لیندۍ قتاده رضی الله عنه ور څخه واخیستله او له هم ده سره وه.

په هم دې ورځ د قتاده رضی الله عنه سترګه ولګیده را ووتله پر مخ یې وا وځړیده، رسول الله ﷺ په خپل مبارک لاس بیرته ور پر ځای کړه چې وروسته بیا روغه جوړه سوه آن تردې چې هم دا سترګه یې تر هغه بلي سترګي هم ښه کار کوی، او هم د تیز نظر درلودونکی وه، عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنه په ډیره میړانه جنګیدی، په خوله کي زخمي سو او د مخ غاښ یې مات سو او تر شلو زیات ټپونه یې وخوړل، پر پښه هم کلک زخمي سو، او له هم دې وجي بیا ګوډ سو، د ابو سعید خدري رضی الله عنه پلار مالک بن سنان رضی الله عنه د رسول الله ﷺ له مبارک مخ څخه وینې په خوله زبیښلې ترڅو پاکي سوی، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل تو یې کړه، ده وویل قسم په خدای که یې توی کړم، بیا یې جنګ ته مخه کړه، رسول الله ﷺ وفرمایل که څوک غواړي چې جنتي ته وګوري نو ده ته دي وګوري، او مالک بن سنان رضی الله عنه تر هغو جنګیدی ترڅو شهید سو، ام عماره رضی الله عنها هم په ډیر لوړ همت جنګیده د مسلمانانو په یوه ډلي کي اب قمئه ته ورمخ ته سوه، ابن قمئه د توري واربا ندي وکی او د دې اوږه یې ډیره ژوره زخمي کړه، دې هم پر قمښه باندي څو مسلسل ګوزارونه وکړل خو هغه دوې زغري اغوستی وی ژوندی پاته سو، اُم عماره هم داسي په میړانه جنګیده ترڅو دوولس ټپونه یې وخوړل،

مصعب بن عمیر رضی الله عنه په ډیره میړانه سربازي کوله له رسول الله ﷺ څخه یې د ابن قمئه او نورو لښکر بیرغ هم ؤ، کفارو حمله وربا ندي وکړه او راسته لاس یې ور څخه پرې کړی، ده سمدستي بیرغ په چپه لاس ونیوی او د کفارو مقابلې ته لکه غر داسي ولاړ، بالاخره یې چپله لاس هم پرې سو خو بیا یې هم نه غوښتل چې بیرغ پر ځمکه ولویږي ځان یې وربا ندي وا چوی، په سینه او غاړه یې بیرغ لوړ ساتي ترڅو په شهادت ورسیدی او د ده قاتل هم ابن قمئه ؤ او هغه داسي ګومان کوی چې دا رسول الله ﷺ دی، ځکه مصعب بن عمیر رضی الله عنه رسول الله ﷺ ته ورته ؤ او کله چې یې مصعب په شهادت ورسوی ابن قمئه کفارو ته مخ کی او چیغه یې کړه چې محمد ﷺ په قتل ورسیدی.[٣٦١]

---

[٣٦١] ابن هشام ۲/ ۷۳، ۷۴، زاد المعاد ۲/ ۱۹۷.

## «د رسول الله ﷺ د شهادت اوازه او پر جنګ د هغه اثر»

دابن قمئه له دې چيغې سره د کفارو او مسلمانانو په مينځ کي د رسول الله ﷺ د شهادت خبر خپور سو او هغه حساسي شيبې وې چې له رسول الله ﷺ څخه بېل او د کفارو له خوا محاصره سوې اصحاب کرام ډېر وارخطا سول، ارادې يې کمزوري سوې، ګډوډې او بې نظمۍ په ګډه سوه وارخطا او پريشانه سول خو په دې چيغې سره داهم وسول چې د کفارو حملې څه ناڅه کمې سوې، د دوی له خوا فشار څه کم غوندې سو، ځکه دوی داوپتيله چې نور خپل هدف ته ورسېدل، يو شمير کفارو جنګ پرېښووی، او د شهيدانو په مثله کولو بوخت سول، رسول الله ﷺ جنګ ته ادامه ورکوي او حالات تر خپل کنټرول لاندي راولي، کله چي مصعب بن عمير رضي الله عنه په شهادت ورسيدی، رسول الله ﷺ بيرغ حضرت علي رضي الله عنه ته وسپاری، علي رضي الله عنه او نور موجود اصحاب په ډېره مېړانه جنګېدل دفاع يې کوله او پر دښمن يې مرګوني وارونه کول، په همدې وخت کي رسول الله ﷺ وتوانيدی چې محاصره ماته کړي او خپل محاصره سوی لښکر ته لار وباسي، او کله چې رسول الله ﷺ د خپل لښکر خواته ورغی لومړی د کعب بن مالک رضي الله عنه سترګي ورباندي ولګيدې وې پيژندی او په لوړ آواز يې چيغه کړه، اې مسلمانانو زيري مې درباندي دادی رسول الله ﷺ، رسول الله ﷺ اشاره ورته وکړله چې چوپ سه او داهم په دې خاطر چې مشرکينو ته دده مبارک د موجوديت او ځای معلومات ونه سي، خو د کعب داچيغه د مسلمانانو غوږو ته ورسيده ټول پر راوګرځيدل او تقريبا ديرش کسان يې پرشاو خوا راټول سول.

کله چې يو شمير اصحاب راټول سول نو رسول الله ﷺ په ډېره منظمه توګه دغره د درې خواته پر شاتګ شروع کی او څرنګه چې له دې شاتګ څخه هدف د محاصرې ماتول ؤ نو مشرکينو په ټول زور سره خپلې حملې جاري ساتلې او کوښښ يې کوی چې د مسلمانانو د شاتګ مخه ونيسي، خو رسول الله ﷺ د کفارو حمله کوونکو په مينځ کي خپله لار ويستله او مشرکين د اسلام د زمريانو په وړاندي بې بسه او بې توانه سول، په همدې وخت کي د کفارو يو سپور عبد الله بن مغيره د رسول الله ﷺ په خوا رامخ ته سو او وی ويل يا به زه ژوندی پاته کيږم او يا هغه (يعني نبي ﷺ) رسول الله ﷺ يې د مقابلې لپاره مخ ته ودرېدې خو د مقابلې نوبت نه راغلی ځکه د هغه آس په يوه کنده کي ولويدی او سمدستي حارث بن الصمه ورته راورسيدی او پر پښه يې د توري وار و کی ځای پر ځای يې کښېښنوی او بيا يې هم دلته ووژی او ځان يې بيرته رسول الله ﷺ ته ورسوی، په همدې وخت کي د کفارو له لښکر څخه يو بل سپور عبد الله بن جابر پر حارث بن الصمه رضي الله عنه حمله اور سو،

پرمټ یې په توره ووهی او ټینګ زخمي سو چې بیا مسلمانانو پورته کی او یوې وړی، خو ابو دجانه ﷺ هغه سره پټی پرسرتړلی اوله مرګ سره لوبیده راغی، او دتوري په یوه وار سره یې دعبدالله بن جابرسرقلم کی، دخونړیزي جنګ په دې سختوحالاتو کي پرمسلمانانو دخوب غوټې هم راتللی اولکه څرنګه چې قرآن حکیم فرمایي: دا خوب دالله جل جلاله له طرفه مسلمانانو ته امن او اطمینان ؤ، او ابوطلحه وایي زه داحد په ورځ له هغو کسانو څخه یو وم چې خوب راباندي راتلی او داسي به خوب راباندي غالب سوچې ځو مي توره له لاسه ولویده، بیرته به مي را واخیسته بیا به ولویده او را وابه مي خیسته [٣٦٢]، په همدې قرباندي اوسربازي سره دمسلمانانو داټولي په منظمه توګه دغره درې ته ورسیده او دنور لښکر لپاره یې دامن ځای ته لاره خلاصوله او پاته لښکرهم ورسره یوځای سو او دخالد عسکري تدبیر درسول الله ﷺ دعسکري تدبیر په وړاندي ماته وخوړه..

## «دابی بن خلف قتل»

ابن اسحاق وایي کله چې رسول الله ﷺ دغره دې درې ته تشریف راوړی، ابی بن خلف راغلی او وی ویل محمد ﷺ چیري دی؟ اوس به یازه ژوندي پاته کیږم او یا هغه، اصحابو وویل یارسول الله ﷺ اجازه راکوی چې حملهورباندي وکړو؟ رسول الله ﷺ و فرمایل پرې یږدی کله چې رانژدی سو رسول الله ﷺ له حارث بن الصمة څخه نیزه واخیستله او کله چې یې نیزه واخیستله نو په ډیر زور سره راپورته سو او خلګ داسي یوې خوا او بلي خواته ولویدل لکه چې اوښ ځان وښوروی او دشاویښتان یې بادسي، ورپسې رسول الله ﷺ دهغه مخ ته ورغلی د زغري او خوز (او سپنیزي خولۍ) ترمینځ یې دغاړې یوه برخه په نظر ورغله او پرهمدې ځای یې دنیزي داسي وار ورباندي وکی چې څو واره له آس څخه راوښوئیدی او کله چې نو موړي بیرته دقریشو کفاروته ورغلی پرغاړه یې لږ زخم ؤ، وینه یې بنده سوی وه خوویل یې قسم په خدای جل جلاله چې محمد ﷺ ووژلم، کفارو ورته وویل زړه دي اچولی دی، ته خوزیات نه یې ټپي سوی، ده ورته وویل: محمد ﷺ ماته په مکه کي ویلي ؤ چې زه دي وژنم [٣٦٣] قسم په خدای که هغه راتو کړي هم وژني مي او همداسي وسوه، نوموړي دخدای دښمن مکې ته دبیرته تلو په وخت په سرف نومي ځای

---

[٣٦٢] صحیح البخاری ۲/ ۵۳۸.

[٣٦٣] داقصه داسي ده چي همدغه ابی به په مکه کي له سید البشر ﷺ سره مخامخ کیدی ورته ویل به یه ای محمد ﷺ ما (عود) نومی یواس ساتلی او هره ورځ (۵۰-۷) کیلو ګرامه دانه ورکوم او پرهم دي آس به سپوریم او تابه قتلوم رسول الله ﷺ به ورته ویل بلکه زه به تا وژنم انشاء الله.

کي مړسو[364] او ابوالاسود له عروة څخه روایت کوي اووایي چې دغه کافر به دغوایي په ډول غوړومبیدی اوویل به یې قسم په هغه ذات چې زما مرګ اوژوند ده په لاس کي دی که دا درد اوتکلیف چې پرمادی که دذی المجاز پرټولو اوسیدونکو وي ټول به مړه سوي واى.[365]

## «طلحه رضي الله عنه ته درسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت دجنت وجوب»

غره ته دشاتګ په دوران کي درسول الله صلى الله عليه وسلم مخ ته یوه لویه پربښه راغله ،رسول الله صلى الله عليه وسلم اراده وکړه چې وربانديي وخیژي خوونه توانیدی ځکه دغه وخت یې وزن هم څه زیات ؤ زغري یې دوې اوغوستي وی اوسخت زخمي سوی هم ؤ،نوطلحه رضي الله عنه ورته کښته سو لاندي ورته کښینستی اورسول الله صلى الله عليه وسلم دبري ته پورته سو اووی فرمایل :(اوجب طلحة)طلحه جنت واجب کړی.[366]

## «دمشرکینووروستی حمله»

کله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم دغره په دره کي دقیادت اومشرتابه په مرکز کي ځای پرځای سو مشرکانو په خپله وروستی حمله لاس پوري کی ترڅومسلمانانو ته نورتاوان هم ورسوي ،ابن اسحاق وایي هغه وخت چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په دره کي ؤ دقریشو یوه ډله دابوسفیان اوخالد بن ولیدپه مشری غرته راوختله ،رسول الله صلى الله عليه وسلم دعاوکړه اووی فرمایل : اي خدایه !دوی ترموږ مه هسکوی،اونه ښایي دوی ترموږلوړوي اوپه همدې سره عمر رضي الله عنه اویوټولۍ مهاجرین مقابلې ته ورغلل اودوی یې له غره څخه راکښته کړل[367] په مغازي اموي کي روایت دی چې مشرکان غره ته وختل رسول الله صلى الله عليه وسلم سعد صلى الله عليه وسلم ته وویل : ارادي یې ورخاوري کړه یعني کښته یې کړه ،سعد رضي الله عنه وویل په یوه ځای یې څنګه وبیروم اوڅنګه یې حوصلي ورټیټي کړم ، رسول الله صلى الله عليه وسلم خپله خبره دې ځله تکرار کړله ،نوسعد رضي الله عنه له خپلي توبرې څخه یو غشی راواخیستی اویوسړی یې په وویشتی اوویی واژه ،سعد رضي الله عنه وایي بیامي هم هغه غشي راوا خیستی ښه مي پیژندی بل سړی مي په وویشت هغه مي هم مړکی ،دریم ځل مي بیاهم هغه غشی راواخیستی ښه مي پیژندی اودریم سړی مي په وواژه ،نورمشرکان ټول له غره څخه کښته سول،نوماله ځان سره وویل :.چې

---

[364] ابن هشام ۲/ ۸۴، زادالمعاد ۲/ ۹۷.

[365] مختصر سیرت الرسول صلى الله عليه وسلم للشیخ عبدالله النجدی ص ۳۵۰.

[366] ابن هشام ۲/ ۸۶.

[367] نفس المصدر.

دامبارک غشی دی هم هغه غشی مې په خپله توبره کې واچوی او سعد رضی الله عنه هم داغشی دمرګ ترورځې له ځان سره ساتی او بیا ترده وروسته دده له زامنو سره وُ.[٣٦٨]

## «شهیدان او دهغوی مثلة»

درسول الله صلی الله علیه وسلم پرخلاف داد کفارو وروستی حمله وه، د دوی داګومان وُ چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په شهادت رسیدلی دی نو خپل مرکز ته ورتلو سول او مکې ته دتګ تیاری یې شروع کړی ځینې کفار او هم ورسره مشرکې ښځې دشهیدانو په مثله کولو بوخت سول ددوی غوږونه، پزې او تناسلي غړي یې ورځخه پرېکول، نسونه یې ورڅیرل، هنده بن عتبه دحضرت حمزه رضی الله عنه سینه څیري کړه، هینه یې ورځخه راویستله، او په خوله یې کړه خو تیرولای یې نه سوای بیرته یې تو کړه او دکفارو ښځوله دې پرې سوو غوږونو او پزو ځخه امیلونه او پازیبونه جوړ کړل.[٣٦٩]

## «قهرمان مسلمانان دژوند تر اخري سلګۍ پورې دجنګ په میدانګي وي»

دجنګ په آخري حالاتو کې دوې داسي پیښې وسوې چې دمسلمانانو همت او قهرماني په ګوته کوي او دا ښیي چې دوی دخدای په لاره کې هرډول قرباني ته آماده او چمتودي .١:

کعب بن مالک رضی الله عنه وایي زه له هغو مسلمانانو ځخه یووم کوم چې دغره له درې ځخه راووتل او کله مې چې ولیدل چې کفار لګیادي دمسلمانانو شهیدان مثله کوي نو ودرېدم او بیاروان سوم ،که ګورم چې یو مشرک چې زغره یې اغوستې ده په مسلمانانو شهیدانو تیرېږي او وایي دوی خولکه دپسونو په ډول ټوټې ټوټې سوي دي ، او یو مسلمان چې زغره یې په تن دده لاره څاري او انتظار یې کوی زه ورپسې ورغلم او بیامې دواړو مسلمان او کافر ته په ځیرو کتل چې کوم یې قوي او کوم یې ضعیف دئ او دامې وانګیرله چې داکافردوسلې، ساز او سامان له پلوه ورځخه مخکې دی خوهم داسې ورته ګورم ترڅو دواړه سره ونښتل او مسلمان داسې ګوزار ورباندې وکړی چې کافریې دوې ټوټې کی او بیاهم دې قهرمان خپل مخ لځ کی اوراته وی ویل : څنګه یې کعبه؟زه ابو دجانه یم.

٢:دجنګ په پای کې یوشمیر مسلمانې ښځې دجنګ میدان ته راغلی ،انس رضی الله عنه وایي ماعائشه بنت ابی بکر اوأم سلیم رضی الله عنهما ولیدلی چې بدې یې وهلی او دپښو پازیبونه یې ښکاره کېدل پرخپلو اوږو داوبو مشکونه راوړي او دخلګو په خولو کې یې ورخالي کوي

---

[٣٦٨] زادالمعاد ٢/ ٩٥.
[٣٦٩] ابن هشام ٢/ ٩٠.

۳۷۰بیائي اوبیرته یې را ده کوي او راوړي یې اودخلکو په خولو کې یې خالي کوي، حضرت عمر رضي الله عنه وايي أم سلیم رضي الله عنها به داحد په ورځ زموږ لپاره ډک مشکونه راوړل ۳۷۱اوله دې مسلمانانو ښځو څخه یوه هم أم ایمن وه کله چې یې ځیني ماتې خوړلي مسلمانان ولیدل چې دمدینې په طرف روان دي نودوی یې پرمخونو خاورې ورشیندلې او ځینوته به یې ویل: واخله داد سنیو څرخ واخله اوتوره دې ماته راکړه، اوبیاأم ایمن رضي الله عنها په ډیر تلوار دجنګ میدان ته ولاړله او زخمیانو ته یې اوبه ورکولې چې حبان بن ابی العرقه په غشي وویشتله، اوبې پردې سوله ،دخدای دښمن ورته په خندا سو، رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دا ډیره سخته ښکاره واسعدبن ابي وقاص رضي الله عنه ته یې یوداسې غشی ورکی چې نوک یې هم نه ؤ او ورته وی فرمایل: وله سعد، غشی یې ورایله کړی اودحبان په غاړه ولګیدی او د شا پر تخته ولویدی اوبې ستره سو، نورسول الله صلی الله علیه وسلم داسې وخندل چې آن نواجذ (دزامي)غاښونه یې ښکاره سو، اووی فرمایل: سعدد أم ایمن رضي الله عنها انتقام پوره واخیستی الله عزوجل ددې سوال قبول کی. ۳۷۲

## «وسیدالبشر صلی الله علیه وسلم ته حضرت علی رضي الله عنه په ډال کې اوبه راوړل»

کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په دره کې دننه په خپل ځای کې ځای پرځای سو نو حضرت علي بن ابي طالب رضي الله عنه ولاړی اوخپل ډال یې له (مهراس)څخه ډک کی چې ځیني وايي مهراس په احد کې دیوې چینې نوم دی اوځیني نوروايي چې مهراس یوې داسې ډبرې ته وايي چې مینځ یې ژوروي اوډیرې اوبه په کښې غونډیږي، په هرحال هغه خپل ډال له اوبو څخه ډک کی اورسول الله صلی الله علیه وسلم ته یې راوړی ترڅواوبه ورڅخه وڅښي،رسول الله صلی الله علیه وسلم چې اوبه ولیدې یوډول بوی یې درلودی وی نه څښلې خوخپل مبارک مخ یې په پرېولی اووینې له مخ څخه پاکې کړی اویوه اندازه یې پرمبارک سره واچولی اوفرمایل یې: دالله عزوجل لوی عذاب دې پرهغه چاوي چې دالله درسول الله صلی الله علیه وسلم مخ یې وینې کی ۳۷۳سهیل رضي الله عنه وايي قسم په خدای چې زه هغه کسان ښه پیژنم چې درسول الله صلی الله علیه وسلم زخمونه یې پرېولل پرسریې اوبه راچولې اوداښه راته معلومه ده چې په څه شي دده مبارک تداوي وسوه؟درسول الله صلی الله علیه وسلم لور فاطمه رضي الله عنها یې سر پرېولی اوعلي رضي الله عنه له ډال څخه اوبه وراچولې اوکله چې فاطمې

---

۳۷۰صحیح البخاری ۱/ ۳۰۷، ۲/ ۵۱۸.

۳۷۱نفس المصدر ۱/ ۴۰۳،

۳۷۲السیرة الحلبیة ۲/ ۲۲.

۳۷۳ابن هشام ۲/ ۸۵.

وکړه چې یارسول الله ﷺ دجنت خوشبویي مي ترسږمو کیږي اوزماقوم انصاروته ووایه که ستاسي یوسړی هم ژوندی وي اودښمن په دې وتوانیږي چې رسول الله ﷺ ته ځان ورسوي نودخدای په وړاندي به عذر نه لري اوپه همدې وخت کي یې روح له مبارک جسم څخه ووتی ، اوله فاني دنیاڅخه یې سترګي پټي کړی[۳۸۰] ، خلګو دزخمیانو په مینځ کي اصیرم(عمروبن ثابت) هم پیداکی ،له دې مخکي به یې هغه اسلام ته رابلی خوده به اسلام نه قبلوی له همدې امله خلګ حیران سول چې اصیرم دلته څه کوي اوڅنګه راغلی دی؟هغه خوپه اسلام نه ؤمشرف سوی،پوښتنه یې ورڅخه وکړه څنګه اوولي راغلی یې؟ له خپل قوم څخه ددفاع په خاطرراغلی یې اوکه له اسلام سره دمیني په اساس ؟ده په جواب کي ورته وویل : زه داسلام سره دمیني په خاطردلته راغلی یم ماپر الله ﷻ اورسول الله ﷺ ایمان راوړی اوله رسول الله ﷺ څخه ددفاع په خاطر دومره وجنګیدم چې حالت مي تاسی وینی اوپه همدې خبره یې سترګي پټي سوی،دوی داخبره بیارسول الله ﷺ ته ورسوله ،رسول الله ﷺ وفرمایل هغه جنتي دی ،ابوهریره رضي الله عنه وایي داپه داسي حال کی چې یولمونځ یې هم نه ؤکړی[۳۸۱] ، دزخمیانو په ډله کي قزمان هم ؤ چې دزمې په ډول جنګېدلی ؤ او (۷یا۸) کسان مشرکان یې وژلي ؤ خواوس دزخمونو له وجې پروت ؤ مسلمانانو هغه راپورته کړی اودبني ظفر محکې ته یې یووړی ،اومسلمانانو زیري ورکول خو ده ورته وویل :قسم په خدای چې زه دخپل قوم دناموس په خاطر جنګیدلی یم اوکه دانه وای نوهیڅ جنګ به مي نه وای کړی،اوکله چې یې دزخمودردونه زیات سول نوځان یې په خپله حلال کی اوځان یې ووژی،اوکله به چې رسول الله ﷺ ته دده یادونه وفرمایل به یې هغه دوږخي دی[۳۸۲] ،اودادهرچاجزا اوسزا ده چې دخپل قوم اویابل کوم دنیوي غرض په خاطر جنګیږي او وژل کیږي اوهرڅوک چې دالله له رضا پرته بل هدف ولري که څه هم دمسلمانانو په لښکر کي ومري اوحتی که درسول الله ﷺ په لښکر اواصحابو په مینځ کي هم وي جزایې هم هغه ده کوم چې دقزمان وه، ددې پرشهیدانو په مینځ کي دبني ثعلبه دیهودو یوسړی هم ؤ اوکله چې دجنګ خبري کېدی هغه خپل قوم ته ویلي ؤ اې یهودو !قسم په خدای چې تاسي ښه پوهیږی چې دمحمد ﷺ مرسته اوکومک پرتاسي فرض دی ،دوی ورته وویل نن خو دشنبې ورځ ده ده ورته وویل ستاسي لپاره

---

[۳۸۰] نفس المصدر ۹۶، ۲ ابن هشام ۹۰، ۲.

[۳۸۱] زادالمعاد ۹۶، ۲.

[۳۸۲] نفس المصدر الاول ۲/ ۹۷، ۹۸.

کومه هفته نسته ، بیایې خپله وسله اوتوره را واخیستله او وی ویل که زه مړسوم نومال مي ټول دمحمد ﷺ دی.هر څنګه چې یې زړه وي هم هغسي دی یې کړي ، بیادجنګ ډګر ته ننوتی او ترهغو جنګیدی ترڅو ووژل سونورسول الله ﷺ وفرمایل مخیریق غوره یهودي ؤ ۳۸۳

## «دشهیدانو لیدلو ته دسیدالبشر ﷺ ورتګ »

رسول الله ﷺ په خپله دشهیدانو لیدوته ورغلی اووی فرمایل زه ددې شاهدیم حقیقت دادی چې هرڅوک دخدای ﷻ په لاره کي زخمي کیږي الله تعالی یې دقیامت په ورځ یې په داسي حال کي بیرته راژوندی کوي چې له زخم څخه به یې ویني رواني وي خوبوی به یې دمشکو په شان بوی وي ۳۸۴،ځینو اصحابو خپل شهیدان مدینې ته وړي ؤ رسول الله ﷺ امروکی چې دوی بیرته راوړی اودشهادت په ځای کی دي ښخ کړل سي ، غسل دي نه ورکوي اوله خپلو جامو سره دي خاورو ته وسپارل سي ،وسلی اوپوستي شیان دي ورڅخه ولیري کړل سي، داشهیدان به دوه دوه اویادرې درې په یوه قبر کي ښخېدل اودوه دوه شهیدان به یې په یوه جامه کي سره پټول ، اوفرمایل به یې کوم یویې ډیر یوه ؤ خلګو به چې هریوه ته اشاره وکړه هم هغه به یې په لحد کي ترهغه بل مخکي ایښودی ، اوفرمایل به یې دقیامت په ورځ زه ددوی شاهدیم ،عبدالله بن عمرو بن حرام رضي الله عنه اوعمروبن الجموح رضي الله عنه چې دواړه سره دوستان ؤپه یوه قبر کي ښخ کړل سول ۳۸۵،په دې وخت کي دحنظله رضي الله عنه مبارک جسد نه ؤ ،مسلمانان پسې ګرځېدل که ګوري چې یوځای پرمځکه ایښوول سوی او اوبه ورڅخه څڅیږي ،رسول الله ﷺ اصحابوته وفرمایل چې دادی ملائکي ده(حنظله رضي الله عنه )ته غسل ورکوي اوبیایې وفرمایل دده له کورنۍ څخه پوښتنه وکړی چې څه خبره ده ؟دوی یې له ښځي څخه پوښتنه وکړه هغې قصه ورته وکړه اوله همدې ځای څخه حنظله رضي الله عنه په(غسیل الملائکه)مشهورسو ۳۸۶،رسول الله ﷺ چې کله دخپل اکا او رضاعي ورور حضرت حمزه رضي الله عنه حال ولیدی بې حده زیات خفه سو ،ترورې یې صفیه رضي الله عنها هم راغله چې خپل شهید ورور حمزه رضي الله عنه ووینې خورسول الله ﷺ ددې زوی زبیر رضي الله عنه ته وویل هغه بیرته بوزه ترڅو خپل ورور حمزه رضي الله عنه په دې حالت کي ونه ویني، خو صفیې رضي الله عنها وویل ولې آخر څه وجه ده چې مادخپل ورور لیدو ته نه پریږدی زه خبره سوی یم چې

---

۳۸۳ ابن هشام ۲/ ۸۸، ۸۹.
۳۸۴ ابن هشام ۲/ ۹۸.
۳۸۵ زادالمعاد ۲/ ۹۸، صحیح البخاری ۲/ ۵۸۴.
۳۸۶ زادالمعاد ۳/ ۹۴.

وروړمي مثله سوی دی خو داڅرنګه چې د الله جل جلاله په لاره کي دي نوموږ په راضي یو، زه داثواب ګڼم، ان شاء الله صبربه کوم، بیا راغله او حمزه رضي الله عنه یې ولیدی دعایې ورته وکړه: انالله وانااليه راجعون. یې وویل او له الله تعالی څخه یې د مغفرت سوال وکی، بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم امروکی چې حمزه له خپل خوریي اورضاعيي وروړ عبدالله بن جحش رضي الله عنه سره په یوه قبرکي ښخ کی، ابن مسعود رضي الله عنه وايي رسول الله صلی الله علیه وسلم چې پرحضرت حمزه څومره وژل موږ هیڅکله هم دده دومره ژړا نه وه لیدلې، دهغه جنازه یې دقبلې طرف ته کښېښووه بیاورته ودرېدی اوپه ژړا سو دومره په ژړاسو چې دژړا آواز یې لوړ سو[۳۸۷]، دشهیدانو منظر ډېر دردونکی او غمونکی ؤ، زړونه یې چاودول، جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم وايي دحمزه کفن نه ؤ یوتور سیکدار څادر ؤ چې سربه یې په پټ سو نوپښې به یې لڅي سوی اوچي پښې به یې په وریتې کړې نوسرله یې لڅ سو، بالاخره یې سرپه وریټ کی اوپرپښو یې د اذخر واښه وراچول، [۳۸۸]عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه وايي مصعب بن عمیر شهید سو اوهغه ترماغوره ؤ اوپه داسي یوڅادر کي په کفن سو چې سربه یې په پټ سو نوپښې به یې لڅي وی اوچې پښې به یې په پټې سوی نوسر به یې لڅ سو، اوهمدې ته ورته یوبل روایت له خباب بن ارت رضي الله عنه څخه هم روایت سوی دی اوپه دې روایت کي راځي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم راته وفرمایل سرېې په دې څادر وریټ کی اوپرپښو یې اذخر واښه وراچوی.[۳۸۹]

## «سیدالبشر صلی الله علیه وسلم دسوالونو په وخت دالله عزوجل حمداو ثناوایي»

امام احمد رحمه الله علیه روایت کوي چې داحد په ورځ وروسته تردې چې کفار بیرته ولاړل رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: تیارسی! چې زه دخپل رب حمد اوثناء ووایم، اصحاب ټول صفونه صفونه وریسې ودرېدل اورسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: اې خدایه ټول حمد اوثناء ستا لپاره ده، اې خدایه! څه شی چې تاپراخ کړی هغه هیڅوک هم نسي تنګولای اوڅه چې تا تنګ کړي هغه هیڅوک نه سي پراخولای، اوڅوک چې تاګمراه اوبې لاري کړی وي هغه ته هیڅوک هدایت نه سي کولای اوچاته چې تاهدایت کړی وي هغه هیڅوک نه سي ګمراه کولای، اوڅه چې تابند کړي دي هغه هیڅوک هم نه سي ورکولای اوڅه چې تاورکړي دي هغه هیڅوک نه سي بندولای اوڅه چې تالیري کړي دي هغه څوک رانژدې کولای نه سي اوڅه چې تانږدې کړي دي هغه څوک لیري کولای نه سي، اې خدایه! پرموږ خپل رحمتونه

---

[۳۸۷] رواه ابن شاذان مختصر سیرة الرسول صلی الله علیه وسلم للشیخ عبدالله النجدي ص ۲۵۵.

[۳۸۸] رواه احمد مشکوة المصابیح ۱/ ۱۴۰.

[۳۸۹] صحیح البخاری ۲/ ۵۸۴، ۵۷۹.

، بر کتونه ، فضل او رزق نازل کړې ، اې خدايه ﷻ! زه د دائمي نعمت د رڅخه کوم هغه نعمت چې نه وروسته کيږي او نه له منځه ځي ، اې خدايه ﷻ! زه د بې وسې په ورځ د کومک او د بيرې په ورځ دامن او امان سوال کوم اې خدايه ﷻ! له ايمان سره مومينه پيدا کړې او زموږ په زړونو کې يې ښائسته کړې ، له کفر ، فسق او نافرماني څخه مو وساته ، او موږ د راشدينو (هدايت کړل سويو) له ډلي څخه وګرځوه ، اې خداى ! مسلمان مو له دنيا څخه تيره کړه او له ايمان سره مو راژوندي کړه له رسوايي او فتنو څخه مو په امن د صالحينو په ډله ورګډ کړه ، اې خدايه ﷻ! هغه کافران ووژنې چې ستاد رسولانو تکذيب کوي او ستاله لارې خلک منع کوي ، خداى دوى په خپل عذاب اخته کړې ، اې خدايه! هغه کافران هم ووژنې چې کتاب ورکړل سوى دي ، اې اله الحق .[٣٩٠]

## «د سيد البشر ﷺ فراغت د شهيدانو د تدفين څخه او د مديني پر لور»

وروسته له دې چې رسول الله ﷺ د شهيدانو له تدفين د الله تعالى له حمد او ثناء دعا او زاريو څخه فارغ سو نو د مدينې په طرف يې مخه کړه ، او د لارې په اوږدو کې مؤمنو صحابياتو د ميني او فداکارۍ داسې مثالونه وړاندې کړل لکه څرنګه چې مؤمنو اصحابو د جنګ په ميدان کې وړاندې کړي وُ ، په لاره کې حمنة بنت جحش رضي الله عنها د رسول الله ﷺ مخ ته ورغله رسول الله ﷺ د ورور عبد الله بن جحش رضي الله عنه په شهادت خبره کړه او غمرازي يې ورسره وکړه دې انا لله وانا اليه راجعون وويل او خپل ورور ته يې د الله ﷻ څخه مغفرت سوال وکى ، بيايې د ماما حضرت حمزه رضي الله عنه د شهادت خبر ورکى او غمشريکي ورسره وکړه دې انا لله وانا اليه راجعون. وويل او د مغفرت دعايې ورته وکړه ، بيايې د ميړه مصعب بن عمير رضي الله عنه د شهادت خبرورکى يو ځل هغه په چيغو سوه په ترموترمو يې وژړل ، رسول الله ﷺ وفرمايل ښځي د ميړه او ميړه د ښځي په وړاندې خاص مقام لري ،[٣٩١] همداډول رسول الله ﷺ سره د بني دينار ديوې داسې ښځي ملاقات وسو چې ميړه ، ورور او پلار يې په احد کې شهيدان سوي وُ اصحابو د دوى د شهادت خبرورکى نو موږي ميرمني وويل : د رسول الله ﷺ څه حال دى ؟ دوى ورته وويل هغه په خيرا و سلامت دى يا أم فلان ، الحمد الله هم هغسې دي لکه ته چې يې غواړې دې وويل : ماته يې راوښاياست چې ورته وګورم ، اصحابو رسول الله ﷺ په اشاره ورښووى کله چې دې وليدى نو وى وويل

---

[٣٩٠] رواه البخاري في الادب المفرد امام احمد في مسنده ٣/ ٤٢٣.
[٣٩١] ابن هشام ٢/ ٩٨.

:كل مصيبة بعدك جلل . **ترجمه**: له تاڅخه پرته بل هرغم او مصيبت کم دی[391] ،يعنی ستاله غمه پرته بل غم نسته . هم داډول دسعدبن معاذ ﷺ مور په ځغستا درسول الله ﷺ مخ ته راغله ،سعدبن معاذ ﷺ چې درسول الله ﷺ دآس قيزه يې نيولی وه عرض وکی يارسول الله ﷺ هغه زما مورده ،رسول الله ﷺ دمعاذ ﷺ په شهادت غمشريکي ورسره وکړه ،دې ورويل : داچې ته مي روغ وليدی ،نورغم رابانديي سپک سو ، رسول الله ﷺ داحد دشهيدانو خپلوانو ته دعاوکړه اووی فرمايل:اې دسعد موري خوشحاله وسيږه اودنورو شهيدانو خپلوانو ته هم دخوشحالۍ زيري ورکړه او ورته ووايه چې ټول شهيدان يوځای په جنت کي دي اودټولو خپلوانو په هکله يې شفاعت سوی دی دې عرض وکی يارسول الله ﷺ مور راضي يو څوک به تردې وروسته وربانديی ژړاي ؟بيايې عرض وکی يارسول الله ﷺ دشهيدانو پسمانده ګانو ته دعا وکړه ،رسول الله ﷺ وفرمايل اې خدايه !ددوی له زړونو غم وباسه ،دمصيبتونو بدله يې ورکړه اوددوی سبب سازسی .[392]

## «دسيدالبشر ﷺ مديني ته رسيدل»

رسول الله ﷺ ددريم هجري کال دشوال په اوومه نيټه دشنبې په ماښام مدينې ته ورسيدی او کله چې يې کورته تشريف يووړی ،خپله توره يې فاطمې ته ورکړه اوورته وی فرمايل : چې لوري!داويني پرېوله ،قسم په خدای چې داتوره ډيره صحيح اوربښتنی وه راسره ، حضرت علي ﷺ هم خپله توره ورکړه او ورته وی ويل داهم پرېوله په خدای قسم چې ډيره ربښتونی وه راسره ،نورسول الله ﷺ وفرمايل که ته په صحيح اوربښتني توګه جنګېدلی يې نوسهل بن حنف اوابودجانه هم ربښتني جنګيدلي دي .[394]

## «د مسلمانانو شهيدان او دمشرکانو مړي»

زيات روايات پردې اتفاق لري چې دمسلمانانو دشهيدانو شمير اويا تنه ؤ چې زيات يې له انصارو څخه ؤ يعني دانصارو پنځه شپيته (٦٥)تنه په شهادت رسيدلی ؤ ،يوڅلويښت يې دخزرج قبيلې اوڅلورويشت نوريې له اوس قبيلې څخه ؤ دمشرکانو دمړو په هکله ابن اسحاق وايي چې له دوي څخه دوه ويشت کسان وژل سوي ؤخوکه ددې غزا په هکله داصحابو مغازي اواهل سير هغه روايتونو ته چې دجنګ په مختلفو مراحلو کی

---

[392] ابن هشام ۲/ ۹۹.
[393] السيرة الحلبية ۲/ ٤۷.
[394] ابن هشام ۲/ ۱۰۰.

د مشرکینو د مړو په هکله روایت سوي دي ، دقیق نظر و کوو نو دا به راته په ډاګه سي چې له کفارو څخه اووه دیرش کسان وژل سوي ؤ [۳۹۵]

## «په مدینه کي پر سیدالبشر ﷺ خاصه پیره»

مسلمانانو دیکشنبې شپه د دریم هجري کال د شوال د میاشتي په اتمه په مدینه کي په داسي حالت کی تیره کړه چې حالات فوق العاده ؤ ، تول تیار سوی ؤ ، که څه هم ډیر ستومانه ؤ خود مدینې ټولي لاري او دروازي یې څارلی ، پرخپل رهبر حضرت محمد ﷺ یې خاصه پیره کوله ځکه له هري خوایې بیره درلوده ، او په زړونو کي یې شکونه او شبهې راولاړیدلی .

## «د حمراء الاسد غزا او د سیدالبشر ﷺ فکر او سوچ»

رسول الله ﷺ دغه شپه ټوله د جنګ او له جنګ دراپیدا سوو حالاتو په هکله په فکر او سوچ کي سبا کړه ، له دې څخه یې تشویش درلودی ، هسي نه مشرکین دا فکر وکي چې د جنګ په میدان کي له برلاسي سره سره مو څه خاصه ګټه ونه کړه ، پښیمانه نه سي او له لاري څخه بیرته د مدینې په طرف حمله رانه وړي نو د دې تشویش د دفع کولو په خاطر یې تصمیم ونیوی چې د مکې لښکر باید تعاقب کړي.

اهل مغازي وایي چې رسول الله ﷺ د احد د غزا په سبایعني د دریم هجري کال د شوال په اتمه دیکشنبې په ورځ اعلان وکی چې د دښمن مقابلې ته ورځو ، تیار اوسی او یوازي هغه به راسره ځي چې د احد په غزاکیي برخه اخیستی ده ، عبدالله بن ابی ورته وویل زه هم درسره ځم ده ﷺ ورته وفرمایل نه .ته مه ځه ، مسلمانان که څه هم ټپیان ؤ زړونه یې له بیري او غمونو ډک ؤ خود رسول الله ﷺ دامر تطبیق ته تیار سول وی ویل د سرپه سترګو اماده یو ، جابر بن عبدالله رضي الله عنه عرض وکی چې یا رسول الله ﷺ زما داهیله ده چې په هر جنګ کي د سره یم خو څرنګه چې په دې غزا کي پلار پر دې مکلف کړی وم چې د خپلو خوندو سرپرستي او کفالت وکړم نو په کور کي پاته سوی وم خواوس د تلو اجازه غواړم ، رسول الله ﷺ اجازه ورکړه او ورسره روان سو ، رسول الله له خپل لښکر سره روان سو ، او له مدینې څخه اته میله لیري په حمراء الاسد نومي ځای کي مستقر سو ، په همدې ځای کي معبد بن ابی معبد الخزاعي د رسول الله ﷺ ملاقات راغی اسلام یې راوړی ، ځیني وایي چې په اسلام نه ؤ مشرف سوی خوله رسول الله ﷺ سره یې خواږي درلوده ، ځکه

---

[۳۹۵] ابن هشام ۲/ ۱۲۲، ۱۲۹، فتح الباری ۷/ ۲۵۱، غزوة احد لمحمداحمد باتميل ص ۲۷۸، ۲۸۰.

دبني خزاعه اوبني هاشم ترمينځ دتعاون تړون سوی ؤ راغی عرض يې وکی چې اې محمده ﷺ !تاته اوستا اصحابو ته چې کوم تکليف رسيدلی دی موږ ډير په خفه يو او ډيره سخته راباندي تمامه سوی اوزموږ داهيله وه چي الله تعالی دی عافيت په برخه لره ،بيارسول الله ﷺ امرورته وکی چې ولاړسه دابوسفيان حوصله شکني وکړه اوروحيات يې ورکمزوري کړه ،اورسول الله ﷺ چې دمشرکينو دبيرته راګرځيدو اوپر مدينه باندي حملي کوم تشويش درلودی ،هغه ربښتيا ؤ کله چې کفار له مدينې څخه (۲۶) ميله لري په روحاء نومي ځای کي واړول ،يوپربل يې پړه اچوله ،يوبل ته يې ويل ،هيڅ مو ونه کړل ،ددوی شان وشوکت مو ورمات کي نورهم داسي پرېښوول،ددوی مشران موپرېښوول چې بيابه خلګ پرراټوليږي اومشکلات به درته راولاړوي ،راځي بيرته وروګرځو اوريښتني يې له بيخه وباسو داسي ښکاري چې ديوه عادي اوسطحي رايه وه اوهغو کسانو وړاندي کړه چې د دواړو ډلو د قوت اوروحياتو صحيح اندازه يې نه وه درک کړی اوهم داوجه وه چې يومسؤل مشر صفوان بن اميه مخالفت کوي اووايي اې خلګو !داکار مه کوی زه بيريږم که داځل ور وګرځی نوهغه مسلمانان به هم ستاسي پرخلاف راټول سي کوم چې داحد غزا ته نه ؤراغلي ځی مکه ته ،بری ستاسي دی اوکه بيرته ور وګرځيد لاست نوهسي نه چې حالات ستاسي پرخلاف بدل سي اودماتي سيلي پرتاسي راوګرځي ، خو د صفوان رايه ونه منل سوه ځکه زياترو بيرته مدينې ته راتلل غوښتل او فيصله وسوه چې پرمدينه به حمله کوو خومخکي تردې چې ابوسفيان خپل لښکر دمدينې په طرف ورخوشي کړي معبدبن ابي معبد راورسيدی په دې خبرنه دي چې هغه په اسلام مشرف سوی دی ،پوښتنه يې ورڅخه وکړه معبده وايه څه خبردي راوړی ؟معبد دابوسفيان پرخلاف دعصبي اوتبليغاتي جنګ له اسلوب څخه کاروا خيستی او ورته وی ويل خبر خودادی چې محمد ﷺ له يوه زيات شمير لښکر سره په تاسي پسې راوتلی دی دومره کسان ورسره دي چې ماهيڅکله هم دومره زيات لښکر نه دی ليدلی ،ټول له ډيري غوصې څخه درته شنه کيږي ،هغه کسان هم ورسره راوتلي دي کوم چې داحد په ورځ نه ؤ اوڅه چې يې له لاسه ورکړي سخت ورباندي پښيمانه دي اوتاسي ته يې زړونه دورمره ډک دي چې ماپې مثال نه دی ليدلی ،ابوسفيان روته وويل خوارسی داڅه وايې .

معبد وويل والله چې زماګمان خوادی مخکي له دې چې ته حرکت وکی دآسانو تنديان به ووينی ،اودوی دلښکر لومړی ګروپ به له دې غونډۍ څخه راښکارسي ،ابوسفيان وويل قسم په خدای موږ خو ورباندي دبياحملې فيصله کړی وه ترڅو ريښې يې له بيخه

وُباسو ، معبد ورته وايي چې کار مّه کوه ،زه نصيحت درته کوم ،زه دي خيرغواړم ، په همدې سره دمکې لښکر روحيات کمزوري سول حوصلې يې ماتي سوى بيري اوډار واخيستل ،خير يې په دې کې وليدى چې دمکې په طرف شاتګ ته ادامه ورکړي ،ابوسفيان ددې په خاطر چې له اسلامي لښکر سره دبل ټکر مخه ونيسي اوپې نه ږدي چې نورهم د دوی لښکر تعقيب کړي نو دمسلمانانو پرخلاف يې يوه بله تبليغاتي حمله وکړله اوهغه داسي چې دعبدالقيس يوکاروان مدينې ته را روان وُ اوله دې ځای تيريدی ابوسفيان ورته وويل اې خلګو زمايو پيغام محمد ﷺ ته ورسوی اوزه وعده درکوم چې کله مکې ته راغلاست نو ددې کارپه بدل کي به دعکاظ په بازار کی دومره مميز درکړم چې تساسي اوښان يې وړلای سي دوی ورته وويل هو رسوويې ، ابوسفيان وويل محمد ﷺ ته وواياست چې موږ دده اودده اصحابو پرخلاف دبيا حملې فيصله کړی ده اواراده لرو چې داخل يې ريښې له بيخه وباسو داکاروان حمراء الاسد ته ورسيدی چيري چې رسول الله ﷺ له خپل لښکرسره اړولي وُ اودابوسفيان خبره يې ورته وکړه اوزياته يې کړه چې کفار درته راټول سوي ورڅخه وبيرېږی خو دې خبري دمسلمانانو په زړونوکي دغيرت څپې راوپارولې ايمان يې نورهم پياوړی سو

وَقَالُواْ حَسْبُنَا اللّهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ فَانقَلَبُواْ بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللّهِ وَفَضْلٍ لَّمْ يَمْسَسْهُمْ سُوءٌ وَاتَّبَعُواْ رِضْوَانَ اللّهِ وَاللّهُ ذُو فَضْلٍ عَظِيمٍ .سورة آل عمران

**ترجمه**: او وويل بس دې موږ ته الله اوڅومره ښه وکيل (کارجوړونکی) دی الله ،نوبيرته راوګرځيدل ادمؤمنان په نعمت سره له جانبه دالله اوپه فضل اواحسان اورحمت سره له الله څخه چې ونه رسيده دوی ته هيڅ بدي (نه زخم نه قتل اونه هزيمت) اوتابعان سول ددوی درضا مندي دالله جل جلاله اودالله څښتن دفضل ،احسان ،رحمت ډيرلوی دی ،رسول الله ﷺ دلته حمراء الاسد ته ديکشنبې په ورځ راغی ،دوشنبه ،سه شنبه اوچارشنبه دشوال (۹,۱۰,۱۱) يې هم دلته تيره کړه اوبيادمدينې په طرف روان سو ،مدينې ته ترستنيدو مخکي رسول الله ﷺ ته اوغرة الجمحي په ګوتوورغلی اوداهغه کافر وُ چې دبدر په غزاکي بندي سوی وُخورسول الله ﷺ دډير فقر اوزياتو لوڼو د درلودولويعني د دوی دکفالت په خاطر پرې ايښي وُ چې بيابه درسول الله ﷺ پرخلاف څه نه وايي اوپه خپل شعر سره به خلګ دهغه پرخلاف نه تشويقوي خوهغه خپل عهدمات کړی وُ ،غدر اوخيانت يې کړی وُ ،خلګ يې په خپل شعر سره درسول الله ﷺ مقابلې ته هڅول اود مقابلې لپاره داحد ميدان ته راغی اوکله چې رسول الله ﷺ ونيوی عرض يې

وکی اې محمد ﷺ ماو بخښه پړما احسان وکړه ،دلونو په خاطر مي پرېږده ، دوی بل ثوک نه لري وعده کوم چې بیابه داسي ونه کړم ،رسول الله ﷺ ورته وفرمایل اوس به داسي ونه سي چې بیرته مکې ته ولاړسی ،پرخپل مخ به لاس راتیروی ،اوو ایي به دوه ځله مي محمد ﷺ ته بازي ورکړه ،مؤمن له یوه غار ثخه دوه ځله نه چیچل کیږي ،بیایې زبیر رضي الله عنه او یا عاصم بن ثابت رضي الله عنه امر وکی چې سریې قلم کی ،همداراز یې دمکې له جاسوسانو ثخه پر یوه جاسوس هم داعدام حکم تطبیق سو ،داجاسوس معاویه بن المغیره بن ابی العاص ؤ چې دعبدالملک بن مروان دمور له پلوه باباکېدی ،کله چې کفار له احد ثخه ولاړل نو معاویه رضي الله عنه دخپل تره زوی عثمان بن عفان رضي الله عنه ته راغی عثمان رضي الله عنه دده لپاره له رسول الله ﷺ امن ورته وغوښتی ، اوهغه ﷺ په دې شرط امن ورکی چې تر درو ورځو به زیات نه پاته کیږي اوکه پاته سو نووژل کیږي به ،اوکله چې اسلامي لښکر له مدینې ثخه ووتی نو دده دقریشو لپاره جاسوسي پیل کړه او تر درو ورځو زیات پاته سو خو کله چې اسلامي لښکربیرته راغی معاویه کوښښ وکی چې وتښتي رسول الله ﷺ زید بن حارثه رضي الله عنه اوعمار بن یاسر رضي الله عنه ورپسې ولیږل دې یې تعقب او ووژی.[396]

حقیقت دادی چې حمراء الاسد بیله اومستقله غزا نه ده بلکه داداحد یوجزء اویه صحنه ده ، دا وه داحد غزا له ټولوتفصیلاتو اومختلفو مراحلوسره ،محققینو ددې غزا دپای په هکله زیات بحثونه روایت کړي دي چې آیا دادمسلمانانو ماته وه کنه ؟خوپه دې کي شک نسته چې دجنګ په دویم پړاؤ کي مشرکان له عسکري پلوه برلاسي ؤ اودجنګ پرډګر دوی مسلط ول اومسلمانانو ته دسرزیات تاوان وراوښتی ؤ، یوه ډله مسلمانان له ماسي سره په تیښته ؤ جنګ دکفارو په ګټه روان ؤخوځیني داسي دلائل سته چې دهغه پراساس دکفارو دې برلاسي ته فتح اوکامیابي نه سوویلای ،یوداچې دمکې لښکرونه سوای کړای چې دمسلمانانو مرکز ونیسي اودمدینې لښکر زیات وخت خپل مقاومت ته دوام ورکړي ، دتیښتي لاره یې ونه نیوله که ثه هم ګډوډي اوبیره په ګډه سوی وه ،خودوی په پوره میړانه دجنګ په ډګر کي مقابله اوبالاخره پرخپل قیادت ګاه شاوخوا راټول سول اودومره هم نه ؤ کمزوري سوی چې کفار یې تعقیب کي اووی ځغلوي اودمسلمانانوله مالو نو ثخه هیڅ شي هم په لاس ورنه غلل اوبل داچې مسلمانان هم الته په خپل مرکز موجود ؤ خو کفارو دجنګ دریم پړاؤ ته زړه ښه نه کی اونه داسي وسول چې کفار کله دهغه

---

[396] داحد دغزا اوحمراء الاسد تفصیلات مو دابن هشام ۲/ ۶۰، ۱۳۹، زادالمعاد ۲/ ۹۱، فتح الباری ۷/ ۳۴۵، ۳۷۷، صحیح البخاری، مختصر سیرت الرسول ﷺ ص ۲۴۳، ۲۵۷، اوداسي نورو ثخه اخذ کړل سوی دی.

وخت دفاتحانو په څير د جنګ په ميدان کي يوه ،دوې يادرې ورځي پاته سي او خپله فتحه ونمانځي ، بلکه دوی په ډير تلوار سره پرشاسول او تر مسلمانانو مخکي يې د جنګ ميدان پرېښووی او دا جرأت يې هم نه سوای کولای چې مدينې ته ور ننوزي ،دا وسيدونکو اولادونه يې بنديان او مالونه يې لوټ کړي ، داسره له دې چې مدينه ډيره ورته لنډ هم وه او هم له اسلامي لښکر څخه خالي وه ،نوپردې اساس ويلای سو چې قريشو د جنګ په ميدان کي يوازې دا کولی سوای چې مسلمانانو ته د سرزيات تاوان ورواړوی ،خوپه دې کي پاته راغلل چې له محاصرې څخه وروسته مسلمانان بالکل وځپي ټول له منځه يوسي او ډير ځله فاتحان همداسي تاوانونه ګالي لکه دلته چې مسلمانانو وګالل خوپه هيڅ صورت صحيح نه ده چې دقريشو دا عمل فتحه ،بری او نصر وبولو ، بلکه دابوسفيان په بيړه پرشاتګ دا په ګوته کوي چې هغه دې څخه ويرېدی که چيري دجنګ دريم پړاو شروع سي نو لښکر به يې له ماتي او تباهي سره مخ کيږي نو ځکه يې تلوار وکی او بيرته ستون او دا خبره هغه وخت لا زياته پخيږي کله چې دحمراء الاسد دغزاء په هکله دابوسفيان رأيه ترنظر تيره کړو ، نو اوس ويلای سو چې دا جنګ يو داسي جنګ ؤ چې فاتحان يې نه درلودل دواړو طرفونو هريو په خپله اندازه په يوه برخه کي بری ترلاسه کړی او په بل طرف کي له ماتي سره مخ سول ،او هريوه يې په داسي حال کي له جنګ څخه لاس واخيستی چې نه له ميدانه وتښتيدل او نه يې خپل مرکز د ښمن ته پرېښووی چې قبضه وربانديي وکړي ، همدې مطلب ته قرآن کريم داسي اشاره کوي .

ولاتهنوا في ابتغاء القوم إن تكونوا تألمون فإنهم يألمون كما تألمون وترجون من الله ما لا يرجون .

**ترجمه**: او سستي (بې همتي اې مؤمنانو) مه کوی په طلب د تعقب او جنګ د قوم د کفارو کي که يې تاسي چې دردمند کيږی نو بيشکه دوی هم دردمند کيږي ،هم هغسي چې تاسي دردمند کيږي ،او اميد لری تاسي له جانبه دالله دهغه ثواب چې نه لري دوی (کفار) اميدېې دلته قرآن کريم دواړې ډلې په درد کي سره تشبيه کړي دي او ددې مطلب دا دی چې د دواړو حالت او موفق يو ؤ او دواړوه په داسي حال کي له جنګ څخه پرشاسول چې يو يې هم فاتح او غالب نه ؤ .

## «دهمدې غزا په باره دقرآن کريم وينا»

ييادقرآن آيتونه نازل سول او ددې غزا پرمهمو مراحلو يې رڼا واچوله ، يوه يوه يې وڅيړله ،تبصرې يې وربانديي وکړی او هغه اسباب يې په ګوته کړل کوم چې ددې زيات تاوان سبب سوي ؤ ،او په داسي حساسو او خطرناکو حالاتو کي يې د مسلمانانو ځيني کمزوری په

ګوته کړي، دخپل مسؤلیت دادا په هکله یې ددوی غفلت اوکوتاهي څرګنده کړه اودهغولوړو اهدافو دتحقق په لارکي یې د دوی سستي په ګوته کړه دکوم لپاره چې دااوسط امت جوړ سوی دی ،همدارنګه قرآن کریم دمنافقینو دریځ اوموقف په هکله هم خبري وکړي ،له هغو څخه یې پردې پورته کړې،ټولوته یې وروپیژندل اوله الله جل جلاله اورسول الله ﷺ سره یې ددوی دښمني څرګنده کړه ،اوددې ترڅنګ یې دځینو کمزورو مسلمانانو په زړونوکي موجود هغه شکونه اوشبهات هم لیري کړل چې منافقینو اویهودو ورته پیداکړي ؤ اوهغه اهداف او حکمتونه یې ورته په ګوته کړل ، چې له دې غزا څخه په لاس راغلي ؤ ،داحد دغزا په هکله دآل عمران سورة شپیته آیتونه نازل سول چې شروع یې دجنګ دلومړني پړاؤ په هکله ده اوداسي فرمایي :

مَا كَانَ اللهُ لِيَذَرَ الْمُؤْمِنِينَ عَلَى مَآ أَنتُمْ عَلَيْهِ حَتَّى يَمِيزَ الْخَبِيثَ مِنَ الطَّيِّبِ وَمَا كَانَ اللهُ لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ وَلَكِنَّ اللهَ يَجْتَبِي مِن رُّسُلِهِ مَن يَشَاءُ فَآمِنُوا بِاللهِ وَرُسُلِهِ وَإِن تُؤْمِنُوا وَتَتَّقُوا فَلَكُمْ أَجْرٌ عَظِيمٌ سورة آل عمران

**ترجمه**:نه دی الله جل جلاله چې پریږدي مؤمنان په هغه حال (داختلاط) چې یاست تاسي (اې خلګو!) پرهغه ترڅو چې جلاکړي (الله) ناپاکه له پاکو څخه اونه دی الله چې خبرکاندي تاسي په غیب باندي (چې دمنافقانو تمیز دی له مخلصو څخه)لکن الله غوره کوي له رسولانو خپلو څخه چې اراده وفرمایي (دغوره کولوپې)نوایمان ولری تاسي اې مؤمنانو! پرالله جل جلاله اوپررسولانو دالله اوپرایمان قائم پاته اوسیږیاوپرهیزګاري وکړی(له بدو کارونو)نودی تاسي ته اجرډیرلوی.

## «دذکرسوي غزافائدي اواسرار»

ابن قیم رحمة الله علیه په دې هکله مفصل بحث کړیدی [٣٩٧]، ابن حجر رحمة الله علیه وایي چې علماء فرمایي داحد په غزا اومسلمانانو ته اړولي تاوان کي ډیري ګټي اوالهي حکمتونه ؤ چې ځیني یې عبارت دي له مسلمانانوته دمعصیت اونافرماني دجزا اونتیجې ښوول ا ودوی دمنهیاتو د ارتکاب په ضرر پوهول اوهغه هم هلته چې غشو ویشتونکو خپل هغه سنګر پرېښووی چې رسول الله ﷺ یې دنه پرېښوولو امر ورته کړی ؤ خوکله چې دوی درسول الله ﷺ له امر څخه سر غړونه کوي اوهغه څه کوي چې ځني منع سوي دي نوجزایې هم داده چې ټولوولیده ،ددې غزابل حکمت دادی چې درسولانو عادت دادی چې وخت ناوخت له مختلفو ابتلاتواو ازمېښتونو سره مخامخ کیږي خوپای بیادهم دوی دی ، اوکه

---

[٣٩٧] زادالمعاد

داراز ازمېښتونه نه وي او دوی تل فاتح او غالب وي نو د مسلمانانو په مينځ کې به داسې کسانو هم ځای نيولی وای چې اصلا يې ايمان نه درلودی او که داامتحان نه وي نو ربښتونی به له درواغجنو څخه څنګه جلاکېدای او څرنګه به پېژندل کېدل نو دالهي حکمت تقاضاهم داوه چې کله ماتي اوکله بری ، ترڅو دواغجن له ربښتونو څخه جلاسي ځکه تردې وخته منافقان پټ وه ، چانه پېژندل خوکله چې داپېښه وسوه نومنافقانو له خپلو مخونو څخه پردې پورته کړې ،په ژبه اوعمل سره يې دخپل نفاق اعلان وکی او مسلمانان پوه سول چې په کورکې دننه هم دښمنان لري ،نودلوستوني دې مارانو ته متوجه سول اولازم اقدامات يې وکړل ،بل حکمت يې دادی چې په ځينو ځاينوکې دبرې اوفتحې ځنډېدل دانساني نفس غرور وژني ،دکبر ملاماتوي اوپه انسان کې خاکساري اوتواضع پيداکوي اوکله چې مسلمانان له دې امتحان سره مخامخ سول نودصبر لمن يې ونيول خومنافقانو چغې ګډې کړې اوپه واويلاسول .

بل حکمت يې دادی چې الله تعالی خپلو مؤمنو بندګانو ته دخپل کرامت په کورىعني جنت کې داسې درجې اومقامات تيارکړي دي چې په عمل سره هلته رسيدل ممکن نه دي نوبه دې خاطر دوی له داسې ازمېښتونو اومصيبتونوسره مخ کوي ترڅوهغه اوچتې درجې يې په برخه سي،اوبل داچې شهادت داولياؤ ترټولو لوړه درجه ده ، نوالله تعالی دامرتبه ددوی په برخه کړه اوهمدا راز الله تعالی غوښتل خپل دښمنان په هلاکت ورسوي نو دوی دهلاکت اسباب لکه کفر،سرکښي،طغيان اومسلمانانو ته ضرر رسول يې هم ورته برابرکړل اوپه همدې سره يې دمسلمانانو ګناوې وبخښلې اوکافران يې هلاک اوبربادکړل .[۲۹۸]

## «له احد څخه بعد نظامي پلانونه او دبير معونه واقعه»

داحدغميزې دمسلمانانو لپاره منفي اغيزې درلودې ،ددوی شهرت ته يې زيان ورسوی،زوريې مات سو ،دخلګو په زړونوکې يې هيبت اوشوکت کم سو ، مسلمانان له ډيرو داخلي اوخارجي مشکلاتو سره لاس اوګريوان سول ،مدينه منوره له هر طرف تر تهديد اوخطرلاندې راغله ، يهودو ،منافقانواواعرابو خپله دښمني په ډاګه کړه ،هرې ډلې کوښښ کوی چې مسلمانانو ته تاوان ورسوي اوختم يې کړې ،بالکل يې له منځه يوسي ، اوربښې يې وباسي ددې غزا لا دوی مياشتې پوره سوې نه وې چې بنواسد پرمدينه باندې دحملې تياري ونيوله اودڅلورم هجري کال دصفر په مياشت کې عضل اوقاره

---

[۲۹۸] فتح الباری ۷/ ۳۴۷.

قبیلې دمسلمانانو پرخلاف توطئه جوړه کړه اوولس کسان اصحاب یې په شهادت
ورسول ، اوداپیښه دبیرمعونه په نامه شهرت لري ،دیهودو بنونضیر قبیلې هم خپل
دښمني په ډاګه کړه اودڅلورم کال دربیع الاول په میاشت کې یې یوه لویه توطئه جوړه کړه
اودرسول الله ﷺ په شهادت رسولو کوښښ یې وکی ،بنوغطفان هم جرأت وکی او
دڅلورم هجري کال په جمادي الاولی کې یې پرمدینې منورې دحملې پلان جوړکی،څرنګه
چې داحد په غزاکي مسلمانانو ته تاوان اوښتی ؤ او زور یې ختلی ؤ نوله همدې امله تریوه
وخته له خطراتو اوتهدیدونو سره مخ ؤ خوحضرت رسول الله ﷺ په خپل حکمت اوتدبیر
سره دپیښنو مخه بدله کړه، دمسلمانانو شان شوکت ،هیبت اوعظمت یې بیرته راژوندی
کی اوپه دې لاره کې یې لومړی ګام دحمراء الاسد په طرف حرکت اودکفارو ځغلول ؤ ،په
دې مدبرانه عمل سره یې دخپل لښکر شهرت اوعظمت ژوندی وساته اود دوی شان
اوهیبت ی خوندي کي ،یهود اومنافقان یې ویېرول او ورپسې یې په داسي عملیاتو لاس
پوري کړی چې نه یوازي دمسلمانانو تیرعظمت یې راژوندی کی بلکه د دوی شان
اوشوکت یې نورهم پسې پیاوری کی،په راتلونکو صفحوکي به ددې عملیاتو تفصیلات
سره ولولو..

## «دابوسلمه سریه اومدینې ته دغنیمتونو سره راتګ»

داحد له غزا وروسته ترټولو لومړی بنواسد بن خزیمه دمسلمانانو پرخلاف راپورته سول
د مدینې منورې استخباراتو خبرترلاسه کی چې دخویلد زامن طلحه او سلمه له خپل قوم
اونورو پیروانو سره راپورته سوي اوبنی اسدبن خزیمه درسول الله ﷺ پرخلاف جنګ ته
رابولي ، رسول الله ﷺ سمدستي یوګروپ چې شمیر یې یوسل پنځوس انصارمهاجرین
جنګیالان ؤ دمقابلې لپاره ور ولیږل ،ابوسلمه رضي الله عنه یې ددې ګروپ امیروټاکی ،بیرغ یې
ورکی اومخکي له دې چې بنواسد بن خزیمه په اقدام لاس پوري کړي ابوسلمه حمله
وربانديې وکړه اودوی دومره وارخطاسول چې تیت اوپرک سول یوې خوااوبلې خواته
وتښتیدل،مسلمانانو ته ډیر اوښان اوپسونه په لاس ورغلل اوسالمین غانمین جوړاو روغ
له غنیمتو سره یوځای مدینې ته را وګرځېدل اوخبره جنګ ته ونه رسیده ،داسریه دڅلورم
هجري کال دمحرم په لومړي نیټه واقع سوی اوله بیرته راتګ وروسته دابوسلمه رضي الله عنه

هغه زخم چې په احد کې یې خوړلی ؤ وغوړېدی بیاپر بدو واوښتی اولږ موده وروسته وفات سو.[۳۹۹]

## «عبدالله بن انیس رضي الله عنه سریه په شلورم کال دهجرت»

دشلورم هجري کال دمحرم په پنځمه دمدینې استخباراتو خبرترلاسه کې چې خالدبن سفیان الهندلي له مسلمانانو سره دجنګ په خاطر تیاري نیسي ،خلګ راټولوي ،رسول الله صلی الله علیه وسلم عبدالله بن انیس رضي الله عنه تهامروکی چې ولاړسي اوهغه له منځه یوسي ،عبدالله بن انیس رضي الله عنه اتلس ورځې له مدینې څخه غائب ؤ اودشنبې په ورځ چې دمحرم اووه ورځې پاته وې بیرته مدینې ته په داسې حال کې راغلی چې دخالد سرېې دځان راوړی ؤ اودرسول الله صلی الله علیه وسلم په مخکې یې کښېښوو ،رسول الله صلی الله علیه وسلم په دې وخت کې ده ته یولکړه ورکړه او ورته وې فرمایل : دابه دقیامت په ورځ زما اوستا ترمینځ یونښه وي اوکله چې دعبدالله بن انیس رضي الله عنه ځنکندن سو نووصیت یې وکی چې هغه لکړه دې یې په کفن کې ورسره کښېښول سي.[۴۰۰]

## «په ذکر سوي کال کې درجیع حادثه»

دهمدې شلورم هجري کال دصفر په میاشت کې دعضل اوقاره قبیلې څوکسان رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغلل اوعرض یې وکی چې په دوی کې ځیني په اسلام مشرف سوي اوله رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه یې وغوښتل چې څوک ورسره ولیږي ترڅو ددین ښوونه ورته وکړي ،قرآن کریم ور زده کړي نورسول الله صلی الله علیه وسلم دابن اسحاق په روایت اود صحیح البخاري په روایت لس کسان ورسره ولیږل ،اومرثه بن ابی مرثه الغنوي یې مشر ورته وټاکی اودبخاري دروایت له مخ ددې شپږ یالس کسیزي ډلي مشرعاصم بن ثابت دعاصم بن عمر بن خطاب رضي الله عنه نیکه ؤ ،اصحاب ورسره روان سول اوکله چې درابغ اوجدې ترمینځ دهذیل قبیلې رجیع نومي چینی ته ورسیدل دعضل اوقاره قبیلې نوموړو کسانو دهذیل قبیلې بنولحیان ځانګه ورباندې را وپارول اوتقریبا لس کسه غشي ویشتونکو ورپسې راووتل ، د دوی پل یې پسې را واخستی اوبالاخره ورورسیدل اومحاصره یې کړل نوموړي اصحاب یوې غونډۍ ته ختلي ؤ کفارو ورته وویل زموږ له پلوه ستاسي لپاره هرعهد اوپیمان که راکښته سی نونه مووژنو خوعاسم رضي الله عنه له راکښته کېدو څخه انکاروکی اوله خپلو ملګروسره یې دکفارو پرخلاف جنګ شروع کی ،او اووه کسان یې دکفارو په غشو په

---

[۳۹۹] زادالمعاد ۲/ ۱۰۸.
[۴۰۰] نفس المصدر ۲/ ۱۰۹، ابن هشام ۶۱۹، ۶۲۰.

شهادت ورسيدل ، اويوازي دري کسه چې حضرت خبيب ﷺ ،زيد بن دثنه ﷺ اويوبل صحابي ژوندي پاته سول ، کفارو يو ځل دتړون اوعهد يادونه ورته وکړه نو دوی درې سره ورته راکښته سول ،خو کفارو خپل عهدمات کی اوغدر يې وکی وروسته درې سره دخپلو ليديو په تارونو يې وتړل ، په دې وخت کې هغه دريم صحابي وويل چې داده دوی لومړنی غدر دی اوله دوی سره يې له تګ انکاوکړی ،دوی کش کړی اوکوښښ يې وکی چې له ځان سره بوزي خودې نه ورسره تلی بيايې په شهادت ورسوی ،خبيب ﷺ اوزيد ﷺ يې له ځان سره بوتلل اوپه مکه کې يې خرڅ کړل ،دوی دواړو دبدر په غزاکې دکفارو مشران وژلي ؤ ،خبيب ﷺ څه وخت په مکه کې بندي پاته سو بالاخره کفارو دده دوژلو فيصله وکړه اوله حرم څخه يې تنعيم بوتلی اوکله چې يې دارته وخيژوی نوخبيب ﷺ ورته وويل چې لږمې پرېږدی چې دوه رکعته لمونځ وکړم کفارو پرېښووی اودوه رکعته لمونځ يې اداکی اوکله چې يې سلام وګرځوی نووی ويل که تاسو دانه ويلای چې له مرګه بيرېږي نولمونځ به مې اوږد کړی وای اوبيايې دعاوکړه او وی ويل اې خدايه !ته دوی وشميره اوبيا ټول هلاک کړه اويوه ته هم نجات مه ورکوه ورپسې داشعرونه وويل :

لقداجمع الاحزاب حولی وألبو... قبائلهم واستجمعواکل مجمع

وقد قربوا أبناءهم ونسائهم... وقربت من جزع طويل ممنع

**ترجمه**:خلک ډلي ډلي راباندي چاپيره دي اوخپلي قبيلې يې راباندي راټولي کړي دي اوټولي ډلي يې راجمع کړی دي ،خپل اولادونه اوښځي يې هم راوستلي دي اوزه يې دخرما له يوې اوږدې اومضبوطي تنې سره نژدې کړی يم .

الی الله اشکو غربتی بعد کربتی... وماجمع الاحزاب لی عند مضجعی

فذا العرش صبرنی علی مایرابی... فقد بضعو لحمی بؤس مطعمی .

**ترجمه**:دخپلي بې کسی بې وطنې اوغم اودخپل قتل ګاه شاوخوا ددې ډلو دراغونډيدو څخه الله ﷻ ته فريادکوم اې دعرش مالکه !دښمن چې زما پرخلاف کومه اراده لري ،پرهغه باندي ماته صبر راکړه ، دوی خوزه بوټي بوټي کړی يم اوخوراک مې يې خراب کړی دی . وقد خيرونی الکفر والموت دونه... فقد ذرفت عينای من غير مدمع

ولست أبالی حين اقتل مسلما... علی أی شق کان فی الله مضجعی

**ترجمه**: دوی دکفر او مرګ ترمینځ اختیار راکی خو مرګ له کفر څخه ډیر راته آسانه دی سترګي مي له اوښکو پرته ډکي ډکي کیږي، داچي مسلمان ومرم نو پروا مي نسته چې دالله په لاره کي په کومه ډډه ووژل سوم.

وذلک فی ذات الاله وان یشاء ... یبارک علی أوصال شلو ممزع

**ترجمه**: دادالله لپاره دی او که دهغه اراده وسوه نو په بوټي بوټي او ټوټه ټوټه اندامونو کي به هم برکت واچوی، بیایې دارته وخیژوي او چاته یې وظیفه ورکړه، چې جسد یې هم دلته پیره وکړه، خو عمر بن امیه الضمری ﷺ دشپې له خوا په یوه چم دهغه مبارک جسد له دې ځای څخه پورته کی او خاورو ته یې وسپاری، خبیب ﷺ دعقبه بن الحارث په لاس شهید سو او دبدر په غزاکي خبیب ﷺ دنوموړي پلار (حارث) وژلي ؤ په صحیح البخاري کي روایت دی چې خبیب ﷺ لومړی شخص دی چې دمرګ په وخت کي یې د دوو رکعتو لمانځه طریقه یې پرې ایښې ده، او کله چې خبیب ﷺ له کفارو سره بندي ؤ نو په داسي حال کي لېدل سوی چې دانګورو وږی یې په لاس کي او انګور یې ورڅخه خوړل او دا په داسي وخت کي چې په مکه کي حتی خرما هم نه پیدا کېده انګور خو لاپرېږده، او زید بن الدثنه ﷺ صفوان بن امیه واخیستی او دخپل پلار په بدل کي یې په شهادت ورسوی، هم دا ډول قریشو څه کسان ولیږل ترڅو دعاصم ﷺ دبدن کومه داسي ټوټه راوړي چې دوی یې وروپېژني چې همدا هغه عاصم ﷺ دی چې دبدر په ورځ یې دمشرکانو لوی او مهم مشروژلي ؤ، خو الله جل جلاله دهغه پرجسد یوسل مچمچی مقرري کړی او کفاریې دې ته نه پرې ښوول چې دده جسد ته لاس ور وړي، عاصم ﷺ له الله تعالی سره داعهد کړی، چې نه به کوم مشرک هغه ته لاس ور وړي او نه به دې په خپله شرک ته لاس ورنژدی کوي، او کله چې داخبره حضرت عمر ﷺ ته ورسیده نو ویل به یې چې الله تعالی مؤمن بنده وروسته له مرګه هم داسي ساتي لکه څنګه چې یې په ژوند کي ساتي.[۴۰۱]

## « دبئر معونه زیاته دردناکه واقعه »

په همدې میاشت کي د الرجیع له غمیزي وروسته یوه بله لویه او ډیره دردناکه غمیزه وسوه چې دبئر معونه په غمیزه سره شهرت لري، ددې پیښي لنډه قصه څه داسي ده چې ابوبراء عامر بن مالک چې په نیزه باز سره مشهور ؤ، په مدینه منوره کي درسول الله ﷺ خدمت

---

[۴۰۱] ابن هشام ۲/ ۱۶۹، ۱۷۹، زادالمعاد ۲/ ۱۰۹، صحیح البخاری ۱/ ۵۶۸، ۵۷۰، ۵۸۵.

ته راغی رسول الله ﷺ هغه اسلام ته راوباله خونو موږي په اسلام مشرف نه سو خو په عین وخت کي يې بالکل رد هم نه کی او عرض يې وکی چي يارسول الله ﷺ که څوتنه اصحاب داهل نجد ددعوت لپاره ولیږی نو دوی به دعوت ومنی او ستادین قبول کړی ،رسول الله ورته وفرمایل زه پرخپلو اصحابو بیریږم چي هسي نه دنجد خلک څه ضرر ور ورسوي ،ابوبراء وویل زه یې ملاتړ کوم ،زه پناه ورکوم ،نورسول الله ﷺ دابن اسحاق په روایت سره (۴۰)اودبخاري په روایت سره (۷۰)کسان دبني ساعده قبیلې دمنذربن عمرو په مشري چي مرګ ته آزاد کړل سوي باندي يې شهرت درلودی ولیږل ،نوموړي اصحاب له غوره ،پخته اوله ټولو څخه په قرآن مجید پوه کسانو څخه ؤ،دوی ورسره روان سول ، دوی به دورځي خس اولرګي راټولول او خرڅول به يې او اصحاب صفه ته به يې غله په رانیوله او قرآن کریم به يې تلاوت اوتدریس کوی اودشپې به يې دالله تعالی عبادت کوی ،په دې ترتیب سره دبئر معونه منطقي ته ورسیدل ،معونه دیو څاه نوم ؤ چي دبني عامر اوحرة بني سلیم(دبني سلیم ډاګ)ترمینځ پرتي مځکه کي واقع ؤ ،دوی هم دلته واړول بیایې أم سلیم ورور حرام بن ملجان درسول الله ﷺ لیک ورکی چي دخدای دښمن عامر الطفیل ته يې ورسوی ،هغه چي کله خط وروړی هغه کافر خط ته هیڅ ونه کتل ،نه يې ولوستی ، اویوه سړي ته اشاره وکړه هغه دشاله خوا دنیزې وار پروکی ،نیزه ترووته ، ویني ورڅخه رواني سوی حرام چیغه کړه الله اکبر ،دکعبې په رب مي قسم چي بریالی سوم ،وروسې سم دلاسه دالله تعالی دښمن عامر پر نورو اصحابو باندي دحملې په خاطر خپل قوم راوپاروی خودوی دابوبراء دپناه ورکولو داحترام په خاطر دعامر ونه مني ، دخدای دښمن بني سلیم ته ورغلی اودپاته اصحابو پرخلاف يې دحملې غوښتنه ورڅخه وکړه اودبني سلیم درو کورنیو عصیه ، رعل اوذکوان داغوښتنه ومنله راغلل اودرسول الله ﷺ اصحاب کرام يې محاصره کړل ،جنګ ونښتی اواصحاب ترهغو وجنګېدل ترڅو په شهادت ورسېدل ،یوازي کعب بن زید النجار رضي الله عنه ژوندی پاته ؤ چي زخمي دشهیدانو په منځ کي پورت ؤاوبیادخندق په غزا کي په شهادت ورسیدی ،هلته عمرو بن امیه الضمري اومنذر بن عقبه بن عامر اوښان پوول ،وې لیدل چي دپیښې پرځای مرغان ګرځي ،راغلل او وی لېدل چي جنګ روان دی ،منذر رضي الله عنه په جنګ ورګډ سواوله خپلو ملګرو سره یو ځای په شهادت ورسیدی خوعمرو بن امیه الضمري دکفارو په لاس بندي سو خو کله چي يې ورته وویل : زه له مضرقبیلې څخه یم نوعامر يې له تندي څخه ویښتان پرېکړل اودخپلې مور له طرفه يې چي دیوه غلام آزادول پرنذر ؤ آزاد کی ،بیاعمر بن امیه الضمري درسول الله ﷺ

حضورته راغی او دا دردونکی خبر یې ورته راوړی او دا یا غوره کسانو دشهادت خبر یې ورته واوروی ،دغي غمیزي دا احد غم راتازه کوي دومره فرق یې ؤ چې په احد کي مخامخ جنګ ؤ مسلمانان دجنګ په ډګر کي شهیدان سوي ؤ ،خودلته دوی په غدر او په خیانت په شهادت رسیدلي ؤ ،کله چې عمرو بن امیه الضمري مدینې ته روان ؤ او دقناة وادي په سرکي (قرقرة) نومي ځای ته ورسیدی تریوې درختي لاندي بیده سول ،عمرو رضي الله عنه په دې نیت چې دخپلو ملګرو انتقام واخلي دواړه په خوب بیده ووژل ،خو حقیقت دا ؤ چې له دې دواړو سره درسول الله صلی الله علیه وسلم پیمان او عهد موجود ؤ خو عمرو په دې خبر نه ؤ ،او کله چې درسول الله صلی الله علیه وسلم حضورته ورسیدی نو قصه یې ورته وکړه ،رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : چې تا دوه داسي کسان وژلي دي چې زه به یې حتماً دیت ورکوم او شروع یې وکړه ددوی دواړو دیت یې له مسلمانانو او ددوی له حلیفانو یهودو راټولوی[٢٠٢] او هم دا پیښه بیا دبني نضیر دغزا سبب سوه ، رسول الله صلی الله علیه وسلم په دې غمجنه پیښه او درجیع په غمیزه ډېر زیات غمجن سو ، دواړه په څو ورځو کي پیښي سوی[٢٠٣] پر رسول الله صلی الله علیه وسلم دخپلو اصحابو غم او درد دومره غالب سو چې په خائنانو او غدارانو پسې یې ښراوي شروع کړی ،دصحیح البخاري روایت دی چې انس رضي الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په هغو کسانو پسې چې دده اصحاب کرام یې په بئر معونه کي په شهادت رسولي ؤ پوره دیرش ورځي ښراوي کولی ،دسهار په لمانځه کي به یې بدي دعاوي ورته کولی فرمایل به یې عصبه دالله جل جلاله او رسول الله صلی الله علیه وسلم له امر څخه عصیان او سرکښي وکړه ترڅو الله تعالی په دې هکله پر رسول الله صلی الله علیه وسلم داسي آیتونه نازل کړل چې وروسته منسوخ سول او دا آیتونه په لاندي ډول دي :

بلغو قومنان انالقیان ربنا فرضی عنا ورضیانا عنه .

ژباړه : زموږ له خوا زموږ قوم ته خبر ورکی چې موږ له خپل رب سره ملاقي سو وهغه زموږ څخه او موږ دهغه څخه راضي یو تردې وروسته رسول الله صلی الله علیه وسلم دا قنوت پرېښووی .

## «دبني نضیر غزا او جبرائیل علیه السلام ته دخبرور کولو امر»

مخکي موو ویل چې دیهودو په زړونو کي داسلام او مسلمانانو ددښمنۍ اور لمبې وهلی خرڅرنګه چې دوی دمیدان میړونه نه ؤ نو ټول یې له غدر،چل ،فریب او دسیسو څخه کار اخیستی ،کیني او دښمني یې زوړنه سوزل ،ډول ډول فتنې او توطئي یې په کار اچولی

او د جنګ پرځای يې مسلمانانو ته د چم او فريب لاري ځخه تکليفونه رسول او سره له دې چې له مسلمانانو سره يې پيمان او تړون هم درلودى ، خو بيايې هم د دوى په لارکى راز راز مشکلات را ولاړول خو د بني قينقاع له غزا او د کعب بن اشرف تروژل کيدو وروسته غلي سول و بيرېدل او څه ناڅه آرام سول ، خو د احد له غزا وروسته يو ځل بيا زړور سول و خوځيدل دښمني او کيني يې راپورته سوى ، د مسلمانانو پرخلاف يې له منافقانو او د مکې له مشرکانو سره پټې اړيکي ټينګي کړى او د اسلام پرضد يې خپله دښمني يو ځل بيا ښکاره کړه [۴۰۴] رسول الله ﷺ د دوى د اکړه وړه لېدل خو بيايې هم له صبر او زغم ځخه کار اخيستى خو د رجيع او بئر معونه له پېښو ځخه وروسته يهودانو هم سپين سترګي سول او حتى د رسول الله ﷺ د قتل توطئه يې جوړه کړه ، د دې تفصيل داسي دى چې رسول الله ﷺ له ځوتنو اصحابو سره د بني نضير مېني ته ورغى تر څو د کلاب قبيلې د دو کسانو پر ديت کى له معاهدې سره سم مرسته وکړي کوم چې عمرو بن اميه الضمري وژلي وُ ، يهودو رسول الله ﷺ ته وويل صحيح ده يا اباالقاسمه ﷺ دلته تشريف کيږده ترڅو ستاغوښتنه پوره کړو ، رسول الله ﷺ ديوه ديوال خواته د دوى د وعدې په انتظار ناست وُ ، ابوبکر رضي الله عنه عمر رضي الله عنه علي رضي الله عنه او نور اصحاب هم ورسره موجود وُ يهود سره ګوښه سول ، شيطان خطا اېستل او دهغې بدبختى خواته يې وبلل چې ورته ليکل سوى وه ، د رسول الله ﷺ د قتل توطئه يې جوړه کړه ، يو بل ته يې وويل : چې څوک به دا د ژرندې پل پورته کړي او د رسول الله ﷺ پرسرېې ور واچوي او له منځه يې يوسي . خداى وهلى عمرو بن جحاش وويل داکار زه وکوم په دې وخت کې سلام بن مشکم ورته وويل چې ګوري داکار مه کوى قسم په خداى چې رسول الله ﷺ ته د دې توطئې خبر ورکول کيږي او دا خو دهغه تړون مخالفت دى چې موږ ورسره امضاء کړى دى خو نورو يهودو دې خبري ته غوږ ونه نيوى او د خپلې توطئې عملي کول يې شروع کړل په همدې شيبو کې رب العاليمن جبرئيل امين ته امر وکى چې ورسه او محمد ﷺ د يهودو له توطئې ځخه خبرکړه ، رسول الله ﷺ سمدستي له نپل ځايه ولاړ سوا و د مدينې په طرف روان سو ، اصحاب ورپسې ورغلل او عرض يې وکى تا تشريف راوړى موږ پوه نه سوو ، ده ﷺ د يهودو له توطئې ځخه خبر کړل ، رسول الله ﷺ مدينې ته له رسيدو سره سم محمد بن مسلمه رضي الله عنه ته امر وکى چې بني نضير ته ورسه او ورته ووايه له مدينې ځخه ووزى ، نور دلته دا وسيدو حق نه لرى ، لس ورځي مهلت درکوم

[۴۰۴] ابوداؤد باب خبر النضير ۳ / ۱۱۶ ، ۱۱۷ ، عون المعبود شرح سنن ابي داؤد.

تردې اخوا که هرڅوک په ګوتوراغلل سرېپ پرېکوم ،یهودان مجبور سول چې دوتوتیاری شروع کړي خودمنافقانو مشر عبدالله بن ابی خبرورکی چې مه وزی هم دلته پاته سی اومقاومت وکړی زه دوه زره کسان درلیږم چې ستاسي یوځای ستاسي په کلاګانو کي ترمرګه مودفاع وکړي ،قرآن کریم دې مطلب ته اشاره کوي اوفرمایي :

لَئِنْ أُخْرِجْتُمْ لَنَخْرُجَنَّ مَعَكُمْ وَلَا نُطِيعُ فِيكُمْ أَحَدًا أَبَدًا وَإِن قُوتِلْتُمْ لَنَنصُرَنَّكُمْ سورة الحشر آیت (۱۱)

**ترجمه**:که خامخا ویستل سی تاسي له مدینې څخه نوخامخاوبه وزو موږ هرو مرو ستاسي سره او نه به منو موږ په ضرر ستاسي کي دهچا هیڅکله اوکه چیري جنګ شروع کړل سي ستاسي سره نوخامخابه کومک وکړو موږ هرو مروستاسي سره اومنافق داهم ورته وویل چې له دې څخه علاوه ستاسي حلیفان غطفان او قریظه به هم ستاسي مرسته کوي په همدې سره یهودیانو ژړه پیداکی ،دمقاومت او مقابلې نیت یې وکی ،مشرېې چې ابن اخطب دمنافقانو دمشرخبره ومنله اورسول الله ﷺ ته یې داسي جواب ولیږی چې موږ له خپل وطن څخه نه ځو څه چې کولای سی لاس موآزاد ،ښکاره خبره وه چې داحالت دمسلمانانو لپاره زیات خطرناک ؤ په داسي حساسو وختوکي له دښمن سره مقابله آسانه نه وه هلته ټول کفار عرب ددوی پرخلاف راپاڅیدلي ؤ ،د دوی له هیئتونو او وفدونو سره یې لوی ظلم او غدر کړی ؤ، پردې سربیره بني نضیر یهودیان خپله هم د زور اوځواک خاوندان ؤ،تسلیمېدل یې ممکن نه برېښیدل اوله دوی سره جنګ ډېرخطرناکه اوله بدوعواقبو څخه خالي نه خود رجیع اوبئرمعون غمیزي مسلمانان ډیرحساس کړي ؤ اوغدارانو پرخلاف یې د دوی په زړونو کي دانتقام اوغچ لمبي بلي کړی وی نوځکه یې فیصله وکړه چې له دې غدارانو سره به چې درسول الله ﷺ دقتل توطئه یې جوړه کړی وه مقابله وکړي اوجنګ به شروع کوي ، نتیجه یې که هرڅه وي کله چې رسول الله ته دیهودو دمشرحی بن اخطب خواب ورسیدی الله اکبرېې ووایه اصحابو هم دتکبیر ناره وکړه اودمقابلې لپاره راپورته سول ،عبدالله بن أم کلثوم یې دمدینې قائم مقام وټاکی ،اوخپله دبني نضیر په طرف روان سول ،حضرت علي رضي الله عنه بیرغ وړی اوپه دې ترتیب سره یې یهودیان په خپلو کورنو کي محاصره کړل ،دوی خپلو کلاګانو ته ننوتل اوله هغه ځای څخه یې مسلمانان په ډبرو اوغشو ویشتل درخما درختي اوباغونه هم ددوی په ګټه ؤ اودوی جنګي استفاده ورڅخه کوله ، نورسول الله ﷺ د درختو دپرېکولو اوسوزلو امرصادرکړی ،حسان رضي الله عنه دامطلب داسي بیانوي اووایي

وهان على سرة بنی لوی .... حریق بالبویرة مستطی

**ترجمه**: دبني لويي دسردارانو لپاره داآسانه خبره وه چې په بويرة كې داور لمبې ګډي سي بويرة دبنونضير دخرماؤ دباغونو نوم وُالله ﷻ په دې باره فرمايي:

مَا قَطَعْتُم مِّن لِّينَةٍ أَوْ تَرَكْتُمُوهَا قَائِمَةً عَلَىٰ أُصُولِهَا فَبِإِذْنِ اللَّهِ وَلِيُخْزِيَ الْفَاسِقِينَ سورة الحشر

**ترجمه**: هغه چې پريكوى تاسي له تنو د درختو دكم اصلو خرماؤ څخه ياپې پرېږدى هغه ولاړي په بيخونو خپلوباندي نودغه ټول په اذن دالله سره دي ،په هرحال كله چې بنونضير محاصره سول نوبنو قريظه يې مرستي ته رانه غلل ، عبدالله بن ابى اوبنوغطفان هم نامردي وسره وكړه دهيڅا خير ورونه رسيدى ،هيڅوک يې دفاع ته راپورته نه سول اوهمداوجه ده چې الله تعالى ددوى داقصه له دې حالت سره تشبيه كوي او فرمايي:

كَمَثَلِ الشَّيْطَانِ إِذْ قَالَ لِلْإِنسَانِ اكْفُرْ فَلَمَّا كَفَرَ قَالَ إِنِّي بَرِيءٌ مِّنكَ سورة الحشر آيت (١٦)

**ترجمه**: (مثال دمنافقانو په مخالفت دوعدې كي)لكه مثل (قصه) دشيطان داسي ده كله چې وايي انسان ته چې كافرسه نوكله چې انسان كافر سي وايي شيطان زه بيزاره جلايم ستا څخه محاصره يوازي شپږ شپې اوپه بل روايت كي (۱۵) ورځ اوږده سوه ، الله تعالى ديهوديانو په زړونو كي بيرواچوله حوصلې يې ټيټې اوارادې يې ماتي سوى ،دسلاميا كېدو اووسلې ايښوولو فيصله يې وكړه ،رسول الله ﷺ ته يې حال وليږى چې موږله مدينې څخه وزو، رسول الله ﷺ د دوى داغوښتنه ومنله اوموفقه يې وكړه چې دوى كولاى سي له خپلواولادنو سره له مدينې څخه په امن ووزي اوكولاى سي له وسأې پرته نورسامان اوكالي چې پراوښانو يې وړلاى سي له ځان سره يوسي ،يهوديان تسليم سول وسلې يې كيښووى اوپه دې شرائطو سره مدينې څخه ووتل اوخپل كورنه يې په خپله ړنګول ،دروازې ،كلكينان،درى اودستګک اوتيرونه يې هم له ځان سره وړل ،ښځي اوكوچنيان يې ټول له ځان سره بوتلل دشپږ سوه اوښانو قافله ورڅخه جوړه سوه اوله مدينې څخه په كډه سول ،ځيني مشران يې لكه حى بن اخطب اوسلام بن الى الحقيق خيبر ته ولاړل ځيني نور شام ته كډه سول يوازي دوو كسانو ايمان راوړى اوهغه يامن بن عمرو او ابوسعدبن وهب وُ چې په اسلام سره يې خپل مالونه هم وساتل ، رسول الله ﷺ دبني نضير وسله راټوله كړه ، ،ځمكي كورونه اوجايدادنه يې قبضه كړل ،په وسله كي پنځوس زغري پنځوس اوسپنيزي خولى اودرې سوه څلويښت توري شاملي وى ،دبنو نضير ځمكي ،مالونه اوباغونه ټول خاص درسول الله ﷺ حق وُ اوصلاحيت يې درلودى چې

هرډول تصرف په کښې وکړي ،ځکه چې پرېږدي اويايې پرنورو وويشي او رسول الله ﷺ له دې مالونو څخه خمس يعني پنځمه حصه بيله نه کړه ،ځکه داغنيمت نهٔ بلکه (فئ) ؤ ځکه مسلمانانو دتوري په زور نيولی نهٔ بلکه بيله جنګ ددوی لاس ته روغلي ؤ نورسول الله ﷺ داما لونه اومځکي په لومړنيو مهاجرينو وويشل اودانصارو له ډلي څخه يې يوازي ابودجانه اوسهل بن حنيف ته چې فقيران ؤ برخه په کښې ورکړه ، اويوه ټوټه مځکه يې دځان لپاره وساتله چې دخپل مبارک کورکلنی خرڅ به يې ورڅخه پوره کوی ،اوکه نور څه به ورڅخه پاته سول هغه به يې دجهاد په لاره کي مصرفول ، وسله اسونه اوداسي نور شيان به يې رانيول دبنونضير غزا دڅلورم هجري کال درېيع الاول په مياشت (۶۲۵م) اګست کي واقع سوی ده الله تعالی دحشر مبارک سورة ټول دهمدې غزا په هکله رانازل کړی دی اوپه همدې سورة سره يې ديهوديانو شړل بيان کړي دي ، له منافقانو څخه يې پردې پورته کړی او دوی يې افشا کړي دي ،دفئ احکام يې ښوولي دانصارو اومهاجرينو ستاينه يې کړی ده اودجنګي اهدافو په خاطريې ددرختو اوباغونو پرېکول اوسوزل روا بللي اومسلمانانو ته يې دتقوی اوآخيرت ته دتياري امرکړی دی اوپه پای کی يې خپل ثناء بيان کړی ،حمد اوصفت يې ويلی اوخپل مبارک نومونه اوصفات يې ياد کړي دي ،ابن عباس رضي الله عنه به دحشر سورة ته به دبنونضير سورة هم وايه.[۴۰۵]

## «دنجد غزااوداعرابو(کوچيانو) تصفيه»

دبنو نضير په غزا کي له قربانۍ اوسخت کړاو پ ئته دمسلمانانو په دې لوي بري سره په مدينه کي داسلام حکم نورهم مضبوط سو ،واکمني يې نوره هم کلکه سوه ،منافقان وبيرېدل دښکاره دښمني توان يې ولاړی اورسول الله ﷺ ته ددې فرصت په لاس ورغلی چې دهغه اعرابو(کوچيانو)دتصفيې لپاره اقدام وکړي چې له احد څخه وروسته يې مسلمانانو ته تکليفونه رسول اوداسلام داعيان يې په ډېره نامردي اوظالمانه طريقې سره په شهادت رسولي ؤ اوداسي زړور سوی ، چې آن پرمدينه باندي يې دحملې سوچونه وهل ،مځکي تردې چې رسول الله ﷺ ددې غدارانواوعهدماتونکو دتاديت او غو تاوولولپاره کوم عملي اقدام وکړي دمدينې استخباراتو خبر ورکړی چې دبنوغطفان قبيلې دوې کورنۍ بني محارب اوبنو ثعلبه دجنګ لپاره تياری نيسي ،نورسول الله ﷺ فيصله وکړه چې دنجد بدويانو اواعرابو ته دعبرت درس ورکړي روان سو اودنجد په صحراګانو کي ترليري پوري ولاړی ترڅو ددې سخت زړو عهدماتوونکو کوچيانو په

---

[۴۰۵] ابن هشام ۲/ ۱۹۰، ۱۹۲، زادالمعاد۲/ ۷۱، ۱۱۰، صنحيح البخارى ۵۷۴، ۵۷۵.

مینځ کي بیره واچوي اوداسي یې وېروي چي بیا دتیر په شان دعهد ماتوولو ،غدر اوخیانت جرأت هم ونه کړي ،درسول الله ﷺ ددې ناڅه حملي دخبر په اورېدو سره هغه اعراب چي دقتل ،غارت ،غلا اولوټمار لپاره یې تیاری نیولی وه ټول وتبتیدل اودغرو په څوکو کي پټ سول اوپه دې ترتیب سره رسول الله ﷺ دا غداران اولوټماران وېرول اوخپل بیرته په امن اسلامتیا سره مدینې ته راغلل.

اهل السیر په دې سلسله کي دذات الرقاع په نامه یوه غزا یاده کړې ده چي دڅلورم هجري کال د ربیع الثاني یاجمادي الاولی په میاشت کي په نجد کی سوی ده ، په دې کی هیڅ شک نسته چي په دې وخت کی دي داغزا سوې وي ځکه دمدینې دشرائطو تقاضا هم داوه وچي باید په دې وخت کي اعرابو ته درس ورکړل سوی وای ،ځکه دابوسفیان سره دوعدې په اساس دبدر د راتلونکی غزا وخت رارسیدونکی ؤ اومخکي له دې چي داعرابو غوړونه تاوسي زوریې مات سي او وېرول سي ،دمشرکانو مقابلې ته وتل او مدینه هم داسي خالي پرېښوول دکامیابي جنګي ستراتیږي خلاف وه اولازمه وه چي لومړی باید ددې لوټمارانو لاس ورلنډ سي اوبیا دابوسفیان دلښکر مقابلې ته ووزي خو ددوی (اهل السیر) داخبره صحیح نه ده چي دڅلورم هجري کال په ربیع الثاني اویاجمادي الاولي کي پیښه سوی غزا دذات الرقاع غزا ده ځکه ذات الرقاع په غزا کي ابوهریره رضی الله عنه اوموسی اشعري رضی الله عنه هم برخه درلوده اوابوهریره رضی الله عنه خودخیبرله غزا څخه څو ورځي مخکي ایمان راوړی ؤ همدا ډول ابوموسی اشعري رضی الله عنه په یمن کي په اسلام مشرف سو بیاپه کښتۍ کي سپورسو اوکښتۍ یې دحبشې په ساحل کي ودرېده اوبیاله حبشې څخه هم هغه وخت راغلی کله چي رسول الله ﷺ په خیبر کي تشریف درلودی نوپردې اساس د ذات الرقاع غزا ترخیبر وروسته پیښه سوی ده ، اوپه دې هکله بل دلیل دادی چي دذات الرقاع غزا په وخت کي رسول الله ﷺ دخوف لمونځ اداکړی دی اودخوف لمونځ دلومړي ځل لپاره دعسفان دغزا په وخت کي روا سوی دی او بیشکه چي عسفان غزا دخندق ترغزا چي دپنځم هجري کال په وروستیو کي وه وروسته پیښه سوده نوپر دې اساس دذات الرقاع غزا په څلورم هجري کال کي نه وه

## «دبدر دویمه غزااوبیرغ دحضرت علی رضی الله عنه په لاس»

وروسته له دې چي مسلمانانو دبدریانو لوټمار اوغرور مات کي ،غوړونه یې ور وپیچل اود دوی له شر څخه یې ځانونه ډاډه کړل نوله خپل لوي دښمن یعني قریشو سره یې دمقابلې تیاری شروع کړه ځکه کال پرختمېدو ؤ اوداحد په میدان کي له کفارو سره دسوي

وعدې ورځي را رسيدونکي وی اّودادرسول الله ﷺ اواصحابو حق ؤ چې د ابوسفيان اودلښکر مخ ته ورووزي اودداسي يو جنګ ميدان ته وروځغلي چې کته يې دهغه چاوي چې دبقاء ورپه اوله مقابل طرف څخه داهليت او هدايات له پلوه وړاندي وي ، پر هم دي اساس دڅلورم هجري کال دشعبان په مياشت کي (۶۲۶م)رسول الله ﷺ له (۱۵۰۰) کسانوسره چې لس آسان هم ورسره ؤ دجنګ په طرف روان سول ،بيرغ يې علي ﷺ ته ورکی اوعبدالله بن رواحه يې په مدينه کي خپل خليفه وټاکی اومخکي ولاړی تر څوبدر ته ورسيدی هم الته يې واړول او د مشرکانو د راتګ انتظاريې کوی ،ابوسفيان زړه نازړه له دوو زرو کسانو اوپنځوسو آسونو سره له مکې څخه را روان سوا وله مکې څخه ليري مر الظهران وادي ته ورسيدی اوله مجنه چيني سره يې واړول،ابوسفيانپه مکه کي سوچو اخيستی ؤ،له مسلمانانو سره ومقابلې انجام ته انديښمن ؤ زړه يې درزيدی اوبيري اخيستی ؤ خومر الظهران ته له رسيدو وروسته نورهم وبيريدی اراده يې کمزوري سوه زړه يې ولويدی دپرشاتګ بهانې يې جوړي کړی ،خپلو ملګرو ته يې وويل : اې قريشو !جنګ هغه وخت ښه دی چې آبادي اوپريماني وي ،مالونه موهم ماړه وي اوتاسي ته شيدې هم در رسيږي ،داکال خووچ دی هيڅ هم نسته نوزه خوبيرته ګرځم راځي تاسي هم راوګرځي اوداسي ښکاري لکه چې دنور لښکر په زړونوکي هم بيره خپره وه ځکه ددې رأيي په اوريدو سره ټول وګرځيدل هيچا هم مخالفت ونه کی اوچاهم له مسلمانانو سره دمقابلې پرخبره تاکيد ونه کی ،خومسلمانان اته ورځي دبدر په ميدان کي ؤ،ددښمن د راتګ انتظاريې کوی ، خپل تجارتي مالونه يې په ښه ګټه پردوی خرڅ کړل اوبيامدينې ته په داسي حال روان سول چې يو ځل يې بيابرلاسی په برخه سوی وه ،حالات يې ترکنټرول لاندي راوستی اوهيبت يې دخلګو په زړونو کي بياځای نيولی ؤ اوپه اوضاع مسلط سوی دي ،داغزا دبدر موعد ،دويم بدر ،بدر الاخرة ،البدر الصغری په نومونو شهرت لري.[406]

## «ددومة الجندل غزااوپه دي کي حکيمانه تدبير»

رسول الله ﷺ له بدر څخه تشريف راوړی هري خواته امن اوآرامي وه اوداسلامي دولت په ټولو برخوکي پوره داد اواطمينان ؤ،همدا وه چې درسول الله ﷺ توجه دعربو دليري ليري پولو خواته واوښتله اواراده يې وکړه هلته هم بايد دمسلمانانو غلبه وي اودوستان اودښمنان ټول د دوی پروجود اعتراف وکړي ، له بدرصغری وروسته شپږ مياشتي په مدينه کي پاته سول اوپه دې وخت کي خبرراغلی چې د دومة الجندل شاوخوا پرتې قبيلې

---

[406] ابن هشام ۲/ ۲۰۹، ۲۱۰، زادالمعاد۲/ ۱۱۲.

لاري نيسي اوخلک لوټوي دا ډول يې زيات شمير کسان راټول کړي اوپرمدينه دحملي تيارى نيسي، نورسول الله ﷺ په مدينه کي سباع بن عرفطه الغفاري خپل قايم مقام وټاکی، اوخپله له زرو کسانو سره دپنځم هجري کال دربيع الاول پر(۲۵) مه نيټه د دومة الجندل په طرف ولاړ، ،دبني عذره قبيلې مذکور نامي يوسړی يې لاروی ونيوی او روان سو، په دې غزا کي به رسول الله ﷺ دشپې مزل کوی او دورځي به يې په دې خاطر دمه کوله چې دښمن اغفال کړي اوناڅاپه حمله ورباندي وکړي ،اوکله چې ورنژدې سو نو معلومه سوه چې دوی راوتلي نو د دوی په رمو اوشپنويې حمله وکړه ،ځيني يې ونيول اونور وتښتيدل اود دومة الجندل اوسيدونکي ټول يوې خوا اوبلې خواته وتښتيدل او کله چې مسلمانان ورغلل نوهيڅوک هم په کوته ورنه غلل ، رسول الله ﷺ څو ورځي دلته پاته سو، جنګي ګروپونه يې يوې بلې خواته واستول خوبياهم څوک په لاس ورنه غلل ،بالاخره بيرته مدينې ته راغلی اوپه دې غزا کي يې له عيينه بن حصن سره سوله اومصالحه هم وکړه ،دومة الجندل د دال په پيښ دشام په پوله يوه سيمه ده چې له دمشق څخه دپنځو شپو مزل اوله مدينې څخه د(۱۵) شپو په اندازه ليري پرته ده ،په دې چټکو اوناڅاپه حملو اودې حکيمانه اومدبرانه پلان اوسياست سره رسول الله ﷺ وتوانيدی چې هري خواته امن اوآرامي خپره کړي ،حالات په خپل کنټرول کی وساتي اودزمانې مخه دمسلمانانو په ګټه بدله کړي ،داخلي اوخارجي مشکلات چې له هري خواپر چاپير دي يوپه بل پسې له منځه يوسي، دمنافقانو کړه خوله وروسمه کړي بړغ يې غلی کړی ديهوديانو يوې کورنی چې بنونضير ته يې ددوی دکړو سرا ورکړه له مدينې څخه يې وشړل اونور يې داسي پاته سول چې دتړون اوعهد پابند ؤ،دهمسايه توب حقوق يې مراعاتول،همدا راز اعراب ډير وډار سول ،ارادې يې کمزوري سوی غرور يې مات سو ،قريشوپه مسلمانانو دحملې فکرونه له زړه څخه ويستل اومسلمانانو ته دافرصت په لاس ورغی چې خلک دالله تعالی دين ته راوبولي.

## «غزوة الاحزاب»

له يو کال اوږده جنګ اونظامي عملياتو وروسته امن او آرامي سوه ،په عربي جزيره کي امنيت قائم سو خويهوديان چې دغدر،خيانت ،توطئو اوسازشونو په نتيجه کي ډير رسوا ،سپک او ذليل سوي ؤ لا اوس هم له مستی څخه لوېدلي نه ؤ ،عقل يې سرته نه ؤ ورغلی له غدر اوخباثت څخه اوښتي نه اوخيبر ته له شړلو وروسته دمسلمانانو او مشرکانو ترمينځ د روان جنګ نتيجه اوپای ته منتظر ؤ خوکله چې حالات دمسلمانانو په

کټه وڅرخېدل او د وخت په تیرېدو سره داسلامي حکومت دائره نوره هم پراخه سوه ،په منطقه کي داسلام حاکمیت نورهم ټینګ سو نو دیهودیانو په زړونو اور بل سو او د مسلمانانو پرخلاف یې نوي توطئې جوړکي او دداسي یوه سازش پلان یې جوړکی چې د مسلمانانو وجود بالکل له منځه یوسي اوله دې امله چې له مسلمانانو سره یې دمخامخ مقابلې توان اوجرأت نه درلودی نو دنفاق اوتوطئې لاریې خپله کړه ،دبنونضیر قبیلې شل مشران یهودیان دمکې قریشو ته ورغلل ،درسول الله ﷺ پرخلاف یې یوې لوي حملې ته راوبلل ،له خپل طرف څخه یې دپوره مرستي وعده ورکړه قریشو داخبره ومنله جنګ ته تیارسول او څرنګه چې دوی داحد غزا څخه وروسته له مسلمانانو سره دبدر په میدان کي د بلي مقابلې وعده کړې وه اوبیایې ددې وعدې مخالفت کړی ، اود مسلمانانو مقابلې ته نه ؤ راوتلي خودوی دغه فرصت دځان په ګټه وباله او غوښتل یې په دې جنګ سره له لاسه تللی حیثیت بیرته راژوندی کړي اوخپله وعده پوره کړي ،دیهود یانو هم د دغه هیئت بیابنوغطفان ته ورغی دوی یې هم دقریشو په ډول درسول الله ﷺ پر خلاف جنګ ته راوبلل ،دوی داپیشنهاد هم ومنی اوجنګ ته تیارسول ،بیاهم دغه یهودیان نورو عربي قبیلوته ورغلل اوپه دې جنګ کي دبرخي اخیستو بلنه ورکړه .

ډیرو جنګ ته خپله امادګي څرګندکړه اوپه دې ترتیب سره یهودي مشران وتوانیدل چې دکفر لښکر درسول الله ﷺ اومسلمانانو پرخلاف راغونډ اوداسلام پرخلاف یې یوې لوي حملي ته تیارکړي .په دې پسې له جوړسوي پلان سره سم دجنوب له خوا قریشو کنانه اوپه تهامه کي له اوسیدونکو قبیلو څخه د دوی نور ملګري اوحلیفان چې ټول څلور زره کسان ؤ دابوسفیان په مشري دمدینې په طرف روان سول اومرالظهران ته له رسیدو وروسته بنو سلیم هم ورسره ملګري سول او د شرق له طرفه دغطفان قبیلې لکه بنو فزاره دعیینه بن حصن په مشري اوبنو مره د حارث بن عوف په مشري اوبنواشجع دمسعر بن رخیله په مشري او ورسره دبنو اسد اونوري قبیلې هم دمدینې په طرف ولاړې ، دکفر دا لښکر له پلان سره سم په ټاکلي وخت دمدینې په لوري ولاړی اوپه څو ورځو کي دمدینې پرشاخواله لس زرو کسانو څخه جوړ سوی لښکر راغونډ سو اوداشمیر په مدینه کی دټولو اوسیدونکو ځوانانو ،سپین ږیرو ، کوچنیانو اوښځو ترشمیرې هم زیاته وه اوکه چیري دالښکري دناخبري په حالت اوناببره توګه دمدینې پولو ته رسیدلی وای نو بیشکه چې دمسلمانانو لپاره به یوه نه جبران کیدونکي خساره وای اوداهم ممکنه وه چې دمسلمانانو ریښې یې له بیخه ایستلی وای او د هستي له میدان څخه یې نابود کړي وای

خود مدينې قيادت يو ويښ او د ويښو مقابلې او ويښو ځخه باخبر قيادت ؤ حالات به يې کنټرول او د وضعې مطابق اقدام به يې کوی.

داحزابو لښکر لا تللی نه ؤ چې د مدينې استخباراتو خپل قيادت ته په دې اړه مکمل راپور ورکی د همدې له رسيدو سم رسول الله ﷺ لوړه مشورتيا غونډه راوغوښتله او له مدينې ځخه د دفاع پر مسئله غور شروع سو، د قيادت اوشوی دنورو غړو ترمينځ له خبرو او مناقشو وروسته د رأيو په اتفاق سره د قدرمن صحابي حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه وړاندي ومنل سو او په هم هغه فيصله وسوه، سلمان فارسي رضي الله عنه عرض وکی چې يا رسول الله ﷺ موږ چې کله په فارس کی محاصره کېدو نو شاوخوا به مو خندقونه کېندل، راځي دلته هم په مدينه چاپيره خندق وباسو دا ډير عاقلدانه وړانديز ؤ، عربيان مخکي له دې ځخه له دا ډول سيستم سره آشنا نه ؤ، رسول الله ﷺ دشوری دا پريکړه فورا د عمل په ډګر کي جاري سوه، هرولسو کسانو ته يې وظيفه ورکړه چې څلويښت ګزه کنده وباسي، اصحابو په ډير مينه او رغبت سره د خندق پر کېندلو کار شروع کی، رسول الله ﷺ به نه يوازي دوی تشريقول بلکه په عملي توګه يې هم د دوی مرسته کوله او په خپل مبارک لاس به يې خندق کېندی، امام بخاري رحمة الله عليه له سهيل بن سعد رضي الله عنه ځخه روايت کوي چې وايي موږ د خندق کېندلو په وخت کي رسول الله ﷺ سره ؤ موږ کار کوی او خاوري به مو په خپلو اوږو وړلی په همدې وخت کي رسول الله ﷺ وفرمايل:

اللهم لاعيش الاعيش الاخرة، فاغفر للمهاجرين والانصار[407]

**ترجمه:** اې الله جل جلاله! ژوند خويوازي د آخرت ژوندی دی، نو مهاجرينو او انصاروته مغفرت وکړه، انس رضي الله عنه روايت کوي او وايي چې رسول الله ﷺ په داسي حال کي خندق ته تشريف راوړی چې مهاجرينو او انصارو په ساړه سهارکي خندق کېندی دوی مزدوران نه درلودل چې دا کاريې ورته کړی وای رسول الله ﷺ چې د دوی ستړيا او لوږه وليدله نووی فرمايل:

اللهم ان العيش عيش الاخرة فاغفر لأنصار والمهاجرة.[408]

**ترجمه:** لويه خدايه جل جلاله ژوند خويوازي د آخرت ژوند دی نو ته انصارو او مهاجرينو ته بخښنه وکړی، اصحابو د خپل محبوب رهبر ﷺ په جواب کي عرض وکی او وی ويل:

---

[407] صحيح البخاری دخندق غزا باب ٢/ ٥٨٨.
[408] صحيح البخاری دخندق غزا باب ٢/ ٥٨٨.

نحن الذين بايعوا محمداً ﷺ، على الجهاد مابقينا ابداً[409]

**ترجمه**: موږ هغه کسان یو چې دژوند ترپایه موله محمد ﷺ سره دجهاد ژمنه اوبیعت کړې دی همدا راز امام بخاري رحمه الله له براء بن عازب رضي الله عنه څخه په روایت سره وایي چې مارسول الله ﷺ ولیدی چې دخندق خاوري یې وړلی اودومره په دوړو کې پټ ؤ چې دمبارک نس پوستکی یې نه معلومیدی ،درسول الله ﷺ پرمبارک بدن ډیرویښتان ؤ ماورڅخه واورېدل چې په همدې وخت کې چې خاوري یې وړلی دعبدالله بن رواحه رضي الله عنه دغه کلمات یې زمزمه کول :

اللهم لولان أنت مااهتدینا.......ولاتصدقنا ولاصلینا

فانزلن سکینة علینا.........وثبت الاقدام ان لاقینا

ان الاولی رغبوا علینا.......وان ارادو فتنة ابینا

**ترجمه**: اې الله جل جلاله که ته نه وای نوموږ به دهدایت لاره نه وای پیدا کړی نه به موخیرات ورکړی وای اونه به مولمونځ اداکړی وای ،نواوس پرموږ سکینت (استقامت) رانازل کړه اوکه مقابله پیښه سوه نوپښې موثابتي وګرځوی ،دوی زموږ پر خلاف خلک راپارولي دي اوکه لویه فتنه یې وغوښتله نوموږ به یې هیڅکله هم ونه منو ، حضرت براء بن عازب رضي الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ به ددې شعر وروسته لفظونه اوږدول اوپه بل روایت کې ددې شعر وروسته فردداسي راغلی دی:

ان الاولی قدبغواعلینا.....وان أرادوافتنة ابینا[410]

**ترجمه**:دوی زموږ پءخلاف ظالمانه بغاوت کړی دی اوکه دوی وغواړي موږپه فتنه کې واچواي نوکله به یې هم ورسره قبوله نه کړو ، مسلمانانو له یوې خوا په پوره مینه او ولوله خندق کېندلو خوله بلې خوداسي لوږه ورباندي راغلی وه چې زړونه یې چوول .انس رضي الله عنه وایي چې دخندق اېستونکو ته به دوی لپې وریشي راوړل سوی دوی به دومره لوږې اخیستي ؤ چې هغه هم دابدبوی لرونکي خواړه به یې چې له ستوني تیرېدل یې هم ګران ؤ خوړل[411]،ابو طلحه رضي الله عنه وایي چې موږله خپلي لوږي څخه رسول الله ﷺ ته شکایت وکی او ور وموښوول چې موږ هریوه په خپل نس باندي یوه یوه ډبره تړلی ده نورسول الله ﷺ

---

[409] صحیح البخاري ٢/ ٣٩٧، ٥٨٨.

[410] صحیح البخاري ٢/ ٥٨٩.

[411] صحیح البخاري ٢/ ٥٨٨.

راوښوولہ چې پہ خپل مبارک ښس پوري يې دوې ډبري تړلي وي [٤١٢] پہ همدې وخت او دخندق کېندلو پہ جريان کي دنبوت ډيري نښاني ليدل سوي دي ،جابربن عبد الله رضي الله عنه وليدل چې رسول الله ﷺ ډيروږی سوی دی نويوه بزه يې حلالہ کړه اوميرمني يې يوه پيمانہ وربشي اوړه کړل بيايہ پټه سره رسول الله ﷺ تہ وويل چې لہ يوڅو محدودو اصحابو سره دده کورتہ تشريف ور وړی ، رسول الله ﷺ ددې خبري پہ اوريدوسره ولاړ سو اودخندق ټول کار کوونکي يې چې زر کسان ؤ لہ ځان سره ملګري کړل اوټول ولاړل اودجابر رضي الله عنه ډوډۍ يې وخوړله اوټول ماړه سول ، دغوښي ديک همداسي ډک پاتہ سو اوړه هم داسي پرخپل حالت ؤ هيڅ شی هم کم سوی نہ ؤ، [٤١٣] دنعمان بن بشير رضي الله عنه خور خندق تہ راغللہ اودوی لپې خرماوي ورسره وی ،غوښتل يې هغه خپل پلار اوماماتہ ورکړي ،کلہ چې رسول الله تہ ورسيده ،رسول الله ﷺ ورتہ وفرمايل خورما دلتہ راوړه خورمايې ورڅخه واخيستلہ اوپرټوټې واچولہ بيايې دخندق کارکوونکي راوبلل ټول راغلل اوداخورماوی يې خوړلې خورماوي هم داسي زياتيدلې ټول ماړه سول خو خورماوي دومره زياتي پاتہ وی چې دڅادر لہ څنډو څخه لوېدلې [٤١٤] پہ همدې ورځو کي لہ دې دوو پېښو څخه يوه بلہ لويہ پيښه هم واقع سوی ده ،امام بخاري رحمه الله له جابر رضي الله عنه څخه روايت کوي اووايي چې موږ پہ خندق کېندلوبوخت ؤ چې يوه سختہ کلکہ ډبره مخ تہ راغلہ ،اصحاب کرام درسول الله ﷺ حضورتہ ورغلل او ورتہ وی ويل: چې پہ خندق کي سختہ او کلکہ ډبره پيدا سوی ده ،رسول الله ﷺ وفرمايل چې پرېږدی! زه پہ خپلہ ورکښتہ کيږم ، بيايہ داسي حال کي ولاړسو چې پرنس يې دوی ډبري تړلي وی داداسي وخت ؤ چې موږ درې ورځي پہ څه شي څکه هم نہ وکړی ، رسول الله ﷺ کلنګ واخيستی اوپر ډبره يې وار وکی پہ همدې ګوزار سره هغه ډبره لکہ ريګ داسي داني داني سوه [٤١٥]. حضرت براء رضي الله عنه وايي چې دخندق ايستلو پہ دوران کي يوه داسي ډبره مخ تہ راغللہ چې کلنګونو هيڅ اثر نہ پرکوی ، ورغلو اورسول الله ﷺ تہ موشکايت وکی ،رسول الله ﷺ راغلی کلنګ يې را واخيستی اووی فرمايل: بسم الله او واريې باندې وکی بيايې وفرمايل الله اکبر دشام دفتحي کلياني راکړل سوی ، دادی زه همدا اوس دهغه ځای سرې ماڼۍ وينم ، بيايې دويم

---

[٤١٢] ترمذي مشکوة المصابيح ٢/ ٤٤٨.

[٤١٣] صحيح البخاری ٢/ ٥٨٨، ٥٨٩.

[٤١٤] ابن هشام ٢/ ٢١٨.

[٤١٥] صحيح البخاری ٢/ ٥٨٨.

وار پروکړې ډېره یې ماته اووې ویل الله اکبر دفارس واک هم راکړل سو، قسم په خدای چې اوس دمدائن سپین قصروینم، بیایې په بسم الله سره دریم وار پروکې او ډېره ټوله میده میده سوه، وی فرمایل: الله اکبر دیمن دفتحې کلیانې هم راکړل سوی، قسم په خدای چې له همدې ځای دصنعا دروازې وینم،[416] ابن اسحاق همدې ته ورته روایت له سلمان فارسي رضي الله عنه څخه رانقل کړی دی[417] دمدینې موقعیت څه داسې ؤ چې له شمالي طرف پرته نوروټولو خواوو ته دخورما باغونه غرونه اوریګستاني پوښتې وی رسول الله ﷺ دیوه عسکري متخصص په حیث په دې ښه پوهیدی چې دکفارو دالوی لښکر پرمدینه باندې یوازې له شمالي لورې څخه حمله کولی سې اوله همدې خوا څخه وربانديي راتلی سې، پرهمدې اساس یې خندق دمدینې په شمال خواکې وکیندی، مسلمانانو خندق کېندلو ته ادامه ورکړه، ټول ورځ په یې کارکوی اوماښام به کورونو ته تلل اومخکې له دې چې دکفارو لوی اوبې شمیره لښکر مدینې ته رالنډ سي دوی د خندق کاربشپړ کړی ؤ[418] دقریشو څلورزره کسیز لښکر دمدینې پولوته راورسیدی داومه سیمې زعابه اوجرف په منځ کې یې په مجتمع الاسیال کې واړول، غطفان، نجد او ملګرو یې شپږ زره پوځیان هم راغلل داحد په شرقي خواکې یې په ذنب انقمي سیمه کې خیمې ودرولې.

وَلَمَّا رَأَى الْمُؤْمِنُونَ الْأَحْزَابَ قَالُوا هَذَا مَا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَصَدَقَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَمَا زَادَهُمْ إِلَّا إِيمَانًا وَتَسْلِيمًا سورة الاحزاب آیت (۲۲) **ترجمه**: اولکه چې ولیدل مؤمنانو لښکر ذکفارو نو وویل مؤمنانو داهغه دي چې وعده کړې ده له موږ سره الله جل جلاله اورسول ﷺ ددغه الله ذنصرت اورښتیا ویلی ؤ الله اورسول ددغه الله په وعده کې اوزیات نه کړل دغه لښکرو کفارو مؤمنانو ته مګرایمان اوتسلیم دالله داحکامو خودمنافقانو اوکمزور ایمان خاوندانو حالت بیابل څه ؤ دوی ددې لښکرو په لیدو سره بیرې واخیستل الله تعالی د دوی حالت ته اشاره فرمایي: وَإِذْ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ مَّا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ إِلَّا غُرُورًا سورة الاحزاب آیت (۱۲) **ترجمه**: اویادکړه هغه وخت کې چې وویل (ابن ابی، ابن قشر اونورو) منافقانو اووویل هغهو کسانو چې په زړونو د دوی کې مرض دنفاق ؤ چې نه ده وعده کړې له موږ سره الله اورسول ددغه (فتح دشام، یمن، فارس) مګرپه غرور تیر ایستلو سره، له کفارو سره دمقابلې په خاطر رسول الله ﷺ له درې زره اصحابو سره له مدینې څخه راغی،

---

[416] سنن النسائی ۲/ ۵٦، احمد فی مسنده داکې راغلی دي وعن رجل من الصحابة.

[417] ابن هشام ۲/ ۲۱۹.

[418] ابن هشام ۳/ ۳۳۰، ۳۳۱.

،شايې دسلع غرته وګرځوله او الته يې سنګر ونيوى ،خندق د دوى او كفارو ترمنځ واقع سو شعار اوشفر يې (حم لاينصرون) ؤ ابن ام مكتوم ﷺ يې په مدينه كې خپل خليفه وټاكى ښځې اوكوچنيان يې دمدينې په كلاګانو اوبرجونو كې سره ټول كړل ، كله چې كفارو پرمسلمانانو اومدينې باندې ديرغل تكل وكى وى ليدل چې ډير ژور او سورور خندق يې مخ ته دى ،بله چاره يې ونه ليده دمسلمانانو دمحاصرې په فكر كې سو،داپه داسې حال كې چې له مكې څخه دروانيدو په وخت كې ورسره دمحاصرې فكر اوپلان نه ؤ،دوى دې ډول يواقدام ته تيارى نه درلوده بلكه په خپله خبره داخندق داسې يوچل اوتاكتيك چې صحرايانو نه پيژندى اونه په پوهيدل ،اصلايې دخندق فكر ذهن ته راغلى هم نه ؤ ،مشركان به په ډيره غوصه دخندق پرغاړه ګرځيدل اوهلته به يې دكمزورې اوضعف دنقطو پلټنه كوله ،ترڅوله هم هغه څخه په استفادې سره اخواتيرسې ،مسلمانانو حالات څارل ، مشركين يې تركلې څارنې لاندې نيولې ؤ،دوى به يې په غشو ويشتل ترڅوله خندق څخه دتيرېدو جرأت ونه كړې ،نه به يې پرېښوول چې خندق ته ورلنډ سې،ځانونه په كښې واچوې اويايې په خاورو سره د ډكولو هڅه وكړې اوځان ته لاره په كښې جوړه كړې ،دقريشوځينو جنګيالانودانه سواى زغملاى چې دمحاصرې نتيجې او پايلې ته انتظار وباسې اوبې فائدې دخندق پرڅنډو ولاړ وې ، داد دوى لپاره زغم نه وه ، هم داو چې يوه ډله چې عمربن عبدود ،عكرمه بن ابى جهل،ضرار بن خطاب اونورپه كښې ؤ را ووتل ،دخندق يوه تنګه نقطه يې انتخاب كړه او ور داخل سول اسونه يې ترخندق واړول ، دخندق اوسلع غره ترمنځ په دې ساحه كې يې وځغلول ،حضرت علي ﷺ له يو شمير مسلمانانو سره د دوى مقابلې ته ور ووتى اوهم هغه ځاى يې ورته ونيوى له كوم څخه چې دوى راتير سوي ؤ.

په دې وخت كې عمرو بږغ وكى چې څوك مقابلې ته تياردې ،حضرت علي ﷺ ورواړاندې سو اوداسې يوه خبره يې ورته وكړه چې عمرو له ډيرې غوصې له آس څخه وركښته سو، دآس پښې پريكړې اوپرمخ يې هم ګوزارونه باندې وكړل ، عمرو د قريشو له ډيرو مشهورو ،غيرتې اوجنګيالانو څخه ، دواړه سره مخامخ سول يوپربل يې دګوزارونو هڅې كولې ،بالاخره علي ﷺ وتوانيدى چې خپل دښمن عمرو له پښو وغورځوې اوپه هلاكت يې ورسوى ، نورو مشركينو دتيښتې لاړ ونيوله اودوى داسې بيرې اخيستې ؤ چې له عكرمه څخه خپله نيزه هم پاته سوى وه اوله ميدان څخه يې ځغستل ،څوواره داسې هم سوې چې مشركينو له خندق څخه دتيرېدو كوښښونه كړيدې ،ډيرې هڅې يې كولې چې

ځان ته لاره په کنبي پيدا کړي مګر مسلمانانو په ډيره ميړانه مقابله کوله ،په غشو يې ويشتل او کله مقابله او دفاع به يې کوله او د مسلمانانو د همت او شجاعت له برکته د کفارو ټولي هڅي ناکامي او شنډي سوې ، مسلمانان په داسي کلکه او مسلسله مقابله بوخت ؤ چي له رسول الله ﷺ او اصحابو څخه څو لمونځونه هم قضا سول ،په بخاري او مسلم شريف کی له حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چې وايي د خندق دغزا په ورځ حضرت عمر رضي الله عنه راغلی او کفاروته يې په درد ويل يايې ووېل يارسول الله ﷺ نن مي په ډير مشکل سره د ماښام لمونځ د لمر لوېدو په وخت کي اداکی ،رسول الله ﷺ ورته وفرمايل قسم په الله جل جلاله چې ما لاتر اوسه هم لمونځ نه دی اداکړی ، جابر رضي الله عنه زياتوي بيا موږ له رسول الله ﷺ سره بطحان ته کښته سوو هلته يې اودس وکی موږ هم اودسونه وکړل ،بيايې د ماښام لمونځ په داسي وخت کي اداکی چې لمر لويدلی ؤ،وروسته يې د ماښام لمونځ اداکی.[419] رسول الله ﷺ د لمونځ د قضا کېدو له وجي د ومره خفه سو چې د کفارو لپاره يې ښېراوي کولی امام بخاري رضي الله عنه له حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت کوي وايي چې رسول الله ﷺ د خندق په ورځ وفرمايل الله عزوجل دي د دې مشرکينو کورونه او قبرونه له اور څخه ډک کړي هغه چې موږ يې داسي مصروف وساتلو چې د ماښام لمونځ مو د ومره ناوخته سو چې له لمر لوېدو وروسته مو اداکی [420]، په مسند امام احمد رضي الله عنه او امام شافعي رضي الله عنه کي روايت دی چې مشرکانو داسي سختي حملې کولی او مسلمانان يې د ومره مصروف ساتلي ؤ چې د ماپښين ماځيګر،ماښام او ماخستن ټول لمونځونه ورڅخه قضاسول ، بيا وروسته يې ټول يوځای ادا کړل ،امام نووي رضي الله عنه وايي چې د دې روايتونو ترمينځ جمع داسي کېدای سي چې د خندق غزا څو څو ورځې وه کېدای سي يوه ورځ يو لمونځ ورڅخه قضاسوی وي او په بله ورځ ټول قضا سوي وي [421]، له دې څخه دا خبره ثابتيږي چې مشرکينو څوورځې مسلسل هڅه کوله چې له خندق څخه تيرسي او مسلمانانو هم په مسلسله توګه په کلکه دفاع او مقابله بوخت ؤ او څرنګه چې خندق د دواړو طرفونو يو پربل غشي ويشتل او دليري څخه مقابله روانه وه ،دغشو ويشتلو په نتيجه کي د دواړو طرفونو څخه څوکسه ووژل سول ،په دې حمله کي شپږ مسلمانان شهيدان او لس مشرکين په هلاکت ورسيدل ، په داسي حال کي چې يوازي يو او يا دوه

[419] صحيح البخاري ٥٩٠/٢.

[420] همدا ذکر سوی مصدر.

[421] مختصر سيرة الرسول للشيخ عبدالله النجدي ص ٢٨٧، شرح مسلم للنووي ٢٧٧.

کسان په توره وژل سوی هم دا ډول په دې دوران کي سعدبن معاذ رضی الله عنه هم په غشي ولګېدی او دموت لوی رګ یې پرې سو ، نوموړي دقریشو دیوه تن چې حبان بن العرقة نومېدی په غشي ولګېدی په دې وخت کي سعد رضی الله عنه دعاوکړه چې اې خدایه ﷻ ته ښه عالم یې چې زه ترټولوزیات له هغه کسانو سره جنګ خوښوم کوم چې ستا درسول الله ﷺ تکذیب یې کړی دی اوهغه یې له خپل کور څخه هجرت کولو ته مجبور کړي دي ، اې الله جل جلاله داسي ښکاري لکه زموږ او دوی ترمینځ چې جنګ وروستي پړاوته رسیدلی وي ، که چیري له قریشو سره زموږ د جنګ څه وخت پاته وي نوخدایه ماژوندی ورته پرېږده ترڅو زه ستاپه لاره کي جهاد ورسره وکړم اوکه له دوی سره دې جنګ پای ته رسولی وي نو بیا دازخم نورهم زیات کړی او مرګ مي له هم دې زخم څخه وګرځوه[٤٢٢] اې خدایه ! ترهغو پوري مي مه وژنه ترڅو مي په بنو قریظه زړه یخ سوی نه وي[٤٢٣] په داسي حال کي مسلمانان د جنګ ډګر کي له دا ډولي ستونزو سره لاس اوګریوان ؤ ، دفریب اوغدر لښکر لکه زهرجنو مارانو په شان اوښتل را اوښتل ، اوکوښښ یې کوی چې مسلمانانو ته تاوان ورسوي ، دبنونضیر مشر اولوی مجرم روان سو اودبني قریظه مېني ته ورغی هلته یې له کعب بن اسد قریظي سره چې د بني قریظه مشرؤ ولیدل بني قریظه له رسول الله ﷺ سره دا عهد کړی ؤ چې که جنګ ییښیږي نودوی به دمسلمانانو څنګ ته دریږي او د دوی مرسته به حیی ورغی دکعب دروازه یې وټکوله ،کعب دروازه خلاصه کړه هغه اصرار کوي ترڅو چې دروازه یې ورته خلاصه کړه ،حیی ورته وویل ماتاته همېشني عزت اوبې شمیره لښکري را واستولی ،قریش د دوی مشران اورهبران ټول درته راوستلي دي ،دوی اوس د رومه په مجمع الاسیال کي دي ،ماغطفان او د دوی مشران اورهبران ټول درته راوستلي دي دوی داحد په خوا په ذنب نقمي کی اړولي دي ،دوی ټولو له موږ سره داعهد کړیدی چې ترهغوبه پرشانه ځي ترڅویې محمد ﷺ او اصحاب یې له منځه نه وي وړي ،کعب ورته وویل قسم په خدای چې تاعزت نه بلکه ذلت راته راوړی ،اوداسي یولښکر دي راوستلی چې هغه وریځي ته ورته دي چې هیڅ اوبه په کښي نه وي هغه وریځ چې رعد اوبرق یې وي خودباران درک یې نه وي ، اې حیی ! ستاپرحال افسوس ،ماپرېږده ماله محمد ﷺ څخه له رښتیا اووفاء پرته بل څو نه دی لیدلی ،خوحیی هم داسي اخته ؤ په یوه اوبله لاره یې دکعب دقانع کولو کوښښ کوی او ورته وی ویل دخدای په نامه داعهد درسره کوم که

---

[٤٢٢] صحیح البخاري ٣/ ٥٩١.
[٤٢٣] ابن هشام ٣/ ٣٣٧.

چيري قريش او غطفان په دې ونه توانيدل چې محمد ﷺ له منځه يوسي او دوی بيرته مکې ته راغلل نو په دې صورت کې به زه ستاسره يوځای ستاسي په کلاکې پاته کيږم او څه چې پر تا راځي هغه دې پر ما هم راسي، دهمدې خبرې په اورېدو سره کعب بن اسد له رسول الله ﷺ سره خپل تړون مات کی او له مسلمانانو څخه يې د دوستي پيمان بيرته واخيستی او دوی پرخلاف دمشرکينو په خواکې ودرېدل[424] همدا وه چې دبني قريظه يهود عملا دمسلمانانو پرخلاف وجنګېدل، ابن اسحاق وايي صفيه بن عبد المطلب دحسان بن ثابت رضي الله عنه په فارع نومي کلاکې وه، هلته حسان سره له نورو کوچنيانو اوښځو هم ؤ، صفيه رضي الله عنها وايي يو يهودي زموږ کوڅې ته راغی اوترکلا شاوخوا را ګرځيدی دا هغه وخت چې بنو قريظه له رسول الله ﷺ خپل تړون مات کړی ؤ او دمسلمانانو پرخلاف جنګ ته داخل سوی ؤ، زموږ سره هيڅوک هم نه ؤ چې دفاع مووکړي، رسول الله ﷺ او مسلمانان له دښمنانو سره په مقابله بوخت ؤ، که موږ ته څه مشکل پيدا کېدلای نو هغو زموږ مرستي ته نه سوای راتللای، صفيه رضي الله عنها زياتوي اووايي چې ماحسان ته وويل حسانه! دايهودي خووينې چې دکلادباندې ګرځي، قسم په خدای زه فکر کوم چې هغه غواړي زموږ خبر نورو يهوديانو ته يوسي، رسول الله ﷺ او اصحاب خو هلته مشغول دي ته ورسه اودايهودي ووژنه، حسان وويل: ته خو ښه پوهيږې چې زه ددې کارلپاره تيار اومناسب نه يم، صفيه رضي الله عنها وايي همدا وه چې ماخپله ملاوتړله اويو کوتک مي راسره واخيستی او ورکښته سوم پرهغه ستنه چې راسره وه يو سخت وار مي پروکی او يهودي مي وواژه بيرته کلا ته راغلم، حسان ته مي وويل: اوس ورسه له هغه څخه وسله راواخله ځکه مايې لاس پرېکړی، حسان راته وويل: زه دده وسلې اوسامان ته هيڅ اړتيا نه لرم[425] په دې ډول سره د رسول الله ﷺ عمه حضرت صفيه رضي الله عنها داسي يوه کارنامه ترسره کړه چې دمسلمانانو دميرمنو او اولادنو دساتنې سبب سوه، يهوديانو داسي ګومان وکی چې ګويا يوشمير مسلمانان له دې کلاګانو اوبرجونو څخه ساتنه کوي، په داسي حال کې چې اصله داټول خالي ؤ هيڅوک هم دلته موجود نه ؤ، همدا يو جرأتمندانه اقدام ددې سبب سو چې يهوديانو بيادې ډول اقدام ته زړه ښه نه سوای کولای، خو دوی په عملي توګه له مشرکانو سره مرسته کوله، دوی ته يې کومکي مواد ليږل اوله همدې کومکي موادو څخه مسلمانانو يوځل شل اوښان ونيول.

---

[424] ابن هشام ۲/ ۲۲۰، ۲۲۱.
[425] ابن هشام ۲/ ۲۲۸.

کله چې داخبررسول الله ﷺ اومسلمانانو ته ورسیدی نودخبردتحقیق اوبني قریظه د دریځ معلومولو په خاطر یې سعدبن معاذ رضی الله عنه ،سعد بن عباده رضی الله عنه ،عبدالله بن رواحه رضی الله عنه اوخوابت بن جبیر رضی الله عنه دوی ته ولیږل ، او ورته وی ویل چې ولاړ سی اووګوری چې داخبر رښتیا دی اوکه نه ؟که فرضا خبره رښتیا وه یعني دوی زموږ سره خپل تړون مات کړي اوله قریشو سره یې تړون کړي ؤ نوماته داسي یوڅه ووایاست چې زه پرې پوه سم ،خبره ټول خلکو ته مه اعلانوی اوکه فرضا دوي تراوسه پوري زموږ سره وفادار پاته سوي ؤ نوټولو خلګو ته یې اعلان کړی ،پلاوي چې کله ورلنډ سول نو له یهودو څخه یې دومره بده معامله ولیدل چې ګمان یې هم نه کېدی ،فورا یې درسول الله ﷺ په شان کی ګستاخي وکړه ، دهغه پلاوي ته یې بد رد وویل په ډیره بې شرمي سره یې ورته وویل : رسول الله ﷺ څوک دی ؟زموږ ترمینځ هیڅ تړون نسته ،ځی بیرته ولاړ سی ،هیئت همداسي ولاړی اوکله چې درسول الله ﷺ حضور ته ورسیدل په شفر کي یې ووته وویل :عضل وقارة یعني بنوقریظه هم داسي غدر کړی دی لکه څرنګه چې دعضل اوقارة خلګو له اصحاب الرجیع سره کړی ؤ ،که څه هم کوښښ وسو چې خبره پټه وساتل سي خواصحاب په حقیقت پوه سول اودلوی خطر احساس یې وکی ،داد مسلمانانو لپاره ترټولو سخته شیبه وه ، د دوی اوبنوقریظه ترمینځ هیڅ حایل نه ؤ،دوی هر وخت کولای سوای پرمسلمانانو دشاله خوابرید وکړي ،داهم په داسي وخت کي چې مخ ته دکفارو داسي یولوی لښکر پروت ؤ چې یوه لحظه یې هم له سترګو څخه نه سوای پناه کېدای دمسلمانانو پرماشومانو اومیرمنو دیهدو برید دمخنیوي لپاره څوک نه ؤ،ټول مسلمانان ډیر غمجن ؤ،د دوی دغه حالت قرآن کریم داسي ترسیموي اوفرمایي ؛

وَإِذْ زَاغَتِ الْأَبْصَارُ وَبَلَغَتِ الْقُلُوبُ الْحَنَاجِرَ وَتَظُنُّونَ بِاللَّهِ الظُّنُونَا (١٠) هُنَالِكَ ابْتُلِيَ الْمُؤْمِنُونَ وَزُلْزِلُوا زِلْزَالًا شَدِيدًا .سورة الاحزاب آیت(١١)

**ترجمه**:اوکله چې کږې خړې سوی سترګي له ډیر بیري او ورسیدل زړونه بیخونو دمریوته له ډیره خوفه اوګمانونه وکړل سول تاسوپرالله راز راز ګمانونه ،په دې وخت کي وازمویل سول مؤمنان له منافقانو څخه او وخوځول سول په خوځولو سختوسره له ډیري بیري ، دلته یوځل بیا دځینومنافقینو نفاق څرګند سواو وی ویل چې محمد ﷺ موږ ته د کسری اوقیصر دخزانو وعده راکوي ، خونن موږ حتی نه سوکولای چې دقضا حاجت لپاره دباندي ووزو ،ځیني منافقین خوراغلل او دروغ بهانې یې جوړي کړی چې زموږ په

کورنو کي څوک نسته یارسول الله ﷺ موږ ته اجازه راکړه چې خپلو کورونو ته ولاړ سو، زموږ کورونه له مدينې څخه دباندي دي، ترزيات خطر لاندی دي، په بنو سلمه کي هم بالکل ماته ګډه سوه، دهمدوی په هکله الله تعالی داآيتونه نازل کړل.

وَإِذْ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ مَّا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ إِلَّا غُرُورًا (۱۲) وَإِذْ قَالَت طَّائِفَةٌ مِّنْهُمْ يَا أَهْلَ يَثْرِبَ لَا مُقَامَ لَكُمْ فَارْجِعُوا وَيَسْتَأْذِنُ فَرِيقٌ مِّنْهُمُ النَّبِيَّ يَقُولُونَ إِنَّ بُيُوتَنَا عَوْرَةٌ وَمَا هِيَ بِعَوْرَةٍ إِن يُرِيدُونَ إِلَّا فِرَارًا سورة الاحزاب آيت (۱۳)

**ترجمه:** اوياد کړه هغه وخت کله چي وويل ابن ابی، ابن قيشر اونورو منافقانو او وويل هغو کسانو چې په زړونو د دوی کي مرض دنفاق ؤ چې نه ده وعده کړی زموږ سره الله اورسول دده (الله په فتح دشام، يمن، پارس) مګر په غرور تيرايستلو سره، اوکله چې وويل يوې طائفې له دغومنافقانو چې اهل ديثرب (مدينې) نسته ځای دهستوګنې تاسي ته نوبيرته وګرځي او اذن دبيرته تلل غواړي يوفريق دله له دوی له نبي څخه وايي بنوحارث اوبنوسلمه چې بيشکه کورونه زموږ تش پراته دي له سرو څخه حال داچې نه دي تش پراته کورونه د دوی نه لري اراده دوی په دغه تګ سره مګر دتيښتي له جنګه.

رسول الله ﷺ ته چې دبنوقريظه دغدر خبرراغی نوخپل مبارک سره اومخ يې په څادر کي پټ کی، وغځيدی، څه ځنډيې وکی، اصحابو چې داحالت وليدل نوهم پريشانه سول په همدې وخت کي درسول الله په زړه کي دهيلي اوامید نوی څپه راغله، راپاڅيد دالله اکبر نعره يې وکړه وی فرمايل : مسلمانانو! دالله تعالی له لوري دبري اوفتحي مبارکي درکوم، بيايې پيل وکی اويوه جامع طرحه يې جوړه کړه، دهمدې طرحي پراساس يې يوه ډله وسلوال کسان مدينې ته وليږل ترڅوپر کوچنيانو اوکورنو بريد ونه سي، دغه وخت غوښتنه داوه چې بايد يو داسي اقدام وسي چې دمشرکانو ليکی دړي وړي کړي، دهمدې غرض په خاطررسول الله اراده وکړه دغطفان قبيلې له مشرانو عيينه بن حصن اوحارث بن عوف سره مصالحه وکړي دوی ته يې وړانديز وکی که چيري دوی بيرته راسي اوخپل قوم له ځان سره بوزي نوپه بدل کي به ورته دمدينې دميوې دريمه برخه ورکړل سي، دوی ته دا وړانديز وسو چې تاسي ولاړسی قريش يوازې پريږدی، ترڅوموږ حساب ورسره وکړو په دې وړانديز څه خبري وسوی رسول الله ﷺ له سعد بن معاذ رضي الله عنه اوسعدبن عباده رضي الله عنه سره مشوره وکړه، دوی دواړو ورته وويل يارسول الله ﷺ که چيري الله جل جلاله دامردرته کړی وي نوپه سترګو مونلی اوکه داستا له خوا زموږ دنجات لپاره يو

هغه وي نو بیادا عرض دی چې دجاهلیت او بت پرستي په زمانه کې هم دوی په زور رسره زموږ میوې نه دي خوړلي ،هغه وخت یې دمدینې یوازي هغه میوې خوړلي دي چې یایې رانیولي اویاچاپه میلمستیا کي ورکړي دي ،اوس چې الله په اسلام مشرف کړو هدایت یې راته وکی او ستاسو په وجود سره یې موږ ته عزت راوباخښه نو بیا ولي دامیوې ورکوو؟قسم په خدای چې له توري پرته به هیڅ هم ورنه کوو، رسول الله ﷺ همدا دوی رأیه غوره وبلله او ورته وی فرمایل دزما طرحه وه ،ما ددې په خاطر وړاندي کړی وه ،چې له خطره مو وژغورم ځکه ما لیدل چې عرب ستاسي پرخلاف دریدلي دي ،بیا الله تعالی د خپل رحمت له مخه داسي کاربرابر کی چې ددښمنانو دماتي ،رسوایي اوبیلتون سبب سو ، غروریې مات او مستي یې له منځه ولاړه اودکار داسي وسو چې دغطفان قبیلې یوسړی چې نعیم بن مسعود بن عامر الاشجعي رضي الله عنه نومیدی ،رسول الله ﷺ ته راغلی عرض یې وکی چې یارسول الله ﷺ زه مسلمان سوی یم خوقوم راباندي خبرنه دی ماته امرکوه څه وکړم ؟رسول الله ﷺ ورته وفرمایل ته یوکس یې دښمن چي په هره طریقه سره زموږ څخه دفع کولی سي هغه وکړه ځکه جنګ چم دی ،نعیم رضي الله عنه فورا بني قریظه ته ورغی له دوی سره یې له پخوا څخه ښې اړیکي درلودی او ورته وی ویل تاسوخوپه دې پوهیږی چې زه ستاسو سره څومره مینه لرم ،زموږ او ستاسي اړیکي خو ډیري نژدې دي ،دوی ورته وویل په دې کې خو شک نسته ،ده ورته وویل ګوري قریش خوستاسي په څیر نه دي داوطن خوستاسي دی ستاسي مالونه ،ښځي اولادونه او ټول شیان هم دلته دي ،داسي خوامکان نه لري چې داټول پریږدی اوبل ځای ته ولاړسی ،قریش او غطفان چې له رسول الله ﷺ دجنګ په نیت راغلي دي دادی تاسي له دوی سره مرسته کوی،ددوی اولادونه ،مالونه اوښځي ټول په خپل وطن کې دي که فرصت ورته برابرسو بریالي سول نوښه اوکه نه نو ولاړ به سي تاسي او محمد ﷺ به سره پریږدي ،دوی ورته وویل نوڅه کول په کاردي ،یابانعیمه ده ورته وویل ترهغه وخت پوري په جنګ کې مرسته مه ورسره کوی ترڅو مویوڅوکسان ګروځني اخیستي نه وي ،بني قریظه دده رأیه خوښه کړه او وی ویل ښه مشوره دي راکړه ، بیانعیم رضي الله عنه سیده قریشو ته ورغی او ورته وی ویل په دې خوپوه یاست چې زه ستاسي سره ډیره مینه لرم اوهمدردي لرم دوی وویل بیشکه ته زموږ دوست یې ده وویل یهود له رسول الله ﷺ سره پرخپل عهد اوتړون ماتولو پښیمانه سوي دي ،دوی بیا له رسول الله ﷺ سره رابطه ټینګه کړی ده اودا وعده یې ورسره کړی ده چې دوی به ستاسي ځیني کسان ګرو اخلي اوبیابه یې محمد ﷺ ته سپاري اوپه دې سره به دوی له

محمد ﷺ خپله دوستي ټينګوي که فرضا يهودو ستاسو څخه دڅوکسانو دګرو کولو غوښتنه وکړه نو مه يې منی اوګرو کسان مه ورکوی بياله دوی څخه دغطفان قبيلې ته ورغی دوی ته يې هم همداسي خبره وکړه ،کله چې دپنځم هجري کال د شوال دمياشتي دشنبې ورځ را ورسيدله ،قريشوبنی قريظه ؤ ته حال وليږی چې موږ خودلته مسافريو په خپل وطن کي نه يوو اوښان اوآسونه مومري ،راځي زموږ مرسته وکړی ترڅو پرمحمد ﷺ بريد وکوو ،يهوديانو جواب ور واستوی چې نن خودشنبې ورځ ده ،تاسي خو خبر ياست چې په دې ورځ زموږ دشريعت له حکم څخه سر غړونکو ته کومه سزا ورکړل سوی وه،په هرحال موږ ترهغو پوري ستاسي په ګټه په جنګ کي برخه نه اخلو ترڅوپوري مونږ ته څوکسان يرغمال په توګه راکړي نه وي ،دقريشو قاصد چې دا خبر راوړی ،قريشو او غطفان يوبل ته وويل چې قسم په الله نعيم رښتيا ويلی ؤ ،سمدستي يهودو ته حال وليږی چې قسم په خدای که يوکس هم ديرغمل په توګه درکړو ، راځي په ګډه پرمحمد ﷺ حمله وکړو ،قريظه ددې خبري په اورېدو سره وويل نعيم رښتيا راته ويلي ؤ اوپه همدې طريقه سره ديهودو او مشرکينو ترمينځ بې اتفاقي اونفاق رامنځ ته سو ،ارادې يې سستي اوحوصلې يې ټيټي سوی ، مسلمانانو خپل رب ته زاری اوسوالونه کول اوويل به يې اې الله جل جلاله !ته زموږ پرده وکړی اوله خطرونو څخه په امن وساتی،رسول الله ﷺ دکفارو په حق کي ښراوي کولی اوداالله جل جلاله څخه يې د دوی دماتي سوالونه کول ،فرمايل يې اې دقرآن کريم نازل کوونکيه ربه جل جلاله !اې په چټکي سره حساب کوونکيه !ته دکفارو داټولی ماتي کړی خدای دوی ته شکست اوماته ورکړی او دوی ولړزوی[٤٢٦] ، الله تعالی دخپل رسول الله ﷺ اومسلمانانو سوالونه قبول کړل وروسته له هغوچي دکفارو ،يهودو اومشرکينو ترمينځ نفاق او درز پيداسو ،الله عزوجل داسي باد ورباندي مسلط کړی چې خيمي يې پورته کړی ، ديګونه يې ورچپه کړل ،دخيمو تناوونه يې له بيخه راويستل، هيڅ شی يې په امن نه ؤهمدا ډول الله تعالی دملائکو لښکر هم ور واستوی کفاريې ولړزول اوپه زړونوکي يې بيره اورعب ورواچوی

رسول الله ﷺ په همدې سخته سړه شپه کي حذيفه بن اليمان رضي الله عنه دمشرکينو مينځ ته وليږی ترڅو ددوی په هکله معلومات راوړي ،حذيفه رضي الله عنه ورغلی اووی لېدل چي دد وی هرڅه په بل مخ چپه دي ،تولو ديرته تلوتياري شروع کړه ،همدا احوال يې درسول الله ﷺ حضورته راوړی اوکله چي سهار سو ،رسول الله ﷺ وليدل چې الله جل جلاله دښمنانوته ماته

---

[٤٢٦] صحيح البخاری کتاب الجهاد ١/ ٤١١، کتاب المغازي ٢/ ٥٩٠.

ورکړې ده او په داسې حال کې بيرته تللي دي چې د الله تعالى له قهر او غضب پرته يې بل هيڅ هم لاس ته راوړي نه دي، او په همدې سره الله تعالى خپله وعده رېښتونې کړه، خپل لښکر مسلمانانو ته يې عزت ورکړ، د خپل بنده محمد ﷺ مرسته يې وکړه او ټولو کفارو ته يې ماته ورکړه، په پای کې رسول الله ﷺ بريالى مدينې ته بيرته راغلی، د خندق غزا په صحيح روايت سره د هجرت په پنځم کال د شوال په مياشت کې وه، مشرکينو تقريبا يوه مياشت رسول الله ﷺ او اصحاب محاصره کړې ؤ له روايا تو داسې ښکاره کيږي چې د محاصرې شروع د شوال په مياشت او په ذی القعده کې پای ته رسيدلې وه، ابن سعد رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ د خندق څخه د چارشنبې په ورځ چې د ذی القعدې يوازي اووه ورځې پاتې وې مدينې ته ستون سو، د خندق غزا د تلفاتو جنګ نه ؤ بلکه دا د اعصابو جنګ ؤ که څه هم په دې غزا کې سختې نښتې نه دي سوي خو بيا هم د اسلامي تاريخ له پرېکنده جنګ څخه شمېرل کيږي، په دې جنګ کې مشرکينو ماته وخوړه، حوصلې يې ولويدې، د دې غزا په ترڅ کې دا په اثبات ورسيدله چې د عربو هيڅ ځواک هم د دې توان نه لري چې په مدينه کې و ده کوونکي وړو کي قوت له مينځه يوسي، ځکه ټولو ولېدل چې عرب په پوره شور او ځواک سره راغلي دي، خو هيڅ يې هم ونه کړل، هم دا وجه وه کله چې احزاب د الله تعالى په امر له مدينې څخه بيرته راغلل، رسول الله ﷺ وفرمايل چې اوس به موږ حملې پر کوو، نور به دوى حملې را باندي کوي موږ به پسې ورځو.[427]

## «د بني قريظه غزا او د جبرائيل عليه السلام فرمان»

په هم هغه ورځ چې رسول الله ﷺ بيرته مدينې ته تشريف راوړې، ماپښين جبرائيل عليه السلام په داسې حال کې ورته راغلی چې رسول الله ﷺ د أم سليم په کور کې غسل کوي ورته وې ويل چې ايا تا خپله وسله ايښې ده؟ ملائکو خو تر اوسه وسلې نه دي ايښې او تر اوسه پورې په کفارو پسې دي، بيرته نه دي راغلي، ولاړ سه له خپلو اصحابو سره د بني قريظه ؤ په طرف ولاړ سه، زه تر تا مخکې ور روان يم، کلاګانې يې ورلړزوم، په زړونو کې يې بيره اچوم، وروسته جبرايل عليه السلام له ملائکو سره روان سو، رسول الله ﷺ امر وکړی چې ټولو ته دې د اعلان وسي څوک چې امر قبلوونکى وي بايد د ماځيګر لمونځ بني قريظه ؤ ته ورسوي، عبدالله بن أم مکتوم رضي الله عنه يې د مدينې والي وټاکی، بيرغ يې حضرت علي رضي الله عنه ته ورکړی او د بني قريظه ؤ په طرف وليږی، حضرت علي رضي الله عنه ولاړی او کله چې د بني قريظه ؤ کلاګانو ته ورلنډ سو نو د رسول الله ﷺ په اړه يې له دوی څخه نامناسبې خبرې واورېدلې

---

[427] صحيح البخاری ۲/ ۵۹۰.

،رسول الله ﷺ له انصارو اومهاجرینو سره روان سو ،مخکي ولاړی اودبني قریظه له(انا)نومي څاه سره تم سو ،مسلمانانو ټولو درسول الله ﷺ دامرتعمیل وکی،سمدستي روان سول ،دوی په لاره کي ؤ چي دمازیګر دلمانځه وخت راورسیدی ،ځینو وویل امرراته سوی چي لمونځ بایدپه بني قریظه کي وکوو،له همدې ډلي څخه ځینو دمازیګر لمونځ دماښپښین وروسته اداکی ،نورو اصحابو وویل چي درسول الله ﷺ هدف داؤ چي په تلوار ولاړسون وداچي لمونځ ادانه کو ندوی هم دلته دلاري په اوږد کي لمونځ وکی ،وروسته رسول الله ﷺ یوې ډلي ته هم عتاب ونه کی اونه یې ملامتیا پر وویله،په دې ډول مسلمانانو ډلي ډلي دبني قریظه په لور ولاړل له رسول الله ﷺ سره یوځای سول ،ډټولو شمیره درې زره وه ،ورسره دیرش آسان هم ؤ ،مخکي ولاړل اودبني قریظه په قلعه ګانو راوګرځیدل اومحاصره یې کړل ، کله چي دمحاصرې کړی تنګه سوه ،کعب بن اسد چي د بني قریظه ؤ رئیس ؤ ،دوې وړاندیزونه ورته وړاندي کړل او ورته وی ویل : اي زماقومه! یااسلام راوړی اودمحمد ﷺ دین ومنی ترڅومالونه ،ویني،اولادونه اوښځي موټول په امن سي اوزیاته یې کړه قسم په الله جل جلاله درته معلومه اوثابته سوید ه چي محمد ﷺ دالله تعالی رسول دی اوتاسي په خپل کتاب کي دده ذکرلېدلی دی ،دویم وړاندیز دادي که ایمان نه راوړی نولومړی خپل اولادونه اوښځي ټول ووژنی بیادرسول الله ﷺ مقابلې ته ووزی اوترهغو ورسره وجنګیږی ترڅویاپرکامیاب سی اویاټول له منځه ولاړ سی،اویاداچي دشنبې په ورځ پررسول الله ﷺ او اصحابو یې حمله وسي ،داځکه چي دهفتي په ورځ به دوی دافکر کوی چي یهود خوبرید نه کوي اوپه دې ورځ جنګ نه راسره کوي ،بنوقریظه دخپل مشر یوه خبره هم ونه منله درې سره یې رد کړی نوکعب بن اسد په ډېرقهر اوغوصه ورته وویل په تاسي کي دفیصلې اوقاطع خبري ځوک سته ، وروسته له هغه چي بني قریظه دسعد درې سره وړاند یزونه ونه منل نومجبور ؤ چي درسول الله ﷺ امرته غاړه کښېږدی خودوی داغوره وګڼله چي لومړی باید لەدوی مسلمانانو څخه چي د دوی ملګري دي په دې هکله پوښتنه وکړي ترڅو پوه سي که دوی درسول الله ﷺ امرته غاړي کښېږدي نوڅه به ورسره کیږي ؟رسول الله ﷺ ته سفیر واستوي چي ابولبابه راولیږه ترڅو مشوره ورسره وکوو ابولبابه له دوی سره تړون درلودی کورنی اومالونه یې ددوی په سیمه کي ؤ،کله چي ابولبابه ورغلی ټول ورته را ولاړسول ښځو اوکوچنیا ژړل ددې خالت په لیدو سره دابولبابه زړه پروسوځیدی ټولویهودیانو ورته وویل چي ابولبابه !آیا دامشوره راکوی چي رسول الله ﷺ ته تسلیم سو؟ ده ورته وویل هم خولاس یې

پرغاړه راکش کی، مطلب يې داؤ که تسليم سی نوغاړې به مو پرې سي، حلال به سی، په همدې حالت کې متوجه اوپوه سو چې په دې عمل سره يې دالله اورسول الله ﷺ په حق کې دخيانت مرتکب سوی دی، سمدستي روان سو، رسول الله ته هم ورنه غی، سيخ مسجدنبوي ﷺ ته ولاړی ځای يې په يوه ستني (ميل) پورې وتړی اوقسم يې ياد کی چې ترڅو رسول الله ﷺ په خپل لاس خلاص کړی نه وي همداسي به تړلی وي اوله داچې بيابه همېشه دبني قريظه سيمي ته نه ورځي، کله چې رسول الله ﷺ خبرسو نو وی فرمايل که ابولبابه ماته راغلی وای نو مغفرت به مي ورته غوښتی وای خواوس چې يې ځان تړلی دی نوترهغوېې نه خلاصوم ترڅوچې يې الله تعالی توبه قبوله کړی نه وي، دابولبابه ددغي مشورې سره سره بني قريظه درسول الله ﷺ امرته تسليم اوسلامي سول، يهودو د اوږدې محاصرې تاب اوتوان هم درلودی ځکه ښه ډېرخوراکي مواد اوبه اوداسي نور هرڅه ورسره ؤ، کلاګاني يې ښې مضبوطي وی، په مقابل کې يې مسلمانان په خالي ميدان کې ؤ له لوږې اويخني سره مخامخ ؤ، ستړيا خويې دومره وه چې اندازه يې ګرانه ده خواجنګ هم داعصابو جنګ ؤ، الله تعالی ديهودو په زړونو کې ېيره واچوله، حوصلې کمزورې سوی، په همدې وخت کې علي رضي الله عنه او زبير رضي الله عنه ورمخ ته سول اوحضرت علي رضي الله عنه چغه کړه چې اې دايمان لښکره! قسم په خدای يابه دحمزه رضي الله عنه په ډول شهيدسم اويابه داکلا فتحه کوم، دهمدې آواز په اورېدو سره يهود درسول الله ﷺ وړاندې سلامي سول، رسول الله ﷺ امر وکی چې نارينه يهوديان دی بنديان سي دهمدې امر په اساس دمحمد بن مسلمه رضي الله عنه ترمراقبت لاندې د دوی په لاسونو کې زولنی واچول سوی ښځي اوکوچنيان يې جلای ځای ته يو وړل سول، داوس قبيلې خلک رسول الله ﷺ ته ورغلل اوعرض يې وکی يارسول الله ﷺ تا زموږ دوروڼو خزرج له حليفانو بني قينقاع سره هسي ښه معامله وکړه، دابني قريظه زموږ حليفان اودوستان دي له دوی سره هم ښه وکړه، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل آياتاسي په دې راضي ياست چې ستاسي يوسړی د دوی په هکله فيصله وکړي؟ دوی وويل هو رسول الله ﷺ وفرمايل دافيصله دې سعدبن معاذ رضي الله عنه وکړي دوی وويل بالکل صحيح ده ټول په راضي يو

رسول الله ﷺ مدينې ته خبرولېږی چې سعدبن معاذ رضي الله عنه دې حاضرسي، نوموړی داحزاب په غزا کې ټپي سوی اودموټ رګ يې پرې سوی ؤ اوله همدې امله په مدينه کې پاته سوی ؤ کله چې درسول الله ﷺ خبر ورسيدی نو پرخره باندې سپور سو اوپه داسي حال کې درسول الله ﷺ په طرف روان سو چې دقوم خلک يې يوې اوبلې خواته روان

ؤ،ورته ویل یې سعده ! له خپلو حلیفانو سره ښه وکړه ، رسول الله ﷺ ته ددې لپاره غوښتی یې چې د دوی په هکله نرمه او غوره فیصله وکړی ،سعد رضي الله عنه د دوی خبرې اورېدلی خوشه یې نه ویل ،کله چې د دوي ډېر اصرار وکی نوده ورته وویل او س هغه وخت رارسیدلی دی چې سعد دالله جل جلاله په خاطر دهیچا پرواهم نه ساتي،خلکو چې داخبره واورېده یوشمیر له همدې ځایه ورڅخه وګرځیدل او هلته یې یوله بل سره غمشریکي وکړه اوخفګان یې څرګند کی،کله چې حضرت سعد رضي الله عنه درسول الله ﷺ حضورته ورلنډ سو ،اصحابو ته یې امروکی چې خپل مشرته ولاړسی خلګ ولاړسول او حضرت سعد رضي الله عنه یې له خره څخه راکښته کی او ورته وی ویل سعده!بني قریظه ستا حکم او فیصلې ته تسلیم سوي دي ،ده وویل آیازما فیصله پردوي نافذه ده؟دوی ورته وویل هو ده وویل : آیامسلمانان به هم زماحکم مني دوی ورته وویل ولي نه ، بیایې وویل :آیا زمافیصله هغه چاته هم دمنلو وړ ده چې دلته تشریف لري اود رسول الله ﷺ خواته یې دتکریم اوتعظیم په ډول اشاره وکړه ،رسول الله ﷺ وفرمایل هو،زه هم ستافیصله منم ،سعد رضي الله عنه وویل نوزمافیصله داده چې نارینه باید ووژل سي ،اولادونه اوښځي دي یې بندیاني سي اومالونه دي یې وویشل سي ،رسول الله ﷺ ددې فیصلې په اورېدو سره وویل تا ددوی په هکله هغه فیصله وکړه کومه چې الله داوو آسمانونو لوړه کړی وه .

دبني قریظه پ هکله دسعد رضي الله عنه حکم ډېر عادلانه اوپرانصاف ولاړ ؤ،ځکه دوی یوازي نه له مسلمانانو سره غدر اوخیانت کړی ؤ بلکه دمسلمانانو دله منځو وړلولپاره یې (۱۵۰۰) توري دوه زره نیزې درې زره زغري اوپنځه سوه ډالونه هم تیارکړی ؤ ،داټول شیان له فتحي وروسته مسلمانان غنیمت کړل ، درسول الله ﷺ په امر سره دبني قریظه ؤ ټول خلګ دبني النجار قبیلې دبنت الحارث نومي ښځي په کورکي بندیان سول هلته دمدینې په بازارکي کندې ورته وکېندل سوی وروسته دوی ډلې ډلې ورته راوستل کېدل او هلته به یې سرونه پرېکېدل ،په هم دې حالت کي یوه یهودې خپل مشرکعب بن اسد ته وویل څه فکر کوی زموږ سره به څه معامله کیږي ؟ده ورته وویل تاسي یوځای هم له عقل څخه کار نه اخلی ،نه ګوری چې بلونکي نه دریږي ؟اوڅوک چې ځي بیرته نه راګرځي قسم په خدای چې زموږ سرنوشت مرګ دی ،په دې ترتیب سره دبني قریظ ؤ دشپږ او یا اوو سوو کسانو سرونه سرقلم سول ،ددې فیصلې په تنفیذ سره دغدر اوخیانت ریښې له بیخه ووتلې اوهغه خائنان په خپل سزا ورسیدل کوم چې تړون یې مات کړی ؤ اوپه ډېرسخت وخت کي یې دمسلمانانو دتباهي په نیت له کفارو سره لاس یو کړی ؤ اوپه دې عمل کولو سره دهغه

جنګي مجرمينو په ډله ورګډ سوي ؤ کوم چې دمحاکمې اوعدام ورډي ، دلته له دوی سره دبني نضير قبيلې لوی شيطان اوداحزاب دجنګ لوی مجرم حيي بن اخطب هم ووژل سو چې دام المؤمنين حضرت صفيې رضي الله عنها پلار ؤ هغه وخت چې قريش اوغطفان دجنګ له ميدان څخه پرشاسول نوحيی راغی اوله بني قريظه ؤ سره يوځای پاته سو ده خپله هغه وعده پوره کړه کومه چې دجنګ په دوران کې يې له کعب بن اسد سره کړې وه ، ده هغه وخت کعب دې ته اړ ايستلی ؤ چې له رسول الله ﷺ سره خپل تړون مات کړي اوله کفارو سره يوځای دهغه پرخلاف په جنګ کې برخه واخلي ،ده داهم ورته ويلي ؤ چې زه به تر آخره درسره يم اوهم داسي يې وکړل له بني قريظه ؤ سره يوځای بندي سوی اوکله چې دوژلو لپاره راوستل سو چپنه يې اغوستی وه خو سوري سوري کړې يې وه ترڅو څوک کټه ورڅخه وانه خلي ،راوستل سو لاسونه يې دغړي سره تړل سوي ؤ رسول الله ﷺ ته يې وويل ستا سره پردښمني پښيمانه نه يم خو برې اوغلبه د خداي په لاس کي ده ،بيايې زياته کړه اې خلګو !همدا به دالله جل جلاله امر ؤ همدا به ليکل سوي اوهمدابه مو تقدير ؤ ،الله جل جلاله بني اسرائيلو ته وژل مقرر کړي ؤ وروسته کښېنستی اوهم هلته يې سرپرېکړل سو .

په دې پيښه کي له يهودو څخه يوازې يوه ښځه ووژل سوه ،هغه هم پردې دليل چې نومورې پرخلاد بن سويد رضي الله عنه باندې مېنچني ډبره رغوروځولی وه اوهغه يې شهيد کړی ؤ ،نوځکه يې دغه ښځه هم ووژله ، رسول الله ﷺ امر کړی چې يوازې هغه کسان دي ووژل سي چې ږيرې يې راغلی وي اودچاچې ږيره نه وي راغلې هغه دې نه وژل کيږي،په دې ډله کي عطبه القرظي هم ؤ چې هغه وخت يې ږيره نه وه راغلې ،ژوندی پاته سو ،اسلام يې ومنی درسول الله دصحبت شرف يې وګټی ،ثابت بن قيس رضي الله عنه له رسول الله ﷺ څخه سوال وکی چې زبير بن باطاء اوکورنۍ دې يې ده ته ور وبخښل سي ،رسول الله هغه ور وبخښل ،زبير له ثابت رضي الله عنه سره نيکي کړې وه اودهمدې نيکۍ په بدل کي يې هغه ته وويل رسول الله ﷺ ته ماته را وبخښلی ستامال اولادونه يې راوبخښل اوس يې دا بيرته ټول ستا ،زبير چې دخپل قوم په مرګ خبرسو نوثابت رضي الله عنه ته يې وويل زه دخپلي نيکۍ په نامه ستاڅخه ددې سوال کوم چې ما هم له خپلودوستانو سره يوځای کړه يعني ماهم مړ کړه ، نوبيايې دده سرهم پرې کړی اوپه نورو يهوديانو پسې ور وليږی ،ثابت رضي الله عنه دزبير زوی عبدالرحمن ژوندی وساتی ،عبدالرحمن په اسلام مشرف سواودرسول الله ﷺ صحبت يې وګټی ،همداراز أم المنذر سلمي بنت قيس الجارية له رسول الله ﷺ څخه هيله وکړه چې رفاعه بن سموال القرظي ور وبخښي ،رسول الله ﷺ ددې غوښتنه ومنله اوهغه يې ور

وبخښل، رفاعه ژوندي پاته سو ایمان یې راوړی او داصحابو په ډله کي شامل سو، دتسلیمی په شپه هم یوشمیر یهودیانو ایمان راوړی او په همدې اساس د دوی ژوند او مال په امن پاته سول او په همدې شپه عمرو چې له خپل قوم بني قریظه ؤ سره په غدر او خیانت کي شریک نه ؤ، له خپل کور څخه دباندي راووتی دنبوي لښکر دپاسدارانو مشر محمد بن مسلمه رضی الله عنه چې هغه ولیدی څه یې ورته ونه ویل، لاره یې ورکړه او معلومه نه سوه چې هغه به چیري تللی وي، رسول الله ﷺ دبني قریظه ؤ له مالونو څخه خمس جلا کړی او نور مالونه یې پر مسلمانانو وویشل، سپروته یې دری برخي (دوې برخي یې دآس او یوه دسپاره) او دپیاده لپاره یې یوه برخه وټاکله، مینځي یې دسعد بن زید الانصاري تر سرپرستي لاندي نجد ته ولیږلی، هلته یې وسله او آسونه پرانیول رسول الله ﷺ دمینځو له ډلي څخه ریحانه بن عمرو بن خناقه دخپل ځان لپاره خوښه کړه او دژوند ترپایه ورسره وه. دا دابن اسحاق روایت دی.[428] خو کلبي وایي چې رسول الله ﷺ هغه ریحانه آزاده کړه او په شپږم هجري کال یې په نکاح کی سره واخیستله او دحجة الوداع څخه تر راستنیدو وروسته وفات سوه، او په بقیع کي خاورو ته وسپارل سوه[429]، وروسته له هغه چې دبني قریظه ؤ مسئله ختمه سوه الله عزوجل دخپل صالح بنده سعد بن معاذ رضی الله عنه هغه سوال قبول کی چې مخکي یې یادونه سوی وه، رسول الله ﷺ دسعد لپاره په مسجد د کي خیمه درولی وه ترڅو هم الته عبادت کوی، دبني قریظه له فتحي وروسته دسعد رضی الله عنه زخم خلاص سو او پر بدو واوښتی، عائشه رضی الله عنها وایي چې دسعد له زخم څخه ویني رواني سوی، په مسجد کي دبنو غفار څو خیمي هم وی ټولو دسعد رضی الله عنه ویني ولیدلی ځکه ډیري زیاتي بهیدلی وی، د وینو په لیدو سره دوی چیغه کړه اې دخیمو خلګو! دا څه دي چې ستاسي له طرفه موږ ته را روان دي؟ ټولو ولیدل چې دسعد رضی الله عنه له زخم څخه ویني را رواني دي او په پای کي له همدې کبله وفات سو[430] په بخاري او مسلم کي له جابر رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې دسعد بن معاذ رضی الله عنه په مرګ دالله جل جلاله عرش ولړزیدی[431] همدا راز ترمذي له انس رضی الله عنه څخه په روایت سره وایي چې کله دسعد بن معاذ رضی الله عنه جنازه پورته سوه منافقانو وویل داڅومره سپکه جنازه ده رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: داځکه چې

---

[428] ابن هشام ۲/ ۲۴۵.
[429] تلقیح فهوم الاثر ص ۱۲.
[430] صحیح البخاری ۲/ ۱۹۵.
[431] صحیح البخاری ۱/ ۳۶، صحیح مسلم ۲۹۴، جامع الترمذي ۲/ ۲۲۰.

ملائکو دهغه سعدبن معاذ رضي الله عنه جنازه وړله ، دبني قريظ ؤ دمحاصرې په دوران کی له مسلمانانو څخه يوتن خلادبن سويد په شهادت ورسيدی يوې يهودی ښځي دميچني تيږه ورباندي وغورځوله اوپه شهادت يې ورسوی همدا رازپه دې ترڅ کي دعکاشه ورور ابوسنان بن محصن هم مړسو ،ابولبابه هم الته په مسجد کي شپږ ورځي تړلی ؤدلمانځه په وخت کي به يې ښځه ورته راتلله اوخلاصوی به يې اوکله چې به يې لمونځ وکی بيرته به په ستني پوري تړل کېدی ترڅو يوه ورځ سهار وختي يې الله توبه قبوله کړه اورسول الله ﷺ ته يې دأم سلمه رضي الله عنها په کور کي ؤ خبرورکړل سو ،ابولبابه رضي الله عنه وايي أم سلمه رضي الله عنها دخپلي حجرې په دروازه کي ودرېده اوراته وی ويل ابولبابه مبارک دي سه الله عزوجل دي توبه قبوله کړه ، ددې خبرې په اورېدو سره په مسجد کي ناست اصحاب را ولاړ سول ترڅو خلاص يې کي خوابولبابه وويل نه ترڅو چې رسول الله ﷺ په خپله تشريف نه وي راوړی اوزه يې خلاص کړی نه يم بل څوک به مي نه خلاصوي ، اوکله چي رسول الله ﷺ دسهار لمانځه ته تشريف راوړی ابولبابه. رضي الله عنه ته ورغلی اوهغه يې خلاص کی ،داغزا دهجرت دپنځم کال دذی القعدې په مياشت کي سوی وه اودبنئ قريظه کلابندي (۲۵) ورځي دوام کړی ؤ.[432] الله عزوجل داحزاب اوبني قريظه غزاګانو په اړه داحزاب سورة څوآياتونه نازل کړي دي اوپه هغه کي يې دمؤمنانو اومنافقانو دحال اواحوال په هکله څرګندوني کړي دي ،دکفارو ماتي ته يې اشاره فرمايلی ده اوداهل کتابو دغدر اوخيانت نتايج اوپايلي يې په ګوته کړي دي.

## «د دي دوو غزاوو څخه وروسته پوځي تاکتيکونه»

**دسلام بن ابی الحقيق قتل:** کنيه يې ابورافع وه ،هغه لوی يهودی مجرم ؤ چې د مسلمانانوپر خلاف يې دکفارو ډيرلښکر راوپاروی ،اوزياته اندازه مال او پيسې يې ورکړی ،بې حسابه مرستي يې ورسره وکړی [433]، دې مجرم به رسول الله ﷺ ته هم زيات اذيت اوضرررسوی ،کله چې مسلمانانو دبني قريظه ؤ مشکل حل کی نو خزرج قبيلې له رسول الله ﷺ څخه دابورافع د وژلو اجازه وغوښتله ځکه تردې مخکي اوس قبيلې کعب بن اشرف وژلي ؤ ،اوس خزرج غوښتل چې دوی هم دوی ته ورته يو وياړ وګټي ،رسول الله ﷺ د دوی غوښته ومنله اواجازه يې ورکړه چې ابورافع ووژني ،خوپه دې امريې تاکيد وکی چې بايدښځي اوکوچنيان ونه وژل سي ، اودوی ته خطر متوجه نه سي ،خزرج ددې

---

[432] ابن هشام ۲/ ۲۳۷، صحيح البخاری ۲/ ۵۹۰، ۵۹۱، زادالمعاد.
[433] فتح الباری ۷/ ۳۴۳.

وظیفي دانجام لپاره پنځه کسیزه ګروپ جوړ کړی دګروپ ټول غړي له بني سلمه دکورنۍ ځخه ؤاومشرېې عبدالله بن عتیک نومیدی دغه ګروپ دخیبر په طرف روان سو چیري چي دابورافع کلا وه ،مابنام ور ورسیدل ،خلګ ټول خپلو کورونو کي ته تللی ؤ عبدالله بن عتیک رضي الله عنه خپلو ملګرو ته وویل تاسي ټول دلته کښیني ،زه ځم اوله دوروازه وان سره خبري کوم ،غواړم دهغه زړه په لاس راوړم ، کېدای سي له همدې لاري ځخه کلا ته وردننه سوم ،ولاړی اودروازې ته لنډیو ځای داسي کښېنستی چې خپل ځادر یې پرسر واچوی اوداسي یې ښوولهٔ ګویا دقضاحاجت لپاره ناست دی ،خلګ ننوتل دروازه وان رږغ پروکی اې دخدایه بنده !که غواړی چې ننوزی نوژر داخل سه زه دروازه بنده وم.

عبدالله بن عتیک رضي الله عنه قیصه کوي وایي چې په همدې خبري سره ولاړم او کلاته دننه سوم او دننه پټ سوم کله چې خلګ ټول داخل سول دروازه وتړل سوه پیردار کلیاني ټولي له دروازې سره وځړولی ،زیاتوي وروسته زه راغلم اوداکلیاني می راواخیستلي راتلونکي دروازه مي خلاصه کړه ،ابورافع په بالاخانه کي ؤ ،هم التهٔ یې مجلس ښه ګرم ؤماځاري کله چې دمجلس او قیصو خلګ ورځخه ولاړل زه وروختلم اوهر دروازه چې به مي خلاصوله نوبیرته به مي دشاله خواتړله اودځان سره مي ویل که چیري خلګ درباندي خبرسي نومخکي تردې چې دوی ماته راورسیږي زه به ابورافع ووژنم ، ابورافع ته ورسیدم ،کوټه یې تاریکه وه اوله خپلي کورنۍ سره ؤ نه پوهیدم چې ځای یې چیري دی رږغ مي وکی ابورافع ! ده ویل څوک یې؟په رږغ پسي ولاړم اوپه داسي حال کي مي دتوري وار پروکی چې بیري اخیستی وم ،په دې وارهیڅ هم ونه سول ،هغه چیغي کړی ،زه هم دده له کورځخه راووتلم اولږ انتظار مي وکی بیا بیرته ورغلم ،ورته ومي ویل داڅه رږغ دی اې ابورافع ده وویل موردي بوره سه هم دا اوس یوه سړي دتوري وار راباندي وکی ،عبدالله بن عتیک زیاتوي هم دلته مي یوقوي وارپروکی،سختي ټپي سو خومړنه سو بیامي دتوري څوکه دهغه پرنس کیښووه او زور مي ورکړی څوترشا یې ووتله اوپوه سوم چې مړسوو نو دباندي راووتلم ،دروازې مي یوپه بل پسې خلاصولی په یوه ځینه کي راکښته کېدم فکر مي کوی چې پښه مي مځکي ته رسیدلې خوداسي نه وه لاندي ولویدم ،سپوږمۍ ښه رڼا کوله ،پښه مي ماته سوه ،خپله لنګوټه مي را خلاصه کړه اوپښه مي په وتړله ،روان سوم له دروازې سره کښېنستم اوله ځان سره مي فیصله وکړه چې ترهغو به نه ځم ترڅویه له مرګ ځخه ښه مطمئن سوی نه یم ،په دې وخت کي دچرګانو آذانونه سول اودکلا پرچار دیوالي هم رږغ وسو دحجاز تاجر دمرګ خبر اعلانوي،دامي چې واورېدل راغلم اوخپلو ملګرو ته

مي وويل درځي چې څو ، الله عزوجل ابورافع وواژه، راغلو او د رسول الله ﷺ حضورته حاضر سو خبره مي ورته وکړه ده راته وفرمايل، پښه دي وغځوه پښه مي اوږده کړه هغه ﷺ خپل مبارک لاس پر راتير کړ اوداسي جوړه سوه لکه بالکل چې ماته سوې نه وي [434]، دا دبخاري شريف روايت دی ،ابن اسحاق وايي چې دهغه ګروپ ټول غړي کلاته ور دننه سوي ؤ اوټولو په ګډه ابورافع وژلي ؤ اوهغه څوک چې توره يې د ابو رافع په نس کي دننه کړې وه دهغه نوم عبدالله بن انيس رضی الله عنه ؤ، په دې روايت کي داهم راځي چې کله دوی هغه وواژه اودشپې دعبدالله بن عتيک رضی الله عنه پښه ماته سوه ملګرو يې هغه راپورته کی او ټول له کلا سره نژدي ديهودو په يوه چينه کي پټ سول ،يهودو اورنه بل کړل ،يوبلي خواته يې پلټني شروع کړې بالاخره مايوس او نامراده دخپل مشر سرته ورغلل ،په همدې وخت کي د رسول الله ﷺ اصحاب روان سول اومدينې ته ولاړل[435] ، دغه سريه دپنځم هجري کال دذالقعدې اوياذی الحجې په مياشت کي وه [436]،په دې وخت کي رسول الله ﷺ دکفارو ،مشرکينو، يهودو اونور جنګي مجرمينو څخه فارغ سو،د دوی حساب يې تصفيه کی نو د نورو مشرکينو قبائلو او اعرابو پرخلاف يې ديولړ تاديبي بريدونو امروکی څکه داهغه کفار ؤ چې بيله زور يې له خپلو شرارتونو اوآذيتونو څخه لاس نه اخيستی اوامنيت يې خرابوی نو دوی دشر اوبې امنی له مينځ وړل يوضرورت ؤ چې بايد ترسره سوی وای .

## «له احزاب اوبني قريظه غزاوروسته لومړی سريه»

له احزاب اوبني قريظه غزا وروسته لومړی سريه دمحمد بن مسلمه رضی الله عنه ده په دې سريه کي (۳۰) سپاره ؤ ،دغه ډله اصحاب دنجد دبکران سيمي دضرية څنډي قرطاء ته ولاړل دضرية او مدينې ترمينځ د اوو ورځو لاره وه ، دوې دشپږم هجري کال دمحرم دمياشتي په شلمه دبني بکر بن کلاب ميني ته روان سول اوحمله يې پروکړه ،خلګ يې ټول وتښتيدل مسلمانانو يې څاروي ټول ونيول او ورپسې په داسي حال کي چې دمحرم دمياشتي يوه ورځ پاته وه بيرته مدينې ته ورسيدل ،له دوی سره ثمامه بن اثال الحنفي دبني حنفيه قبيلې مشر ؤ ،نوموړي په پټه سره دمسيلمه کذاب په امر د رسول الله ﷺ دترور لپاره وتلي ؤ[437] ،مسلمانانو هغه ونوی اومسجد ته يې بوتلی اوهلته يې په يوه ستنه پوري وتړی ،رسول الله ﷺ تشريف ور وړي او وی فرمايل ثمامه څه دي درسره ؟ده ورته وويل له ماسره

---

[434] صحيح البخاری ۲/ ۵۷۷.
[435] ابن هشام ۲/ ۲۷۵، ۲۷۴.
[436] رحمة للعلمين ۲/ ۲۳۷، ابن هشام ۲/ ۲۳۷، صحيح البخاری ۲/ ۵۹۰، ۵۹۱.
[437] السيرة الحلبية ۲/ ۲۹۷.

خیردی یامحمد ﷺ که مي ووژني نو یووینه لرونکي به دي وژلي وي اوکه احسان راباندي وکړي نوپرېوه قدردان او احسان منونکي به دي احسان کړي وي اوکه چیرته مال اوپیسې غواړي نوڅومره چي غواړي هم دومره به درکړم .رسول الله ﷺ هیڅ ورته ونه ویل همداسي ورڅخه ولاړی ،بیاورته راغی اوبیایې هم هغه خبره ورته تکرار کړه دثمامه جواب هم هغه وه،دریم ځل یې بیاتشریف راوړی اوورته وی فرمایل : ثمامه ایله کړی ،اصحابو هغه خوشي کړی هغه مسجد ته نژدی دخرماؤ یوباغ ته ورغی ،غسل یې وکی اوبیرته راغی په اسلام مشرف سو اووی ویل یامحمد ﷺ قسم په الله جل جلاله دمځکي پرمخ مي له تاڅخه زیاته دښمني له بل چاسره نه درلوده خو اوس ترټولو مینه درسره لرم ،قسم په خدای جل جلاله ترټولو مي ستاله دین څخه زیات نفرد درلودی خو اوس ترټولو ادیانو ستادین راباندي ګران دی ،ستااصحابو هغه وخت ونیولم چي مادعمرې نیت کړی ؤ رسول الله ﷺ زیری ورکی او ورته وی فرمایل ولاړسه عمره وکړه .

ثمامه چي کله مکې ته ورسیدی نو قریشو ورته وویل : بې دینه اوګمراه سوی یاثمامه !ده وویل : نه قسم په الله جل جلاله زه نه یم بې لاري سوی بلکه دمحمد ﷺ په دین مشرف سوم اې قریشو !داهم واوری چي تردې وروسته به ترهغو پوري له ثمامه څخه یوه دانه غنم هم درته را نه سي ترڅوېې چي رسول الله ﷺ اجازه نه وی کړی ، ثمامه هغه وخت دمکې لپاره دمځکې او کښت حیثیت درلودی،ثمامه عمره اداکړه اوخپل کورته بیرته راغی،کله چي کورته ولاړی نومکې ته یې غله لیږل بند کړل ،قریش ډیرپه تکلیف سول او مجبور سول چي رسول الله ﷺ ته خط ولیکي اودخپلي خپلوی په روی یې ورڅخه وغوښتل چي ثمامه ته امر وکي چي غنم اوغله مکې ته ایله کړي ،رسول الله ﷺ د دوی غوښتنه ومنله اوثمامة ته یې ولیکل چي مکې ته خوراکي مواد لیږل بیرته شروع کړي .[438]

## «غزوة بني لحیان»

بنولحیان هغه قبیله وه چي درجیع په سیمه کي یې درسول الله ﷺ له لسو اصحابو سره غدر اوخیانت کړی ؤ اودوی یې په شهادت رسولي ؤ اوپاته دوه نورېې دمکې پرکفاو خرڅ کړی ؤ دبنولحیان مینه دمکې له پولوسره اوپه حجاز کي دننه وه ، دغه وخت دمسلمانانو ،قریشواو نورو اعرابو ترمینځ سخت کشمکش روان ؤ ،په داسي وخت رسول الله ﷺ مناسبه وګڼله چي دلوی دښمن سره نژدې په کوم جنګي اقدام لاس پوري کي

---

[438] زادالمعاد ۲/ ۱۱۹، مختصر سیرت الرسول ﷺ للنجدی ص ۲۹۲، ۲۹۳.

خو کله چې د احزاب په غزا کي کفارو ماته وخوړه، ارادې یې کمزوري سوی او حوصلې یې ترډیره ولویدی نو رسول الله ﷺ اراده وکړه چې له بني لحیان څخه د جیع په پیښه کي د شهید سوو اصحابو انتقام واخلي، هم داؤ چې د شپږم هجري کال د ربیع الاول او یا جمادي الاولی په میاشت کي د بنولحیان د حملې په نیت ووتی، عبدالله ابن ام مکتوم رضی الله عنه یې په مدینه کي خپل خلیفه وټاکی، خلګو ته یې داسي وښوول چې ګویا د شام په طرف روان دی، مخکي ولاړی د امبح او عسفان ترمینځ د غران نومي وادي مابین ته ورسیدی داهغه ځای ؤ کوم چې د ده ﷺ اصحاب په شهادت رسیدلي ؤ د دوی لپاره دعا وکړه، بنولحیان چې د رسول الله ﷺ د راتګ خبر واوریدی نو ټول وتښتیدل او د غرو سرونو ته ولاړل، رسول الله ﷺ دوې ورځې هم دلته پاته، خو هیڅوک هم په لاس نه ورغی، یو بلې خوا ته یې جنګي ګروپونه ولیږل خو بنو لیحان لیري تښتیدلي ؤ وروسته د عسفان په طرف ورغی لس سپاره یې کراع الغمیم ته ولیږل تر څو قریش هم د ده په راتګ خبر سي بالاخره له ۱۴ شپو وروسته مدینې ته راغلل.

**«د سید البشر ﷺ په قومنده د سرایاؤ او جنګي ګروپونو لیږل»**

له دې وروسته رسول الله ﷺ مختلفي سریې او جنګي ګروپونه واستول چې د دې پیښو لنډیز دادی:

**۱: دعکاشه بن محصن رضی الله عنه سریه:** داد (۶) هجري کال د ربیع الاول یا ربیع الاخر په میاشت کي وه عکاشه د (۴۰) کسیزه ګروپ په مشري د غمر سیمي ته روان سو الغمر د بني اسد قبیلې یوه چینه وه، مخکي له دې چې عکاشه ور ورسیږي د هغه ځای کفار وتښتیدل مسلمانان ورغلل او دوه سوه اوښان یې ونیول او مدینې ته یې راوستل.

**۲: دمحمد بن مسلمه رضی الله عنه سریه:** داهم د شپږ هجري کال د ربیع الاول یا ربیع الاخر په میاشت کي وه، محمد بن مسلمه رضی الله عنه له لسو کسانو سره د بني ثعلبه په سیمه کي د ذی القصه په طرف روان سو، هلته د دښمن سلو کسانو کمین ورته نیولی ؤ، کله چې مسلمانان بیده سول دوی حمله ورباندي وکړه او له محمد بن مسلمه رضی الله عنه پرته ټول یې شهیدان کړل یوازي محمد بن مسله رضی الله عنه په زخمي حالت کي ور څخه خلاص سو.

**۳: دابو عبیده بن الجراح رضی الله عنه سریه:** داهم د (۶) هجري کال د ربیع الاخر په میاشت کي د ذي القصه په طرف وه، رسول الله ﷺ د محمد بن مسلمه د ملګرو له شهادت وروسته ابو عبیده ته وظیفه ورکړه چې د بني ثعلبه مقابلې ته ولاړسي هغه له څلویښتو کسانو سره یو ځای د اصحابو د شهادت ځای ته ورغی، د شپې یې پیاده سفر کوی

اوسهاروختي يې پربني ثعلبه حمّله وکړه خوهغوی بیا هم ورڅخه وتښتیدل يوازي يوسړی په لاس ورغی اوهغه هم اسلام راوړی مسلمانانو يو شمیر څاروي اوپسونه ونيول .

**۴ : دزيد بن حارثه ﷺ سريه :** دشپږم هجري کال دربيع الاخر په مياشت کي وه ،دبني ظهران په سيمه کي دبني سليم په يوه چينه کي چې جموم نوميده ييښه سوی ده ،زيد ﷺ ولاړی هلته يې دمزينه قبيلې يوه ښځه چې حليمه نوميده ونيوله ،دې ښځي دبني سليم يوه محله وروښووه چيري چې مسلمانانو ډير پسونه،څاروي اوبنديان ونيول ، کله چې زيد ﷺ بيرته راستون سو اوغنيمتونه يې له ځان سره راوړل ،رسول الله ﷺ نوموړي ښځي ته ددې خپل ځان اوميړه دواړه وروبخښل اودواړه يې آزاد کړل .

**۵ : عيص ته دزيد بن حارثه ﷺ سريه:** دادشپږم هجري کال په جمادي الاول کي وه ،له (۱۷۰) سپرو سره دعيص په طرف روان سو هلته يې دقريشو هغه قافله په لاس کي ولويده چې مشريې درسول الله ﷺ زوم ابوالعاص ؤ،ابوالعاص په خپله نجات پيداکی ولاړی اوسيده مديني ته راغی اوله زينب ﷺ څخه يې پناه وغوښتله ،او ورته وی ويل چې له خپل مهربان پلار حضرت محمد ﷺ څخه سوال وکړي چې ددې قافلې مالونه بيرته ده ته ورکړه ،زينب ﷺهم داسي وکړل ،له خپل پلار ﷺ څخه يې هم داسوال وکی ،رسول الله ﷺ خلکو ته وويل که موخوښه وي نوداما لونه بيرته ورکړی ،اصحابو ټولوپه خپله خوښه هرڅه بيرته ورکړل ،ابوالعاص له خپلو مالونو سره مکې ته ولاړی ،ټول شيان يې خپلو خاوندانو ته وسپارل بيايې ايمان راوړی اومدينې ته يې هجرت وکی ،رسول الله ﷺ خپل لور زينب ﷺچې تقريبا درې ينم کاله مخکي يې هجرت کړی ؤ بيرته په هم هغه لومړي نکاح سره ابوالعاص ته ورکړه ،داخبره په صحيح حديث سره ثابته ده اوپه اولني نکاح يې ځکه بيرته ورکړه چې هغه وخت له کفارو سره دمسلمانانو ښځو نکاح دتحريم آيت نه ؤ نازل سوی اودغه حديث چې وايي رسول الله ﷺ زينب په نوي نکاح سره ابوالعاص ته ورکړه اووايې شپږ کاله وروسته ورکړه ،داروايت صحيح نه دی ،دمعنی اوسند دواړو له لاري صحيح نه دی[۴۳۹]،تعجب دی هغو کسانو ته چې په دې ضعيف حديث استناد کوي اووايي ابوالعاص دمکې له فتحي څخه مخکي داتم هجري کال په وروستيو کي ايمان راوړی ،بيادهمدې خبري مخالفه خبره کوي اووايي زينب ﷺداتم هجري کال په

---

[۴۳۹] تحفة الاحوزي ۱۵۹/۲، ته مراجعه وکړئ.

لومړیو کي وفات سوی دہ ،په دې څکله موږ بلوغ المرام باندي خپل تعلیق کي مفصل خبري کړي دي ،موسی بن عقبه عقیده لري چې دغه پیښه دابي بصیر او ملګرو له پیښي څخه مخکي په اووم هجري کال کي پیښه سوې ده ،خودا خبره نه له صحیح روایت او نه هم له ضعیف حدیث سره تطابق لري .

**۶:دزید ﷛ سریه** : داهم دشپږم هجري کال په جمادي الاخرة میاشت کي وه ،زید له پنځلسو کسانو سره دبني ثعلبه په طرف ووتی ،دطرف یاطرق نومي سیمي ته ورغلی ،اعراب ورڅخه وتښتیدل ، اوفکر یې کوی چې رسول الله ﷺ په خپله پردوی باندي دبرید په نیت راغلی دی زید ﷛ او ملګرو یې له کفارو څخه شل اوښان په غنیمت ونیول او څلور ورځي له مدیني څخه غائب ؤ .

**۷:بیاهم وادي القری ته دزید ﷛ سریه** : زید دشپږم هجري کال درجب په میاشت کي له ددو لسو کسانو سره دقری په وادي کي ددښمن دتحرکاتو دمعلومولو په خاطر ووتی ،هلته دقری اوسیدونکو حمله وربا‌ندي وکړه (۹) کسان یې ورشهیدان کړل او د زید ﷛ په شمول دري نور ژوندي پاته سول.

**۸ :دخبط سریه**:داداتم هجري کال درجب په میاشت کي وه خودپیښني له بهیر څخه داسي ښکاره کیږي چې دابايد له صلح حدیبیه څخه مخکي واقع سوې وای ،جابر ﷛ وايي چې رسول الله ﷺ موږ دروکسانو ته چې مشرموابوعبیده بن الجراح ﷛ ؤ امرو کی ترڅوولاړ سو اودقریشو دکاروان څارنه وکوو ، په لاره کی سخت وږي سوو اوله ډیري لوږي مو خبط یو ډول بوټي دی وخوړی اوله همدې وجي دغه لښکرته دخبط لښکرنوم ورکړل سو،وروسته یوه سړی دري اوښان راته حلال کړل ،بیایې دري نور راته حلال کړل ،دریم ځل یې بیاراته دري اوښان راته حلال کړل بیاابو عبیده ﷛ هغه له دې کار څخه منع کی ،په دې وخت کي له بحر څخه یوماهی چې عنبر ورته ویل کېدی راته راوغورځول سو،اوهغه مو پوره نیمه میاشت خوړی ،غوړي مویې هم استعمالول ،ترڅو بیرته په پښو ودرېدو اوخپل اولني حالت ته ورسیدو ،ابوعبیده ددې ماهي دپښتیو یوهډوکي واخیستی بیایې په لښکرکي ترټولو جګ سړي ته وویل چې چې ترټولو جګ اوښ باندي سپور سي بیاهمدا دواړه تردې هډوکي لاندي تیرسول ،مطلب داچي داماهی دپوښتي هډوکي ډیر اوږد ؤ ،جابر ﷛ زیاتوي موږ ددې ماهي له غوښي څخه یوه اندازه دتوښې په دود راسره واخیستله او کله چي مدینه ته ورسیدلو رسول الله ﷺ ته مو داقیصه

وکړه ،هغه وفرمایل :دادالله تعالی له طرفه ستاسي رزق او روزي وه اوراته وی فرمایل چې له هغو غوښو څخه څه اندازه درسره شته که نه ؟

موږ هم رسول الله ﷺ ته له هغو غوښو څخه یوه اندازه ورولیږله ،[۴۴۰] موږ مخکي وویل چې دکیسې سیاق پردې دلالت کوي چې داسریه باید دصلح حدیبیه څخه مخکي واقع سوی وای ځکه له حدیبې څخه وروسته خو مسلمانانو دقریشو د کاروانونو مخ ته نه ورتلل اوپردوی یې حمله نه کوله .

## «دبني المصطلق اویا مریسیع غزا په شپږم کال دهجرت»

دغه غزا که څه هم له عسکري پلوه دومره لویه اومهمه غزا نه ده خوپه دې دوران کي داسې پیښې سوې دي چې په اسلامي ټولنه کي یې داسې اړ دوړ اوجنجالونه را ولاړ کړل چې په ترڅ کي یې دمنافقانوله مخ څخه پردې پورته سوی اوداسې تعزیراتي قوانین رانازل سول چې اسلامي ټولني ته یې دعظمت ،سپڅلتیا ،کرامت اوپاک نفسي نوی رنګ ورکی ،موږ به لومړی دغزا په هکله خبري وکړو وروسته به دنورو پېښو په اړه وړغیږو ،دصحیح روایت پراساس ویلای سو چې دغه غزا دشپږم هجري کال دشعبان په میاشت کي وه (دلیل یې دادی چې دافک په حدیث شریف کي داثابته ده چې دغه پیښه دحجاب د حکم له نازلیدو وروسته وه اودحجاب آیت خودزینب رضي الله عنها په هکله نازل سوی ؤ،اوزینب خودغه وخت یعني دحجاب دحکم دنزول په وخت کي درسول الله ﷺ په نکاح کي وه ،ځکه له زینب رضي الله عنها سره درسول الله ﷺ واده دپنځم هجري کال په ذی القعده اویاذی الحجه کي سوی ؤاودغه غزا دشعبان په میاشت کي وه نودابه دشپږم هجري شعبان وي نه دپنځم اودافک له پیښي وروسته رسول الله دعائشې رضي الله عنها په هکله پوښتنه ورڅخه وکړه دې ورته وویل زه خپلي سترګي اوغوږونه ساتم حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې زینب رضي الله عنها یوازني بي بي وه چې زما سره یې سیالي کوله بناءًدادشپږم کال دشعبان میاشت سوه اودا روایت چې وايي سعد بن معاذ رضي الله عنه اوسعدبن عبادة رضي الله عنه دافک داصحابو په هکله یوله بل سره مناقشه اومنازعه وکړه یعني داچي داغزا باید دسعدبن معاذ رضي الله عنه له وفات څخه مخکي پیښه سوی وي ،معلومه ده چي سعدبن معاذ رضي الله عنه دهجري کال په اخرو کي له بني قریظه غزا وروسته وفات سوی دی نوپردې اساس د بني المصطلق غزاهم باید په پنځم کال کي سوي وي ،ددې اشکال صحیح جواب دادی چې ددې روایت سهوه سوی اوسهوا یې له سعدبن عباده رضي الله عنه سره دسعدبن معاذ رضي الله عنه نوم راوړی دی ،ابن اسحاق له زهري له

---

[۴۴۰] صحیح البخاری ۲/ ۶۲۵، صحیح مسلم ۲/ ۱۴۵، ۱۴۶.

عبيدالله بن عتبه اوله عائشه څخه روايت کوي اوپه هغه روايت کي دسعدبن معاذ رضي الله عنه نوم نسته ،بلکه هلته داسيد بن حضير نوم راغلی دی ،ابومحمد بن حزم وايي چې هم داخبره صحيح ده [441]،په دې هکله دمحمد الغزالي رحمة الله عليه خبره هم دحيرانتيا وړ ده هغه ابن قيم رحمة الله عليه ته داخبره منسوبه وي چې ګويا هغه هم وايي دغه غزاپه پنځم هجري کال کي سوې ده ، ددې غزاسبب همدا وُ [442] چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته خبرراغی چې دبني المصطلق رئيس حارث بن ابي ضرار له خپل قوم اونورو عربانوسره له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره دجنګ لپاره راوتلی دی ،رسول الله صلی الله علیه وسلم ددې خبرپه اورېدو سره بريده بن حصيب اسلمي رضي الله عنه ته امر وکی چې ولاړ سی اودخبرتحقيق وکړی ،هغه ولاړی اوله حارث بن بي ضرار سره يې خبري وکړی او بيايې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته خبراوړی ،رسول الله صلی الله علیه وسلم چې دخبر له صحت څخه ډاډه سو نواصحابو ته يې دتلوقومنده ورکړه ،اوپه بيړه روان سو ،دغه وخت دشعبان دمياشتي دوې ورځي پاته وې ،له ده صلی الله علیه وسلم سره داځل يو شمير هغه منافقين هم روان سول چې په مخکي غزاګانو کي يې برخه نه وه اخيستی ،داځل يې زيد بن حارثه رضي الله عنه اوپه بل روايت ابوذر رضي الله عنه اوپه دريم روايت سره ثميله بن عبدالله ليثي رضي الله عنه يې په مدينه کي خليفه وټاکی،حارث بن ابی ضرار هم يوجاسوس ته وظيفه وکړې وه چې درسول الله دلښکر څارنه وکړي،مسلمانانو هغه جاسوس و نيوی اوقتل يې کړی ،کله چې حارث ته درسول الله صلی الله علیه وسلم د راتګ اودخپل د وژل کېدو خبر ورسيدی ډير وبيرېدی ،ملګري يې هم وراخطاسول ،يوشمير عربان خو ورڅخه ولاړل ،رسول الله صلی الله علیه وسلم دبحرساحل ته نژدې دقديد خواته د دوی يوې چيني ته چي مريسيع نوميده ورسيدی ،دوی هم دجنګ تياري ونيوله رسول الله صلی الله علیه وسلم خپل اصحاب په صفوکي سره برابرکړل،بيرغ له حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه سره وُ، د انصارو بيرغ يې سعدبن عباده رضي الله عنه ته ورکړی وُ.

دواړي لښکري سره مخامخ سوی څه وخت يې يوپربل غشي سره وويشتل ،بيارسول الله صلی الله علیه وسلم دحملي امر وکی ،ټولو اصحابو په يوه حرکت حمله وکړه ، دښمن ته يې ماته ورکړه اوبريالي سول ،يوشمير کفار ووژل سو،ښځي اومالونه يې دمسلمانانو په لاسو کي ولوېدل ،ډير پسونه اوحيوانان يې هم ونيول له مسلمانانو څخه يوازي يونفرشهيد سو هغه هم سهوا ديوه انصاري له لاسه مړسو ، هغه ونه پيژندی ، ددښمن ګومان يې ورباندي وکی او وی وژي ، دا داهل مغازي اواهل سير رأيه ده،ابن قيم وايي چې داګومان او وهم

---

[441] زادالمعاد ۲/ ۱۱۵.
[442] فقه السيرة ص ۲۲۳.

دی ځکه حقیقت دادی چې په دې غزاکي جنګ نه دی پېښ سوی ،مسلمانانو پر دوی حمله وکړه ،ښځې،اولادونه او مالونه یې ورڅخه ونیول ،په بخاري کې راځي چې رسول الله ﷺ په بني مصطلق غافل ګیر کړل یعني ناڅاپه حمله یې باندې وکړه .[۴۴۳]

په بندیانو ښځوکې جویریه بنت حارثه هم وه ، لومړی هغه دثابت بن قیس په برخه ورسیده هغه مکاتبه ورسره وکړه یعني دیوانداره مال په بدل کې یې دآزادۍ وعده ورکړه ،دواړه په دې راضي سول چې جویریه یې په خپله نکاح کړه ،جویریه دقوم درئیس لور وه او کله چې دې درسول الله ﷺ دنکاح شرف ترلاسه کی نو اصحابو ټولو خپل غلامان او مینځې آزادي کړې ، ځکه دوی ویل چې داقوم خواوس درسول الله ﷺ خسرګني ده ،نو باید ددوی قدر وسي اود رسول الله ﷺ دخپلوۍ داحترام په خاطر یې دوی ټول آزاد کړل هغوهم له آزادۍ وروسته ټولو چې سل کورنۍ وُ ایمان راوړی او په اسلام مشرف سول ،[۴۴۴]

په دې غزا کې دټولو پیښو اصلي او اساسي عامل دمنافقانو رئیس عبدالله بن ابی وُ،نومخکې له دې چې ددې پیښو په اړه څه ووایو ،غوره ګڼلو لومړی دمنافقانو په اسلامي ټولنه کې درول او منفي کړو وړو په هکله هم څه خبرې وکوو .

## «دبني مصطلق تر غزاوړاندې دمنافقانو مرام اودریځ»

څوځله مو داخبره کړې ده چې عبدالله بن ابی له اسلام اومسلمانانو په ځانګړې توګه له رسول الله ﷺ سره سخته کینه اودښمني درلوده ،ځکه اوس اوخزرج خو دده په مشري سلا سوي وُ او بوخت وُ ده ته یې تاج جوړوی ،مرې اوغمي یې ورته برابرول په همدې حال کې هلته داسلام لمر څرګند سو ،اوس اوخزرج یې دده له باچهي څخه بلې خواته واړول اوله همدې ځایه عبدالله بن ابی دافکر کوی چې دده باچیي خو رسول الله ﷺ خاوري کړه ،له رسول الله ﷺ سره دعبدالله بن ابی دښمني دهجرت له شروع څخه څرګنده وه ،یوه ورځ رسول الله ﷺ پرخره سپور وُ دسعدبن عباده رضي الله عنه پوښتنې ته ور روان وُ اوپرهغه مجلس چې ورغی کوم چې عبدالله بن ابی هم په کښې وُ کله چې رسول الله ﷺ ور ورسیدی نو دمنافقانو رئیس خپله پزه پټه کړه اووی ویل دلته دوړې مه راته کوی ، اوبیاچې رسول الله ﷺ دقرآن کریم آیتونه تلاوت کړل ده ورته وویل په کور کې دې کښېنه ،زموږ مجلس مه راخرابوه دادهغه وخت خبره ده چې عبدالله بن ابی لاپه اسلام سره تظاهرنه وُ کړی ،اوکله چې یې له بدر څخه وروسته په اسلام سره تظاهر وکې خپله دښمني یې پرېښووله

---

[۴۴۳] صحیح البخاری ۱/ ۳۴۵، فتح الباری ۷/ ۴۳۱.

[۴۴۴] زادالمعاد ۲/ ۱۱۳، ابن هشام ۲/ ۳۸۰.

او له الله جل جلاله او رسول الله ﷺ سره يې خپل دښمني ته ادامه ورکړه، تل يې هڅه کوله چې د مسلمانانو ترمينځ نفاق واچوي، د اسلام د ذلت کوښښ يې کوی، د کفارو سره يې مرسته کوله، د بني قينقاع په پيښه کې چې يې کوم رول اداکړی ؤ هغه خو مومخکې ذکر کی، همدا راز د احد په غزا کې يې مسلمانانو ته لوی غم شر او مصيبت را ولاړ کی، د دوی په مينځ کې يې ګډوډي، نفاق او خلاف واچوی، دغه منافق د مسلمانانو په حق کې له بې حده مکر او فريب څخه کار اخيستی، وروسته له هغه چې په اسلام سره يې تظاهر وکی، هره جمعه چې به رسول الله ﷺ د خطبې ويلو لپاره کښېنستی نو دې به ولاړ سو او خلګو ته به يې ويل چې اې خلګو! دا دی رسول الله ﷺ ستاسي په وړاندي تشريف لري، الله تعالی په ده سره تاسو ته عزت او منزلت درپه برخه کی، نو تاسي د ده ﷺ مرسته وکړی، خبرې يې واوری او اطاعت يې وکی، بيا به کښېنستی، وروسته به رسول الله ﷺ ولاړ سو او خطبه به يې وويله، د منافقانو دغه رئيس د و مره سپين سترګی ؤ چې سره له دې چې د احد په غزا کې يې هغه غدر او خيانت وکی خو له غزا وروسته د لومړي جمعې په ورځ ولاړ سو او غوښتل يې هم هغه څه ووايي کوم چې هر جمع به يې له خطبې څخه مخکې ويل خو داځل مسلمانانو ترکالو ونيوی او ورته وی ويل د خدای دښمنه کښېنه، ته د دې ورنه يط چې دا خبري وکړی، تاچې څه وکړل هغه ټولو وليدل، په دې خبرو سره هغه خوابدی سو او له مسجد څخه روان سو، د خلګو پر اوږو اوښتی او په وتو وتو کې يې ويل زه خو د دې جناب د ملاتړ لپاره پورته سوی وم خو داسي ښکاري چې ما کومه د جرم خبره کړی وي، له دروازې سره يو انصاري مخ ته ورته راغلی او ورته وی ويل هلاک سی! بيرته وګرځه رسول الله به د مغفرت دعا درته وکړي، ده وويل زه نه غواړم چې هغه د مغفرت دعا راته وکړي:

همدا ډول عبد الله بن ابی له بنو نضير سره مسلسله رابطه درلوده او له دوی سره په ګډه يې د مسلمانانو پر خلاف توطئې جوړولی ان تر دې چې ورته ويلي يې ؤ چې که چيري تاسي د مسلمانانو پر خلاف جنګ ته راووتلاست، نو موږ به هم درسره يو او که ستاسي پر خلاف جنګ وسو نو موږ به ستاسي مرسته کوو، همدا ډول د احزاب په غزا کي د دې منافق او ملګرو کارېې داؤ چې د مسلمانانو په مينځ کې بيره او پريشاني پيدا کړی، الله تعالی همدې مطلب ته د احزاب په سورت کي دا ډول اشاره کړی ده او فرمايي:

وَإِذْ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ مَّا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ إِلَّا غُرُورًا اوبیاورپسې فرمايي:
يَحْسَبُونَ الْأَحْزَابَ لَمْ يَذْهَبُوا وَإِن يَأْتِ الْأَحْزَابُ يَوَدُّوا لَوْ أَنَّهُم بَادُونَ فِي الْأَعْرَابِ يَسْأَلُونَ عَنْ أَنبَائِكُمْ وَلَوْ كَانُوا فِيكُم مَّا قَاتَلُوا إِلَّا قَلِيلًا . سورة الاحزاب.

**ترجمه**: یاد کړه هغه وخت (کله چې وویل) ابن ابی ابن قیشر او نورو منافقانو او ویل هغو کسانو چې په زړونو د دوی کې مرض دنفاق ؤ چې نه ده وعده کړې زموږ سره الله ﷻ او رسول الله ﷺ دغه الله په فتح دشام، یمن او فارس، او که چیرې بیا راسې لښکر دکفارو جنګ ته نو دوست بولي منافقان داچې کاشکې دوی او سیدونکې وای په لیرو کلیو داعرابو کې له ښاره چې پوښتني به یې کولی له لیرې له احوالو خبرو ستاسې او که چیرې وای دغه منافقان په تاسې کې نو جنګ به یې نه وای کړی دوی مګر لږ (لپاره د ریاء) په داسې حال کې چې دیهودو منافقینو او مشرکینو په شمول ټول دښمنان په دې ښه پوهېدل چې داسلام دبرې او غلبې راز مادي تفوق، دوسلو، عسکرو او وسایلو ډېر بښت نه دی بلکه ددې برې راز هغه اخلاق او معنوي پیاوړتیا ده چې مسلمانانو په سینګار سوې دي او داهم ټولو ته په ډاګه وه چې ددې عظمت او کرامت منبع هغه رسول الله ﷺ دی چې په نیکې، معنوي او اخلاقي لوړتیا او سپیڅلتیا کې ترټولو لوړمثال او قدوه دی، همدا راز ټول په دې ښه متیقن سوي ؤ او دپنځه کلنو جنګو په دوران کې ټولو ته ثابته سوې وه چې دوسلې په زور سره پر اسلام او مسلمانانو باندې غلبه ناممکنه ده. همداؤ وه چې دوی داسلام او مسلمانانو پرخلاف دساره یا تبلیغاتي جنګ فیصله کړې وه، دوی هڅه کوله دعاداتو، اخلاقو او کړو وړو له مخه دمسلمانانو پرخلاف تشویشونه را ولاړ کړي، په دې تبلیغاتي جنګ کې دکفارو لومړی هدف رسول الله ﷺ ؤ څرنګه چې منافقین په مدینه کې په اسلامي ټولنه کې وسیدل او دا ورته آسانه وه چې دمسلمانانو احساسات را وپاروي اوله دوی سره له تماس څخه په استفادې سره د دوی پرزړونو کار وکړي، نو داسلام پرخلاف په تبلیغاتي جنګ کې زیات مهم رول دهم دې منافقینو اود دوی درئیس عبدالله بن ابی ؤ، د دوی دغه توطئه او پلان داحزاب له غزا وروسته په ډاګه سو، کله چې حضرت رسول الله ﷺ له زینب بنت جحش رضي الله عنها سره چې زید طلاقه کړې وه نکاح وکړه، منافقینو هم داپیښه دحربې په شکل استعمال کړه، ځکه دعربو عادت او رواج داؤ چې دوی به خپل فرزندي اولاد هم لکه خپل اصلي اولاد داسې باله اود دادول زوی طلاقه سوې ښځه به دهغه چا لپاره ناروا بلله کوم چې دغه کس یې خپل زوی نیولی دی

،کله چي رسول الله ﷺ له زینب رضی الله عنها سره واده وکی نو منافقینو ګمان وکی چې لکه چې اوس دوی ته د رسول الله ﷺ پر خلاف د پروپاګند او تهمت ښه دلایل په لاس ورغلي دي او په دې هکله یې دوه ټکي د ځان په ګټه وبلل لومړی دا چې دا د رسول الله ﷺ پنځم واده ؤ او قرآن کریم خو تر څلورو د زیاتو ودونو د جواز حکم نه دی ورکړی، نو رسول الله ﷺ په کوم دلیل دا پنځم واده وکی، دویم دا چې زینب رضی الله عنها خو د زید رضی الله عنه ښځه وه او زید هغه څوک ؤ چې رسول الله ﷺ د خپل زوی په درجه کې نیولی ؤ، نو د خپل زوی له ښځې سره خونکاح دعربو په نزد یوه لویه ګناه ده، منافقینو په دې هکله ډېر تبلیغات وکړل، له ځانه یې ډیر قصې او دروغ جوړ کړل، د دې دروغو په ترڅ کې به یې ویل چې محمد ﷺ یو ځل زینب رضی الله عنها په ناڅاپه توګه ولیده او خو ښه یې سوه، د هغې حسن د ده زړه یو وړی ډیر مینه یې ورسره پیدا سوه او کله چې د دوی زوی زید رضی الله عنه په دې پوه سو نو زینب رضی الله عنها یې د ده لپاره ایله کړه او دغه پوروپاګند دومره عام سو او په داسي طریقه سره خپور سو چې ترننه پوري یې د تفسیر ا احادیثو په کتابونو کي آثار ترسترګو کیږي، او څرګنده ده چې د دې تبلیغاتو په حتما بر کمزورو زړونو آثرا و اغیزه هم درلوده، همدا وه چې د الله تعالی له طرفه د قرآن کریم شفاورکوونکی آیتونه نازل سول او په غوڅه توګه یې د منافقانو د دروغو او پوچو تبلیغاتو بطلان اعلان کی الله تعالی د احزاب د سورة په لومړي آیت کي فرمايي :

| يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ اتَّقِ اللَّهَ وَلَا تُطِعِ الْكَافِرِينَ وَالْمُنَافِقِينَ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا سورة احزاب |
|---|

**ترجمه :** اې نبي (محمد ﷺ) و بیریږه تل له الله عزوجل څخه او مه منه حکم د کافرانو او (نه) د منافقینو، بیشکه چې الله عزوجل ډیر ښه عالم او په هرشي ښه حکمت والا دی، د ا تربني مصطلق غزا مخکي د منافقینو د توطئو او منفي دریزونو یو څو کوچني نموني وی، رسول الله ﷺ په پوره صبر او حوصلې سره د دې حالاتو مقابله کوله، د منافقانو د اټول حالات یې ښه لېدل خو بیا یې هم د دوی سره له مهرباني او نرمي څخه ډکه معامله کوله، همدا راز نورو مسلمانانو هم دا کوښښ کوی چې د منافقینو له شر څخه ځان وساتي او د دوی په وړاندي یې له ډیري حوصلې څخه کار اخیستی ځکه دوی لېدل چې د منافقینو فتنه یوه نه ده، دوی هره ورځ نوي نوي فتنې را ولاړوي نو باید له زغم او صبر څخه کار واخیستل سي، الله تعالی د دې مطلب ته اشاره کوي او فرمايي : أَوَلَا يَرَوْنَ أَنَّهُمْ يُفْتَنُونَ فِي كُلِّ عَامٍ مَّرَّةً أَوْ مَرَّتَيْنِ ثُمَّ لَا يَتُوبُونَ وَلَا هُمْ يَذَّكَّرُونَ سورة توبه **ترجمه :** آیا فکر نه کوي او نه ګوري دوی چې بیشکه

دوی مبتلا کولی سي (ډول ډول) قسم قسم مصائبو په هريوه کال کي يو واريا دوه واره بياله سره دوی نه کوي توبه له نفاقه اونه دوی پند اخلي .

## «په بني مصطلق غزا کي منافقين او دهغوی رول»

دبني مصطلق په غزا کي له رسول الله ﷺ سره دمنافقينو ګډون دالله عزوجل ددې قول عملي مصداق دی چي فرمايي :

لَوْ خَرَجُواْ فِيكُم مَّا زَادُوكُمْ إِلاَّ خَبَالاً ولأَوْضَعُواْ خِلاَلَكُمْ يَبْغُونَكُمُ الْفِتْنَةَ سورة توبه

**ترجمه**: نو که وتلی وي دغه منافقان په لښکرستاسي کي نونه به ورزيات کړي دوی تاسي ته هيڅ شی مګر شر، خرابي ،فساد اوچغلي اوخامخا چابکي به کړی وه دوی په مينځ ستاسي کي په چغلي اونور بديو کي حال داچي غوښتله به دوی تاسي ته فتنه ستاسي په مينځ کي ددښمني په اچولو اوله کافرانو څخه ستاسي په بيرولو کي دنفاق لښکروهم دلته له خپل شر او شيطانت څخه ښه ګټه پورته کړه ، دمسلمانانو په صفو کي يې درز او تشويش پيداکي اودرسول الله ﷺ پرخلاف يې دومره لوی تهمت جوړکی چي جواب يې په خپله الله تعالی ووايه ،ددې پيښي تفصيل داډول دی .

۱ : دمنافقينو داقول چي ويل به يې الله تعالی د دوی هم دغه قول ته اشاره فرمايي :

يَقُولُونَ لَئِن رَّجَعْنَا إِلَى الْمَدِينَةِ لَيُخْرِجَنَّ الأَعَزُّ مِنْهَا الأَذَلَّ سورة منافقون آيت (۸)

**ترجمه**: که چيري بيرته وګرځو موږ وطرف ته دمدينې نوخامخا به وباسي هرومرو ډير عزتمند (کافران خلک له دغه مدينې څخه) ډير خوار کمزور خلک ،ترغزا وروسته رسول الله ﷺ له مريسيع چيني سره تشريف درلودی اوهم الته يې اړولی ؤ ،خلک ولاړل ترڅوله چيني څخه اوبه راوړی ، دعمر بن خطاب رضي الله عنه يوغلام يامزدور چې (جهجاه الغفاري) نوميدی دده او سنان بن وبر جهني ترمينځ داوبو پرسرجنجال اوجنګ پيښ سو،جهني چيغه کړه اې انصارو اوجهجاه مهاجرينو ته ږغ کی ،په دې وخت کي رسول الله ﷺ وفرمايل په داسي حال کي چي زه ستاسي په مينځ کي وجودلرم تاسي دجاهليت ناري وهی ؟داد جاهليت ناري پريږدی ،داډير بدبويه ناري دي، عبدالله بن ابی بن سلول ته چي داخبره ورسيده ډيرپه غوصه سو ،له ده سره د يوقوم يوه ډله خلک هم ؤ ،زيدبن ارقم رضي الله عنه چي دغه وخت کشر ځوان ؤ هم په دې ځای کي موجود ؤ ،عبدالله بن ابی وويل آيادوی هم داسي وکړل ، دوی زموږ سيمي ته راغلل اوس ځانونه سره په تله کي اچوي اومقابله راسره کوي ،قسم په خدای پرموږ اودوی دامتل صدق کوي چي وايي سپې چي دي چاغ کړی نوخوري به دي ، قسم په الله چي مدينې ته له رسيدو وروسته به دهغه ځای عزيز اوسر لوړي خلک

ذلیل او خوار خلک باسي ،بیایې خپلو ملګرو ته مخ کی او ورته وی ویل دا تول ستاسي له خپله لاسه،تاسي په خپل وطن کي ځای ورکړی دی خپل مالونه موورسره وویشل ،که تاسي دوی ته څه نه وای ورکړي نو یو بلي سیمي ته به تللی وای .

زیدبن ارقم رضی الله عنه دا خبره خپل اکا ته ورسوله دهغه اکا ولاړی رسول الله ﷺ یې چي حضرت عمر رضی الله عنه هم ورسره ؤ له واقعې خبر کی ،عمر رضی الله عنه وویل عباد بن بشیر رضی الله عنه ته امروکړه چي دامنافق عبدالله بن ابی ووژني ، رسول الله ﷺ وفرمایل :اې عمره !که داسي وکړم نو بیابه خلک وایي چي محمد ﷺ خپل اصحاب وژني ،نه داسي نه کوم خلګو ته دتلو امروکړه ،دا داسي ساعت اووخت ؤ چې عادتا به رسول الله ﷺ سفر نه په کښي کوی په هرحال حکم وسو خلک روان سول ،اسید بن حضیر رضی الله عنه له رسول الله ﷺ سره مخامخ سو، ترسلام وروسته یې عرض وکی چي په نامناسب وخت کي دي دتګ او کوچ امروکی ، رسول الله ﷺ په جواب کي ورته وفرمایل :ته نه یې خبرچي ستاسي اشنا(ابن سلول) څه ویلي دي؟ده وویل نه زه نه یم خبر هغه څه ویلي دي؟رسول الله ﷺ وفرمایل :هغه داګومان اوخیال کړی دی چي مدینې ته له رسیدو وروسته به دعزت خاوندان ولاړېږي اوهغه ذلیل اوخوار کسان به له مدینې څخه شړي اسید رضی الله عنه عرض ورته وکی که ته غواړی نوته به هغه له مدینې څخه وشړی ،قسم په الله جل جلاله چي ته عزیز اوهغه ذلیل دی اوزیاته یې کړه چي یارسول الله ﷺ له ده سره ډیره نرمي وکړه ته الله جل جلاله موږته په داسي حال کی راوستی چي دهغه قوم دده لپاره مرۍ اوغمي برابرول ترڅو تاج ورته جوړکي ،اوباچایې وټاکي ،هغه اوس داګومان کوی چي تا باچاهي ورڅخه اخیستی ده .

رسول الله ﷺ په دغه ورځ آن ترماخستنه پوري مسلسل سفروکی ،سهار هم روان ؤ اوترڅو لمر ښه ګرم سو خلګ یې په تکلیف کړل نو یوځای یې واړول ،خلک ډیرستړي سوي ؤ څرنګه چي مځکي ته ورسیدل سمدستي ټول بیده سول ،رسول الله ﷺ دا کار اودادومره اوږد مزل یوائې په دې خاطروکی ترڅو دخلګو توجه بلي خواته واوړي اوله خبرو څخه یې په بل څه مصروف وساتي ،دمنافقانو مشر ابن ابی چي کله خبرسو چي زید بن ارقم رضی الله عنه دده خبره رسول الله ﷺ ته رسولی ده نو سمدستي درسول الله ﷺ خدمت ته حاضر سو قسم یې وکی چي مادا ډول خبري نه دي کړي اونه مي دې خواته اشاره کړی ده ، موجودو انصارو هم وویل چي یارسول الله ﷺ !کېدای سي هغه هلک زید په خبره پوه سوی نه وي ،رسول الله ﷺ دده خبره ومنله ،زید رضی الله عنه وایي چي قسم په خدای زه دومره خفه سوم چي

په ټول ژوندکې هم دومره خفه سوی نه یم ،ولاړم په کورکې کښېنستم ترڅوالله تعالی دا آیتونه رانازل کړل :

إِذَا جَاءَكَ الْمُنَافِقُونَ... هُمُ الَّذِينَ يَقُولُونَ لَا تُنفِقُوا عَلَىٰ مَنْ عِندَ رَسُولِ اللَّهِ حَتَّىٰ يَنفَضُّوا... لَيُخْرِجَنَّ الْأَعَزُّ مِنْهَا الْأَذَلَّ سورة المنافقين ۱/۸.

زید وایي چې رسول الله ﷺ یوڅوک راپسی راولیږی ،ورغلم اوهم دا آیتونه یې راته وویل او وی فرمایل زیده !الله عزوجل رښتونی کړی .[۴۴۵] دهمدې منافق زوی یوصالح او غوره صحابي ؤهغه له خپل پلار څخه برائت اعلان کی ،ولاړی اودمدینې په دروازه کې دخپل پلار مخ ته ودریدی ،توره یې په لاس کې وه اوکله چې یې پلار راغی ورغ یې پروکی چې ودریږه قسم په خدای ﷺ ترهغو به له دې ځایه مخکې ولاړنه سې ترڅورسول الله ﷺ اجازه درکړی نه وي ،رسول الله ﷺ عزیر اوته ذلیل یې اوکله چې رسول الله ﷺ تشریف راوړی دتلواجازه یې ورکړه ،نوهغه هم پرېښنو وی چې مدینې ته داخل سي ، عبدالله بن عبدالله بن ابی ﷺ داهم ویلي ؤ چې یارسول الله ﷺ که غواړی چې پلار رمي وژنی نوامر راته وکړه قسم په خدای چې سربه یې درته راوړم .[۴۴۶]

## «په همدې غزاکې دافک پیښه واقع سوې ده»

دافک پیښه په همدې غزاکې واقع سوی ده ،ددې پیښې لنډیز داسې دای ،چې په دې غزا کې رسول الله ﷺ له خپلو بیبیانو څخه دبچې په اساس حضرت عائشه ﷺ له ځان سره بیولی وه له غزا څخه دبیرته تلو په دوران کې یوځای کښته سول عائشه ﷺ دحاجت رفع کولو په خاطر ووتله ، هلته هغه امیل ورڅخه ورک سو چې له خپلې خورڅخه یې په عاریت اخیستی وه ،بیرته ورپسې ورغله اوپه هغه ځای کې یې لټوی چیري چې ورڅخه ورک سوی ؤ ،په همدې وخت کې دتلو امروسو ،هغه کسان چې ددې کجاوه یې بارول راغلل فکرېې کوی چې عائشه ﷺ په کجاه کې ده نوکجاوه یې پورته کړه اوپراوښ یې کیښووله ،پوه نه سول چې هغه په کښې سته کنه ،ځکه دغه وخت هغه ﷺ کم عمره وه او وزن یې هم ډېر کم ؤاوبله داچې څوکسان چې یوې کجاوې ته یوځای سي نوبیاخود وزن اندازه هم نه معلومیږي اوکه دایوه یا دوو کسانو بارکړی وای نوحتما به پوه سوي وای خوځرنګه چې دوی ډیر ؤنوپه دې پوه نه سول چې په کجاوه کې حضرت عائشه ﷺ نسته ، حضرت عائشې ﷺ خپل امید پیدا کی اوبیرته خپل ځای ته راغله خو هلته هیڅوک هم

---

[۴۴۵] صحیح البخاري ۱/ ۴۹۹ ، ابن هشام ۲/ ۳۹۰.
[۴۴۶] ابن هشام.

پاته نهٔ، ټول تللي ؤ هم التهٔ ځای پرځای کښېنستل ،فکر یې وکی چې دوی به بېرته ورپسې راوګرځي ،الله تعالی دواک څښتن دی څه چې یې اراده وي هم هغه کېږي ،عائشه رضي الله عنها هم دلته خوب یو وړه بیده سوه ،یووخت صفوان بن معطل رضي الله عنه په دې آواز سره راویښه سوه چې ویل یې :انالله وانااليه راجعون. داخودرسول الله ﷺ بي بي ده ؟صفوان دلښکر څخه شاته پاته سوی ؤ، ځکه هغه ډېر خوب درلودی اوکله چې یې حضرت عائشه رضي الله عنها ولیده وې پېژنده ځکه دحجاب له حکم څخه مخکې یې لیدلې وه اوښه یې چوکړه اوپه دې وخت کي حضرت عائشه رضي الله عنها راویښه سوه نوصفوان خپله اوښه ورلنډه کړه اوعائشه (ورباندي سپره سوه صفوان یوه کلمه خبره هم ورسره ونه کړه اوله :انالله وانا اليه راجعون. پرته یې بل حرف هم وانه وریدی ،صفوان داوښې په مخ کي روان سو ،غرمي ته چې لښکر دغرمي لنګر اچولی ورسیدی ،خلګو چې داحالت ولیدی هریوه له خپل شان اوحال سره برابر یوڅه وویل ،خوداخدای دښمن دمنافقانو رئیس ابن سلول دخپلي دښمنۍ ،کیني اوخباثت داظهارولو لپاره ښه فرصت پیداکی ،دافک (تهمت) قصه یې جوړه کړه ،شروع یې وکړه همدایې خپرول په یوه اوبله باره یې کوښښ کوی چې داتهمت دیوچاغوږونو ته ورسوي ،ډله یې پر راټوله وه هم داخبري یې سره زمزمه کولی اوکله چې مدینې ته ولاړل افک جوړونکو قصه اوږده کړه ،رسول الله ﷺ چوپ اوساکت ناست ؤهیڅ یې نه ویل خوکله چې په دې هکله وحي وځنډیده نورسول الله ﷺ دحضرت عائشې رضي الله عنها د سرنوشت په هکله له خپلو اصحابوسره مشوره وکړه ،حضرت علي رضي الله عنه اشارتا داسې مشوره ورکړه چې عائشه رضي الله عنها پرېږدی یعني طلاق ورکړې ،داسامه رضي الله عنه اوځینو نورو مشوره داوه چې په دې هکله ددښمنانو خبروته اهمیت ورنه کړې اوعائشه رضي الله عنها دځان سره وساتي بیا رسول الله ﷺ منبرته پورته سو اودعبدالله بن ابی اوږده له آذیتو څخه یې شکایت وکی ،په همدې وخت کي داوس مشراسید بن حضیر خپله تیاري څرګنده کړه اووی ویل که اجازه وي زه یې وژنم ،سعدبن عباده رضي الله عنه چې دخزرج دقبیلې سردارؤ په احساساتو راغی دخپل قوم پلوي یې وکړه ،په همدې سره دده اواسید رضي الله عنه ترمینځ خبري پورته کښته سوی ،په نتیجه کي دواړي قبیلې په خپل مینځ کي سره ببري سوی ،رسول الله ﷺ په ډېرمشکل سره هغه سره آرام کړل اوپه خپله هم چوپ سو .

عائشه رضي الله عنها مدینې ته له ستنید وروسته پوره یومیاشت ناروغه وه ،دافک (تهمت) په قصه خبره نه وه ،خودرسول الله ﷺ هغه مهرباني یې نه لیدل کومه چې پخوا به یې دناروغۍ او مرض په وخت کي باندي درلوده ، کله چې جوړه سوه یوشپه دأم مسطح سره قضاء حاجت

لپاره دباندي ووتله ،دأم مسطح پښه په پوړني کي بنده سوه اوغوځاره سوه ،په همدې وخت کي يې خپل زوی ته ښرا وکړه ،عائشه رضي الله عنها په دې ښرا سره هغې ته وويل :چې داکار دصحيح نه دی أم مسطح په جواب کي عائشې (ته وويل زما زوی هم په دې تهمت کي شريک دی چې په تاسي ويل سوی دی اوقصه يې ورته وکړه ،عائشه رضي الله عنها کورته راغله اوله رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه يې اجازه واخيستله چې خپل پلار کورته ولاړه سي ترڅوپه پيښې پوره ځان خبرکړي، رسول الله صلى الله عليه وسلم اجازه ورکړه ، اوهغه دخپل مور اوپلار کره ورغله هلته يې دقصې په تفصيلاتو ځان خبرکړی اوکله چې په خبره پوه سوه نوډيرزيات يې وژړل ،دوې شپې اويوه ورځ مسلسل ژړل ،خوب يې ورک سو ،اوښکي يې هم داسي رواني وی،نژدې وه چې له ډيري ژړا وچوي په همدې وخت کي رسول الله صلى الله عليه وسلم تشريف راوړی ، دشهادت کله يې وويله اووی فرمايل اې عائشې رضي الله عنها ستاپه هکله دا اوهغه خبري راته سوي دي که چيري ته بې ګناه اوپاکه يې نو الله جل جلاله به ستابرائت اوپاکي اعلانوي اوکه خدای ناخواسته درڅخه سوی وي نوتوبه وباسه ځکه بنده چې پرخپله ګناه اعتراف وکړي اوتوبه وباسي الله تعالى يې توبه قبلوي هم دلته دحضرت عائشې رضي الله عنها اوښکي وچي سوی خپل مور اوپلارته يې مخ واړوی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته جواب ووايي ،خودوی حيران چې څه ووايي ،نوحضرت عائشې رضي الله عنها په خپله وويل قسم په الله چې تاسي زما په باره داخبري اوريدلي دي اوستاسي زړه هم منلي دي هغه موږ رښتيا بللي ،که زه درته ووايم چې زه بري اوپاکه يم الله عزوجل خبردی چې زه بري يم تاسي زما داخبره نه منی اوکه چيري زه پرهغه څه اقرار وکړم چې الله عزوجل په عالم دی چې زه ورڅخه بري يم نوتاسي به يې ومنی ،زه دلته دځان اوستاسي لپاره ديوسف عليه السلام دپلار داقول وايم چې فرمايي :

فَصَبْرٌ جَمِيلٌ وَاللهُ الْمُسْتَعَانُ عَلَى مَا تَصِفُونَ سورة يوسف

**ترجمه** :نوزماکار صبرجميل دی (چې هيڅ شکايت به په کښې ونه کړم خلګو ته) او (له هم دغه) الله جل جلاله څخه مدد غوښتلای سم په (تحمل د) هغې (خبري) کي چې تاسي يې بيانوی (له هلاکه ديوسف عليه السلام داخبره يې وکړه بلي خواته ولاړه اوپريوته ،په هغه وخت کي هم دلته پررسول الله صلى الله عليه وسلم دالله تعالى له طرفه وحي نازلي سوی ،اوکله چې دوحي کيفيت ختم سو ،رسول الله صلى الله عليه وسلم په خندا سو اولومړي کلمه يې داوه ياعائشه!قسم په خدای جل جلاله چې الله تعالى ستابرائت اعلان کی ،موريې ورته وويل ولاړسه دررسول الله صلى الله عليه وسلم خدمت ته ورسه ،شکريې پرځای کړه عائشه رضي الله عنها په داسي حال کي چې له خپل برائت اودرسول الله

ﷺ له محبت او اعتماد څخه بې حده خوشحاله سوی او مطمئنه وه په ناز سره یې وویل : زه ده ﷺ ته نه ورځم ،زه یوازې دالله تعالی حمد اوشکرانه وایم ،الله تعالی دافک د پیښې په اړه لس آیتونه نازل کړل چې په شروع کې یې فرمایي :إِنَّ الَّذِينَ جَاءُوا بِالْإِفْكِ عُصْبَةٌ مِّنكُمْ .**ترجمه** : بیشکه هغه کسان چې راوړی یې دی غټ درواغ(په شان دعائشې رضی الله عنها کې) یوه ټولي ده ستاسې(له مسلمانانو څخه)په دې تهمت اوجرم کې له شریکو کسانو څخه مسطح بن اثاثه ،حسان بن ثابت او حمنة بن بنت جحش اتیا اتیا(٨٠) دروې ووهل سول ، خو ددې جرم لوی مجرم او دمنافقانو رئیس عبد الله بن ابی ته جزا ورنه کړل سوه،نه حدپرجاري سو،داهم ځکه چې حد خو دمجرمینو لپاره یو ډول تخفیف دی ،دغه منافق خو دتخفیف مستحق نه دی،الله تعالی په آخرت کې هغه ته دسخت عذاب وعید وکړی دی ، اویاکېدای سي چې دهغه مصلحت په خاطر حد ورباندې جاري سوی نه وي دکوم په خاطر چې هغه وژل سوی نه ؤ.[447] په دې ترتیب سره دیومیاشتې پریشانې وروسته له مدینې څخه دشک،پریشانی اوتشویشونو ورځ والوتل ،،دمنافقانو رئیس داسې وشرمیدی چې نور یې پورته کتلی نه سوای،ابن اسحاق وایي تردې پیښې وروسته ابن سلول دومره سپک اورسوا سو چې که کومه خبره اوپیښه به یې جوړه هم کړه نولوړې به یې خپل قوم خبره ردوله ،ورباندې په غوصه کېدل به او رټې به یې ، رسول الله ﷺ حضرت عمر رضی الله عنه ته وفرمایل : څه فکرکوې یاعمره!که هغه ورځ دې وژلې وای په کومه ورځ دې چې ماته وویل چې اجازه راکړه چې ویې وژنم نوکه هغه وخت دې وژلی وای ،ډیرهمدردان اوملاتړبه یې پیداکړي وای خوکه نن یې هم هغه همدردانو ته دوژلو حکم وسي نووبه یې وژني ،حضرت عمر رضی الله عنه عرض وکی چې زه پوه سوم چې د رسول الله ﷺ امراو معامله زما ترکاراومعاملې ډیره برکتې اوغوره ده..

## «دمریسیع غزا وروسته فوجي تاکتیک اوعملیات»

**دعبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه سریه** : دشپږم هجري کال دشعبان په میاشت کې رسول الله ﷺ هغه په دومة الجندل کې اوسیدونکې بني کلې ته ولیږی ،ترتلو مخکې رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل راسه دلته زما مخ ته کښېنه هغه راغی درسول الله ﷺ مخته کښېنستی ،رسول الله ﷺ په خپل مبارک لاس لنګوټه وروتړله ،اودجنګ په هکله یې زړه پوري لارښوونې ورته وکې اوورته وی فرمایل : که دوی ستاامر ومنې نودباچا

[447]. صحیح البخاری ١/ ٣٦٤.

دلورسره يې واده وکړه ،عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه ولاړی ،درې ورځې يې هغه قوم اسلام ته راوباله ، ترڅو دوی په اسلام مشرف سول اوعبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه دقبيلې دسردار ياباچا اصبغ دلور (تماضر) سره واده وکی اوهمدا تماضر په أم سلمه سره شهرت لري .

**دعلي بن ابي طالب رضي الله عنه سريه** : دشپږم هجري کال دشعبان په مياشت کې وه ، هدف يې په فدک کې اوسيدونکي دبني سعدبن بکر قبيله وه،رسول الله صلى الله عليه وسلم ته خبر راغی چې دلته ديهوديانو سره دمرستي لپاره راټول سوي دي ،نوسمدستي يې حضرت علي رضي الله عنه د دوه سوه کسيزه لښکر په مشري هغه سيمي ته ولیږی،حضرت علي رضي الله عنه به دشپې سفر کوی اود ورځې له خوابه کمين نيوی ، يوه ورځ يې دکفارو يوجاسوس ټينګ کی هغه اقرار وکی چې بني سعد قبيلې هغه دخيبر يهودو ته ليږلی ؤ اودوی ته يې داخبررسولي ؤ که يهوديان دوی ته دخيبر خورماوي ورکړي نودوی به مرسته ورسره وکړي، همدې جاسوس دبني سعد دغونډيدو ځای هم په ګوته کی ،حضرت علي رضي الله عنه پرهم هغه ځای حمله وکړه ،پنځه سوه اوښان اودوه زره پسونه يې په غنيمت ونيول ،بني سعد دځپلو ښځو اولادنو اوخپل مشر (وبربن عليم) سره يوځای وتښتيدل .

**دابوبکرصديق رضي الله عنه سريه په بل روايت سره دزيد بن حارثه رضي الله عنه سريه** : د شپږم هجري کال د رمضان په مياشت کې د وادي القرٰی په سيمه کې پيښه سوی وه ،فزاره قبيلې درسول الله صلى الله عليه وسلم دترور نيت کړی ؤ رسول الله صلى الله عليه وسلم يې دمقابلې لپاره حضرت ابوبکرصديق ورولیږی سلمه بن اکوع رضي الله عنه وايي چې زه هم ورسره وم ، اوکله چې مود سهار لمونځ اداکی نوامرراته وسو چې حمله پروکړی ،موږ هم حمله پروکړه ځيني مو ووژل په دې وخت کي مايوه ډله وليده چې ښځي اوکوچنيان هم په کښي ؤ ،وبيريدم هسي نه چې زما ترمخ غره ته ورسيږي ،ورپسې ورغلم اود دوی اوغره ترمينځ مي دغشي وار پروکی کله چې دوی غشی وليدی ،ودریدل په دې ډله کي أم فرقه نومي يوه ښځه هم وه چې يوزوړ پوستين يې اغوستی وه ،ددې سره يې لور چې دزياتي ښکلا درلودونکي وه هم ملګري وه ماټول ونيول اودابوبکرصديق رضي الله عنه حضور ته مي راوستل ، هغه هم داښکلې انجلۍ ماته حواله کړه ،مادهغې جامي نه وی خلاصي کړي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم راڅخه وغوښتله اومکې ته يې وليږله اوبدل کي يې ډيربنديان په رايله کړه .[۴۴۸] أم فرقه يوه شيطان صفته ښځه وه ، درسول الله صلى الله عليه وسلم په شهادت رسولولپاره يې ډيري توطئې جوړولی اودهمدې هدف لپاره

---

[۴۴۸] صحيح مسلم ۸۹/۲، ويل سوي دي چې داذکرسوي سريه په اوم کال دهجرت کې وه.

يې دخپلې كورني. ډيرش كسان تيار كړي هم ؤ او بالاخره هغه په خپله سزا ورسيده او پوره ډيرش كسان يې ووژل سول.

**دكرز بن جابر الفهري سريه** : داهم هغه صحابي دى چې تربدر مخكې يې دصفوان په غزا كې دمدينې پرپنډغالي حمله كړې وه وروسته په اسلام مشرف سواودمكې دفتحې په غزا كې شهيدسو، قصه داسې وه چې دعكل اوعرينه يوې ډلې چې رنځوران ؤپه ظاهره اسلام راوړى په مدينه كې يې اوسيدل شروع كړل خو ددې ځاى هوا ددوى لپاره مناسبه نه ، رسول الله ﷺ دوى له يو ځرځاى اوهلته له څاريوو څخه ددفاع په خاطرواستول، امرېې ورته وكړ چې ددې څارويو اوښانو ساتنه به كوى اودهغوشيدې اوبولې به څښې، كله چې دغه خلگ له ناروغي څخه جوړسول نودرسول الله ﷺ شپون يې قتل او اوښان يې له ځان سره وتښتول اوبيرته مرتد اوكافران سو، بناء رسول الله ﷺ دشپږمه هجري كال دشوال په مياشت كې كرزبن جابر رضي الله عنه له يوه ګروپ سره په دوى پسې وليږى، رسول الله ﷺ په دې وخت كې دادعاهم وكړه اې خدايه ته په عرنيونو لاره بنده كړې، لاره ورته تنګه كړې ، الله عزوجل هم دادعاقبوله كړه، له دوې څخه لاره وركه سوه اوټول دمسلمانانو په اسارت كې ولوېدل اوبيادخپل جرم (قتل)په بدل كې حد ورباندې جاري سو، لاسونه او پښې يې پرې سولې ، سترګې يې ويستل سوى اوبياهم الته يو ځاى وغورځول سواوټول مړه سول، داقصه په صحيح البخاري كې له حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت سويده.[429]

سيرت ليكونكې په دې سريه پسې له سلمه بن اكوع سره دعمرو بن اميه الضمري دسريې ذكر هم كوي، داهم داشپږم هجري كال دشوال په مياشت كې وه ، قصه يې داسې ده، چې نوموړي د ابوسفيان ذترور لپاره مكې ته ولاړى ځكه ابوسفيان تردې مخكې درسول الله ﷺ دترور لپاره يوكوچى مدينې ته راليږلى ؤ، خودايوهم په خپل هدف كې بريالى نه سو، داسې روايت هم سته چې عمرو ولاړى په اوږد كې درې كسان وژلي ؤ اوبل روايت وايي چې عمرو په همدې سفر كې دشهيد خبيب رضي الله عنه جسد هم له ځان سره اخيستى ؤ.

مشهوره خودادە چې خبيب& درجيع له حادثې څو ورځې وروسته يامياشتې وروسته شهيد سوى دى ،درجيع پيښه په څلورم هجري كال دصفر په مياشت كې وه ، نه پوهيږم تاريخ ليكونكې سهوه سوي دي اوكه هم دا دواړې پيښې په يوه سفراو څلورم هجري كال كې سوې دي ،علامه منصور پوري دانه منې چې په دې سريه كې دې جنګ اومقابله سوى

---

[429] زادالمعاد ٢/ ١٢٢.

وي ،داتر احزاب اوبني قريظه غزاګانو څخه وروسته پيښې سوی سريې دي چې په يوه کي يې هم سخت جنګ نه دی سوی ، نوپردې اساس ويلای سو چې داټول يودول اکتشافي ګزمې اوعمليات ؤ چې هدف يې دهغواعرابو بيرول اوآرامول ؤ چې لاتراوسه يې سد سرته نه ؤ ورغلي ،که پيښنو ته ژوره کتنه وسي نوداسي ښکاره کيږي چې له احزاب غزا وروسته دپيښنو مسيربدل سوی اود ښمنان دماتي په طرف روان ؤ ،ددوی حوصلې تيتې سوي اوداسلامي حکومت اوځواک له ماتولو څخه بالکل مايوسه اوناامېده سوي ؤ ،داحقيقت هغه وخت ښه ځرګند سو کله چې دحديبيې سوله وسوه اوپه دې سولي سره کفارو داسلام پرځواک اوعظمت اعتراف وکي او اسلام يې ديوه ځواک په توګه په عربي جزيره کي ومنې .

## « صلح دحديبيه »

## (دهجرت په شپږم کال دذی العقدې مياشت)

وروسته له هغه چې په عربي جزيره کي حالات ټول دمسلمانانو په ګټه سول ،د اسلامي بلنې دبري رڼا ورو ورو راښکاره کېدله اودکفارو له خوا په مسجد حرام کي چې پوره شپږکاله دمسلمانانو پرمخ تړل سوی ؤ ،اوس هلته دمسلمانانو دعبادت په حق داعتراف مقدمه مخ په شروع کېدو وه ،رسول الله ﷺ په مدينه منوره کي خوب وليدی چې دې اواصحاب کرام يې مسجد حرام ته داخل سوي دکعبې کلياني يې اخيستي اوټولو طواف اوعمره اداکړې ده ، وروسته ځينو دسرو يښتان کم اوځينو نورو بالکل پاک خريېلي دي ،رسول الله ﷺ خپل دا خوب اصحابو ته وواېه دوی ډېرخوشحاله سول اوګومان يې وکی چې دوی به همداکال مکې ته داخلېږي ،رسول الله ﷺ داهم ورته وويل چې زه به عمره اداکوم ، نوهمدا وه چې اصحابو دسفرتياري ونيوله .

## «دسيدالبشر ﷺ اعلان اومسلمانانو ته دسفرامر»

رسول الله ﷺ دمدينې اوشاوخوا سيمو اوسيدونکو ته اعلاون وکی چې له ده مبارک سره دې سفر ته تيارسي ،ډېر و اعرابو سستي کوله ، رسول الله ﷺ په خپل خپل پرېولل سوي کالي واغوستل ، عبدالله ابن ام مکتوب رضي الله عنه اوپه بل روايت نميله ليثي يې دمدينې خليفه وټاکی اوپه خپله پرقصوا نومي اوښه سپور سو ،دشپږم هجري کال دذی القعدې په لومړي نيټه د دوشنبې په ورځ له مدينې څخه حرکت وکی ،له ده سره په دې سفر کي أم المؤمنين أم سلمه رضي الله عنها هم ملګرې وه ، دلښکر شميره يې له (۴۰۰) څخه تر (۱۵۰۰) کسانو

ته رسيده ،په دې سفر کي له رسول الله ﷺ اولښکر سره يې له تورو پرته چې هغه هم په تيکو کي وې نوره وسله نه وه.

## «د مسلمانانو دمکې طرف ته روانگي»

رسول الله ﷺ او ورسره اصحاب کرام دمکې په طرف روان سول ،کله چي دذی الحليفه سيمي ته ورسېدل نورسول الله ﷺ خپله هدی (دقرباني اوښه) ته قلادې واچولی ،اوهغه يې په بوک زخمي اونښاني کړه ،دعمرې لپاره يې احرام وتړی ترڅو خلک په دې پوه سي چې دجنګ اراده نه لري،يوسړي ته يې وظيفه ورکړه چې ولاړ سي اودقريشو حال اواحوال ورته راوړي ، کله چې عسفان ته نژدی کېدی هم داخاري ورته راغی اوعرض يې وکی چې کعب بن لوی خپل حليف قبايل (اجابيش)راغونډ کړی اوستاسره دمقابلې نيت لري ، هغه نورخلک هم ستاسره د جنګ لپاره راټول کړي دي ، دوی تصميم نيولی چې تاسوته اجازه در نه کړي ترڅو مکې ته داخل سی ، په دې وخت کي رسول الله ﷺ له خپلو اصحابو سره مشوره وکړه او وی فرمايل : چي ستاسي په دې کي څه نظر دی ؟چې ولاړسو اودهغه خلګو پرکورنو حمله وکړو کوم چې له قريشو سره دمرستي لپاره وتلي دي ،اوموږ د دوی پرهرڅه قبضه وکړو ، وروسته که دوی غلي کښيني نودابه داسي وخت وي چي دجنګ خوندبه يې څکلی وي اولوی غم به پرراغلی وی اوکه دوی نجات هم پيداکړي نودابه هم په داسي حالت کي وي چې الله ﷻ به يې ورميږونه ورمات کړي وي اوکه نه ،داغواړي چې دبيت الله شريفي پرخوا مخ ته ولاړ سو که څوک مومخ ته ودرېدل نوجنګ به ورسره کوو؟په جواب کی حضرت ابوبکرصديق رضی الله عنه ورته وويل چې الله ﷻ اورسول الله ﷺ ترټولو ښه پوهيږي ،موږ خودعمرې په نيت راغلي يو له هيچا سره دجنګ نيت نه لرو خوکه څوک زموږ اوبيت الله ترمينځ واقع کيږي يعني موږ ته دعمرې اجازه نه راکوي نود دوی سره به حتما جنګيږو ،په دې پسې رسول الله ﷺ امروکی چې ځی روان سی همداوه چي ټول دمکې مکرمې پرخوا روان سول.

## «د بيت الله شريفي څخه د مسلمانانو منع کيدل»

قريشو چي درسول الله ﷺ دراتګ خبر واورېدی نوغونډه يې وکړه اوټول په دې سره متفق سول چي په هيڅ صورت کي به رسول الله ﷺ ته مکي ته دراتګ اجازه نه ورکوي په داسي حال کي چي رسول الله ﷺ له احابيشو سره په څنګ کي تيرسوي ؤ خبرورته راورسيدی چي قريش ذی طوی ته راغلی اودکراع الغميم په سيمه کي دخالدبن وليد په مشري دوه سوه سپاره ځای پرځای سوي دي ،کراع الغميم دمکې په عمومي لاره واقع

یوسیمه ده ،خالد دمسلمانانو دمنع کولو هڅه کوله اوخپل لښکر یې په داسي ځای کي میشت کړی ؤ چې دواړو لښکرو (مسلمانانو او کفارو) یوله بل سره لیدل ،مسلمانانو چې دماسپښین پر لمانځه ؤ خالد ولیدل چې دوی رکوع اوسجده کوي نووی لیدل دوی خوپه دې وخت کي متوجه نه ؤ موږ ته یې پام نه ؤ که موحمله وربانديکړی وای نوښه تاوان به مو ورسولی وای ، بیایې فیصله وکړه چې دماځیگر دلمانځه په وخت کي یوه ناڅاپه حمله وربانديوکړی ،په همدې وخت کي الله تعالي دیېري دلمانځه حکم نازل کی اودخالد پلان شنډ سو .

## «تبدیل دلاري اود جنگ څخه اجتناب کول»

رسول الله ﷺ دکراع الغمیم لاره پرېښووه اود درو په مینځ کي یې یوه بله سخته لاره ونیوله راسته خواته له حمش سره تیره سوی لاره کومه چې ثنیة المرار ته وتله باندي روان ؤ اوله ثنیة المرار څخه کښته خوادمکې لاندي برخه کی دحدیبیه سیمه پرته ده ،رسول الله ﷺ هغه عمومي لاره پرېښووله کومه چې پرتنعیم باندي حرم شریف ته وتله دهغي لاري چپي خواته ولاړی اوکله چي خالد داسلام لښکر دپښو گرد ولیدی اوپوه سو چې پردوی باندي ورغلی لاره یې بدله کړیده نوسمدستي یې قریشو ته خبرولیږی ،رسول الله ﷺ هم داسي مخ ته روان ؤ ترڅو ثنیة المرار ته ورسیدی ،هم الته یې اوښه چو سوه ، خلگو په(ه .ه)سره کوښښ کوی چې اوښه ولاړه کي خونه ولاړیده ،نو دوی سره وویل چې قصواءودرېده نوره دتگ نه ده ،رسول الله ﷺ په جواب کي ورته وفرمایل :قصواء نه ده درېدلی اونه داعادت دی،خودلته هغه چایساره کړی ده کوم چې دابرهه فیل یې ایسارکړی ؤ ،بیایې زیاته کړه قسم په هغه ذات چې زمانفس دده په واک کي دی چې دقریشو ټول هغه وړاندیزونه به منم کوم چې دالله تعالی دحرماتو احترام اودرناوی په کښي وي ،بیایې اوښه په زور سره ولاړه کړه ،روانه سوه اوهلته دحدیبیې په سرکي یې له هغه چینې سره واړول چې لږ کمي اوبه یې درلودی ،خلگو لږلږ اوبه ورڅخه واخیستلی اوپه لږساعت کي هغه اوبه هم وچي سوی،ولاړل اورسول الله ﷺ ته یې له تندي څخه شکایت وکی ،رسول الله ﷺ له خپلي توبرې څخه یوغشی راواخیستی اواصحابو ته یې امروکی چې داغشی به هغه چینه کي کښیږدی ،دوی چې کله غشی په چینه کي واچوی نوسمدستي اوبه راپورته سوی اوټولو وڅښلی .

## «بدیل دسیدالبشر ﷺ اودقریشو ترمابین دریم والی»

تردې وروسته چې رسول الله ﷺ مطمئن او ډاډه سو ،دخزاعه قبيلې بديل بن ورقاء له څو کسانو سره ورته راغی ،دتهامه په اوسيدونکو کي خزاعه قبيله يوازنۍ قبيله وه چې دمسلمانانو اورسول الله ﷺ خيرېښ غوښتي اوله دوی سره يې همدردي درلوده ، بديل عرض وکی چې کعب بن لوی دحديبيې له زياتو اوبوسره نژدې اړولي دي ،له دوی سره دوې ښځې او اولادونه هم ي ،دوی ستاسره دجنګ اوله بيت الله څخه دمنع کولو په تکل راوتلي دي ،په جواب کي رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : چې موږ دعمرې په نيت راغلي يو دهيڅا سره دجنګ اراده نه لرو ،قريش خوجنګ تباه کړل ،له جنګ څخه زيات زيانمن سوي دي که غواړي نوتريوه وخته دي زما اونورو خلګو ترمينځ غرض نه لري ،څه وخت به ورکړم موږ اونوري دي سرپرېږدي ، او وروسته که خلګ زما امرته تسليم سي نوترهغو به يې يوڅه دمه کړی وی اولې پرحال به راغلي وي،خوکه دوی يوازې په جنګ اصرار کوي نوقسم په الله ﷻ چې دخپل دين په لار کي به ترهغو پوري ورسره جنګيږم ترڅومي چې سرپرې سوی نه وي اويا دالله تعالی امرنافذ سوی نه وي .

بديل وويل چې زه ستاخبره قريشو ته ورسوم ، روان سو قريشوته ورغلی او ورته وی ويل اې قريشو !زه دمحمد ﷺ له خوا درته راغلی يم هغه خبره راته کړې ده که مو خوښه وي درته وبه يې کړم ؟ځينو کم عقلانو وويل نه موږ دهغه خبروته اړتيا نه لرو ،خو هوښيارانو يې وويل چې وايه هغه څه درته ويلي دي ؟بديل وويل محمد ﷺ داسي وايي خبره يې ورته وکړه ،نو قريشو مکرز بن حفص ورولېږی،رسول الله ﷺ چې کله مکرز وليدی نو وی فرمايل چې دغه يو غدار اوخائن سړی دی په هرحال مکرز راغی ،رسول الله ﷺ هم هغه خبره ورته وکړه کومه يې چې بديل ته کړې وه ، مکرز بيرته قريشو ته ورغلی .

## «دقريشواستازي»

هلته دکنانه قبيلې حليس بن علقمه نومي سړي وويل اجازه راکړی چې زه هم محمد ﷺ ته ورسم دوی ورته وويل ورسه ،کله چي رسول الله ﷺ ته ورلنډ سو ،رسول الله ﷺ وفرمايل داله فلاني قبيلې څخه يو سړی دی،دوی خلګ ترحج وروسته قرباني ته دځانګړو سوو څاريو (بدن)قدر اودرناوی کوي ،اصحابو ته يې امر وکی چې دقرباني خپل څاروي ددې سړي مخ ته ولېږي،ترڅويې هغه وګوري اودهغه په داسي حال کي استقبال وکړي چې اصحابو تلبيه ويله،حليس چې داحالت وليدی نو ويل سبحان الله داخلګ بايدله بيت الله څخه منع نه کړل سي ،بيرته خپل قوم ته ورغی او ورته وی ويل مادقرباني لپاره تيارسوي څاروي وليدل لازمه نه ده چې داخلګ يعني مسلمانان له مکې څخه منع کړل سي ،دلته

دده اوقریشو ترمینځ داسي خبري وسوی چې حلیس یې وپاروی وعروة بن مسعد سقفي
وویل دي سړي دعقلمندی خبره وکړه اجازه راکړی چې زه هم یوځل حضرت محمد ﷺ ته
ورسم ، هغه ولاړی اوله رسول الله ﷺ سره یې خبري شروع کړی، رسول الله ﷺ هم هغه
خبري ته نژدی یوه خبره ورته وکړه کومه چې بدیل ته یې کړی وه ، په دې وخت کي عروة
وویل یامحمد ﷺ که چیري ته خپل وځپې اوټول له منځه یوسې هم نوراته ووایه چې
تاتراوسه داسي اوریدلي دي چې په عربو کي دي چاخپل قوم له مینځ وړي وي اوکه حالت
بدل وي نوزه داسي اوباش کسان اومخونه وینم چې تابه پریږدي اوتښتې به ، ددې خبري
په اوریدوسره ابوبکرصدیق رضي الله عنه ورته وویل :د لات عورت وخوری فکر کوی موږ به له
خپل رسول الله ﷺ ځخه تښتو؟عروه وویل داڅوک دی جواب ورکړل سوچې داابوبکر
رضي الله عنه دی عروة وویل که چیري دې هغه احسان نه وای را باندي کړي چې مایې لاتر اوسه
بدله نه ده ورکړی نوددې خبري جواب به مي درکوی ، په هر حال عروة له رسول الله ﷺ
سره خپلو خبرو ته ادامه ورکړه، هرځل به یې چې خبره کوله نو درسول الله ﷺ مبارکه ږیره
به یې نیوله ،مغیره بن شعبه رضي الله عنه درسول الله خدمت ته حاضر سو په لاس کي یې توره اوپر
سریې خول ؤ ،کله چې به عروه درسول الله ﷺ ږیري ته لاس وروړی نو ده به په توره دهغه
لاس وواهه او ورته وویل به یې لاس دي درسول الله ﷺ له ږیري ځخه لیري کړه ،عروة سر
پورته کی اووی ویل داڅوک دی؟دوی ورته وویل دامغیره دی ،ده وویل داځه حالت دی
،دا څه خیانت دی ؟اې غداره! ایا دازه تراوسه پوري ستادغدر له لاسه مندي نه
وهم؟مغیره رضي الله عنه جاهلیت په دوران کي له ځوکسانو سره ملګری سوی ؤهغوی وژلي
اومالونه یې ځني اخیستي ؤپه هغه پسې راغلی ؤاوپه اسلام مشرف سوی ؤ،رسول الله
ﷺ ورته فرمایلي ؤ اسلام دي منم خودمال سره دي ځه کارنه لرم عروة ځکه دمغیره په
خاطر مندي وهلي چې هغه یې وراره ؤ عروه کتل اوله رسول الله ﷺ سره یې داصحابو
اړیکي اومعامله څارله ،بیاقریشو ته ورغلی او ورته وی ویل اې زما قومه! قسم په خدای
چې زه ډیرو باچهانو دربار ته ورغلی یم قیصر کسری،نجاشي اونورمي لیدلي خوقسم په
خدای چې یوهم دخپلو افرادو په وړاندي دومره قدردرلودونکی نه دی لکه محمد ﷺ
یې چې دخپل قوم په وړاندي لري ،دهغه اصحاب له ده سره دومره مینه لري چې یو رعیت
یې هم له خپل باچا سره نه لري ،اصحاب له محمد ﷺ سره تردې حده مینه لري چې هغه که
پزه هم سغ کړي نودپزي اوبه یې هم ځمکي ته نه پریږدي ، یو سړی یې اخلي اوپرخپل مخ
باندي یې موږي ،کله چې امر وکړي ټول یې تعمیل ته ولاړیږي کله چې اودس کوي نود

او دسه پراوبو یې سره جنګ وي هریو کوښښ کوي هغه واخلي او کله چې هغه ﷺ خبري کوي ټول چوپ سي ، ډېر احترام له وجي پورته هم نه ګوري ، هغه ﷺ ډېر معقول وړانديز کړی دی ويې منی .

## «هغه قادر ذات چه د دوی قوتونه یې ستاسو څخه منع کړل»

کله چې دقریشو مستو ،احساساتي او جنګ ته تږو ځوانانو وليدل چې مشران یې سوله غواړي نو دداسي يوه پلان دجوړولو په فکر کي سول چې دسولي هڅي په شنډي کړي ،فيصله يې وکړه چې دشپې له خوا دمسلمانانو پرمرکز بريد وکړي ،اوداسي څه ترسره کړي چې دجنګ سبب سي ، داپلان یې جوړاودعل په ډګر کي يې جاري کوی (٧٠) يا(٨٠)ځوانان دتنعيم له غره څخه دشپې روان سول اوغوښتل يې دمسلمانانو مرکز ته لاره پيدا کړي خوهلته دمسلمانانودامنيې چارو قوماندان محمد بن مسلمه رضي الله عنه ټول بنديان کړل خو رسول اله ﷺ عفوه ورته وکړه اودسولي په خاطر يې ټول ايله کړل ،په دې اړه داآيت شريف نازل سو —

وَهُوَ الَّذِي كَفَّ أَيْدِيَهُمْ عَنكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ عَنْهُم بِبَطْنِ مَكَّةَ مِن بَعْدِ أَنْ أَظْفَرَكُمْ عَلَيْهِمْ وَكَانَ اللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرًا

.سورة فتح

**ترجمه**: او دغه الله جل جلاله هغه ذات دی چي بنديې کړل لاسونه دهغو کفارو ستاسي څخه اولاسونه ستاسي له دوی څخه په مينځ دمکې کي نوله هغه څه چي غالب يې کړلاست تاسي پردوی باندي .

## «عثمان رضي الله عنه قريشو ته دمسلمانانولطرفه دسفير(استازي) په توګه»

په دې وخت کي رسول الله ﷺ فيصله وکړه چې دخپل دريځ اوله سفر څخه دهدف دتوضيح اوڅرګندولو په خاطر قريشو ته يواستازی وليږي ، لومړی يې حضرت عمر رضي الله عنه ته وويل چې ته ولاړسه اوقريشوته زموږ دريځ اوهدف بيان کړې . حضرت عمر رضي الله عنه خپل عذرداسي وړاندي کی ، يارسول الله ﷺ !په مکه کي دبني کعب له کورنۍ څخه داسي څوک نسته که چيري ماته څه زيان اوضرر را ورسيږي اوهغه مي ملاتړوکړي، غوره داده چي حضرت عثمان رضي الله عنه وليږی ،ځکه دده قوم هم التـه په مکه کي دی ،هغه به ستاخبره په صحيح توګه ورسوي رسول الله ﷺ په عثمان رضي الله عنه پسې احوال وليږی هغه راغی اوقريشو ته يې دخپل استازي په توګه وليږی او ورته وی فرمايل :قريشو ته ووايه چې موږ دجنګ په نيت نه يوراغلي موږ عمره اداکول غواړو ،دوی ته دااسلام بلنه هم ورکړه اوياولاړسه په مکه کي اوسيدونکو مسلمانانوټولوته دفتحي اوبري زيري ورکړه او ورته

وو ایه اسلام به غالب وي او مسلمانان به بیا خپل دین نه پټوي ،عثمان رضي الله عنه روان سو او په بلاح نومي سیمه کي له قریشو سره مخامخ سو ،قریشو ورته وویل چیري ځې؟ده په جواب کي ورته وویل :زه رسول الله صلی الله علیه وسلم ددې خبري لپاره رالیږلی یم او هغه خبره یې ورته کړه ،قریشو وویل موږ ستا خبري واورېدې ،ځه ولاړ سه خپله وظیفه اجراء کړه ،ابان بن سعید بن العاص ور ولاړ سو هرکلی یې ورته وو ایه ،خپل آس یې زین کړی او عثمان رضي الله عنه یې له ځان سره سپور کی او په خپله پناه کي یې مکې ته یووړی ،د قریشو مشران خبر سول ،عثمان رضي الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم پیغام ورته بیان کی ،قریشو ورته وویل ولاړ سه د بیت الله طواف وکړه ،عثمان رضي الله عنه دا وړاندیز و نه مننی او وی ویل : ترڅو چې رسول الله صلی الله علیه وسلم طواف نه وي کړی تر هغو زه طواف نه کوم.

## «د حضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت اوازه او د رضوان بیعت»

قریشو حضرت عثمان رضي الله عنه له ځان سره بندي کی ،کېدای سي دوی به د حالاتو په اړه په خپلو کي سلا او مشوره کوله او د فیصلې کوښښ به یې کوی ،بیا به یې هم دا فیصله دعثمان په لاس رسول الله ته لیږله ،عثمان رضي الله عنه په دې ترتیب سره وځنډېدی ،د مسلمانانو په مینځ کي د آوازه خپره سوه چې هغه یې شهید کړیدی ،خو کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دا خبر ورسیدی نو وی فرمایل :چې اوس به تر هغو پوري نه ځو ترڅو مو لو قریشو سره جنګ نه وي کړی اصحاب یې د بیعت لپاره راټول کړل ،ټول راغلل او پر دې خبره یې بیعت ورسره کوي چې له جنګ څخه به نه تښتي ،یوې ډلې د مرګ بیعت هم ورسره وکی ،لومړی صحابي چې له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره یې بیعت وکی هغه ابو سنان اسدی ؤ ،سلمه بن اکوع رضي الله عنه درې ځله په مرګ بیعت ورسره وکی ، یو ځل بیعت په شروع کي بیا په مابین کي او بیا په آخر کي ،بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم خپل لاس په بل لاس کي ونیوی او وی فرمایل : چې دا د عثمان رضي الله عنه لپاره ،او کله چې بیعت پای ته ورسیدی ،عثمان رضي الله عنه هم را ورسیدی ، او له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره یې بیعت وکی ،ټولو اصحابو بیعت وکی یوازي یو منافق چې جد بن قیس نومیدی بیعت ته حاضر نه سو،رسول الله صلی الله علیه وسلم دغه بیعت تر یوې درختي لاندي واخیستی،حضرت عمر رضي الله عنه یې لاس نیولی ؤ او معقل بن یسار د درختو ښاخونه پورته ځني نیولي ؤ ،هم دا د رضوان بیعت دی او د همدې بیعت رضوان په هکله دا آیت شریف نازل سوی دی لَقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ سورة فتح آیت (۱۸) **ترجمه:** خامخا راضي او خوښ سو دا الله عزوجل له مؤمنانو څخه هغه وخت چې بیعت یې کوی ستا سره تر درختي لاندي.

## «د صلحي تړون او بیرته د صحابه وو مدینې ته تلل»

قریشو د وضعې خساسیت درک کړی ،خو اخریې سهیل بن عمرو یې د صلحې لپاره د رسول الله ﷺ حضور ته ولیږي خودایې ورته په داګه کړه چې رسول الله ﷺ او اصحاب به سږ کال بیرته مدینې ته واپسیږي ځکه موږ نه غواړو چې نور عرب داسې څه خبري وکړي چې ګویا محمد ﷺ په زور مکې ته داخل سو ، سهیل د رسول الله ﷺ حضور ته ورسیدی او کله یې چې سترګې مبارکې پر ولګیدی نو وی فرمایل کار مو آسانه سو ،دوی چې دا سړی را لیږلی دی نو حتما سوله غواړي ،سهیل راغی او ږدې خبري یې وکړی ترڅو دواړه په صلح راضي سول او په دې ټکو کې سره تړون لاسلیک کی .

لومړی: رسول الله ﷺ به سږ کال بیرته ځي او مکې ته به نه داخلیږي ،په راتلونکي کال کې به مسلمانان راځي او درې ورځي به په مکه کې پاته کیږي له دوی سره به یوازي یوه یوه توره یعني دهغه وخت عادي سپاره وسله وي ،توري به هم په تیکو کې دننه وي او دوی ته به هیڅ ډول ضرر او اذیت نه رسول کیږي دویم : د دواړو ډولو ترمینځ به لس کاله اوربند وي،په دې موده کې به خلک په امن وي او یو پر بل به د تعرض کوښښ نه کیږي .

دریم: هرڅوک کولای سي په خپله خوښه له محمد ﷺ سره او یا هم له قریشو سره د دوستي تړون وکړي هر هغه قبیله چې له محمد ﷺ او یا قریشو سره یې عهد وکی نو دا به دهم هغه طرف یو برخه شمیرل کیږي او پر هغو به برید او تعرض د عهد لړونکي پر خلاف تعرض بلل کیږی د دې مطلب دا دی چې قبایل آزاد دي چې له چا سره د دوستي تړون کوي او که فرضا یو قبیلې له رسول الله ﷺ سره د دوستي تړون وکړي بیا قریشو پر همدې قبیلې باندې حمله وکړه نو دا حمله په حقیقت کې پر مسلمانانو حمله بلل کیږي او همداسې د قریشو په هکله هم همداخبره نافذه ده.څلورم:که څوک له قریشو څخه وا وتښتیدل او محمد ﷺ ته راغلل نو هغه به یې بیرته قریشو ته سپاري او که له محمد ﷺ څخه څوک قریشو ته ور وتښتیدل نو قریش به یې بیرته محمد ته نه سپاري ،کله چې د تړون پر موادو اتفاق وسو ،نو حضرت علي رضي الله عنه یې را وغوښتی او امر یې ورته وکی چې د تړون متن ولیکي او وی فرمایل : ولیکه .بسم الله الرحمن الرحیم ،په دې وخت کې سهیل وویل (الرحمن) خو موږ نه پیژنو ؟داسې ولیکه (باسمک اللهم) رسول الله ﷺ حضرت علي رضي الله عنه ته امر وکی چې همدا سې ولیکی ،بیا یې ورته وویل ولیکه چې دا هغه څه دي چې رسول الله ﷺ سوله ورباندې کړې ده ،سهیل بیا وویل که موږ پر دې باور او ایمان درلودلای چې ته رسول الله ﷺ یې

نو بیاخو موله بیت شریف څخه نه منځ کولی او جنګونه مو نه درسره کول،داسي ولیکه محمد بن عبد الله ،رسول الله ﷺ و فرمایل زه دالله جل جلاله رسول یم که څه هم تاسي مي نه مني ،حضرت علي رضي الله عنه ته یې امر وکی چې همداسي ولیکه محمد بن عبد الله او د رسول الله ﷺ لفظ له مینځ یوسه ، حضرت علي رضي الله عنه وویل زه خو دانه سم حذف کولای او زړه مي دانه مني چې د رسول الله ﷺ لفظ حذف کړم ،بیا محمد ﷺ په خپل لاس سره هغه لفظ حذف کړاو په دې ترتیب سره دتړون متن ولیکل سو ،دتړون ترلاسلیک وروسته خزاعه قبیله د رسول الله ﷺ خواته ودرېده او تړون یې ورسره وکی ،خزاعه مخکې لاآن د عبد المطلب له زماني څخه د بن هاشم حلیفه وه او له دوی سره یې تړون درلودی او له رسول الله ﷺ سره داتړون د هم هغه پخواني تړون تجدید او تاکید ؤ او د بنو بکر قبیلې له قریشو سره تړون وکړی .

## «ابو جندل رضي الله عنه او د سید البشر ﷺ په امر د هغه بیرته سپارل»

په داسي حال کي چې دتړون لیکل لاپای ته رسیدلی نه ؤ،د سهیل بن یوسف زوی (ابو جندل) چې زولنې یې راکشولی راورسیدی ،هغه له مکې څخه راتښتیدلی ؤ،راغی او ځان یې مسلمانانو ته راورساوه ،په دې وخت کي سهیل وویل دا به لومړنی کس وي چې په اړه به یې معامله درسره کوم . ته به دغه شخص بیرته راته سپاری ،رسول الله ﷺ و فرمایل موږ خوتر اوسه لیکل نه دی پوره کړي ،سهیل وویل قسم په خدای که دانه منی نو هیڅ د صلح معامله نه درسره کوم ،رسول الله ﷺ و فرمایل چې پرېږده دازما لپاره پرېږده ، ماته یې راکړه ،سهیل وویل نه ،تاته یې هم نه درکوم ،سهیل ولاړ سو ابو جندل یې وواهه او ترکالو یې ونیوی کشاوه یې ترڅو مشرکینو ته یې وسپاری،ابو جندل په چیغو چیغو سره وویل اې مسلمانانو !آیا بیرته د دې په خاطر مشرکینو ته سپارل کیږم چې دوی مي دین ته زیان ورسوي،او له فتنې او امتحان سره مي مخ کړي؟رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : اباجندله! صبر کوه او له خدایه اجر غواړه، الله جل جلاله به ستا او ستا په ډول نورو بې وسو کسانو ته لاره برابروي،مخه به موآزاده وي،موږ له قریشو سره تړون کړی دی هم دامو ورسره منلي دي دوی دالله په نامه وعده او عهد راسره کړیدی خیانت نه سوورسره کولای . حضرت عمر رضي الله عنه ولاړ سو دابو جندل خواته ورغی ،هلته یې څنګ ته ورسره روان سو او ورته ویل یې صبر کوه اې ابو جندله !دوی خو مشرکین دي د مشرک ویني خو لکه د سپي داسي دي هم دا ورته وایي او د خپلې تورې لاستي هم ورنژدې کوي ، عمر رضي الله عنه وایي هیله مي داوه چې ابو جندل به زما توره واخلې او خپل پلار به په وهي خو هغه د خپل پلار په باره له بخل څخه کار واخیستی یعني نه یې غوښتل چې وی وژني ،همداوه چې د صلح تړون نافذ سو .

## «دعمرې دخلاصون قرباني او ويښتان خرييل»

وروسته له هغه چې رسول الله ﷺ دتړون له ليکو څخه فارغ سو وى فرمايل : ولاړسى او قرباني (دقرباني څاروي موذبح کړى) خوله اصحابو څخه يوهم نه ولاړيدى، رسول الله ﷺ درې ځله خپله خبره تکرار کړه، خوتول پرخپلو ځايونو چوپ ناست ؤ، رسول الله ﷺ چې دا عکس العمل وليدى، روان سوأم سلمه رضي الله عنها ته ورغى او دا قصه يې ورته وکړه، هغې ورته وويل : يارسول الله ﷺ که ته هم داغواړې چې دوى ولاړسي او قرباني وکړي نو ولاړ سه له هيچا سره خبري مه کوه، خپله قرباني په خپله وکړه او نايي را وغواړه سرپه وخرييه، رسول الله ﷺ ددې خبري په اوريدو سره ولاړسو، هيچاته يې هم څه نه ويل، خپل دقرباني څاروي يې حلال کى، نايي يې راوغوښتى او خپل مبارک سريې وخرييه، اصحابو چې رسول الله ﷺ وليدى ټول ولاړ سول خپل څاروي يې حلال کړل، وروسته يې يو دبل سرونه وخرييل، او داسي ازدحام جوړسو او په دومره بيړه يې خپل سورنه وخرييل چې نژدې وه يو بل سره ووژني، اصحابو په اووکسانو يوه اوښه حلاله کړه، همدا ډول غواهم پراوو کسانو يوه وه، رسول الله ﷺ په خپل هغه اوښه حلاله کړه چې يووخت له ابوجهل سره وه او پزه کي يې دسپينو زرو يوه حلقه هم وه، له دې کارڅخ يې هدف داؤ چې مشرکين په وځوروي، بيارسول الله ﷺ دهغو کسانو لپاره چې سرونه يې پوره خرېولي ؤدرې ځله دعا وکړه او دهغه چالپاره چې ويښتان يې لانده کړي ؤ يوځل دعا وفرمايله، په دې سفرکي الله تعالى کعب بن عجره په هکله هغه آيت نازل کى چې حکم يې دادى، که چاعذر درلودى او داحرام په دوران کي يې سروخرييه نو کولاى سي فديه ورکړي، فديه يې هم ياصدقه وه اوياروژه اوياهم قرباني.

## «دمهاجري ميرمنو دوباره نه سپارل»

په دې پسې يوشمير مهاجري ميرمني راغلى وريسې د دوى خپلوان او مشران راغلل مسلمانانو ته يې وويل : چې دسوي تړون پراساس دامسلماني مؤمني مهاجري بيرته دوى ته وسپارى، رسول الله ﷺ دمشرکينو داغوښتنه رد کړه ځکه په تړون کي داسي ليکل سوي ؤ (هغه نارينه چې زموږ دخواتاته درځي که څه هم هغه ستاپه دين وي هغه به بيرته راته سپارى[٤٥٠]) دلته په دې ماده کي دښځي ذکر نسته او په دې حکم کى نه دي شاملي په همدې رابطه الله تعالى دا آيت نازل کړى : يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا جَاءَكُمُ الْمُؤْمِنَاتُ

---

[٤٥٠] صحيح البخاري ١/ ٣٨٠.

مُهَاجِرَاتٍ فَامْتَحِنُوهُنَّ اللَّهُ أَعْلَمُ بِإِيمَانِهِنَّ سورة الممتحنه آيت (١٠) **ترجمه**: اې مؤمنانو! کله چې راسي تاسي ته مؤمناني ښځي هجرت کوونکي نو وى ازموى تاسي دوى، الله ته ښه معلوم دى ايمان د دوى.

نو که وپيژني تاسي دوى (په قسم سره) مؤمناني نو بيرته مه لېږى دوى طرف ته د کفارو، نه دي دغه (مؤمناتي) حلالي هغو کفارو ته او نه دي هغه کافران حلال دي مؤمنانو ښځو ته او ورکړى تاسي دوى کافرانو (ته چې خاوندان د هغو ښځو دي) هغه څه چې لګولي يې دي دې له مهره او نسته هيڅ ګناه پر تاسي باندي چې نکاح وتړي تاسي له دې ښځو سره په شرط د دې کله چې ورکړې تاسي هغو ښځو ته مهرونه د دوى او منګولي مه منبلوي په عصمتونو د ښځو کافرانو، رسول الله ﷺ به دا ډول ميرمني د الله تعالى په دې ارشاد سره آزمويلي چې فرمايي: يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا جَاءَكَ الْمُؤْمِنَاتُ يُبَايِعْنَكَ عَلَى أَن لَّا يُشْرِكْنَ بِاللَّهِ شَيْئًا سورة الممتحنه آيت (١٢). **ترجمه**: اې نبي! کله چې راسي تاسي ته مؤمناتي ښځي چې بيعت کوي ستا سره په دې شرط چې نه به شريکوي دوى له الله ﷻ سره هيڅ شى، چا به چې په همدې شرائطو اعتراف او اقرار وکړى رسول الله ﷺ به ورته وفرمايل: څه همدا دي بيعت دى، په همدې ټکومي بيعت ور څخه واخيستى، او بيا به يې دا ډول ميرمني کفارو ته نه سپارلى او د همدې حکم په اساس مسلمانانو خپلي کافري ښځي طلاقي کړى، په همدې ورځ حضرت عمر رضي الله عنه خپل دوې ښځي چې د شرک له زماني څخه ورسره وى طلاقي کړى بيا يې وروسته له يوې سره معاويه رضي الله عنه واده وکى او د بلې يې صفوان بن اميه رضي الله عنه په نکاح کړه.

## «د دې تړون انجام او وروستي حالتونه»

که د حديبيې د صلح د تړون په هکله ژور فکر وسي، نتائجو او لاس ته راوړو نوته يې په توجه وکتل سي نو دا به په ډاګه سي چې رښتيا هم چې دغه تړون د مسلمانانو لپاره لويه فتحه وه، تر دې مخکي قريشو د مسلمانانو پر وجود اعتراف نه درلودى، همېشه يې د دوى د کاملي تباهۍ او د له مينځ وړلو کوښښ کوى او د هغي ورځي د راتلو په انتظار ؤ چې مسلمانانو په کښې باکل ختم سوى وي، د اسلامي دعوت سره يې د سختي مقابلې لاره نيولى وه، اجازه يې نه ورکوله چې د اسلامي بلني بږغ د عربو غوږونو ته ورسيږي او نه يې غوښتل اسلامي دعوت په عربي جزيره کي د ديني او دنيوي مشرتابه په حيث تبارز وکړي، د مسلمانانو سره د صلح د تړون لاسليکول په حقيقت کي د مسلمانانو پر وجود او ځواک اعتراف دى او دې تړون اېښوول يعني دا چې قريش نور له دې اسلامي ځواک سره د مقابلې

توان نه لري ،اودتړون دريمه ماده پردې دلالت كوي چې قريشو نور له خپل دنيوي اوديني مشرتابه څخه لاس پرېولي دى ،دوى اوس په دې فكر كې نه دي ،له دوى سره يوازې دخپل ژوند فكر دى ،نور عرب اونوري قبيلې كه ټولې هم اسلام راوړي نو د دوى كارورسره نسته،دوى تردې وروسته په دې مسائلو كې مداخله نه كوي ،دوى يوازې دځان خير غواړي ايا داد قريشو لپاره ښكاره ماته نه ده ؟اوآياهمدا دمسلمانانو لپاره لويه فتحه نه ده؟دمسلمانانو اوكفارو ترمينځ چې څومره جنګ سوى دى له دې څخه دمسلمانانو هدف دانه ؤچې دخلكومالونه واخلي اوسرونه يې پرېكړي اويا په زور خلک اسلام راوړلو ته مجبوركړي بلكه له دې جنګونو څخه دمسلمانانو هدف داؤچې دخلكو لپاره ددين او عقيدې په باره پورا آزادي وي،ددې جنګو هدف دانسان مكمله آزادي وه اوهدف يې داؤ چې هرڅوک په خپله خوښه خپله لاره وټاكي اودځان لپاره خپل دين غوره كړي،الله ﷻ فرمايي :فَمَن شَاءَ فَلْيُؤْمِن وَمَن شَاءَ فَلْيَكْفُرْ سورة الكهف آيت (٢٩) **ترجمه**:ددې صلح اوتړون په واسطه هم دغه هدف لاس ته راغى اوهمدا هيله په داسې شكل سره سرته ورسيده چې كېداى سواى دډېرو جنګو له لارې هم نه واى ترسره سوى ، خلكو ته پوره آزادي وركړل سوې وه چې خپل دين په خپله غوره كړي اودهمدې آزادۍ له بركته مسلمانانو ته ډېركټې ورسيدى،اسلامي دعوت ډېر برياليتوبونه ترلاسه كړل ،تردې تړون مخكې دمسلمانانو شميردرې زره كسانو ته رسيدى خوده كاله وروسته دمكې دفتحې په كال همدا شميره لس زرو ته پورته سوه ، دويمه ماده دلويې فتحې دويمه برخه ده ،دجنګ شروع دمسلمانانو له خوا ونه سوه بلكه لومړى قريشو دجنګ اوربل كړى الله ﷻ فرمايي : وَهُم بَدَءُوكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ سورة توبه آيت (١٣) **ترجمه**:لومړى دوى جنګ شروع كى ،دمسلمانانو له جنګې تحركاتو او ګرمو څخه هدف داؤ چې قريش لږ دكبر اوغرور څخه راكښته كړي اود دوى سره دعدالت اوتساوي پربناء معامله وكړي ،دواړي خواوي پرخپل حال آزادي پرېښوول سي ،دلسو كلولپاره اوربند يعني دقريشو دكبر ماتول ددوى له غرور سره ټكر اومقابله كول ،اود اوربند بله معنى داده چې هغه چاچې لومړى جنګ شروع كى اوس دې مرحلې ته رارسيدل چې نور دجنګ توان نه لري ،دوى اوس كمزوري سوي او مجبوردي چې اور بند ته غاړه كښېږدي ،اوكه بې وسه اوكمزوري نه وي نوولې په خپل لاس شروع سوي جنګ ودروي ؟دتړون لومړى مادې په مسجد حرام كې د قريشو واكمنې پای ته ورسوله ، دا ددوى يوه بله ناكامي وه ،ځكه دوى مسلمانانو له مسجد حرام څخه منع كول غوښتل ،خوپه دې

مادې سره له يوه کال پرته نور دوی دڅې حق نه لري چې مسلمانان د مسجد حرام له زيارت څخه منع کړي ،کېدای سي د دوی زړونه په همدې يوه کال منع کولو سره تسکين سوي وي ،په دې تړون قريشو مسلمانانو ته دادرې پورته يادسوي امتيازات ورکړل ، په مقابل کي يې له مسلمانانو څخه يوازي يو امتياز لاسته راوړی او هغه عبارت دی له هغه څه چې په څلرمه ماده کي ذکرسوی دی ،داهم ډېر مهم امتياز ځکه نه دی چې د مسلمان لپاره يې هيڅ ډول زيان نه درلودی ،څرګنده ده چې مؤمن له الله اورسول الله ﷺ څخه تيښته نه کوي ،هغه داسلام ښار او د رسول الله ﷺ مدينه نه پرېږدي اوترڅو چې يې دين بدل کړی نه وي ،مرتد سوی نه وي ترهغوپوري له رسول الله ﷺ څخه تيښتي ته زړه نه ښه کوي اوکه چيري کوم مسلمان له خپل دين څخه اوړي( العياذبالله) نوبياخو مسلمانان هم هيڅ ضرورت نه ورته لري اوداسلامي ټولني څخه يې تيښته تربقاء غوره ده ،همدې مطلب ته رسول الله ﷺ اشاره کوي اوفرمايلي يې دي: انه من ذهب منااليهم فابعده الله[451].

**ترجمه:** څوک چې زموږ څخه ولاړل په حقيقت کي الله تعالی دوی زموږ څخه ليري کړل خو هغه کسان چې په مکه يې اسلام راوړی دی ،که څه هم ددې مادې په اساس مدينې ته دهجرت اجازه نه لري خودالله تعالی ځکه پراخه ده ،کولی سي بل کوم ځای ته هجرت وکړي لکه ترمدينې مخکي چې مسلمانانو حبشې ته هجرت کړی ؤ ،رسول الله ﷺ همدې مسئلې ته په اشاره سره فرمايي : ومن جاءنا منهم سيجعل الله له فرجا مخرجا.[452] **ترجمه:** څوک چې له دوی څخه موږ ته راتلل غواړي الله تعالی لار ورته برابره وي اومخ يې خلاصوي ،په دې تحفظاتو سره که څه هم په ظاهر کي دقريشو پرويار او عزت دلالت کوي خو په حقيقت کي دا ددوی دمعنوي ماتي ،بيري اوپريشاني لوی دليل دی ،د دوی زړونه دې بيري اخيستي ؤ چې هسي نه د دوی جاهلي اوپرشرک ولاړه ټولنه نوره ختمه نه سي ،اولکه چې دوی پوهيدلي ؤ چې دوی اوټولنه يې دپناه پرځنډ ولاړدي اوله حتمي سقوط څخه د ژغورني په خاطر يې همدا ډول ضمانتونو ته پناه وړله اوداچې رسول الله ﷺ دااجازه ورکوي چې قريش به هغه کسان بيرته نه سپاري کوم چې له مدينې څخه مکې ته تښتي ،داپردې دلالت کوي چې رسول الله ﷺ دخپلي ټولني پرقوت او عظمت پوره باوري دی اودسقوط اوله منځه تلو سره بيره ورسره نسته .

---

[451] صحيح مسلم باب صلح حديبيه ۱۰۵/۲.

[452] صحيح مسلم.

«دمسلمانانو زياته پريشاني او د محمد ﷺ سره د عمر فاروق رضي الله عنه مناقشه»

ددې سولې حقيقت داؤ چې مخکې بيان سو، خو هلته دوه داسې ټکي هم ؤ چې د مسلمانانو د غم او خفګان سبب سول، لومړی دا چې رسول الله ﷺ په مدينه کې ورته ويلي ؤ چې ځو به او د بيت الله شريفي طواف به کوو، په داسې حال کې چې دا خبر يې ور کړی ؤ نو س ولې له طواف څخه مخکې او بيله دې چې عمره ادا کړي بيرته مدينې ته ځي؟ دويمه خبره داوه چې رسول الله ﷺ خو پرحق دی دالله رسول دی، الله تعالی خود خپل دين د غلبې وعده هم کړې ده نو رسول الله ﷺ ولې دقريشو فشار قبلوي، او لې په داسې څه راضي کيږي چې دده دعزت له مقام سره مناسب نه دي؟ په همدې دوو خبرو مسلمانان خفه ؤ ،تشويشونه او شبهات ورسره پيدا سوي ؤ، ډير ځوريدل تردې چې دصلح دتړون دموادو او نتائجو په هکله زياتي پوښتني ورسره پيدا سوي، کېدای سي چې حضرت عمر رضي الله عنه تر ټولو زيات خفه سوی وي، هغه صبر ونه کی راغی اورسول الله ﷺ ته يې عرض وکی چې يارسول الله ﷺ آيا موږ پرحق او دوی باطل نه دي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل چې هو، موږ پرحق او دوي پرباطل دي، حضرت عمر رضي الله عنه وويل آيا زموږ مړي به په جنت او د دوی مړي به په دوږخ کي نه وي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل هو، زموږ د مړو ځای جنت او د دوی د مړو ځای دوږخ دی، حضرت عمر رضي الله عنه وويل نو ولي دا ذلت ورسره منو او کوم الله جل جلاله زما مدد ګار دی، هغه مي بې اسرې نه پرېږدي، حضرت عمر رضي الله عنه وايي آيا تاته ؤ راته ويلي چې ځو او د بيت الله طواف کوو، رسول الله ﷺ وفرمايل هو، ما دا خبره کړې وه خو آيا همدا مي درته ويلي چې همدا سږ کال به طواف کوو؟ عمر رضي الله عنه وايي نه دا کال خو دوی نه ؤ ياد کړی ،رسول الله ﷺ فرمايي نو چي دا سې ده زما خبره صحيح ده ته به حتما بيت الله ته ځی او طواف به يې کوی، په دې خبره حضرت عمر رضي الله عنه ولاړ سو، همداسې د غوصې په حالت کې حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه ته ورغلی او هغه ته يې هغه خبري وکړې کومې چې يې رسول الله ﷺ ته کړي وی او د ابوبکر رضي الله عنه جوابونه هم لکه د رسول الله ﷺ د جوابو په ډول ؤ يوازې دا خبره يې ورته زياته کړې وه چې عمره! ترمرګه د رسول الله ﷺ خبره ټينګه نيسه ،قسم په خدای هغه پرحق دی، وروسته دا آيتونه نازل سول: إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُّبِينًا. سورة الفتح آيت (١)

**ترجمه**: موږ تاته ښکاره بری درپه برخه کی رسول الله ﷺ يو څوک حضرت عمر رضي الله عنه ته ورولېږل چې هم دا مبارک آياتونه ورته تلاوت کړي کله چي يې داواورېدل نو وی ويل آيا همدا فتحه ده؟ يارسول الله! رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: هو، همدا فتحه ده، په دې خبره سره يې زړه خوشحاله سو، طبيعت يې وغوړېدی او ولاړی وروسته حضرت عمر

رضي الله عنه له رسول الله ﷺ سره پردې مناقشه سخت پښيمانه ؤ، عمر رضي الله عنه وايي د رسول الله ﷺ په مقابل کي دهمدې تفريط او سختي مناقشي په خاطر مي ډير کارونه وکړل، د دې سهوي دجبيره کولو په خاطر تراوسه پوري روژه نيسم، صدقه ورکوم او غلامان آزادوم، دهمدې غلطۍ دکفارې په خاطر مي ډيري نيکۍ کړي دي، هيله لرم چې اوس به خدای رضي الله عنه خير راکړي: [٤٥٣]

## «دبيوزلانو دکشالې پای او دابوبصير واقعه»

وروسته له دې چې رسول الله ﷺ مدينې ته ورسيدی او هلته ځای پرځای سو، له مکې څخه يو مسلمان له کفارو څخه ايله سو، د دوی له بند او عذابونو څخه يې خلاصون ترلاسه کړ، ددغه صحابي نوم ابوبصير ؤ، نوموړی دقريشو له حليفي قبيلې (بنوثقيف) څخه ؤ، دوی دده په لټه پسې دوه کسان مدينه ته وليږل، او هلته يې رسول الله ﷺ ته وويل: چې تړون بايد مات نه سي، رسول الله ﷺ ابوبصير هم دې دوو کسانو ته وسپاری، دوی روان سول او کله چې ذوالحليفه ته ورسېدل، دمه يې جوړه له کښيناستل خورماوي يې خوړلې، ابوبصير له دوی څخه يو سړي ته وويل اې فلانيه! څه ښه توره لرې هغه توره پورته کړه اووی ويل: هو ډيره ښه توره مي ده، دامي ډير ځای په کار راغلې ده، ابوبصير ورته وويل: ته يې راکړه چې زه يې وګورم، هغه توره ورکړه، ابوبصير توره ورڅخه واخيستله، سخت واريې پروکی او هغه يې مړ کی، دويم سړی وتښتيدی ابوبصير ځان مدينې ته ورسوی، په ځغستا مسجد ته داخل سو او کله چي د رسول الله ﷺ حضور ته ورسيدی، او عرض يې وکی يارسول الله ﷺ! الله تعالی خوستاغاړه خلاصه کړه، تاخپله وعده پوره کړه زه دي دوی ته وسپارلم اوس الله جل جلاله زه هم ورڅخه وژغورلم، رسول الله ﷺ وفرمايل مورېې بوره سه که دې سړي څوک درلودای نو دجنګ اورونه به يې بل کړی وای، ابوبصير چې داخبره واورېدله پوه سو چې بيرته کفارو ته سپارل کيږي، همدا وه چې د رسول الله ﷺ له حضور څخه ولاړی او له مدينې څخه هم ووتی او ځان يې دبحرساحلي برخي ته ورسوی، هلته ابوجندل هم له قريشو څخه په تيښته بريالی کيږي او ابوبصير ته ځان رارسوي، له دوی څخه يو ښه ګروپ جوړ سو او هرکله به چي خبرسول چې دقريشو کاروان شام ته روان دی، ورتلل به او حملې به يې وربانديي کولې، خلک به يې وژل

---

[٤٥٣] دهمدي غزا دنور تفصيل دپاره دالاندی کتابونه مطالعه کړئ فتح ا لباری ۲/ ۴۳۹، ۷- ۴۵۷. صحيح البخاری ۱/ ۳۷۸، ۳۸۱، ۵۹۸، ۶۰۰، ۷۱۷، (۳) صحيح مسلم ۲/ ۱۰۴، - ۱۳۷، (۴) ابن هشام ۲/ ۳۰۸، ۳۲۲. (۵) زادالمعاد۲/ ۲۲، ۱۲۷، (۶) تاريخ عمربن خطاب ابن الجوزي ۳۹- ۴۰.

او مالونه به يې ورڅخه اخيستل ،بالآخره قريش مجبورسول چې له رسول الله ﷺ څخه دمرستي اومهرباني سوال وکړي اوپه دې راضي سول چې رسول الله ته ووايي دخداى لپاره هغه کسان چې تاته راځي موږ ته يې مه سپاره ،له ځان سره يې وساته ،دوى ته پناه ورکړه په دې ترتيب سره قريشو په خپله داومنله چې مسلمانان چې مدينې ته ولاړل دوى نور په امن دي له همدې موافقې وروسته رسول الله ﷺ ابوبصير او ملګرو ته حال وليږى چې مدينې ته راسى ،دوى هم راغلل اوپه مدينه کي يې اوسيدل شروع کړل .[٤٥٤]

## «دقريشي قهرمانانو اسلام راوړونکي حالت»

داووم هجري کال په لومړيو کي په همدې تړون پسې عمروبن العاص رضي الله عنه ،خالدبن وليد رضي الله عنه عثمان بن طلحه رضي الله عنه په اسلام مشرف سول ،دوى چې کله درسول الله ﷺ حضورته ورغلل نورسول الله ﷺ وفرمايل مکې موږ ته دخپل زړه کترې راليږلي دي ،که څه هم ددې درو قهرمانانو داسلام راوړلو دتاريخ په هکله څه اختلاف سته خوثابته داده چې په اووم هجري کال کي مسلمانان سوي دي .

## «دويمه مرحله»

## دحديبيې تړون په اسلامي تاريخ کي

دحديبيې تړون په اسلام تاريخ کي دنوي بدلون شروع وه ، قريش داسلام او مسلمانانو تر ټولو سخت دښمنان ؤ ،دجنګ له ذکر څخه ددې لوى دښمن په شاتګ سره دمسلمانانو د مخالفو مثلث قريش ،غطفان،يهوديومهم وزرمات سو ،اوڅرنګه چې قريش دبت پرستانو اومشرکانو مشران اونمايندګان ؤ ،ددوى په دې شاتګ سره دټولو مشرکانو احساسات مړاوي سول ،حوصلې يې ټيټي سوى،ګورو چې تردې وروسته دبنوغطفان قبيلې داسلام په مقابل کي هيڅ دتوجه وړ اقدام نه دى کړى ،يوازي يهودؤ چې تريوه وخته يې خپلې دښمني ته ادامه ورکړې وه ، يهوديانو له مدينې څخه ترشړلو وروسته خيبر مرکز وټاکى ،همدلته يې داسلام پرخلاف توطئې کولې ،خيبر ديهودي مکر اوفتنې په اډه بدل سوى ؤ ،يهوديانو نه يوازي په خپله دمسلمانانو پرخلاف توطئې کولې بلکه نور عرب يې هم د دوى پرخلاف هڅول کوښښ يې کوى مسلمانان له منځه يوسي ،اوتاوان ور ورسوي ، همداوجه وه چې له حديبيې څخه وروسته درسول الله ﷺ لومړى کار ديهودي مرکز اوفساد دا اډه له منځه وړل ؤ دحديبيې له تړون وروسته مسلمانانو دافرصت پيداکى چې خلګو ته اسلامي دعوت ورسوي ،ددوى دعوتي پروګرام لاپسې ګړندى اوپياوړى سو

---

[٤٥٤] حواله بالا.

اوپه دې مرحله کې د دوی دعوتي پروګرام دفوجي پروګرام په نسبت مخکې ؤ ،په همدې اساس دغه مرحله پردوو برخو وویشل سوه ۱: ددعوت اوبلنې پروګرام مشرانو اوباچهانو ته لیکونه لیږل ۲:فوجي تحرکات .مخکې تردې چې په دې مرحله کې فوجي تحرکاتو اوعملیاتو څخه خبري وکوو ،غواړو مشرانو اوباچهانو ته دلیکونو دلیږلو په اړه معلومات وړاندې کړو ،ځکه دعوت اوبلنه داولیت حق لري اوهمدا دعوت اوبلنه هغه هدف دی چې مسلمانانو یې په لار کې ډیري ستونزې لیدلې اوډول ډول کړاوونه یې ګاللي دي.

## «دسیدالبشر ﷺ لیکونه مشرانو اوباچهانو ته»

دهغه وروسته چې رسول الله ﷺ دهجرت په شپږم کال له حدیبیې څخه بیرته راغی ،مختلفو مشرانو اوباچهانو ته یې خطونه ولیږل او دوی یې اسلام ته راوبلل کله چې رسول الله ﷺ اراده وکړه چې باچهانو ته خطونه ولیږي نوورته وویل سوی چې دباچهانو عادات دادي چې بې بې مهره خطونه نه مني ،همداوه چې رسول الله ﷺ دځان لپاره دسپینو زرو یومهر جوړ کړی اوپرلیکل سوي چې (محمد رسول الله) دغه مبارکه کلمه په درولیکو کې لیکل سوی وه دلاندې خوا څخه لومړی لیکه (محمد) دویمه(رسول) دریمه(الله) وه[۴۵۵] رسول الله ﷺ له اصحابو څخه یوڅو هوښیار اوباتجربه کسان انتخاب کړل ،باچهانو اومشرانو ته یې ولیږل ، علامه منصور پوري رحمه الله علیه وایي چې رسول الله ﷺ خپل استازی خیبرته ترتلو څو ورځې مخکې داووم هجري کال په لومړۍ ورځ لیږلی دی ،[۴۵۶]راځئ چې اوس ځیني دا لیکونه وګورو اود نتیجو په هکله یې خبري وکړو.

## «دحبشې بادشاه نجاشي ته خط لیږل»

ددغه نجاشي نوم اصحمه بن ابجر ؤ ،رسول الله ﷺ دشپږم هجري کال په وروستیو اویا داووم هجري کال دمحرم په میاشت کې دعمرو بن امیه الضمري په لاس خط وروستوی ،طبري ددې خط متن رانقل کړی دی خو که دقت وسي نودا په ډاګه کیږي چې داهم هغه نه دی کوم چې رسول الله ﷺ له حدیبیې څخه وروسته ورته لیکلی دی ،کیدای سي دادهغه لیک متن وي کوم چې رسول الله ﷺ به له مکې څخه دجعفر رضی الله عنه په ﷺ جبشې ته دهجرت په وخت استولی وي ،ددې خط لیک په اخري برخه کې داسې راغلي دي :تاته مې خپل داکازوی جعفر درولیږی ،له ده سره یوشمیر نور مسلمانان هم ملګري دي .کله چې

---

[۴۵۵] صحیح البخاری ۲/ ۸۷۲.
[۴۵۶] رحمة للعالمین ۱/ ۱۷۱.

دوی در ورسیدلو نو درناوی یې وکړه اوزیاتی مه ورسره کوه بیهقي له ابن اسحاق څخه دهغه لیک متن رانقل کړی دی کوم چې رسول الله ﷺ نجاشي ته لیږلی ؤ اودهغه متن دادی، دالیک دمحمد له خوا دحبشې مشرنجاشي اصحمه ته دی پرهغه چادي سلام وي چې دهدایت لاره یې نیولې وي، پرالله اورسول الله ﷺ یې ایمان راوړی وي شاهدي وایم چې له الله جل جلاله پرته بل دعبادت لائق نسته، الله واحددی شریک نه لري، ښځه او اولاد نه لري، محمد ﷺ دالله بنده اورسول دی، زه تاته بلنه درکوم، چې اسلام ومنی، زه د الله جل جلاله رسول یم، ایمان راوړه او ځان خوندي وساته، اې دکتاب خاوندانو! راځې هغه خبره ومنی چې زموږ اوستاسو ترمینځ شریکه ده، راځي داومنو چې له یوه الله تعالی پرته دبل چاعبادت نه کوو، له هغه سره به شریک نه نیسو، یوبل به په خدایي نه نیسو، که داخبره یې ومنله نوورته ووایاست چې موږ مسلمانان یو، که تادابلنه قبوله نه کړه نود خپل قوم دټولو نصرانیانو ګناه ستاپرغاړه ده، لوی اومشهور څیړونکی ډاکټرحمید الله په دې آخري کي دهمدې خط اصلي متن لاسته راوړی دی، دغه متن هغه ته ورته دی کوم چې ابن قیم رضي الله عنه رانقل کړی دی، ډاکټرصیب دمتن په توضیح، تحقیق اوبرابرولو کې زیات کوښښ کړی دی له نویو وسایلو څخه یې استفاده کړی ده اودخط متن دادی.

بسم الله الرحمن الرحیم

دمحمد رسول الله له خوا دحبشې مشرنجاشي ته! پرهغه چادي سلام وي چې دهدایت لاره یې نیولې ده، ده دهغه الله جل جلاله ثناء وایم چې له هغه پرته بل الله نسته، هغه: الملک، القدوس، السلام، المؤمن، المهیمن دی اوشاهدي وایم چې عیسی بن مریم علیه السلام دالله جل جلاله روح اوهغه کلمه ده چې سپیڅلې پاک لمنې اوبتول مریم ته یې اچولی ده، دهمدې روح او القاء له امله عیسی علیه السلام دمریم په نس سو اوالله تعالی هغه داسې پیداکړی کله څرنګه چې یې ادم علیه السلام په خپل لاس پیداکړی دی، زه دهغه یوه الله تعالی طرف ته بلنه کوم چې هیڅ شریک نه لري، زه بلنه درکوم چې دالله تعالی په اطاعت سره دوستي وکوو، زه بلنه درکوم چې زما اطاعت اوپیروي وکړی اوپرهغه الله ایمان راوړی چې زه یې غوره کړیم، زه دالله رسول یم زه تااوستالښکر ټول دالله جل جلاله طرف ته رابولم ماخپله خبره درته وکړه، نصیحت مي در ورسوی، زمانصیحت قبول کړه، پرهغه چادي سلام وي چې پرحق روان دي ډاکټرصیب[457] وایي چې دادهغه خط

---

[457] رسول اکرم ﷺ کي سیاسي زندګي ص ۱۰۸، زادالمعاد ۳/ ۶۱.

متن دی چې رسول الله ﷺ تر حدیبیې وروسته نجاشي ته لیږلی دی، په دې کې هیڅ شک نسته چې دامتن بالکل صحیح دی، خو داثابته نه ده چې دادي حتما دهغه خط متن وي چې له حدیبیې وروسته لیکل سوی دی، بیهقي له ابن اسحاق څخه هغه روایت نقل کړی دی چې له هغولیکونو سره ورته والی لري کوم چې رسول الله ﷺ دحدیبیې وروسته باچهانو اوامیرانو ته لیږلي دي، په دې خط کې داآیت شریف لیکل سوی: تَعَالَوْا إِلَى كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ رسول الله ﷺ عادت هم داؤ چې په دې خطونو کي به يې همدا آيت ليکی، په همدې ليک کې داصحمه نوم هم ليکل سوی دی، خو هغه متن چې ډاکټرصيب راوړی دی فکر کوم چې داد هغه خط متن وي کوم چې رسول لله ﷺ داصحمه ترمرګ وروسته دهغه قائم مقام ته ليکلي ؤ همداوجه ده چې په دې ليک کې داصحمه نوم هم نه دی راغلی، دليکونو دترتيب په هکله هم څه دليل نه لرم، يوازې دليکونو له محتوي څخه ماته داښکاره سوی ده چې کېدای سي په همدې ترتيب سره استول سوی وي، دتعجب خبره خوداده چې ډاکټرصيب دهغه ليک په هکله چې بيهقي رانقل کړی دی وايي چې دادهغه ليک متن دی کوم چې رسول الله ﷺ داصحمه له مرګ څخه وروسته دهغه خليفه ته ليږلی دی، په داسې حال کې چې په دې متن کې داصحمه نوم ليکل سوی دی.[٤٥٨] والله اعلم.

کله چې عمرو بن اميه الضمري نجاشي ته درسول الله ﷺ خط وسپاری، نجاشي خط واخيستی پرسترګو يې ومووړی بياله تخت څخه راکښته سو اودجعفر بن ابي طالب په لاس يې ايمان راوړی اوپه اسلام مشرف سو اوپه جواب کې يې رسول الله ﷺ ته داخط وليکی.

بسم الله الرحمن الرحيم

دنجاشي اصحمه له خوا دمحمد رسول الله ﷺ حضورته! السلام عليک يانبی الله من الله ورحمة الله وبركاته الااله الاهو. امابعد: اې دالله رسوله ﷺ! ستا خط راورسيدی تاسې دعيسی عليه السلام يادونه کړې وه، دمځکي اوآسمان په رب مې دې قسم وي چې عيسی عليه السلام له هغه څه سره چې تاسې يادونه کړې ده ديوه ويښته په اندازه هم فرق نه

---

[٤٥٨] زادالمعاد ٢/ ٦١.

لري څه چي دي موږ ته رالیږلي ؤ په هغه پوه سو ،ستا دا کا زوی او ستا د نورو اصحابو قدر او عزت مو وکی ،زه شاهدي وایم چې ته په رښتیا سره دالله تعالی رسول یې ما ستا سره بیعت وکی او دده په لاس مي دالله تعالی دین ومنی او په اسلام مشرف سوم [459] ،رسول الله ﷺ له نجاشي څخه دا غوښتنه کړې وه چې جعفر او په حبشه کې اوسیدونکي مهاجرین ده ته ور ولیږي ،نجاشي دهمدې غوښتني سره سم ټول مهاجرین په دوو کښتیو کی له عمرو بن امیه الضمري سره ور ولیږل،رسول الله ﷺ په خیبر کې تشریف درلودی چې دا مهاجرین ورورسیدل [460] ،هم دغه نجاشي په نهم کال د تبوک له غزا وروسته وفات سو ،رسول الله ﷺ دده دوفات په ورځ خواشیني اظهار کړه او په غیابت کې یې د جنازې لمونځ ادا کی ،دا صحمه له وفات وروسته بل څوک دده پرځای وټاکل سو ،رسول الله ﷺ هغه ته هم خط ورولیږی د اسلام بلنه یې ورکړه خو دا ثابته نه ده چې دې نجاشي یا باچا ایمان راوړی ؤ او کنه [461] .

## «دسیدالبشر ﷺ خط دمصر باچا مقوقس ته»

رسول الله ﷺ دمصر او سکندریې باچا (جریج بن متی یابنیامن) ته چې لقب یې مقوقس ؤ خط ورولیږی ددغه مبارک خط متن په لاندي ډول دی .

بسم الله الرحمن الرحمن

دالله بنده اورسول محمد ﷺ له خوا دقبطانو مصر مشر مقوقس ته پر هغه چادې سلامي وي چې دهدایت پرلار روان دی ،امابعد : زه دی اسلام ته رابولم ،اسلام راوړه ترڅو په امن یې ایمان راوړه الله تعالی به دوه اجرونه درکړي ،که دې زما بلنه ونه منله نو دقبطیانو ګناهم به ستا په غاړه وي. [462] الله تعالی فرمایي :

---

[459] زادالمعاد ۲/ ۶۱.

[460] ابن هشام ۲/ ۳۵۹.

[461] مسلم ۲/ ۹۹.

[462] دا روایت دزادالمعاد دي ۳/ ۶۱، لیکن ډاکتر حمید الله دا سي متن په وروستو کې راوړی دی چې دهمدې متن سره یوه اندازه توفیر لري په هغه کې راغلی دي چې (فاسلم تسلم اسلم یؤتک الله) همدا ډول (اثم القبط) په ځای هم زیادت ده.

قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا إِلَى كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلاَّ نَعْبُدَ إِلاَّ اللهَ وَلاَ نُشْرِكَ بِهِ شَيْئًا وَلاَ يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا أَرْبَابًا مِّن دُونِ اللهِ فَإِن تَوَلَّوْا فَقُولُوا اشْهَدُوا بِأَنَّا مُسْلِمُونَ سورة آل عمران

**ترجمه:** ووایه اي محمده ﷺ ! چې اي اهل کتابو !راځي تاسي پرطرف دیوې کلمې چې برابره ده په مینځ زموږ او ستاسي کي او هغه داده چې عبادت به کوو مګر یوازي دالله او شریک به نه نیسو په الله جل جلاله پوري دهیڅ شي ، او نه به نیسي ځیني زموږ ځیني نورخدایان غیرله الله جل جلاله لکه چې تاسي کتابیان ،احبار اورهبان نیسی ،نوکه وګرځیدل دوی له توحید او اسلامي احکامو ته یې شا واړوله نو ووایاست تاسي اي مؤمنانو !چې شاهدان یاست تاسي پردې چې په تحقیق سره موږ مسلمانان یو رسول الله ﷺ دغه خط حاطب بن ابي بلتعه رضي الله عنه ته ورکی ،هغه چې کله مقوقس ته ورغلی ورته وویل: ترتامخکي دلته په مصر کي یو سړي دخدایي دعوه کړی وه اوځانته یې لوی رب وایه ،خو الله تعالی هغه په دنیا او آخرت کي لویه سزا ورکړه ،انتقام یې ورڅخه واخیستی ته له نورو څخه عبرت واخله هسي نه چې نور بیا ستا څخه عبرت واخلي ، مقوقس په جواب کي ورته وویل چې موږ دین لرو او یوازي هغه وخت به یې بدلوو چې تردې موغوره دین پیدا کی ،حاطب رضي الله عنه ورته وویل : موږ تا دهغه دین قبلولو ته رابولو کوم چې الله تعالی غوره کړی دی او د نورو ټولو ادیانو پرځای یې خپلو بندګانو ته انتخاب کړی دی ،دالله رسول ﷺ ټول خلک اسلام ته رابلل ډیرکلک مخالفت یې له قریشو څخه لیدلی او تر ټولو زیاته دښمني یهودیانو ورسره کړی ده او تردوی ټولو نصرانیان ورلنډ دي ،قسم په خدای چې موسی علیه السلام دعیسی علیه السلام په باره کي داسي زیری ورکړی دی لکه څرنګه چې عیسی علیه السلام دمحمد ﷺ په هکله ورکړی دی موږ تا دقرآن کریم طرف ته رابولو لکه څرنګه چې تاسي دتورات خاوندان دانجیل طرف ته رابولي ، هرنبي چې له هرقوم سره ژوند کوي هغه یې امت وي ، دخلګو مسؤلیت دادی چې پر همدې نبي علیه السلام ایمان راوړي ،تاسي هم دهمدې نبي ﷺ په زمانه کي ژوند کوی ،د مسیح علیه السلام له دین څخه دي هم نه منع کوو بلکه پرهغه دین دعمل او منلو امر درته کوو ،مقوقس وویل ما ددې رسول الله ﷺ په هکله فکروکی او دې نتیجې ته ورسیدم چې په کم

ارزښته شي امر راته کوي او له ښه او کټور کار څخه هم نهي نه کوي ، هغه ګمراه اوشاعر هم نه دی ،کاهن اودرواغجن هم نه دی ،دهغه دنبوت نښانې مي هم ليدلي دي ،هغه دپټو شيانو ښوونه کوي اودپټو اوځانګړو خبرو په هکله هم معلومات ورکوي ، زه په دې هکله نورفکر هم کوم.

بيامقوقس درسول الله ﷺ خط واخيستی اوپه صندوق کي يې دفيل په غاښ کي کيښوو ، مهريې پرولګوی اويوې خادمي ته يې ورکی ، وروسته يې يو کاتب چې عربي يې زده وه را وغوښتی اورسول الله ﷺ ته يې داسي وليکل.

بسم الله الرحمن الرحيم

دمصر دمشر مقوقس له خوا محمد بن عبد الله ﷺ ته .!سلام عليک :امابعد : ستا خط مي ووايه په مطلب يې پوه سوم چې کومي خواته مي بولي په دې هم خبروم چې يونبي پاته دی ماګمان کوی چې دغه نبي به په شام کي ظهور کوي ،ماستاد قاصد درناوی وکی اوتاته مي دوې خادماني درولیږلی دا دواړي زموږ په وړاندي دډير قدر درلودونکي دي ،تاته مي يوه جوړه کالي هم در واستول همدا ډول يوه قاطره (کچره) مي هم درته اهداء کړه .والسلام عليک يوازي هم دايې وليکل خو ايمان يې زانه وړی ،دغه خادماني يوه ماريه نوميده اوبله سيرين اودقاطرې نوم دلدل ؤ همدا قاطره دمعاويه رضي الله عنه دخلافت تر وختة ژوندي وه ،[463] رسول الله ﷺ ماريه له خپل ځان سره وساتله اودهمدې څخه يې ابراهيم رضي الله عنه نومي زوي پيدا سو، اوسرين يې حسان بن ثابت رضي الله عنه ته ورکړه.

## «دسيدالبشر ﷺ ليک دفارس باچاکسری ته»

رسول الله ﷺ دفارس باچاته داسي خط واستوی.

بسم الله الرحمن الرحيم

محمد رسول الله ﷺ له خوا دفارس باچاکسری ته پرهغه چادي سلام وي چې د هدايت پر لار روان دی ،پرالله جل جلاله اورسول الله ﷺ يې ايمان راوړی وي او دا شاهدي وايي چې له يوه الله پرته بل دعبادت لائق نسته ، اومحمد ﷺ دالله جل جلاله بنده اورسول دی ، زه تاد الله جل جلاله طرف رابولم ، زه دټولو خلکو لپاره رسول راليږل

---

[463] زادالمعاد ۳/ ۱۶.

سوی یم ترڅو ژوندي کسان له بدانجام څخه وبیرول سي ،او پر کفارو حقه خبره دلیل ورکړ څوي ،اسلام راوړه ترڅو په امن سی که دي اسلام رانه وړی نو دفارسیانو ګناه به هم ستا پرغاړه وي ،رسول الله ﷺ دديږ لیک وړلو دنده عبد الله بن حذافه السهمي رضي الله عنه ته وسپارله ،سهمي رضي الله عنه ولاړی او دغه خط یې د بحرین مشر تا به ته ورساوی ،معلومه نه ده چې دبحرین مشر دبل چا په لاس داخط ولیږی او که عبدالله السهمي رضي الله عنه یو وړی ، پرهرحال کله چې لیک کسری ته ورسیدی او ورته وویل سو هغه خط څیري کی او په ډیر کبرسره یې وویل زما درعیت یو عادي او حقیر سړی هم خپل نوم زما ترنامه مخکي نه لیکي ،او کله چې دغه خبره رسول الله ﷺ ته ورسیده نووی فرمایل :الله تعالی دي دهغه باچهي خرابه کړي ،او همداسي وسول لکه څرنګه چې رسول الله ﷺ فرمایلي ؤ درسول الله ﷺ ترخط وروسته کسری دیمن والي باذان ته ولیکل دغه شخص ته چې په حجاز کي دی دوه چالاک خلګ ولیږه ترڅو هغه ماته راولي ،باذان هم دوه کسان غوره کړل او له یوه خط سره یې درسول الله ﷺ حضورته ولیږل ،په خط کي داورته لیکلي ؤ چې له دې کسانو سره کسری ته راسه ،داکسان چې کله مدینې ته ورسیدل او له رسول الله ﷺ سره یې ملاقات وکی یوه یې وویل شهنشاه کسری باذان باچاته امر کړی دی چې موږ تا ته راولیږي او تاله ځان سره کسری ته بوځو په دې ترڅ کي یې څه ګوابښ هم وکی ،رسول الله ﷺ ورته وفرمایل سبا زما سره ووینی ، په همدې وخت کي دکسری په کورکي ددننه کودتاه سوی وه دا وروسته له هغه چې لښکرو یې دقیصر دسپایانو په وړاندي رسوا ماته خوړلې وه ،دکسری زوی شیرویه ولاړ سوی ؤ او خپل پلار یې وژلی ؤ او په خپله یې باچایي اعلان کړی وه ،داکودتاه د اووم هجري کال دسې شنبې په ورځ دجمادی الاولی په لسمه سوی وه ، [٤٦٤] رسول الله ﷺ دوحي په ذریعه له پیښي خبر سو ،سهار چې یې تشرف راوړی دباذان عسکر ته یې قصه وکړه ،دوی ورته وویل ته پوهیږی چې څه وایي ؟موږ خوستا لپاره آسانه لاره غوره کړه ،آیا موږ ستا دا خبري ولیکو او باچاته یې ولیږو ؟ده ورته وفرمایل هو!وی لیکی او په خبرې کی او داهم ورته ورسوی چې زمادین او واکمي به ترهغه ځایه رسیږي چیري چې اوس

---

[٤٦٤] فتح الباري ٨/ ١٢٨.

دکسرئ واکمنئ ده اوزما واکمنئ به هغه ترهغه ځایه رسیږي چي ستاسي دآس او
اوښ پښه هم هلته نه سي رسیدلای ، داهم ور ورسوی چي که دي اسلام راوړئ
نوستا واکمني به ده ته سپارم ، او دخپل قوم مشر به دي غوره کړم ، دا دواړه کسان
روان سول او خبریې باذان ته یو وړی په همدې وخت کي لږ وخت وروسته دا خبر هم
ورته راورسیده چي شیرویه خپل پلار کسرئ وژلی دی په همدې خط کي کي
شیرویه باذان ته لیکلي ؤ دهغه کس دهڅوني هڅه مه کوه کوم چي په هکله یې زما
پلار درته لیکلي ؤ ،اوس تردویم امرپوري انتظار کوه ، همدا کار ددې سبب سو چي
باذان او په یمن کي اوسیدونکي ټول فارسیان په اسلام مشرف سي.

## «دسیدالانبیاء ﷺ لیک دروم باچا قیصر ته»

امام بخاري رحمة الله علیه دیوه اوږد حدیث دنقلولو په ترڅ کي د رسول الله ﷺ دهغه خط
متن راوړی دی کوم چي دروم باچا (هرقل) ته یې لیږلی ؤ ددغه متن داسي دی.

بسم الله الرحمن الرحيم

دمحمد بن عبد الله ﷺ چي دالله تعالی رسول او بنده دی له خوا دروم واکمن هرقل
ته ! پر هغه چادي سلام وي چي دهدایت پرلار روان وي ،اسلام راوړه ترڅو په امن
سی ، په اسلام مشرف سه الله تعالی به دوه اجرونه درکړي که دي اسلام رانه وړی
نودټولو اریسیونو ګناه به ستا پر غاړه وي . الله تعالی فرمایي :

قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْاْ إِلَى كَلَمَةٍ سَوَاء بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلاَّ نَعْبُدَ إِلاَّ اللّهَ وَلاَ نُشْرِكَ بِهِ شَيْئاً وَلاَ يَتَّخِذَ
بَعْضُنَا بَعْضاً أَرْبَاباً مِّن دُونِ اللّهِ فَإِن تَوَلَّوْاْ فَقُولُواْ اشْهَدُواْ بِأَنَّا مُسْلِمُونَ سورة آل عمران

رسول الله ﷺ دغه خط ددحیه الکلبي رضي الله عنه په لاس ولیږی او امریې وته وکی چي
خط دبصر مشرتابه ته وسپاري ،ترڅو هغه یې قیصر ته ورسوي ،امام بخاري رحمة الله علیه
له ابن عباس رضي الله عنه څخه په روایت سره وایي چي ابوسفیان بن حرب وایي چي هرقل
دقریشو له یو شمیر مشرانو سره وغوښتلم موږ شام ته دتجارت لپار تللي ؤ ،داهغه
وخت ؤ چي له رسول الله ﷺ سره دحدیبیې صلح لاسلیک سوی ؤ ،ابوسفیان رضي الله عنه
وایي موږ هرقل ته ورغلو هغه په ایلا (بیت المقدس) کي ؤ هغه خپل دربار ته وبللو
،ورسره د روم مشران هم، نسبي نژدیوالی لیري کوم چي دنبوت دعوه یې کړه ده

؟کوم يو يې ډير نږدې خپل دی ؟ ابوسفيان رضي الله عنه وايي ما ورته وويل زه ډير ورنژدی يم ،هرقل وويل داسړی اوملګري يې ماته رانژدی کړه ،ملګري يې دده شاته کښينوي ،بيايې خپل ترجمان ته وويل زه ددې سړي څخه دنبوت دمدعي يعنی محمد صلی الله عليه وسلم په هکله پوښتني کوم زما ملګرو ته يې وويل که دې سړي دروغ راته وويل نوتاسو يې راته په ګوته کوی ،ابوسفيان وايي که له خپلو ملګرو څخه شرميدلای نه نو محمد صلی الله عليه وسلم باندي به مي دروغ ويلی وای ابوسفيان رضي الله عنه زياتوي اووايي چې هرقل لومړی سوال داؤ چې دمحمد صلی الله عليه وسلم دنسب په هکله څه وايې؟ماورته وويل هغه دډير لوړاوشريف نسب خاوند دی ،بيايې وويل ترده مخکي چا دا ډول خبره اووعده کړی ده ؟ورته ومي ويل:نه،راته وی ويل له پلرونو څخه يې کوم يو ذواک او قدرت خاوندؤ؟ومی ويل : چي نه ، وې پوښتل اوی يې پيروان کمزوري خلګ دي اوکه مال داراودواک خاوندان ؟ورته ومي ويل کمزوري خلګ يې ملګري دي ،وی ويل دپيروانو شميره يې زياتيږي که کميږي ؟ومي ويل : شميره خويې مخ پرزياتيدو ده ،سوال يې وکی چې له پيروانو څخه يې څوک پرزور اوجبر سره بيرته له خپل دين څخه ګرځي؟ ومی ويل : نه ، راته وی ويل : تردي مخکي موله هغه څخه دروغ اوريدلي ؤ؟ومي ويل : نه ،وی ويل :آياغدر او خيانت کوي؟ومی ويل :نه ،خواوس مو يو تړون ورسره کړی دی ګورو چې څه کوي؟ ابوسفيان رضي الله عنه وايي له دې خبري پرته ماته بل هيڅ داسي مجال په لاس رانه غلی چې دمحمد صلی الله عليه وسلم په هکله له ځانه ووايم ، بيايې راته وويل :آيات تاسي له ده سره جنګ کړی دی؟ومی ويل : هو، وی ويل : دجنګ نتيجې يې څه ډول وی؟ورته ومي ويل زموږ اودده ترمينځ جنګ داسي ؤ چې کله به موږ او کله هغه برلاسی ؤ ،پوښتنه يې وکړه په کوموشيانو امردرته کوي؟ ورته ومي ويل : راته وايي چې ديوه الله جل جلاله عبادت وکړی هيڅ شريک مه ورسره نيسی،د خپلو پلرونو خبري پريږدی ،همدا ډول دلمانځه ، رښتيا،خپلوی،دوستی،اوپاکی امرراته کوي ،بيايې خپل ترجمان ته وويل ،دې قريشي ته ووايه چې دنسب په هکله مي پوښتنه درڅخه وکړه تاوويل هغه دشريف نسب خاوند دی ،رسولان هم داسي وي ، دوی دنسب له طرفه ترنورو غوره وي ،پوښتنه مي درڅخه وکړه چې ترده مخکي دده له قوم څخه چاداسي دعوه کړی ده

؟تا ويل نه،كه داسي واى چې تږده مځكې دده قوم داسې سړې دعوه كړې واى نومابه ويل چې كېداى سي ده به دهغه په پيروي سره داډول دعوه كړې وي ، درته ومې ويل چې دپلرونو څخه يې كوم يو واكمن اوباچاؤ؟تاويل چې نه ، كه فرضا له پلرونو څخه يې كوم يو باچا تيرسوى واى نومابه ويل چې دخپل پلاربا چايې غوارې ، دامې درته وويل چې دنبوت ترمخه مو درواغ ورڅخه اورېدلي دي ؟تاويل نه ،نوزه په يقين سره داويلاى سم چې داسې نه سي كېداى چې څوك دې انسانانو ته درواغ ونه وايي بيا دې په الله ﷻ پسې درواغوته زړه ښه كړي ،بله مې داخبره درته وكړه چې پيروان يې كمزوري خلگ دي اوكه دمال اومقام خاوندان ؟تاراته وويل چې كمزوري خلگ يې پيروان دي حقيقت همداسې دى چې درسولانو پيروان كمزوري خلگ وي ، دده دپيروانو شمير په هكله مې پوښتنه درڅخه وكړه ،تاراته وويل چې دپيروانو شميره يې مخ پرزياتيدو ده دايمان خاوندان همداسې وي ،درته ومې ويل چې څوك يوځل مسلمان سي آيابيا په زور سره بيرته له خپل دين څخه گرځي ؟ تاوويل نه ،هم داسې ده چې دمؤمنانو له رسولانو سره خيانت نه كوي،خلگ وفاورسره لري ،ددې پوښتنه مې درسره وكړه چې پرڅه امردرته كوي؟ تاراته وويل هغه امراته كوي چې ديوه الله ﷻ عبادت وكى،شريک ورسره ونه نيسو، هغه مودبتانو له عبادت څخه منع كوي ،دلمانځه ، رښتيا ويلو اوپاكي امراته كوي ،كه داستاخبري رښتيا وي نوهمدا پيغمبر ﷺ به آن زما ترپښو لاندي ځاى نيسي،زه خبر وم چې هغه به په همدې وخت كې مبعوثيږي ،خوبه دې نه وم پوه چې هغه به ستاسي څخه وي ،كه زه په دې پوه سم چې ده ته ور رسيداى سم نودليدلو تكليف به مې يې گاللى واى اوكه زه دده په حضور كې واى نودوارې پښې به مې يې وريړولې واى ،بيايې درسول الله ﷺ كتاب راوغوښتى او وى وايه ، كله چې دليک ويلو څخه فارغ سو ،گڼه گوڼه جوړه سوه ،خلگو شور كوي موږ ته دوتلو امروسو ،ابوسفيان وايي كله چې موږ ته ددباندي وتلوامر وسوماخپلو ملگرو ته وويل دابوكبشه (محمد ﷺ دزوى كار جوړسو ،له ده څخه خودروميانو باچاهم

بیرېږي ،تردې وروسته زما پوخ یقین ؤ چې درسول الله ﷺ دین به خامخا بریالی کیږي ، په همدې فکر کې وم ترڅو په اسلام مشرف سوم [۴۶۵] پرقیصر باندې درسول الله ﷺ دخط دااثر خوابوسفیان ولیدی ،پرهغه باندې ددې خط بل اثردا ؤ چې قیصر درسول الله ﷺ قاصد دحیة الکلبي ﷛ ته کالي اوتحفې ورکړې،خوکله چې دحیه ﷛ بیرته مدینې ته روان ؤ په حسمي نومي سیمه کې دجذام قبیلې څوکسان ډاکه وربانډې واچوله اوټول شیان یې ورڅخه یووړل ، مدینې ته له رسیدو وروسته درسول الله ﷺ خدمت حاضر،دخپل سفر راپور یې ورکی ، وروسته رسول الله ﷺ زیدبن حارثه ﷛ حسمې ته ولیږی له ده سره پنځه سوه وسله وال نورهم ؤ،ولاړی اوپه حسمې کې یې چې د وادي قری شاته پرته وه پرجذام قبیله یې برید وکی ،ډیرکسان یې ورووژل ،ښځې اوکوچنیان یې بندیان کړل ، زراوښان اوپنځه سوه پسونه یې هم په غنیمت ونیول ، درسول الله ﷺ اوجذام قبیلې ترمینځ اوربندهم ؤ،تردې پیښې وروسته دجذام یومشر زیدبن رفاعه راغی او رسول الله ﷺ ته یې احتجاج وکی ،نوموړی په اسلام مشرف سوی ؤ له دحیه سره یې مرسته هم کړې وه ، په دې اساس رسول الله ﷺ دده احتجاج قبول کی اوامرېې وکی چې اولادونه،ښځې اومالونه دې بیرته ورکړل سي ، زیاتره سیر لیکوونکې داسریه ترحدیبیې مخکې ذکر کوي ،په داسي حال کې چې دا صحیح نه ده ځکه قیصر ته درسول الله ﷺ خط دحدیبیې ترتړون وروسته لیږل سوی ؤ،ابن قیم ﷛ هم وايي چې دغه سریه ترحدیبیې وروسته وه [۴۶۶].

## «دسیدالبشر ﷺ لیک دبحرین بادشاه منذر بن ساوي ته»

نبي کریم ﷺ دبحرین باچامنذر بن ساوي ته خط ولیکی اودعلاء بن الحضرمي په لاس یې ور ولیږی ،منذرېې اسلام ته رادعوت کی په جواب کې منذر ولیکل چې امابعد :یارسول الله ﷺ ستاسي خط مي وو ایه ،خپل قوم ته مي واوروه ځني داسي ؤ چې اسلام یې خوښ کی اوځینو نورو اسلام ونه منی ،زما ملک کې یهود

---

[۴۶۵] صحیح البخاری ۴+۱صحیح مسلم ۲/ ۹۷، ۹۹.

[۴۶۶] زادالمعاد ۲/ ۱۲۲.

او مجوس هم او سیبړي په دې هکله راته ښوونه وکړه ، دهمدې په جواب کې رسول الله ﷺ ورته ولیکل : بسم الله الرحمن الرحیم

د محمد رسول الله ﷺ له خوا منذر بن ساوي ته ، سلام علیک ، زه د هغه الله حمد او ثناء وایم چې هغه پرته بل د عبادت لائق څوک نشته ، شاهدي وایم چې محمد ﷺ د الله ﷻ بنده او رسول دی ، امابعد دالله تعالی طرف ته دې رابولم او هغه دریا دویم څوک چې نصیحت کوي هغه یې په ګټه دی څوک چې زما د قاصدانو اطاعت کوي او د دوی امر مني دوی په حقیقت کې زما اطاعت کړی دی ، چاکه زما د رسولانو سره نیکي وکړه ، دانیکي یې زما سره ده زما قاصدانو ستا صفت وکی ماستا قوم په رابطه ستا شفاعت قبول کی ، مسلمانان پرخپل حال پرېږده ګناهګارانو ته مې دعوت وکړه عفوه یې قبوله کړه او ترڅو پورې چې ته پراصلاح او خیریې ترهغو دې له چوکۍ څخه نه عزل کوو ، که څوک پریهودیت او مجوسیت باندې قائم پاته کیږي نوجزیه ورڅخه واخله .[٤٦٧]

## «دسیدالانبیاء ﷺ لیک دیمامه باچا هوذه بن علي ته»

نبي کریم ﷺ دیمامه مشر هوذه بن بن علي ته په دې متن یو لیک ورولیږی .

بسم الله الرحمن الرحیم

دالله د رسول محمد ﷺ له خوا هوذة بن علي ته !سلام دې پر هغه چاوي چې دهدایت په لار روان وي پوه سه چې زما دین به په ټولو هغه سیمو کې برلاسی کیږي چیري چې پیاده یا سپور ور رسیدلای سي ، اسلام راوړه ترڅوپه امن سی ، که په اسلام مشرف سی نوچوکۍ به دې درسره پاته وي ، داخط سلیط بن عمرو العامري رضي الله عنه یو وړی ، کله چې سلیط هوذة ته ورغلی هغه هرکلی ورته ووایه عزت یې ورکړی ، او رسول الله ﷺ ته یې داسي ولیکل رښتیا هم چې تاسي ډیر غوره شي ته بلنه کوی ، همدا ډول زما د باچاهي رعب هم پر عربو پروت دی و ، ماپه خپل امر درسره شریک کړه ، ترڅوپیروي دې وکړم ، سلیط ته یې جایزه هم ورکړه په هجر کې جوړ سوي کالي یې هم ورکړل سلیط تحفې د رسول الله ﷺ حضورته وړاندې کړې او دخپل سفر راپور یې هم ورکی ، رسول الله ﷺ دهوذة خط ووایه او وی فرمایل :

---

[٤٦٧] زادالمعاد ٣/ ٦١.

که یوه ټوټه مځکه راڅخه وغواړي هم به یې ورنه کړم ، هغه هم تباه سو او څه چې ورسره دي هغه هم تباه سول او کله چې رسول الله ﷺ د مکې له فتحې څخه بیرته راغلی جبرایل علیه السلام خبرورکی چې هوذة مړسو ،په دې وخت کې رسول الله ﷺ وفرمایل په یمامه کې به داسې کذاب پیداکیږي چې د نبوت دعوه به وکړي خوترما وروسته به ووژل سي چاسوال وکی چې قاتل به یې څوک وي یارسول الله ﷺ !ده ورته وفرمایل ته ،او ستا ملګري به یې وژني فعلا بیا هم داسي وسول[٤٦٨]

## «د سیدالبشر ﷺ لیک د دمشق مشر حارث بن ابی شمر غسانی ته»

نبي کریم ﷺ داسې لیک ورته لیکلی ؤ

بسم الرحمن الرحمن الرحیم

د الله د رسول محمد ﷺ له خوا حارث بن ابی شمرته !په هغه چادې سلامې وي چې هغه په حقه لار روان وي ، پر حق یې ایمان راوړی وي ،ریښتونی وی ، زه بلنه درکوم چې پر یوه الله ایمان راوړې ،شریک ورسره ونه ونیسی .که داسې وکړې نو باچایي به دې درسره وي ،دا لیک یې د شجاع بن وهب چې له بني اسد قبیلې څخه په لاس ولیږه ،کله چې د رسول الله ﷺ خط ور ورسیدی نو وې ویل څوک به زما څخه باچاهي اخلي ؟زه وریسې ورځم په دې توګه مسلمان نه سو.

## «د سیدالبشر ﷺ لیک د عمان باچاته»

رسول الله ﷺ د عمان باچاد (جلندی) زامنو جیفر او ورورته یې چې عبد نومید داسې خط ولیکی . بسم الرحمن الرحیم

د الله تعالی د رسول محمد ﷺ له خوا جیفر او عبدته !پر هدایت او نیکه لار برابرو باندې دې سلام وي ،امابعد : زه مو اسلام ته رابولم ،اسلام راوړی ترڅو دواړه په امن سی ،زه د الله تعالی له طرفه ټولو انسانانو ته رسول رالیږل سوی یم ،زه خلک د کفر او بدې له عواقبو څخه بیروم ،حق ورته بیانوم ، ترڅو پر کفارو باندې دلیل قایم سي ،که تاسې اسلام ومنی هم الته به مو پر خپله چوکۍ پریږدم او که مو اسلام ونه منی نو باچاهي مو ختمید ونکی ده ،ستاسې پر باچاهي به د آسانو برید او یلغار جوړ سي، زما نبوت به حتما ستاسې پر باچاهي غلبه حاصلوي رسول الله ﷺ د غه خط د

---

[٤٦٨] زادالمعاد ٣/ ٦٣.

عمروبن العاص رضي الله عنه په لاس ولیږی،عمروایي روان سوم ترڅوعمان ته ورسیدم ،لومړی عبدته ورغلم هغه تر ورور زیات هوښیار اونرم سړی ؤ،ورته ومي ویل چي زه رسول الله ﷺ تاسي ته رالیږلی یم ،ده راته وویل ورور مي دعمر اومقام له پلوه ترمامخکي دی ،راځه زه به دي هغه ته ورولم ترڅوستا خط ووایي اوبیایې زیاته کړه ته څه غواړی ؟ماورته وویل : دیوه الله طرف ته بلنه درکوم ، له الله جل جلاله پرته دنور ټولوشیانو عبادت پریږده،په دې سره شاهدي ووایه چي محمد ﷺ دالله جل جلاله بنده اورسول دی ، عبد وویل :اې عمروه!ته دخپل دسردار زوی یې داراته ووایه چې ستاپلار په دې هکله څه کړي دي دهغه عقیده څه وه؟هغه زموږ لپاره نمونه دی ،ماورته وویل :پلارمي په داسي حال کي مړسو چې پرمحمد ﷺ یې ایمان نه درلودی زماهیله داوه چي هغه په اسلام مشرف سي اود محمد ﷺ تصدیق وکړي ،زه هم لکه پلار مي مشرک وم ترڅوالله تعالی داسلام لارښوونه راته وکړه ،عبدراته وویل څومره وخت کیږي چې دمحمد ﷺ پیروي دي غوره کړی ده ؟جواب مي ورکی لږ وخت کیږي چې په اسلام مشرف سوی یم ، راته وی ویل : چي چیري مسلمان سوی؟ماورته وویل په حبشه کي دنجاشي په وړاندي اودامي هم ورته وویل چې نجاشي په خپله هم په اسلام مشرف سوی دی ،عبدراته وویل :چي نو رعیت یې څه ورسره وکړل ؟ماورته وویل دوی یې امرومنی اوپیروي یې وکړه، وی ویل آیادیني اومذهبي مشرانو یې هم پیروي وکړه ؟ماورته وویل : هو،عبدراته وویل :اې عمرو! پوه سه چي درواغ سړی ډیر ژر رسواکوي ،ماورته وویل زه خو درواغ نه وایم ،زموږ دین د دوراغ ویلو اجازه نه ورکوي بیایې وویل فکر کوم چې هرقل به دنجاشي په اسلام نه وي خبر؟ماورته وویلنه هرقل په دې ښه خبردی چي نجاشي اسلام راوړی دی ،ده راته وویل ته په دې خبره څنګه خبرسوی ؟ ومي ویل نجاشي به هرقل ته خراج ورکوی خوکله چي په اسلام مشرف سو نو وی ویل قسم په خدای که تردې وروسته یودرهم هم ورکړم ، اوکله چي هرقل په دې قصه خبرسو نو ورور یې چې نیاق نومیدی ورته وویل آیاخپل هغه غلام هم داسي پریږدی چې خراج در نه کړي؟اودا اجازه ورکوی چې دبل چادین ومني؟هرقل وویل دایو شخص دی چې دځاني لپاره یې یو دین غوره کړی دی نوزه څه ورسره کولای سم؟قسم په خدای

که دباچاهي غم راسره نه وای نوماٌبه هم دنجاشي په ډول دغه دین منلی وای،عبد
وویل اې عمروه! داته څه وايې ؟ماورته وویل قسم په خدای چي زه رښتیا وایم ،
هغه راته وویل چې ښه اوس دا راته ووایه چي محمد ﷺ په څه شیانو امر کوي اوله
کومو شیانو څخه منع کوي؟په جواب کي مي ورته وویل : هغه موږ ته دالله تعالی
داطاعت امرکوي چې نافرماني يې ونه کړو دصله رحمي امرکوي،له هرډول ظلم
،زنا،شرابو،بت پرستي اوداسي نورو څخه منع کوي،عبدوویل : داڅومره ښه
اوغوره خبره ده ،څومره غوره شیانو ته بلنه کوي که زما ورور زما خبره ومني نوموږ
به ټول سپاره درسره روان سو اودمحمد ﷺ حضورته به حاضرسوایمان به پر
راوړو اوتصدیق به يې وکوو خوورور مي پرباچاهي ډېرډېرېږي،دواک ډېر حریص
دی هغه خپل واک نه سي پرېښولای ، هغه ته دبل چاپیروي ګرانه ده ، ماورته وویل
:که هغه اسلام راوړي نورسول الله ﷺ به يې بیرته دخپل قوم مشروتاکی ،دهغه
دنده به بیا داوي چې له بډایانو صدقې واخلي اوپرغریبانو يې ووېشي ،عبد وویل
داهم څومره نیک عمل دی ،بیايې وویل صدقه څه ته وايې؟شروع مي وکړه هغه ته
مي صدقه اوزکوة تشریح کړل ، دهرشي دزکوة اندازه مي ورته بیان کړه اوپراوښانو
مي ورته خلاصه کړه ،راته وی ویل یاعمروه! هغه حیوانات چې دباندي څروي
بوټي خوري اوابه څښي آیا په دې ډول حیوانانو کي هم صدقه سته ؟په جواب کي
مي ورته وویل هو!هغه وویل ورته انظاروم ،عبدبه زماخبري خپل ورور ته رسولی
،ترڅو یو ورځ يې زه ور وغوښتلم ور دننه سوم ،پیره دارانوترمټو ونیولم ده ورته
وویل پرېږدی پرېږدی زه يې پرېښوولم ماغوښتل چې کښېنم ،پیردارانو د کښېي
نستلو اجازه رانه کړه باچاته مي وکتل هغه راته وویل څه ویل غواړې مادرسول الله
ﷺ مهرسوی خط ورته ونیوی ،مهريې مات کی اولیک يې خلاص کی اوترپایه
يې ووایه ، بیايې خپل ورور ته ورکی ،هغه هم ووایه خوما لېدل چې ورور يې ترده
نرم دی بیايې راته وویل دقریشو دریځ څه دی؟ماورته وویل : دوی د محمد ﷺ
پیروي غوره کړې ده ،ځیني دزړه اوله دین سره دمیني پربناء په اسلام مشرف سوي
دي اوځیني نوربیاپه زور مغلوب سوي ،باچاراته وویل نور څوک له محمد ﷺ
سره دي ؟ما وویل خلکو دادین خوښ کړی دی، دوی دالله تعالی په فضل سره

دادرک کړي ده چې دوی په ګمراهۍ کې ؤ او اوس حق ته راغلي دی ،فکر کوم دلته له تاپرته نورڅوک ګمراه نه دي پاته که ته هم نن اسلام رانه وړی نوپه تاپسې به لښکرراځي اوله ربنبو څخه به دي باسي ، هرڅه به دي ختمیږي نواسلام راوړه ترڅو په امن سی ،که اسلام راوړی نومحمد ﷺ به دي دخپل قوم مشروتاکی ،هیڅوک نه پیاده او نه سپاره به درته راځي ، هغه راته وویل یوه ورځ مهلت راکړه ، ته سبا بیاراسه ،زه ولاړم او ورور ته یې ورغلم هغه راته وویل : یاعمرو ! هیله من یم چې ایمان راوړی اودواکمني حرص پرېږدی سهار ورغلم خواجازه یې رانه کړه چې ورسره ووینم ، ورور ته یې ورغلم ورته ومې ویل چې ماته خودباچاسره دلیدو اجازه رانه کړل سوه ،هغه وروسته باچا راته وویل : ستاپه خبرو کې مې فکر وکی ،که زه اوس باچایي داسې چاته پرېږدم چې شهسواران یې لاتراوسه رارسیدلي نه دي نودازما لپاره مناسبه نه ده اوعرب به مې ډېر کمزوری وګڼي اوکه دهغه سپاره را ورسیدل نوله داسې یوه مقاومت سره به مخ سي چې مخکې به یې نه وي لیدلي ،په جواب کې مې ورته وویل ستاخوښه ،زه نوسبا بیرته روانیږم ، کله چې هغه زماله واپسیدوډاډه سونوخپل وررور ته یې په پټه داخبرې وکړې دغه پیغمبر ﷺ چې اوس پرکومو خلګو غالب اوبریالی سوی مورږ دوی په نسبت هیڅ هم نه یو او ده چې هرچاته پیغام لیږلی دی ټولو یې دعوت منلی دی ،پرهمدې اساس یې بل سهار وغوښتلم اوهم دلته باچا او ورور یې دواړو اسلام ومنی ، درسول الله ﷺ تصدیق یې اعلان کی ،دواړه په اسلام مشرف سول اوماته یې اجازه راکړه چې له خلګو څخه صدقې راټولي کړم اوپرغریبانو یې وویشم ، دخلګو ترمینځ پرېکړې وکړم ،که به چا مخالفت راسره وکړی دوی دواړو به مې عملي مرسته کوله ،[٤٦٩] ددې پیښې له سیاق څخه دا معلومیږي چې دغه دنورو په نسبت وروسته لیږل سوی دی اوګمان کیږي چې دمکې له فتحې څخه وروسته دي لیږل سوی وي ،رسول الله ﷺ په دې لیکونو سره خپل دعوت دهغه وخت زیاترو باچاهانو ته ورسوی ،په جواب کې یې ځیني باچهان په اسلام مشرف سول اویوشمیر یې هم داسې کافران پاته سول ،خودومره

---

[٤٦٩] زادالمعاد ٣/ ٦٢، ٦٣.

خبره چې د کفارو توجه هم همدې ځواته راواوښتله، دوی د رسول الله ﷺ له مبارکه نامه او اسلام سره څه ناڅه آشنا سول.

## «صلح د حدیبیې او په وروسته کې فوجي عملیات»

**(دغابه یا ذی قرد په نامه غزا)** د بني فزاره قبیلې یوې ډلې د رسول الله ﷺ پر خلاف دیوه اقدام په نتیجه کې د مسلمانانو پر یو شمیر حیوانانو باندې حمله وکړه، غلا یې کړل، هم دې ډاکوګانو ته د سزا ورکولو په خاطر دا غزا پیښه سوې وه. د صلح حدیبیې څخه وروسته د رسول الله ﷺ لومړۍ غزا هم داوه که څه هم ځیني روایتونه وایي چې لومړۍ غزا یې خیبر وه، امام بخاري رحمه الله د دې باب په مقدمه کې وایي چې دغابه غزا د خیبر څخه درې ورځې مخکې واقع سوې وه، صحیح مسلم هم همدا خبره له سلمه بن اکوع څخه په روایت سره نقل کړې ده، د سیر لیکو نکو زیاترو دا ویلي چې دغه غزا د حدیبیې تر سولې مخکې وه خو د بخاري شریف روایت د تاریخ لیکوونکو تر قول زیات صحیح دی.[٤٧٠] د دې غزا قهرمان سلمه بن اکوع رضي الله عنه دی سیر لیکوونکي روایتونه ټول له ده څخه نقلوي او وایي چې رسول الله ﷺ خپل د سپارلۍ اوښان د خپل شپانه او مریي (رباح) سره څرځای ته لیږلي ؤ، سلمه وایي زه هم ورسره وم او د طلحه رضي الله عنه آس مي د ځان سره بیولی ؤ، سهار ناڅاپه عبد الرحمن فزاري پر اوښانو حمله وکړه، ټول یې وتښتول او شپون یې په قتل ورسوی ما رباح ته وویل چې ولاړ سه او دا آس طلحه رضي الله عنه ته ورسوه، او رسول الله ﷺ هم په پیښې خبر کړه زه پر یو لوړ ځای ودریدم مخ مي د مدینې په طرف کې او درې واري مي په لوړ آواز چیغه کړه یا صباحاه! بیا په غلو پسې ور روان سوم، په غشو مي ویشتل او د شعر مي زمزمه کوی

انا ابن الاکوع ... والیوم یوم الرضع

**ترجمه:** زه د اکوع زوی یم، نن ورځ د شیدو رودلو ورځ ده یعني نن به معلومه سي چې چا د خپلې مور شیدې رودلي دي، ابن اکوع وایي چې ما په مسلسله توګه کفار په غشو ویشتل که به له دوی څخه یو راپسې راغی نو زه به د درختې سره ته وختلم اوله هم هغه ځایه به مي ویشتی، او تېپي به سو، تر څو دوی د غرونو په مینځ کې وې

---

[٤٧٠] صحیح البخاری ٢/ ٦٠٣، زاد المعاد ٢/ ١٣٠، مسلم ٢/ ١١٣.

تنګي درې ته ننوتل ، زه غره ته وختلم اودغره له سره مې ډبرې پرراغورځولې ،همداسې په دې پسې وم ترڅو درسول الله ﷺ ټول اوښان مې شاته پاته سول اودوی داټول راپرېښوول او ولاړل ،که څه هم دوی درسول الله ﷺ ټول اوښان راپرېښوول خو بیاهم زه په پسې وم اوپه غشو مې وشتل ،ترڅومجبور سول دېرش څادران اودېرش نیزې یې ورغورځولې ، ترڅو بارېې سپک سي ،دوی به چې هرڅه پرېښوول مابه دنښانې په توګه ډبري پراېښوولې ترڅو رسول الله ﷺ اواصحاب یې ورته متوجه سي او وی پېژني ، زه ورپسې وم دوی دیو غونډۍ په یوه تنګه لاره کې دغرمې ډوډۍ ته کښېنستل ،زه تردوی لوړ وختلم او ورته ګورم له دوی څخه څلورکسان ماته راوختل ماورته وویل آیاماپېژنی زه څوک یم؟ دوی دومره راڼږدې سوی ؤ چې زما ږغ یې ښه اوردی ،ما ورته وویل زه سلمه بن اکوع یم ،زه چې په چاپسې روان سم هغه حتما رانیسم اوکه څوک په ماپسې سي اوزمادنیولو هڅه وکړي نوهیڅکله به مې هم ونه نیسي،دوی چې زماخبرې واورېدلې څلور سره بېرته راغلل،زه پرخپل ځای ناست وم ،په همدې وخت کې مې درسول الله ﷺ فوجیان ولیدل چې ددرختو په مینځ کې را روان دي ،مخکې یې اخرم روان ؤ، ورپسې ابوقتاده رضي الله عنه ورپسې مقدادبن اسود رضي الله عنه ،عبدالرحمن وتوانیدی چې اخرم په شهادت ورسوي اوآس یې ورڅخه واخیستی پرسپو سو خوقتاده ورپسې را ورسیدی اوعبدالرحمن یې هم دلته ووژی ، نورکفار په تېښته سول زه هم ورپسې سوم ماښام ته نژدې دوی ډېرتږي ؤ غوښتل یې څه اوبه وڅښي خوامااجازه ورنه کړه چې دچینې څخه اوبه وڅښي دوی یوڅاڅکي هم ترخولې نه کړی ،رسول الله او لښکریې ماخستن پسې راورسیدل ،ما عرض وکی یارسول الله ﷺ داخلک تږي دي ،که زماسره سل کسان ولیږی نوزه به ټول آسان ورڅخه واخلم اودوی به هم ټول لاس تړلي درته راولم ، رسول الله ﷺ وفرمایل اې داکوع زویه! برلاسی سوی یې لږنرمي وکړه ، بیایې وفرمایل اوس به په بنوغطفان کې دوی ته میلمستیاکیږي ،رسول الله ﷺ وفرمایل نن ورځ زموږ ترټولو غوره شهسوارابوقتاده رضي الله عنه دی اوترټولو غوره پیاده موسلمه بن الاکوع رضي الله عنه دی سلمه رضي الله عنه وایي چې بیارسول الله ﷺ دوی برخي راکړی یوه برخه دپیاده اوبله دسپرو اوبیایې زه پرعضباء نومي

اوښه سپور کړم او مدینې ته راوګرځیدو ،په دې غزاکې رسول الله ﷺ ابن أم مکتوم رضي الله عنه په مدینه کې خپل خلیفه ټاکلی ؤ اودغزا بیرغ یې مقداد بن عمرو رضي الله عنه ته ورکړی ؤ .[471] «دخيبر غزاپه اووم کال دهجرت »خيبر لوی ښارؤ ،ښه کښتونه اوټینګ برجونه یې درلودل ،دمدینې منورې شامل ته شپیته یا اتیا میله لیرې پروت ؤ ،اوس دیوه کلي حیثیت لري ،هوایې هم ډیره ښه نه ده .

## «دهمدې غزاسبب څه وو؟»

دحدیبیې ترسولې وروسته رسول الله ﷺ دمخالف دلوی قوت قریش څخه بې غمه سو ،د دوی له اړخه یې زړه جمع سو ،نونیت یې وکړی چې ددې مثلث له دوو نورو برخوسره حساب تصفیه کړي ،اودایې ضرور وګڼله چې په سیمه کې دامن اوامنیت ټینګولو په خاطر دیهودو اونجد دنورو قبایلو خط هم له منځه یووړل سي ،ترڅو مسلمانان له جنګ څخه فارغ اودالهي دین دعوت ته خلاص سي ،څرنګه چې خیبر دمسلمانانو پرخلاف دټولو توطئو ،سازشونو یو داسې مرکزؤ چې درسول الله ﷺ پرضد ټول جنګونه اوفعالیتونه له همدې ځایه اداره کېدل نومسلمانانو ته په کاروه چې لومړي همداشیطاني ځاله ونړوي ،دیادونې وړ ده چې دخيبر یهودو داحزاب په غزا کې دمسلمانانو پرخلاف ټولې عربي قبیلې راپارولې وې ،بني قریظه یې دې ته اړکړل چې له رسول الله ﷺ سره غدر اوخیانت وکړي ،دوی په دې هم بسنه ونه کړه بلکه په مدینه کې یې دننه هم له منافقینو سره اړیکې ټینګې کړې ،له غطفان اوپه صحراء کې اوسیدونکو کوچیانو سره یې هم تماسونه نیول ،په خپله یې هم دجنګ تیاري نیوله ، پرهمدې اساس مسلمانان له سختو مشکلاتو سره مخ ؤ، یهودو درسول الله ﷺ دترور توطئه جوړه کړه ،رسول الله ﷺ مجبورسو، چې ددې شرارتونو دمخنیوي په خاطر فوجي تحرکات ولري اودیهودي لښکرځینې شیطاني مشران لکه سلام بن ابي حقیق اواسیر بن بن زرام له منځه یوسي ،خوخبره پردې هم پای ته نه رسیدله ،دیهودو خطر لوی ؤ اوددې خطر له منځه وړلو لپاره یو لوی اوجدي اقدام ته ضرورت ؤ ،مسلمانانو ترهغوپورې ددې فرصت نه درلودی چې دیهودو سره مقابله وکړي ترڅوپورې یې چې لوی دښمن قریشو سره دصلح

---

[471] زادالمعاد ٣/ ١٢٠.

تړون نه وي کړی او کله چي مسلمانان د قریشو له شرڅخه بې غمه سول نو دیهودو مقابلې ته یې وخت پیدا کی. **«دخیبر په لور»**

ابن اسحاق وايي چي رسول الله ﷺ چې له حدیبیې څخه راغی ،ذی الجحه او د محرم څو ورځي یې هم دلته په مدینه کي تیري کړی او بیادهمدې محرم په میاشت کي د خیبر په طرف روان سو ،مفسرین وايي چې خیبر هغه وعده چې الله تعالی په دې آیت کي له رسول الله ﷺ سره کړه وه.

وَعَدَكُمُ اللَّهُ مَغَانِمَ كَثِيرَةً تَأْخُذُونَهَا فَعَجَّلَ لَكُمْ هَٰذِهِ .سورة الفتح آیت (۲۰) **ترجمه**: الله عزوجل ستاسو سره دډیرو غنیمتونو اوولجو وعده کړی ده چې وابه یې خلی تاسي نو الله تعالی ژر درکړل داغنائم.

## «داسلام لښکر»

منافقان او دکمزوري ایمان خاوندان دحدیبیې په غزا کي له رسول الله سره نهٔ تللي دوی سستي کړی وه ،الله تعالی د دوی په هکله خپل رسول الله ﷺ ته داسي امر وفرمایه:

سَيَقُولُ الْمُخَلَّفُونَ إِذَا انطَلَقْتُمْ إِلَىٰ مَغَانِمَ لِتَأْخُذُوهَا ذَرُونَا نَتَّبِعْكُمْ يُرِيدُونَ أَن يُبَدِّلُوا كَلَامَ اللَّهِ قُل لَّن تَتَّبِعُونَا كَذَٰلِكُمْ قَالَ اللَّهُ مِن قَبْلُ فَسَيَقُولُونَ بَلْ تَحْسُدُونَنَا بَلْ كَانُوا لَا يَفْقَهُونَ إِلَّا قَلِيلًا سورة الفتح آیت (۱۵) **ترجمه**: ژر به ووايي تاته وروسته پاته کېدونکي خلګ کله چي روان سی تاسي غنیمتونو (د خیبرته) لپاره ددې چي واخلی تاسي هغه غنائم ،پرېږدی موږ چي په تاسي پسې درسو، اراده لري دوی چې بدل کړي حکم دالله، ووایه اې محمده ﷺ! چې له سره به متابعت ونه کړی تاسي زموږ هم داسي فرمایلي ؤ،الله پخوا بیابه ووايي چي کینه کوي تاسي زموږ سره بلکه دوی نه پوهیدل مګر ډیر لږ.

هم داوه کله چي رسول الله ﷺ دخیبر په طرف روانیدی نو اعلان یې وکی چې یوازي هغه کسان به ورسره ځي چې په جهاد کي برخه اخیستل غواړي ،په دې ترتیب سره درسول الله ﷺ سره یوازي تردرختي لاندي بیعت کوونکي چې شمیره یې څوارلس سوه تنه ؤ ،روان سول په مدینه کي یې سباع بن عرفط غفاري خلیفه وټاکی ،ابن اسحاق وايي چې نمیله بن عبدالله لیثي رضی الله عنه یې خلیفه وټاکلی ؤ، خو

محققین وايي چې لومړنۍ روايت قوي دی ،[۴۷۲] په همدې وخت کې ابوهريره رضي الله عنه مدينې ته هجرت وکړ او په اسلام مشرف سو ، د سهار په لمانځه کې يې په عرفط پسې اقتدا وکړه او کله چې لمانځه څخه فارغ سو عرفط ته ورغلی هغه څه توښه ورکړه او روان سو په رسول الله ﷺ پسې ور ورسيدی رسول الله ﷺ دده په هکله له مسلمانانو سره خبره وکړه او دوی په خپلو غنيمتونو کې ابوهريره رضي الله عنه او ملګري يې ورسره شريک کړل.

## «يهودو او ور سره د منافقينو اړيکه»

منافقينو د يهودو په ګټه کار کوي ، د منافقانو رئيس عبدالله بن ابی بن سلو ، د خيبر يهودو ته احوال وليږی چې متوجه وسيږی ، محمد ﷺ ستاسې په طرف در روان دی ، متوجه وسيږی ، خپل تدبيرونيسی ، ګوري همت د لاسه ورنه کړی ، او مه ورڅخه بيريږی تاسې د شمير او وسايلو له خوتر هغو قوي ياست ، د محمد ﷺ قوم ډير لږ دی ، دوی تش لاسې هم دي وسلې نه لري يهودو ته چې د ابن سلول خبر راورسيدی کنابن بن ابي حقيق او هوذة بن قيس يې غطفان ته وليږل ، او د دوی څخه يې د کومک غوښتنه وکړه ، بني غطفان قبيله د يهودو ملګری وه او د مسلمانانو پر خلاف يې له دوی سره مرسته کوله ، په دې غوښتنې پسې يهودو داوړانديزهم وکی که دوی پر مسلمانانو بريالي سول نو د خيبر د ميوو نيمه برخه به بني غطفان ته ورکوي.

## «د خيبر لاره او د مرحب د لاري خوښيدل»

رسول الله ﷺ خيبر ته د رسيدو په خاطر لومړی د عصر نومي غره په طرف ولاړی ، بيا له صهباء نومي سيمې سره تير سو ورپسې رجيع ته ورسيدی هغه چې له بني غطفان څخه يې ديوې شپې او ورځې مزل درلودی ، د غطفان قبيلې خلګو تياري نيوله او د خيبر په طرف ولاړی ترڅو د يهودو مرسته وکړي دوی لا خيبر ته رسيدلي نه وٌ چې له شا څخه يې شور او زوږ ترغوږ وسو ، ګومان يې وکی لکه چې مسلمانانو د دوی پر اولادونو او مالونو حمله کړی ده ، همدا وه چې بيرته ولاړل او د خيبر يهود يې يوازې پرېښوول ، رسول الله ﷺ هغه دوه لار ښوونکي راوغوښتل کوم چې مسلمانان يې لاره ښوول ، له دوي څخه ديوه نوم حسيل وٌ ، رسول الله ﷺ ورته و فرمايل داسې لار راوښيه چې خيبر ته د شمال يعني د شام له خوا وروګرځو ترڅو شام

---

[۴۷۲] فتح الباری ۴۶۵ ، زادالمعاد ۲/ ۱۳۳ .

ته دیهودو دتیبنتي لاره بنده کړو او همدا ډول ددوی او غطفان ترمینځ لاره هم بنده کړو ،دلار ښوونکو څخه یوه وویل چې یارسول الله ﷺ دا لاره زه ښه درښیم ،روان سو ترڅویوې څلورو لاري ته ورسیدل هلته یې عرض وکی یارسول الله ﷺ له دې ټولو لارو څخه خپل مقصد ته رسیدلای سو ،اوس ستا خوښه پرکومه لار ولاړ رسول الله ﷺ امر ورته وکی چې دهري لاري نوم ورته واخلي ، هغه وویل دالار حزن نومیږي ،رسول الله ﷺ وفرمایل دادی وی ،پردې نه ځو ،هغه بیاوویل ددې بلې لاري نوم شاش دی ،درسول الله ﷺ داهم خوښه نه سوه ،هغه وویل دریمه لار دحاطب په نامه یادیږي ،رسول الله ﷺ هغه هم خوښه نه کړه په دې وخت کي حسیل رضي الله عنه وویل اوس یوازي یوه لارپاته ده ،حضرت عمر رضي الله عنه وویل دهغي نوم څه دی؟ده وویل :نوم یې مرحب دی رسول الله ﷺ پرهمدې مرحب نومي لاري باندي تګ خوښ کی .

## «دهمدي لاري په تللو کي واقعات»

سلمه بن اکوع رضي الله عنه وایي چې درسول الله ﷺ سره دخیبر په طرف روان ؤ ،دشپې مو مزل کاوه چې یوه سړي عامر ته وویل څه خوراته واوروه عامر رضي الله عنه شاعر ؤ ،اوشروع یې وکړه بدلي یې بللي اویایې دابابولالی اورولی .

اللهم لولا انت مااهتدینا....ولاتصدقنا ولاصلینا

فاغفر فداءلک ماانقینا.....وثبت الاقدام ان لاقینا

والقین سکینة علینا.... انا اذا اصبح بنا ابینا

وبالصباح عولوا علینا

**ترجمه**:اې الله رضي الله عنه که ته نه وای نوموږ په هدایت نه وای ترلاسه کړی نه به موصدقه ورکړی وای اونه به مو لمونځ اداکړی وای،خدایه !بخښنه راته وکړی اودجنګ په وخت کي ثبات راپه نصیب کړی موږ ته چې آواز وسي نوموږ جواب نه وایو ، خلګو زموږ په چیغو پرموږ باور کړی دی ،رسول الله ﷺ دآواز په اوریدو سره وویل چې داآواز ویونکی څوک دی ؟ورته وویل سول چې داعامر بن اکوع دی ،رسول الله ﷺ وفرمایل :الله تعالی دي رحم پروکړي له اصحابو څخه یوه سړي وویل اوس خودهغه شهادت واجب سو تاسو ولي موږ دهغه له وجود څخه نورهم

مستفید نه کړو؟[473] اصحاب په دې پوهیدل چې رسول الله ﷺ د جنګ په وخت کې چاته هم په ځانګړې توګه دعا کړې ده هغه حتما په شهادت رسیدلی دی[474]، د خیبر په غزا کې هم داسې وسول او حضرت عامر رضي الله عنه شهید سو، همدا وجه وه چې اصحابو رضي الله عنهم رسول الله ﷺ ته عرض وکی چې ولې یې هغه ته داوږده عمر دعا ونه کړه تر څو له ده څخه نور هم مستفید سوی وای دلارې په اوږدو کې اصحاب دیودرې سرته له رسیدو وروسته په لوړ آواز سره د تکبیر نارې پورته کړې او ویل یې: الله اکبر، الله اکبر، لااله الاالله. رسول الله ﷺ و فرمایل: کرار سی خو داسې چاته آواز کوی چې نه غائب دی او نه کوڼ، تاسې هغه ذات ته دعا کوې چې اوریدونکی او ډیر نژدی دی.[475] رسول الله ﷺ خیبر ته نژدې د صهباء په وادې کې د ماځیګر لمونځ اداکی، بیایې توښې راوغوښتلې، ټولو خپلې خپلې توښې راوړې خو ټول ستهوان یا میده سوې غنم ؤ وامرېې وکی چې ټول دلته کښېږدې، کښېښوول سول، رسول الله ﷺ او اصحاب خوراک ورڅخه وکی بیایې د ماښام لمونځ اداکی، مبارکه خوله یې پرېوله، اصحابو هم خولې پرېولې بیایې لمونځ وکی[476] او دس یې تازه نه کی، وروسته یې د ماخستن لمونځ وکی.[477]

## «د اسلامي لښکر رسیدل د خیبر لمنو ته»

هغه شپه چې سهار یې جنګ شروع سو مسلمانانو خیبر ته نژدې تیره کړه، یهود په خبر نه ؤ، د رسول الله ﷺ عادت ؤ چې کوم قوم به د شپې ورسیدی نو تر سهار به نه ورنژدی کیدی، حمله یې نه وربانديي کوله دا شپه یې همداسې وکړل، سهار وختي پاڅیدی د سهار لمونځ یې په تیاره کې اداکی، مسلمانان روان سول د خیبر په طرف یې مخ کی، هلته یهود ناخبری په حالت کې له بیچلو، تسکورو او تبرونو سره د خپلو مځکو کښتونو په طرف روان ؤ، کله چې یې اسلامي لښکر ولیدی وی ویل قسم په خدای محمد ﷺ راغلی دی، وې ځغستل بیرته خپل ښارته ننوتل، په همدې وخت

---

[473] صحیح البخاری ۲/ ۶۰۳، صحیح مسلم ۲/ ۱۵.
[474] صحیح مسلم.
[475] صحیح البخاری ۲/ ۶۵۰.
[476] نفس المصدر.
[477] مغازی الواقدی ص ۱۱۳.

کي رسول الله ﷺ وفرمايل :الله اکبر خيبر وران سو ،الله اکبر خيبر وران سو ،موږ چې د کوم قوم ساحې ته ورسو نو دا گوا ښل سوو خلګو سهار خراب وي .[۴۷۸]
رسول الله ﷺ د خپل لښکر لپاره يو ځای غوره کړی حباب بن منذر رضي الله عنه ورته راغی او عرض يې وکی چې يارسول الله ﷺ دا ځای دي د الله په امر غوره کړی دی او که تاخپله د جنګي تاکتيک په توګه انتخاب کړی دی ؟رسول الله ﷺ وفرمايل : چې دازما شخصي نظر دی ،منذ ورته وويل دغه ځای د (نطاة)نومي برج سره ډېرنژدی دی ،ديهودو ټول جنګيالي په همدې برج کي دي ،دوی زموږ په احوال خبردي موږ ويني په داسي حال کي چې موږ نه دوی وينو او نه يې په هکله معلومات لرو ،د دوی غشي موږ ته را رسيږي خو زموږ غشي دوی ته نه رسيږي ،دلته موږ د دوی له شيخون څخه هم په امن نه يو ،بله دا چې دا ځای د خورما د درختو په مينځ کي واقع دی ژور هم دی ،مځکه يې هم خرابه ده ،غوره به وي چې بل مناسب ځای وټاکي ،رسول الله ﷺ وفرمايل : چې صحيح خبره دي وکړه ،ورپسې يې د لښکر لپاره بل ځای غوره کړی ،کله چي رسول الله ﷺ خيبر ته نژدی سو ،وی فرمايل : ودريږی ټول لښکر ودريدی رسول الله ﷺ وفرمايل :اې داوو آسمانو او تر آسمانو لاندي د ټولو مخلوقاتو لويه ربه ،اې داوو مځکو او په کښې د ټولو مجوداتو ربه !اې د شيطانانو او د دوی د ګمراه سويو ربه! موږ ستا څخه ددې کلي خير غواړو او ددې کلي دا وسيدونکو د خير سوال کوو، او ددې کلي د شر څخه پناه غواړو ، ددې کلي دا وسيدونکو او ټول له شر څخه تا ته پناه در وړو ،بيا يې وفرمايل چې روان سی ،مخ په وړاندې د خدای په نامه سره .[۴۷۹]

## «د جنګ تصميم او د خيبر برجونه»

پرخيبر له حملې څخه مخکې شپه باندي رسول الله ﷺ وفرمايل : چې سهار به بيرغ داسي چا ته ورکوم چې له الله جل جلاله او رسول الله ﷺ سره محبت لري ،الله عزوجل او رسول الله ﷺ هم مينه ورسره لري،کله چي سهار سو،اصحاب ټول د رسول الله ﷺ حضورته ورتلل، هريوه دا طمعه درلوده چې بيرغ به ده ته ورکړل سي ،په دې وخت

---

[۴۷۸] صحيح البخاري ۲/ ۶۰۳، ۶۰۴.
[۴۷۹] ابن هشام ۲/ ۳۳۹.

کي رسول الله ﷺ وفرمايل چې علي رضي الله عنه چيري دی ؟اصحابو ورته وويل هغه خو دسترګو تکليف لري[٤٨٠] وی فرمايل : چې راوی غواړی ،څوک ولاړل او حضرت علي رضي الله عنه يې راوستی ،رسول الله ﷺ دهغه سترګي په خپلو مبارکو ناړو ورلندی کړی ،دعايې ورته وکړه او سترګي يې داسي جوړي سوی لکه هيڅ مرض چې په کښي نه ؤ ،بيايې بيرغ ورکی ،حضرت علي رضي الله عنه عرض وکی يارسول الله ﷺ !آيا تر هغو پوري به ورسره جنګيږم ترڅو دوی زموږ په ډول مسلمانان سي؟رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : په اطمينان سره ولاړسه ترڅو د دوی ساحې ته ورسيږې هلته دوی ته داسلام بلنه ورکړه ،دالله عزوجل حقوق ورته بيان کړه ، قسم په خدای که الله عزوجل ستا په لاس يو سړی هدايت کړي داترسرو اوښانو درته غوره دی[٤٨١] ،خيبر پر دوو برخو ويشل سوی ؤ ،په لومړی برخه کي يې داپنځه برجونه ؤ .

١: دناعم برج .٢ : دصعب بن معاذبرج .٣ : دقعله زبيربرج : ٤ : دابی برج .٥ :دنزار برج .لومړني دري برجونه په نطاة نومي سيمه کي اودوه نور په شق نومي سيمي کي پراته ؤ ،دخيبر په دويمه برخه کي چې په کتيبه سره يې شهرت درلودی دري برجونه پراته ؤ ،چې نومونه يې دادی .١ :دقموص برج ،دادبني نضير دمشرابی حقيق برج ؤ .٢ : د وطيع برج .٣ :د سلالم برج .په خيبر کي له دې اتوبرجونو پرته نور برجونه اوکلاګاني هم وی خو هغه نوري ددې اتوبرجونه په ډول بيله جنګه تسليم سول ، دجنګ زيات زور دخيبر په لومړني برخه کي ؤ په دويمه برخه کي که څه هم جنګيالان ډيرؤ خو ټول بيله جنګه تسليم سول .

## «اول دناعم پربرج حمله او دهغه فتحه کېدل»

مسلمانانو لومړی پرناعم برج حمله وکړه هم دلته ديهودو لومړی دفاعي کربنه هم وه ، دې برج که له يو خوا زيات استراتيژک اهميت درلودی ،له بل پلوه ديهودديانو مشهور قهرمان مرحب هغه چي پرزرو شمار ؤ هم دلته اوسيدی ،حضرت علي رضي الله عنه مسلمانان دهم دې برج په لور مرش کړل ،هلته يې يهودو ته داسلام بلنه ورکړه ،دوی اسلام ونه منی دخپل مشر مرحب تر مشري لاندي دمسلمانانو مقابلې ته

---

[٤٨٠] دهم دي مرض دوجي حضرت علي رضي الله عنه په لښکر پسي داخره روان وو.
[٤٨١] صحيح البخاری ٢/ ٦٥٠، ٦٠٦.

راووتل ،مرحب را وړاندي سو اَو مسلمانانو ته يې دحملې بلنه ورکړه ،سلمه بن اکوع رضي الله عنه وايي چي په خيبر کي د دوی مشر مرحب دجنګ ميدان ته رامخ ته سو ،توره يې په لاس کي وه او داشعريې وايه.

قدعلمت خيبر أني مرحب.... شاکی السلاح بطل مجرب

اذا الحروب أقبلت تلهب

**ترجمه**: دخيبر خلک په دې پوه دي چي زه مرحب يم ،مسلح يم ،دجنګ په ميدان کي تجربه کار اتل يم ،سلمه وايي دده مقابلې ته زما اکا (عامر) وروتی او وي ويل:

قدعلمت خيبر أني عامر..... شاکی السلاح بطل مغامر

**ترجمه**: خيبروالا په دې خبر دي چي زه عامر يم ،بې باکه ،وسله په لاس اتلم يم دواړو يو پربل د وارونو هڅه وکړه ، دمرحب توره زما داکاعامر په ډال ونګيده ،عامر هڅه وکړه چي دلاندي خوځخه پر مرحب وار وکړي ،خوتوره يې تڼدی وه ،که څه هم ده غوښتل چي يهودي پرپنډۍ ګوزار وکړي خوتوره يې پرخپله ګونډه برابره سوه ،سخت زخمي سواوبياله همدې ټپ له وجي وفات سو.رسول الله صلی الله علیه وسلم دده په هکله فرمايلي دي دده (عامر) لپاره دوه اجرونه دي اوپه خپلو مبارکو ګوتويې اشاره کړې ده ، ده داسي جهادوکی چي په عربو کي به دده په ډول مجاهدکم پيداسي.[482] داسي ښکاره کيږي چي مرحب به بيادمقابلې ږغ کړی وي اوهم هغه شعريې وايه اوپه ميدان کي ګرځيدی ، همدا وه چي دا واريې مقابلې ته حضرت علي رضي الله عنه وروتی اوداشعريې وايه

انا الذی سمتنی أمی حیدره.... أوفیهم بالصاع کیل السندرة

**ترجمه**:زه هغه څوک يم چي مور مي دحيدر(زمري)نوم راباندي اېښی دی ،زه لکه دځنګل دباچازمري په ډول هيبتناک يم زه دټولو نيزو پوره حساب ورکوم ، حضرت علي رضي الله عنه داشعر زمزمه کی اوپرمرحب يې داسي وار وکی چي ځای پرځای يې نسکورکی ،ورپسې دهمده په لاس خيبر فتحه سو.[483] کله چي حضرت علي رضي الله عنه

---

[482] صحيح مسلم ٢/ ١٢٢، صحيح البخاری ٢/ ٦٠٣.

[483] دمرحب دقاتل په باره باندي اختلاف سته.

ديهودو برجونو ته ورننژدی سو يوه يهودي له برج څخه راوکتل او وی ویل : چې ته څوک يې ؟ده جواب ورکی چې زه علي بن ابي طالب يم ،يهودي وويل قسم په هغه کتاب چې پرموسی عليه السلام باندي نازل سوی دی چې تاسي برلاسي سوی یاست بیادمرحب د ورور یاسر سره راووتی اووی ویل څوک مقابله راسره کوي؟ د مسلمانانو څخه زبير رضي الله عنه مقابلې ته ور وړاندي سو موريې صفيه رضي الله عنها وویل یا رسول الله صلی الله علیه وسلم هسي نه چې زوی مي مړنه سي ،رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل : نه ستازوی به هغه وژني ،هم هغه وه چې زبير رضي الله عنه پردې وتوانيدی چې يهودي ياسر ووژني . دناعم دبرج په شاوخواکي سخت جنگونه وسول ، يوشمير نامتو يهوديان په کښي مړه سول،د نورو یهودو روحيات کمزوري سول ،دمسلمانانو دمقابلې توان يې ترلاسه ورکی ،ځيني مصادر وايي چې داجنگ څوورځي روان ؤ . مسلمانان دسخت مقاومت سره مخ وه ،په پای کي يهوذ بې وسه سول ،دمقابلې توان يې بايلوی اوله همدې برج څخه صعب نومي برج ته واوښتل او مسلمانانو دناعم برج فتح کی .

## «دویمه فتحه دصعب بن معاذ دبرج»

په ناعم برج پسې دويم برج دصعب په نامه يادیدی ،پردې برج دبريد قومانده د حباب بن منذر پرغاړه وه ،مسلمانانو برج درې ورځي کلابند کی ، په دريمه ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم ددې برج لپاره خاصه دعا وکړه ،ابن اسحاق وايي چې دبني سهم قبيلې مسلمانان درسول الله صلی الله علیه وسلم حضور ته راغلل ،عرض يې وکی موږ خپل کوښښ وکی ،ستړي سوې هم يو خوهيڅ مو په لاس کي نسته ، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل : خدايه !ته د دوی په حال خبريې ،دوی وس نه لري ،زه هم څه نه لرم چې وريې کړم خدايه !ته ددوی په لاس ترټولو لوی برج فتحه کړې ترڅو څه شی يې لاس ته ورسي ،هغه برج د دوی په لاس فتحه کړې چې ډيره غله اوغوړي په کښي وي ،کله چې سهار سو الله جل جلاله د دوی په لاس دصعب بن معاذ برج فتحه کی ، اوپه دې برج ترټولو برجونو زيات خواړه اوغوړي ؤ .[484] تردې وروسته چې رسول الله صلی الله علیه وسلم اصحاب پربرج باندي دحملې لپاره ليږل نو دبني اسلم قبيلې غري ترنورو مخکي ؤ ،دبرج مخ ته مقابله اوجنگ وسو ،په پای کي په هم دې ورځ تر لمر لوېدو مخکي برج فتحه

---

[484] ابن هشام ۲/ ۳۳۲.

سو. مسلمانانو په دې برج کې دغه زمانې یو شمیر توپونه او ټانګونه هم غنیمت ونیول ، دابن اسحاق په روایت په دې ورځو کې مسلمانان د سختې لوږې سره مخ سوي ؤ اوله ډېرې لوږې څخه یې خره ذبحه کړې وه او دهم دې خرو غوښې یې په دیګو باندې بار کړې وې ،رسول الله ﷺ چې په مسئله خبر سو دخره دغوښو له خوړلو څخه یې نهې وکړه خو چې سهوا او یا د هیرې په حالت کې وې پروانه لرې.

## «دریمه فتحه دزبیر دکلا»

دناعم او صعب دبرجونو له فتحه کولو وروسته یهودیان ټول دزبیر کلاته ولاړل، دغه یوه ډېره مضبوطه او ټینګه کلاوه ، موقعیت یې هم داسې ؤ چې اسونه او پیاده ځواکونه نه سوای وړاندې ورختلای ، همدا وجه چې رسول الله ﷺ محاصره وکړه ،محاصره درې ورځې اوږده سوه ،یو یهودې راغی اورسول الله ﷺ ته یې عرض وکی چې یااباالقاسم ﷺ !که ته یوه میاشت هم محاصرې ته ادامه ورکړې یهودیانو ته څه مشکل نسته ،ځکه له دوی سره خواړه سته ،داوبو مشکل یې هم نسته ،دشپې له خوا دخپل ضرورت وړ اوبه اخلې او بیرته خپلې کلا ته ننوزې که تاد دوی اوبه ورباندې بندې کړې نو دوی به مجبور سې او دباندې به را ووزې ،همدا وجه وه چې رسول الله ﷺ اوبه ورباندې بندې کړې ،دوی راووتل او سخت جنګ یې وکی ،یوشمیر مسلمانان شهیدان سول ،لس کسه یهودیان هم ولګیدل،بالاخره رسول الله ﷺ بریالې سو او داکلا یې هم فتحه کړه.

## «دزبیر کلاوروسته دابی دکلافتحه»

کله چې دزبیر کلافتحه دمسلمانانو په لاس فتحه سوه ،یهود دابی کلا ته ولاړل او هلته یې سنګر ونیوی ،رسول الله ﷺ داکلا هم محاصره کړه ،دمحاصرې په دوران کې دوه یهودې اتلان یو په بل پسې راووتل او دمقابلې ګوابښ یې وکی ،مقابله وسوه دواړه دمسلمانانو په لاس ووژل سول ، دویم یهودې جنګیالې ،د مشهور مسلمان اتل ابودجانه سماک بن خرشه انصاري رضي الله عنه په لاس ووژل سو ،کله چې ابودجانه رضي الله عنه دغه یهودې وواژه نودکلا په طرف یې مخ کې مسلمانان هم ورپسې ورغلل ټینګ جنګ ونښتی مسلمانان کلاته ور دننه سول یهودیان په تیښته بریالې سول او ځانونه یې دنزار برج ته ورسول.

## «ترټولو هغه محکم برج نزار دهغه فتحه»

دخيبر په دې برخه کې نزار ترټولو زيات مضبوط برج ؤ، يهودو باور درلودی چې مسلمانان به په هيڅ صورت کې هم دغه برج ونه نيسي ، دوی په دې برج دومره زړه ترلی ؤ چې خپل اولادونه اوښځې يې هم په دې برج کې ورسره ساتلې وی ،مسلمانانو دغه برج هم کلک کلابند کی ،پريهودو يې سخت فشار راوستی ،خوځرنګه چې برج دغره په څوکه کې پروت ؤ ورننوتل ګران ؤ، يهودو داجرأت نه درلودی چې له برج څخه دباندې را ووزي خوله برج څخه يې دغشو اوډبرو د ويشتلو سخت مقاومت وکی ،کله چې دنزار دبرج محاصره اوږده سوه مسلمانان ونه توانيدل چې برج ونيسي ،رسول الله ﷺ امر وکی چې دهغه وخت توپونه دې ورته نصب سي داسې ښکاره کيږي چې مسلمانانو دې دتوپ څخه ډزې کړې وای اوپه هم دې ګولیو سره يې دبرج په ديوالونو کې درزونه پيداکړل اوله همدې لارې څخه دننه سول ،په برج کې دننه سخت جنګ وموښتی چې په نتيجه کې يې يهود ماته وخوړه ډيرتلفات يې ورکړل ،پردې هم ونه توانيدل چې دپخوا په ډول بل برج ته پناه يوسي بلکه څوک په تيښته بريالي سول دوی خپل اولادونه اوښځې مسلمانانو ته پرېښوولی اوپه دې ترتيب سره دابرج هم فتحه سو په دې ډول سره دخيبر دلومړني برخې برجونه ټول فتحه سول که څه هم په دې برخه کې يو شمير نور کوچني برجونه هم ؤ خودنزار دبرج له سقوط وروسته يهودو په خپله هم کوچني برجونه ايله کړل اوټول دخيبر دويمې برخې ته منتقل سول .

## «په دې فتحه کې دخيبر دويمه برخه»

دنطاة اوشق له فتحې وروسته رسول الله ﷺ دبني نضير قبيلې دنورو برجونو چې کتيبه وطيح اوسلالم نومېدل په طرف توجه وکړه ، دلته ټول يهوديان راټول سوي ؤ، سيرت ليکونکې په دې برجونو کې دجنګ دپيښيدو په اړه اختلاف لري ،دابن اسحاق له روايت څخه داسې معلوميږي چې دقموص برج په فتح کېدو کې سخت جنګ سوی ؤ اودابرج به په جنګ سره فتحه سوی ؤ نه دخبرو له لارې[485] ، امام

---

[485] ابن هشام ۲/۳۳۱، ۳۳۶، ۳۳۷.

واقدي رحمة الله عليه وايي چې دخيبر دغه برخه دخبرو له لاري فتحه سوی خو دا هم کیدای سي چې دقموص دبرج شاوخوا کي لومړی سخت جنګ سوی وي او بيا دخبرو له لاري تسليم سوي وي او پاته دوه نور برجونه بيله جنګ تسليم سوی وي، پرهرحال رسول الله ﷺ دې برخي (کتيبه) ته له راتګ وروسته يهوديان کلابند کړل دوی پوره څوارلس ورځي محاصره ؤ، په پای کي نبي کريم ﷺ اراده وکړه چې دا برجونه هم په توپونو وويلي خو کله چې يهوديان پوه سول چې نور وژل کيږو نو د صلحي او خبرو وړانديزېې وکړ.

## «تړون او دخيبر فتحه»

ابن ابي الحقيق د رسول الله ﷺ حضورته څوک وليږل او ورته وی ويل: چې راځه چي خبري سره وکړو، رسول الله ﷺ دا وړانديز ومنی، خبري شروع سوی او پردې سره جوړسول چې په برجونو کي موجود جنګيان به ټول په امن وي، د يهودو اولادونه به د دوی وي خو دوی به ټول دخيبر څخه وزي، خپل ځمکي، مالونه سره او سپين به ټول رسول الله ﷺ ته سپاري، خپل آسانونه، سلې، نيزې او نور ټول سامان به پريږدي، يوازي دومره مال به دځان سره وړي چې او ښ يې وړای سي، او په بل روايت سره يوازي ديوې جوړې کالو دوړلو اجازه يې درلوده او بس، پرهم دې اتفاق وسو، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: که موڅه پټ کړل نو الله جل جلاله ته به يې جواب ورکوی، په دې ترتيب سره تړون وسو او خيبر د مسلمانانو په لاس فتحه سو.

## «دابی الحقيق دوه زامن او دهغوی قتل»

سره له دې چې دا تړون وسو، دحقيق زامنو ډير مالونه پټ کړل هغه ژې يې هم پټ کړل چې د احيی بن اخطب بې شميره دارايي په کښي وه، ابن اسحاق روايت کوي چې کنانه بن ابي حقيق د رسول الله ﷺ حضورته راوستل سو، پوښتنه يې ورڅخه وکړه چې دبنونضير خزانې چيري دي، دې سره له دې چې دخزانې ساتونکی ؤ انکار وکی، په دې وخت کي يو بل يهودي راغی او رسول الله ﷺ ته يې وويل چې ما به سهار کنانه ليدی چې دغه مخربې (کنډوالې) ته به راتلی، رسول الله ﷺ کنانه ته وويل چې ګوره! که چيري دغه خزانه ستاسره پيدا سوه نو بيا به دي وژنو؟ کنانه وويل هو، که زماسره پيدا سوه نو مي وژنی رسول الله ﷺ امر وکی چې دغه مخروبه دی

وکېندل سي ،له کېندلو ورسته څه اندازه مالونه لاس ته راغلل بیاله کنانه څخه پوښتنه وسوه چې نورمالونه چیرې دي؟هغه بیاهم انکار وکی هم داوه چې زبیر رضی الله عنه ته وظیفه ورکړل سوه چې کنانه تعذیب کړي ، ترڅودخزانې ځای په ګوته کړي ،زبیر رضی الله عنه هغه وواهه خواعتراف یې نه کوی ،له ډېرو وهلو وروسته یې محمد بن مسلمه رضی الله عنه ته وظیفه ورکړه هغه دځپل ورور په بدل کې دکنانه سره پرېکی ، محمد دمسلمه زوی دی چې دمحمد وروړ ؤ دناعم دبرج ترڅنګ ناست ؤ چې یهودو دمیچنې ډبره پرو غورځوله اوپه شهادت ورسوی ،ابن قیم رضی الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دابي حقیق د دواړو زامنو د وژلو امرکړی ؤ اوپر دوی باندې دکنانه داکازوی شاهدي ویلی وه،رسول الله صلی الله علیه وسلم دحیی بن اخطب لورصفیه هم په سارت ونیوله ،صفیه دغه وخت دکنانه بن ابي حقیق په نکاح کې وه .

## «دغنیمتونو تقسیم»

رسول الله صلی الله علیه وسلم فیصله وکړه چې یهودیان له خیبر څخه وشړي خو دوی ورته راغلل اوعرض یې وکی چې موږ ددې ځمکې په هکله تر تاسې زیات معلومات لرو ،موږ هم دلته پریږدی او ځمکه به درته کاله کوو ،له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره هم دومره کسان نه ؤ چې دلته پرځمکه کار وکړي ،همداوه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فیصله وکړه چې یهودیان به په دې ځمکو کارکوي ، په بدل کې به یې یوه اندازه حاصلات ورکول کیږي ،اودافیصله برترهغو پورې عملي وې ترڅو چې درسول الله صلی الله علیه وسلم خوښه وي ،یهودهم دلته پاته سول ،اوعبدالله بن رواحه رضی الله عنه به دحاصلاتو په اړه دتخمین پر اساس فیصله کوله ، همداډول رسول الله صلی الله علیه وسلم دخیبرځمکې پر (٢٦) برخو ووېشلې هربرخه پرسلو برخو مشتمله وه ،په دې حساب سره ټولې (٣٦٠٠) برخې وې، د رسول الله صلی الله علیه وسلم اومسلمانانو حصه نیمه یعني اتلس پاته نیمه بله برخه یې دخاصو حالاتو اومشکلاتو لپاره وساتله اوځمکه یې په اتلس سوه برخو ویشلې وه چې دا غنیمتونه په حقیقت کې دحدیبیې دغازیانو لپاره یونعمت اوبدله وه ،دحدیبیې غازیان شپاړس سوه کسان ؤ دوه آسونه هم ورسره ؤدهرآس لپاره دوې برخې وې په

دې حساب سره ټولې برخې (۱۸۰۰) سوې ،دسپاره لپاره درې اودپياده لپاره يوازې يوه برخه وه .[486]

دخيبر غنيمتونه بې حسابه ؤ ،امام بخاري رحمه الله له ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت کوي چې وايي د خيبر ترفتحې پورې موږ په نس نه ؤ ماړه سوي ،همداډول عائشه رضي الله عنها وايي چې کله خيبر فتحه سو نو موږ وويل اوس به په خرماؤ ماړه سو[487] ،اوکله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم له خيبر څخه مدينې ته تشريف راوړی نوټول مهاجرينو هغه باغونه بيرته خپلو انصارو وروڼو ته ورکړل چې دوی ته يې دمرستې په دود کې ورکړې ؤ ځکه اوس خومهاجرين هم په خيبرکې دمال ،باغ اوخورماؤ خاوندان سوي ؤ .[488]

## «دجعفر بن ابې طالب رضي الله عنه اواشعريان»

دخيبر غزا په دوران کې درسول الله صلی الله علیه وسلم داکازوی جعفر بن ابي طالب رضي الله عنه ابو موسی اشعري رضي الله عنه اوملګري يې را ورسيدل ،ابوموسی اشعري رضي الله عنه وايي موږ په يمن کې درسول الله صلی الله علیه وسلم دبعثت خبر واوريدی ،همداوه چې زه اوورور مې له پنځو سو کسانو سره يوځای دده طرف مهاجرسو ،په کښتۍ کې سپاره سوو ،په دغه کښتۍ کې دحبشې په طرف يو وړو هلته موله جعفر رضي الله عنه اوملګرو سره ليده کاته وسوه ،دوی راته وويل موږ ته رسول الله صلی الله علیه وسلم هم دلته دپاته کېدو امرکړی دی ،تاسي هم راسره پاته سی،ورسره پاته سوو، بالاخره روان سو اوپه داسي وخت کې درسول الله صلی الله علیه وسلم حضور ته ورسيدو چې خيبريې فتحه کړی ؤ، موږ چې کله ور ورسيدو نو موږ ته يې هم په غنيمتونو کې برخه راکړه،غايبانوته يې دخيبر له غنيمتونو څخه څه ورنه کړل ،يوازې موږ دجعفر رضي الله عنه ملګروته يې برخه راکړه ، او بس[489] ،کله چې جعفر رضي الله عنه درسول الله صلی الله علیه وسلم حضور ته ورسيدی هرکلی يې ورته وواېه مچ يې کی او وی فرمايل :والله که پوهيږم په کومه خوښي خوشحالي وکړم دخيبر په فتحه اوکه دجعفر رضي الله عنه په راتګ[490] ، جفعر رضي الله عنه اوملګري له هغه وخت

---

۴۸۶زاد المعاد ۲/ ۱۳۷، ۱۳۸.

۴۸۷صحيح البخاري ۶۰۹.

۴۸۸زاد المعاد ۲/ ۱۳۷، صحيح مسلم ۲/ ۹۶.

۴۸۹صحيح البخاري ۱/ ۴۴۳.

۴۹۰زاد المعاد ۲/ ۱۳۹.

څخه وروسته راغلي ؤ کوم وخت چې رسول الله ﷺ نجاشي ته عمرو بن اميه الضمري ليږلی ؤ او د مسلمانانو دليږلو خبره يې ورته کړې وه، نجاشي دوی په دوو کښتيو کې واستول، د جعفر رضي الله عنه ملګري شپاړس کسان ؤ ښځې او اولادونه يې هم ورسره ؤ او نور ټول مسلمانان له حبشې څخه مدينې ته راغلي ؤ.[491]

## «له صفيې رضي الله عنها سره د سيد البشر ﷺ واده»

مخکې مو وويل چې صفيه رضي الله عنها ميړه کنانه بن ابي حقيق د غدر په سزا کې ووژل شواو صفيه رضي الله عنها په اسارت ونيول شوه، کله چې بنديان ټول شول دحيه کلبي رضي الله عنه راغی او له رسول الله ﷺ څخه ديوې مينځې غوښتنه وکړه، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ولاړ شه بنديانو ښځو څخه يوه واخله، دحيه کلبي رضي الله عنه ولاړی او پر صفيه بنت حيي يې لاس کښيښود، په دې وخت کې دې صحابي د رسول الله ﷺ حضور ته راغی او ورته وی ويل: چې يارسول الله ﷺ تا دحيه ته د بنونضير او بنوقريظه قبيلې سرداره يعنی صفيه ورکړه، دغه ميرمن يوازي ستاسي له شان سره ښايي، رسول الله ﷺ وفرمايل احوال ورکړئ چې هغه راولي، دحيه رضي الله عنه سره صفيې رضي الله عنها راغی، رسول الله ﷺ ورته وکتل او وی ويل: ددې په بدله کې بله بندي واخله رسول الله ﷺ صفيه رضي الله عنها اسلام ته راوبلله، هغې اسلام ومنی په اسلام مشرفه شوه، نو رسول الله ﷺ آزاده کړه او په نکاح يې کړه او مهريې هم د آزادي وه، مدينې په لاره چې د صبهاء سيمې ته ورسيدل صفيه رضي الله عنها له حيضه پاکه شوه نو أم سليم ورته جوړه کړه، د شپې د رسول الله ﷺ حضور ته ورليږله، او په دې ترتيب سره د اواده ترسره شو، سهار يې د خورماؤ، ستوانو او غوړيو وليمه ورکړه، درې ورځې يې هم دلته د واده د شپو په توګه ورسره تيرې کړې[492]، رسول الله ﷺ د صفيې رضي الله عنها په مخ کې شين والی وليدی ورته وی ويل چې دا څه دي دې وويل: يارسول الله ﷺ ماستاتر اتګ مخکې خوب وليدی چې سپوږمۍ له خپل ځای څخه بې ځايه شوه او زما په غيږ کې راولويده، په دې وخت کې ماستا په هکله هيڅ معلومات نه درلودل، دغه قصه

---

[491] للخضری ۱/۱۳۸.

[492] صحيح البخاری ۱/۵۴، زاد المعاد ۲/۱۳۷.

اوخوب مي خيل ميره ته وو ايه هغه پرمخ ووهلم اوراته وي ويل لکه چې دهغه باچا هيله لري چې په مدينه کې دی.[۴۹۳]

## «په زهرو وهل سوی پسه»

له خيبر له فتحي وروسته په داسي حال کی چي رسول الله ﷺ دفاتح لاربښود په حيث دلته ځای په ځای سوی ؤ ،دسلام بن مشکم ښځي زينب بنت حارث يو کباب سوی پسه ورته راوړی نومړي پوښتنه کړه وه چې رسول الله ﷺ کوم غړي ډير خوښيږي ،ورته ويل سوي ؤچې مخکنی پښې يې نو په همدې يې ډير زهر وراچول بيايې ټوله پسه په زهرو ککړ کی ،رسول الله ﷺ ته يې راوړی اوپه مخ کي يې ورته کښيښوی ،رسول الله ﷺ هم داپښه چې ډيرزهر په کښي ؤ راونيوله اوغوښه يې ورڅخه جلاکړه وی ژوله خوتيره نه سوه بيرته يې توکړه وی فرمايل داهډوکی راته وايي چې زهر په ګډسوي دي ،بيايې هغه ښځه راوغوښتله هغې اعتراف وکی ،ورته وی ويل : ولي داکار وکی؟ښځي وويل :ماويل که محمد ﷺ باچاوي نوپه دې سره به ورڅخه بې غمه سو،اوکه رسول الله ﷺ رسول وي نوحتما به خبروکړل سي اوغوښه به ونه خوري ،رسول الله ﷺ بياعفوه ورکړه دغوښي خوړلو په وخت کي له رسول الله ﷺ بشربن البراء بن معرور هم ؤ هغه يوه اندازه غوښه وخوړله اومړسو ،دې ښځي ته دعفوي په اړه مختلف روايتونه رانقل سوي دي ځيني وايي چې عفوه ورته وسوه اوځيني وايي چې مړه يې کړه ،خواتفاق بياپردې سوی دی چې لومړی رسول الله عفوه ورته وکړه خوکله چې بشر مړ سو نودغه ښځه وربان‌دي قصاص سوه.[۴۹۴]

## «دخيبر په غزاکي دشهيدانو اودکفارو دمړو تعداد»

دخيبر په غزاکي (۱۶) مسلمانان په شهادت ورسيدل ،څلور قريشان،يو له اشجع قبيلې يوله اسلم قبيلې يو دخيبر له خلکو او نور انصار ؤ ،بل روايت وايي چې ددې غزا دشهيدانو شمير اتلس کسان ؤ ،منصور پوري دغه شميره نونس ښوولی او وايي چې ماله ډير څيړني وروسته (۲۳) نومونه پيداکړي دي ،يو نوم په طبرکي ،بل

---

[۴۹۳] ابن هشام ۲/ ۲۳۶.

[۴۹۴] زادالمعاد ۲/ ۱۳۹، فتح الباری ۷/ ۴۹۷.

په واقدي کي راغلي دي يو په زهرو لړلي پسه له امله مړسو، يو نفر داسي دي چې ځيني وايي په خيبر کي شهيد سوی او نور وايي چې په بدر کي په شهادت رسيدلی دی، خو صحيح روايت دا دی چې په بدر کي شهيد سوی دی [٤٩٥]، د خيبر په غزا کي له يهوديانو څخه (٩٣) کسان وژل سوي دي.

## «د فدک يهوديان»

خيبر ته له رسيدو وروسته نبي کريم ﷺ محيصه بن مسعود رضي الله عنه د فدک يهوديانو ته وليږی ترڅو دوی اسلام ته راوبولولي، دوی خبره اوږده کړه خو کله چې خيبر فتح سو نو الله تعالی يې په زړونو کي رعب واچوی، رسول الله ﷺ ته يې د صلح وړانديز وکی او وی ويل چې د فدک په نيمايي حاصلاتو سره صلح ته تيار سي، رسول الله ﷺ د دوی وړانديز ومنی، د فدک ټوله سيمه خاص د رسول الله ﷺ لپاره وه ځکه د لته مسلمانانو هيڅ ډول جنګ او جدل نه وکی.

## «مخ پر وادای القری»

کله چي رسول الله ﷺ د خيبر له فتحي څخه فارغ سو نو د وادی القرای په طرف يې مخ کی هلته يو شمير يهوديان چې څه کوچيان هم ورسره ؤ اوسيدل، دې سيمي ته له رسيدو سره سم د يهوديانو له طرفه پر مسلمانانو د غشو باران سو، د رسول الله ﷺ يو مريی (مدعم) هم ووژل سو، خلکو وويل جنت دي يې مبارک وي، رسول الله ﷺ وفرمايل نه داسي نه ده قسم په هغه ذات چې زما ژوند يې په واک دي هغه تسمه چې تروېش مخکي يې د خيبر له غنيمتونو څخه اخيستی وه پر ده باندي به اور بل وي، اصحابو چې دا خبره واورېدله نو هريو ولاړی چا يوه او چا به دوې تسمې رانيولی وی راوړلی به يې، رسول الله ﷺ فرمايل دا اور يوه تسمه د اور دوې تسمې، بيا رسول الله ﷺ خپل لښکر د مقابلې لپاره تيار کی، پر صفويې برابر کړل، عمومي بيرغ يې سعد بن عباده رضي الله عنه ته ورکی يو بيرغ يې حباب بن منذر بل يې سهل بن حنيف رضي الله عنه دريم يې عباده بن بشير رضي الله عنه ته ورکی، وروسته يې يهودو ته د اسلام بلنه ورکړه دوی اسلام ونه منی، يو کس يې مقابلې ته راووتی د هغه مخ ته زبير بن عوام رضي الله عنه ورغلی او هغه يې رانسکور کی، وروسته بل رامخ ته سو هغه يې

---

[٤٩٥] رحمة للعالمين ٢٦٨.

هم ووژی ،ورپسې دریم مقابلې ته راغلی دمسلمانانو له خوا څخه حضرت علي رضي الله عنه ورمخ ته سو اوهغه یې ځای پرځای ووژی په دې سره مقابله روانه وه اوله یهودو څخه (۱۱) کسان ووژل سول ،کله چې به یو ورڅخه وژل کېدی نوربه یې اسلام ته رالل کېدل ،په دې ورځ به دلمانځه په وخت کي رسول الله ﷺ لمونځ په جماعت اداکی ، بیابه یهودو ته داسلام بلنه ورکوله ، دوی به اسلام نه منی په دې ترتیب سره ترماخستن پوري جنګ روان ؤ سهار سو ،لمر دنیزې په اندازه لوړ سوی ؤ چې یهود په زور سره تسلیم سول ،مالونه یې ټول ولجه سول ،مسلمانانو ته ډیرمالونه اوسامانونه په لاس ورغلل ،رسول الله ﷺ هم دلته دقری په وادي سیمه کي څلور ورځي تیري کړی ،غنیمتونه یې پراصحابو وویشل خودرختي ځمکي اوباغونه یې یهودو ته ورپرېښوول .[٤٩٦]

## «دتیماء یهودیان»

دتیماء یهودیان چې دخیبر ،فدک او وادی القری له فتحو څخه خبرسول سمدستي یې رسول الله ﷺ ته دصلحي وړاندیز وکی ،رسول الله ﷺ هم د دوی وړاندیز ومنی ،صلح یې ورسره وکړه اوخپل مالونه یې هم دوی ته پرېښوول ،[٤٩٧] اوداسي تړون یې ورسره ولیکی چې دادبني عادیا لپاره دمحمد رسول الله ﷺ تړون دی ،دوی به محفوظ اوخوندي وی ،جزیه به ورکوي دښمني به نه ورسره کیږي ، اونه به له خپلي خاوري څخه شړل کیږي ، دا تړون به همېشتني وي تړون دخالدبن سعید په لاس ولیکل سو ..[٤٩٨]

## «سیدالبشر ﷺ دمدینې پر لور»

رسول الله ﷺ دمدینې په طرف روان سو ،یوه شپه یې مزل وکی دشپې په آخري برخه کي یې دلاري په اوږدو کي واړول ، بیده سو خو تربیدېدو مخکي یې بلال رضي الله عنه ته وویل چې بیدار اوسه ،دسهار ولمانځه ته مو راوېښ کړه بلال خپل پېتي ته ځنګ وهلی ؤ خوب وړی ؤ،اوکله چي لمربنه تود سو راوېښ سول ،لومړی اوترټولو مخکي رسول الله ﷺ راوېښ سو ،له دې وادي څخه ووتی لږ مخته ولاړی هلته یې

---

[٤٩٦] زادالمعاد ۲/ ۱۴۶.
[٤٩٧] زادالمعاد ۱۴۷.
[٤٩٨] ابن سعید.

دسهار لمونځ وکی په بل روایت کې راغلې دي چې دغه قصه په بل سفرکې پېښه سوې وه [٤٩٩]، دخیبر دغزا له حوادثو څخه دا څرګندېږي چې رسول الله ﷺ دا ووم هجري کال دصفر دمیاشتې په آخري برخه اویا دربیع الاول په میاشت کې مدینې ته بیرته تللی دی.

## «دابان بن سعید رضي الله عنه سریه»

رسول الله ﷺ دیوه ماهر قومندان په حیث په دې ښه پوهیدی چې له حرامو میاشتو څخه اخوا دمدینې ایله اوخالي پرېښوول پرځای عمل نه دی ځکه دمدینې شاوخوا پراته اعراب دمناسب فرصت انتظارکوی اوپه دې طمعه دي چې په غلچکي برید سره مسلمانانو ته تاوان ورسوي مالونه یې لوټ اوغلاکړي، هم دا وجه چې رسول الله ﷺ دابان بن سعید رضي الله عنه په مشري یو سریه نجد ته ولیږله ترڅو اعراب وبیروي، ددې سریې سره همزمان خپله رسول الله ﷺ دخیبر په طرف روان سو، ابان بن سعید دخپلې دندې له سرته رسولو څخه وروسته بیرته راغلی اوپه خیبر کې درسول الله ﷺ سره یوځای سو، موثق روایت دا دی چې دغه سریه د اووم هجري کال دصفر په میاشت کې وه ددې سریې قصه امام بخاري رحمه الله هم رانقل کړې ده [٥٠٠] ابن حجروایي زه ددې سرې په هکله معلومات نه لرم. [٥٠١]

## «په (٧) کال دهجرت کې غزاګانې اوهم سرایاوې»

**دذات الرقاع غزا:** وروسته له هغه چې رسول الله ﷺ په دې وتوانیدی چې دکفر دمثلث دوې برخې درې وړې کړي نو ددریمې برخې ماتولو ته یې پام سو، دغه دریمه ډله دنجد په دښتو اومیرو کې پراته سخت زړي اعراب اوکوچیانو چې وخت ناوخت به یې شوکې اوډاکې (غلا) اچولې، څرنګه چې داکوچیان په کوم ښاریاکلي کې نه اوسیدل، دکلاګانو اوبرجونو خاوندان نه وو، چې کلابند سي اوله منځه یووړل سي، دوی په پراخو سیمو کې تیت اوپرک پراته وو، نوبریالیتوب وربانديَ ګران وو، دوی مشکل دمکې اوخیبرترخلکو ډیرلوی وو، ددې ډول شرا وفساد په وړاندې یوازې تادیبي عملیات کېدای سوای اوبس، پرکوچیانو باندې دفشار

---

[٤٩٩] ابن هشام ٢/ ٣٤٠.
[٥٠٠] صحیح البخاری ٢/ ٦٠٨.
[٥٠١] فتح الباری ٧/ ٤٩١.

اچولو او د مدینې په شاوخواکې دبرید لپاره راټول سوو، اعرابو دماتولو په نیت رسول الله ﷺ دیولړ فوځي عملیاتو شروع وکړه، غزاته ولاړی او دغه غزا په تاریخ کې دذات الرقاع په نامه شهرت لري، یاتره سیرت لیکونکي عقیده لري چې دغه غزا په څلورم هجري کال کې پیښه سوی ده خو دابوموسی اشعري رضي الله عنه اوابوهریره رضي الله عنه ګډون په کښې داثر کنده وي چې باید داغزا دخیبر دفتحې وروسته سوی وي، همداوجه ده چې صحیح روایت دابښي چې دغه غزا داووم هجري کال په ربیع الاول کې سوی ده، ددې غزا قصه داسې ده.

چې رسول الله ﷺ ته خبرراغلی چې دغطفان قبیلې دانمار یابني ثعلبه اوبني محارب کورنۍ پرمدینه دبرید لپاره راټولې سوي دي، همدا وه چې د دوی دمقابلې لپاره (۴۰۰یل ۷۰۰) کسه غازیانو په ملګرتیا له مدینې څخه ووتل، ابوذر رضي الله عنه په بل روایت یې عثمان بن عفان رضي الله عنه په مدینه کې خپل خلیفه وټاکی، مخکې ولاړی اوله مدینې څخه ددوو ورځو په مزل لیرې نخل نومې سیمې ته ورسیدی هلته دغطفان قبیلې له یوشمیر کسانو سره مخ سو خو جنګ ونه سو، په همدې غزا کې یې دخوف لمونځ اداکی، امام بخاري رحمه الله له ابوموسی اشعري رضي الله عنه څخه روایت کوي اووایي چې موږ له رسول الله ﷺ سره په یوه غزا کې روان ؤ زموږ شمیره شپږ کسان وه چې په نوبت سره به پریوه اوښ باندې سپریدو، پښې موټپاکې سوی وپرسیدې، زمانوکان ولویدل موږ به خپلې پښې په ټوټوکي پټولې اوله همدې وجې څخه دې غزا ته ذات الرقاع یعني دټوټو اوپیوندو جنګ ویل کیږي ۵۰۲، صحیح بخاري بل روایت له جابر رضي الله عنه څخه نقل کړی دی وایي چې په ذات الرقاع غزاکې رسول الله ﷺ سره ملګري ؤ هرچیري چې به ښه سایه لرونکې درخته راغله هغه به مورسول الله ﷺ ته پرېښووه، یوځل رسول الله تردرختې لاندې تشریف درلودی نوراصحاب په اغزي لرونکو درختو کې سره تیت سول، هرچاځان ته سایه لټوله، رسول الله ﷺ خپله توره په درخته پورې راوځړوله، جابر رضي الله عنه وایي چې موږ ټول بیده سوو، په همدې وخت کې یومشرک راغی درسول الله ﷺ توره یې رااخیستله پرنبي کریم ﷺ یې ږغ وکی چې اوس راڅخه بیریږې که نه؟ رسول

[502] صحیح البخاری ۲/ ۵۹۲، صحیح المسلم ۲/ ۱۱۸.

الله ﷺ وویل الله به مي ساتي ،جابر رضي الله عنه زیاتوي رسول الله ﷺ موږ ته آواز وکی ،ورغلو وینو چې یو اعرابي ورسره ناست دی ،رسول الله ﷺ راته وفرمایل : زه بیده وم اودې سړي زما توره اخیستی وه ،زه په داسي حال کي راویښ سوم چې توره یې په لاس کي راته نیولې وه ،راته وی ویل : چې څوک به دي راڅخه ژغوري ؟ما ورته وویل الله جل جلاله دادی تاسي یې وینی چې اوس زما سره ناست دی ،رسول الله ﷺ هغه اعرابي ته هیڅ هم ونه ویل.

په بل روایت کی راځي چې لمونځ اداسو ،رسول الله ﷺ یوې ډلي اصحابو ته دوه رکعته لمونځ ورکی بیا دا ډله ولاړله او دوه رکعته نورو پاته اصحابو ورپسې اداکړل اورسول الله ﷺ په خپله څلور رکعته لمونځ اداکی خو اصحابو دوه دوه رکعته لمونځ ورپسې وکی.[503]

داعربي قصه ابوعوانه هم راوړی ده په هغه کي راځي چې توره داعرابي له لاسه ولویده اورسول الله ﷺ راپورته کړه ورته وی وفرمایل څوک به دي راڅخه ژغوري ،اعرابي ورته وویل رحم راباندي وکړه ،رسول الله ﷺ ورته وفرمایل :دشهادت کلمه ووایه ،اعرابي وویل عهد درسره کوم چې پرخلاف به دي جنګ نه کوم او نه به له هغه قوم سره ملګرتیا کوم چې ستا پرخلاف جنګیږي ،راوي فرمایي نو رسول الله ﷺ بخښنه ورته وکړه او پري یې ښووی ،هغه ولاړی خپل قوم ته ورغلی او ورته وی ویل زه تاسي ته دټولو انسانانو څخه دغوره شخصیت له طرفه راغلی یم.[504]

امام بخاري رحمه الله وایي چې مسدد له ابوعوانه هغه له ابي بشر څخه روایت کوي چې ددغه اعرابي نوم غورث بن حارث ؤ[505] ،ابن حجر رحمه الله وایي دواقدي د روایت پراساس ددغه اعرابي نوم دعثورؤ او اسلام یې هم راوړی ؤ خو داسي معلومیږي لکه چې دا دواړه دوې بیلي بیلي قصې وی چې په همدې غزاکي واقع سوي دي[506] ،ددې غزا څخه دیرته ستنیدو په وخت کي یوه ښځه دمسلمانانو په اسارت کي راغله ، ددې ښځي میړه قسم وکی چې ترهغو به بیرته نه ګرځی تر څو یې دمحمد

---

[503] صحیح البخاری ۱/ ۴۰۷.
[504] مختصر سیرت الرسول ﷺ.
[505] صحیح البخاری ۲/ ۵۹۳.
[506] فتح الباری ۷/ ۴۴۸.

له اصحابو څخه دیوه وینه ټوی کړی نه وي ،په همدې اساس د شپې له مخه ﷺ
راغی ،رسول الله ﷺ دوو کسانو ته دپیرې امر کړی ؤ ،دا دواړه یو عباد بن بشیر
او بل یې عمار بن یاسر ؤ ،دپیرې په دوران کې هغه وخت دنوموړي مشرک تر برید
لاندې راغلل چې عباد لمونځ کوی پر لمانځه ولاړ ؤ چې مشرک په غشي وویشتی
،هغه غشی له بدن څخه ویستی خو لمونځ یې پرې نه ښووی بیایې په درو نورو غشو
وویشتی خو لمونځ یې پرې نه ښووی ،کله چې یې لمونځ پایه ته ورسوی سلام یې
وګرځوی خپل ملګري یې راویښ کی هغه چې دده دا حالت ولیدی ورته وی وویل
سبحان الله! ولې دې زه نه راویښولم ، عباد رضي الله عنه ورته وویل :ما داسې سورت
تلاوت کوی زړه مې نه منله چې تلاوت نیمګړې پرېږدم.
ددې غزا له برکته دسخت زړه عربانو په زړونو کې بیره ولویده اوله دې وروسته
دغطفان قبیلې دغه کورنیو دسرپورته کولو جرأت ونه کی ،کرار کرار یې څواک
اوبه کېدې ترڅو ټول سلامې سوی اوافراد یې ټول په اسلام مشرف سول ،ځینو
خوبې بیا دمکې په فتحه کې برخه درلوده ،دحنین په غزاکې شریک ؤاودغنیمت له
مالونو څخه یې خپله برخه ترلاسه کړه دمکې له فتحې وروسته رسول الله ﷺ ځینو
کورنیو ته زکوة راټولونکي ولیږل دوی زکاتونه ورکړل په دې ډول سره دکفر مثلث
مات سو ،اوپه ټوله سیمه کې امن ارامې حاکمه سوه ،نور مسلمانانو داتوان
درلودی چې یوځای بل ځای پیښېدونکو کوچنیو مشکلاتو سره په ډېره آسانۍ
مقابله وکړي ،ویلای سو چې ددې غزا په نتیجه کې دلویو لویو ښارونو اوسیمو
فتحه کېدو ته لاره هواره سوه ، له غزا څخه وروسته رسول الله ﷺ داووم هجري
کال ترشوال میاشتې پورې په مدینه کې پاته سوی دی ،په دې موده کې یې
داعسکرې عملیات ترسره کړې دي.

## «اولینه دغالب بن عبدالله لیثي سریه»

د(۷) هجري کال دصفر یاربیع الاول په میاشت کې رسول الله ﷺ غالب په قدید
سیمه کې دبني ملوح مقابلې ته ولیږی ،دې قوم دبشیر بن سوید ملګري په شهادت
رسولي ؤ دغه ډله اصحاب یې له دوی څخه دانتقام په خاطر ور ولیږل دوی ورغلل
دشپې له مخ یې حمله پروکړه یو شمیر یې ووژل حیوانان یې ور څخه راوستل ،په دې

وخت کي دښمن زيات شمير لښکر ورپسې راغی اوپه داسې حال کې چې مسلمانانو ته ډيرنږدې سوی باران وسو اولوی سيل راغی د دواړو لښکرو ترمينځ حايل واقع سو او مسلمانان وتوانيدل چې په بريالیتوب سره په شاتګ وکړي..

**«دويمه: د(۷) هجري کال په جمادی الثاني کې دحسمي سريه»**

ددې پيښې مکمل تفصيل مخکې تيرسويدی.

**«دريمه د(۷) هجري کال دشعبان په مياشت کې تربه ته دعمر بن خطاب ﵁ سريه»**

په دې سريه کې له حضرت عمر ﵁ سره ديرش مجاهدين ؤ، دشپې به يې مزل کوی اود ورځې له خوبه پټيدل خو بيا هم دهوازن قبيلې خلګ ورباندې خبرسول اود دوی له رسيدو مخکې وتښتيدل کله چې حضرت عمر ﵁ ورغی هيڅوک هم په ګوتو ورنه غلل.

**«څلورمه د(۷) هجري کال دشعبان په مياشت کې دبشير بن سعدانصاري ﵁ سريه»**

ده ته وظيفه ورکړل سوه چې فدک ته نږدې پربني مره باندې حمله وکړي، له ده سره هم ديرش کسان ؤورغی تربريد وروسته ديوشمير ثاروي اوپسونه اونور ورڅخه ولجه کړل بيرته راروان سول خو دښمن له خوا تعقيب اوتربدلاندې ونيول سول، جنګ دبشير اوملګرويې تول غشي ختم سول، اوپه دې ترتيب سره له بشير پرته نور تول اصحاب په شهادت ورسيدل، بشير په خپله ټپي حالت کې ځان فدک ته ويستی اوهلته ترهغوپورې پاته سوترڅوزخمونه يې جوړسول بيامدينې ته ستون سو.

**«پنځمه د(۷) هجري کال په رمضان کې دغالب بن عبدالله ليثي ﵁ سريه»**

داسريه دبني عوال اوميفعه کې دبني عبدبن ثعلبه پرخلاف وه، يوبل روايت وايي چې داد جهينه قبيلې دحرقاتت کورنۍ پرخلاف وه، په دې سريه کې (۱۳۰) اصحاب ؤ، تولو پردښمن بريد وکی يوشمير افراد يې ورڅخه ووژل، ډيرپسونه او اوښان يې ورڅخه ونيول، په دې سريه کې اسامه بن زيد ﵁ يوتن چې نوم يې نهيک بن مرداس ؤ وروسته له هغه ووژی چې په خوله يې: لااله الاالله. کلمه وويله، رسول الله ﷺ اسامه ته وويل: آيا تايې سينه چاک کړی وه چې ربنتيا اودرواغ يې درته معلوم سوي وای.

## «شپږم دعبدالله بن رواحه رضي الله عنه سريه»

نوموړي له دیرشو کسانوسره داووم هجري کال په میاشت کي دخیبر په طرف ولیږل سبب يې داؤ چې اسير اوی يابشير بن زرام دغطفان قبیلې خلګ دمسلمانانو ، پرخلاف راټولول ،مسلمانانو اسیر ته دا وښوول چې دخیبر ولایت به ده ته ورکوی ، هم هغه ؤ چې هغه له دیرشو کسانو سره راووتی او روان سو ،کله چې دقرقرة ینمار سیمي ته ورسیدل د دواړو ډلو ترمینځ سوو تفاهم رامنځ ته سو او په نتیجه کي يې اسیرسره له ټولو ملګرو ووژل سو .

## «اووم دبشير بن سعدانصاري سريه»

داووم هجري کال په شوال میاشت کي په یمن اوجبار کي دمیشتو اعرابو پرخلاف چې دغطفان قبیلې سیمه وه دري سوه مسلمانان ولیږل سول ددې لښکر وظیفه داوه چې له هغي ډلي سره مقابله وکړي کومه چې دمدینې پرځنډو يې دحملې لپاره تیاري نیوله ، مسلمانان دشپې روان اود ورځي به يې کمین نیوی ، کله چې کفارو دبشير له راتګ څخه خبرسو وتښتیدل ،مسلمانانو ډيري ولجی ونیولی ، دوه کسانو يې هم ورڅخه بندیان کړل ،مدینې ته يې راوستل ،هلته دواړو اسلام راوړی

## «اتم : دابي حدرد اسلمي رضي الله عنه سريه»

ابن قیم رحمة الله علیه وایي چې داپه اووم هجري کال کي له عمرة القضاء څخه مخکي وه ،لنډيز يې داسی دی چې دجشم بن معاویه قبیلې یوسړی له ډیرشمیر لښکرو سره غابه ته راغی او غوښتل يې قیس دمسلمانانو پرخلاف را وپاروی ، همدا وه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم يې مقابلې ته ابوحدرد ولیږی ، له ده سره دوه سوه کسان ؤ ،ابوحدرد له ډيري حکیمانه استراتیژي څخه کار واخیستی اودښمن ته يې بې ساره ماته ورکړه ،ډیر اوښان اوپسونه يې ورڅخه ولجه کړل .[٥٠٧]

## «دقضاء سوي عمره اداکول»

حاکم وايي داخبره په تواتر سره ثابته ده چې کله دذی القعدې میاشت رانوی سوه رسول الله صلی الله علیه وسلم خپلو اصحابو ته امروکی چې دقضاء سوی عمري داداکولو لپاره

---

[٥٠٧] زادالمعاد ٢/ ١٤٩، ١٥٠.

ځانونه تيار کړي ،چا چې په حديبيه کې برخه درلوده هغه ټول به ځي هم داوه چې ټول روان سول ،په حديبيې کې له ګډون کوونکو سربيره څه نور اصحاب هم دعمرې په نيت ووتل ،دټولو شميره دښځو او کوچنيانو پرته دوه زره کسان ؤ ،[508] رسول الله ﷺ په مدينه کې عويف ابارهم غفاري (رضي الله عنه) خليفه وټاکی ، شپيته څاروي يې ورسره روان کړل ، اوناجيه بن جندب اسلمي يې پردې وګومارله چې ددې اوښانو پالنه وکړي ، رسول الله ﷺ له ذی الحليفه څخه احرام وتاړه ، تلبيه يې وويله ،مسلمانانو هم دده مبارک پيروي وکړه ،تلبيه ويونکي ورپسې روان ؤ،رسول الله ﷺ دجنګ لپاره امادګي نيولی وه ،وسله يې ورسره اخيستي وه،ځکه دقريشو له خيانت څخه يې بيره درلوده ،خوکله چې ياجج نومي سيمي ته ورسيدی ټولو وسلې لکه ډالونه،نيزې،غشي يې هم دلته کښيښوول داوس بن خول انصاري ترمشري لاندې يې يو دوه سوه کسيزه ډله د وسلو پرساتنه مکلفه کړه اوخپله نورو مسلمانانو سره چې يوازې توري ورسره وی هغه هم په تيکو کې مخ په وړاندې ولاړی[509] رسول الله ﷺ مکې ته داخليدو په وخت کې پرخپله قصواء نومي اوښه سپور ؤ،مسلمانانو توري په لاس درسول الله شاوخواته روان ؤټولوتلبيه ويله اومکې ته داخل سول ،مکې ته دمسلمانانو دداخليدو په وخت کې مشرکان دکعبې شريفې شمال ته پراته قعيقعان نومي غره ته ولاړل ، له هغه ځای يې مسلمانانوته کتل ،يوبل ته يې ويل اوس به داسي کسان راځي چې ديثرب تبويې زور ايستلی دی ،همداوجه وه چې رسول الله ﷺ مخکې لاخپلو اصحابو ته امرکړی ؤچې دطواف په لومړيو درو دورو کې اوږی واچوی اوچستې اوچالاکې سره طواف اداکی ،ددې امرحکمت داؤ ترڅو مشرکان ووينې چې مسلمانان زور اوقوت لري[510]،همداډول رسول الله ﷺ امرکړی ؤ چې داحرام په دوران کې ټول راسته اوږه لڅه پريږدي ، رسول الله ﷺ مکې ته له هغو کنډو څخه داخل سو چې لاريې حجون ته رسيده ، مشرکان په صفوکې ولاړ ؤ،اورسول الله ﷺ ته يې کتل ،تلبيه ويله راغی حجر

---

[508] فتح الباري ٧/ ٢٧٠.
[509] زادالمعاد ٢/ ١٥١.
[510] صحيح البخاری ١/ ٢١٨.

اسود يې مچ کې طواف يې وکې مسلمانانو هم طواف کوې ،عبدالله بن رواحه ﷺ په داسي حال کي درسول الله ﷺ مخ ،مخ ته روان ؤ چې توره يې په لاس اولاندني اشعاريې زمزمه کول.

خلوبنى الكفار عن سبيله .... خلوا فكل الخير فى رسوله

قدانزل الرحمن فى تنزيله .... فى صحف تتلى على رسوله

يارب انى موومن بقيله ... انى رأيت الحق فى قبوله

بأن خير القتل فى سبيله ... اليوم تضربكم على تنزيله

ضربايزيل الهام عن مقيله .... ويذهل الخليل عن خليله[511]

ژباړه :اې دکفارو زوزاته! دده لاره پرېږدي ،لاره يې پرېږدي چې ټول خير دالله په رسول کي دی ،رحمن رب په خپل کتاب کي نازل کړيدی ،يعني په هغه صحيفو کي چي دده پر رسول يې تلاوت کيږي ،اې ربه!زه دهغه په قول ايمان لرم ،اوددې خبرې منل حق بولم ،ګوزارونه کوو داسي ګوزارچي ککرې پرېکوي اوداسي ګوازارچې دوست له دوست څخه غافل اوبې خبره کرځوي.

دانس ﷺ په روايت کي راغي چې عمر ﷺ وويل اې ابن رواحه !درسول الله ﷺ په وړاندي اوپه حرم شريف کي شعروايي.دطواف په درو لومړيو دورو کي رسول الله ﷺ اومسلمانانو په قوت اوچالاکي کي سره اوږي پورته کولې ، کله چې مشرکينو په دې حالت کي وليدل نويو بل ته يې وويل :داخلک چې موږ ګمان کوی چې تبې وهلي اوکمزوري سوي دي ،ګوری دوی ترهرچا پياوړي اوچالاک دي[512] ،په طواف پسې يې دصفا اومروه ترمنځ سعي وکړه ،بيايې هغه ځای ته وکتل چيري چې دذبحې اوښان درول سوي ؤ ،وی فرمايل : دادنحر (قرباني) ځای دی دمکې هره کنده دنحر ځای دی ، په همدې ترتيب سره يې له مروه سره نژدې قرباني وکړه اوهم الته يې سروخروی ، مسلمانانو هم دخپل رهبر پوره متابعت اوپيروي کوله ، بيايې

---

[511] دشعرونو ترتيبت زموږ داپه دې ډول دی ليکن په نورو کتابونو کي دهمدې ترتيب څخه توفيرلري.

[512] الترمذي ٢- ١٠٧

يوه ډله خلک ياجج ته وليږل ترڅو هلته دوسلې ساتنه وکړي اوپه هغه ځای کي توظيف سوي خلک مکې ته راسي اوخپل دعمرې مناسک اداکړي.
رسول الله ﷺ درې ورځي په مکه کي پاته سو، په څلورمه ورځ سهار کفار ورته راغلل او اصحابو ته يې وويل: چې خپل رهبر ته وواياست چې موږ پوره سوي همداوه چې رسول الله ﷺ له مکې څخه ووتی او ولاړی په سرف نومي سيمه کي يي واړول، هغه وخت چي رسول الله ﷺ له مکې څخه روان سو، دحمزه رضي الله عنه لور ورپسې روانه سوه، چيغي يې پسې وهلې چې اې زماکاکا! اې کاکا! علي رضي الله عنه په غير کي ونيوله په دې وخت کي علي رضي الله عنه جعفر رضي الله عنه اوزيد رضي الله عنه ترمنځ ورباندي دعوه سوه، هريوه غوښتل چې له ځان سره يې بوزي خورسول الله ﷺ داسي فيصله وکړه اوامريې وکی چې داانجلۍ به له زيد رضي الله عنه سره وي ځکه ددې انجلۍ خاله دزيد رضي الله عنه ښځه وه، په همدې سفر کي رسول الله ﷺ له ميمونه بنت حارث عامريه سره واده وکړی، رسول الله ﷺ مکې ته له داخليدو څخه مخکي جعفر بن ابي طالب رضي الله عنه حضرت ميمونه رضي الله عنها ته ورليږلی ؤ، هغې خپل صلاحيت حضرت عباس رضي الله عنه ته سپارلی ؤ ځکه ددې خور أم الفضل رضي الله عنها دحضرت عباس رضي الله عنه ښځه وه، عباس رضي الله عنه فيصله وکړه چې ميمونه رسول الله ﷺ ته په نکاح کړی او کله چي له مکې څخه روان سو، نوابورافع ته يې وظيفه ورکړه، چې ميمونه رضي الله عنها ورته راولي، همداوه چي نکاح وسوه اوپه سرف سيمه کي مبارک واده ترسره سو،[513] دغي عمرې ته ځکه دقضاء عمره وايي چي دادحديبيې دعمرې قضاء وه او ويا داچي داعمره دحديبيې دصلح دتړون مطابق ترسره سوه، زياترو همدا دويمه وجه تائيد کړې ده[514]، ددې عمرې څلور نومونه دي قضاء، قضيه، قصاص اوصلح.[515]

## «څلورنوي سريې»

**اول: دابي عوجاء رضي الله عنه سريه**: داووم هجري کال په ذی الحجه مياشت کي رسول الله ﷺ ابوعوجاء دپنځو سوکسانوپه مشري بني سليم ته وليږی، ترڅو دوی اسلام ته راوبولي، دوی په جواب کي ورته وويل موږ اسلام ته ضرورت نه لرو، په

---

[513] زادالمعاد ٢/ ١٥٢.
[514] زادالمعاد فتح الباري ٧/ ٥٠.
[515] فتح الباری.

نتیجه کې سخت جنګ وسو، ابوعوجاء رضي الله عنه ټپي سو او له دښمن څخه دوه کسان بندیان سول.

**دویم: دغالب بن عبدالله رضي الله عنه سریه:** داووم هجري کال په صفر میاشت کې غالب بن عبدالله د دوو سوو کسانو په مشري دفدک هغې سیمي ته ولیږل سو چیري چې دبشیر بن سعد ملګری په شهادت رسیدلی ؤ، دوی د دښمن څه افراد ووژل او یو شمیر حیوانان یې ورڅخه ونیول.

**دریم: دذات اصلح رضي الله عنه سریه:** داتم هجري کال په ربیع الاول میاشت کې بنو قضاعه پر مسلمانانو دبرید لپاره زیات شمیر کسان راټول کړی ؤ، رسول الله ﷺ دکعب بن عمیر انصاري رضي الله عنه په مشري پنځلس کسان ور ولیږل، دوی له دښمن سره له مخامخ کېدو وروسته داسلام بلنه ورکړه خوهغو د دوی دعوت ونه مانی، جنګ شروع سو په نتیجه کې ټول مسلمانان په شهادت ورسیدل، یوازي یو سړی د شهیدانو له منځ څخه ژوندي را ووتی او یارا ویستل سو او بس.[516]

**څلورم: دذات عرق سریه:** داتم هجري کال په ربیع الاول میاشت کې دبني هوازن پرخلاف وه، بني هوازن به وخت ناوخت د مسلمانانو له دښمنانو سره مرستي کولی. همداوه چې رسول الله ﷺ شجاع بن وهب اسدي رضي الله عنه له پنځه ویشتو کسانو سره د دوی مقابلې ته ولیږی، دوی ولاړل او له دښمنانو څخه یې زیات څاروي ولجه کړل او روغ رمټ بیرته راغلل.[517]

## «اتم هجري کال دمؤته جنګ»

دمؤته جنګ ترټولو سخت جنګ ؤ په دې جنګ کې زیاته مرګ ژوبله سوې ده، درسول الله ﷺ په ژوند کې داترټولو ستره خونړیز جنګ ؤ، همدا جنګ دنصرانیانو دسیمو او هیوادونو دفتحې او نیولو شروع وه، داجنګ داتم هجري کال په جمادي الاول چې د(٦٢٩)کال دستمبر یااګست له میاشتې سره سمون خوري واقع سوی دی، مؤته چې دمیم په پیښ او همزه په سکون سره وویل کیږي، دشام په لاندنی برخه بلقاء کې پرته یوه سیمه ده، ددې ځای او بیت المقدس ترمینځ ډیره فاصله نسته

---

[516] رحمة للعالمين ٢٣١.

[517] رحمة للعالمين تنقيح فهوم الاثر ص ٣٣.

## «د ذکر سوي جنګ سبب»

ددې جنګ سبب دادی چې رسول الله ﷺ دحارث بن عمیر ازدي رضي الله عنه په لاس دبصرې واکمن ته لیک ولیږی ،دلاري په اوږدو کې دقیصر له طرفه دبلقاء حاکم شرحبیل بن عمرو غساني لاره ورته ونیوله ، هغه یې ونیوی اوپه شهادت یې ورسوی ، دسفیرانو وژل ډیر لوی جرم بلکه دجنګ داعلان په معنی ؤ،رسول الله ﷺ په دې سره ډیر په غصه سو سمدستي یې درې زره کسیزه لښکر تیار کړی ؤ[518]،له احزاب غزاپرته په هیڅ یوه غزاکي هم دومره زیات شمیر غازیانو برخه نه وه اخیستی

## «دلښکر مشران اودسیدالبشر ﷺ هدایات»

رسول الله ﷺ ددې لښکر مشري زید بن حارثه رضي الله عنه ته وسپارله اووی فرمایل : چې که زید شهیدسو نوپرځای به یې جعفر رضي الله عنه قومندان وي که هغه هم شهید سو نوعبدالله بن رواحه رضي الله عنه به دغه دنده په غاړه اخلي[519]، دوی ته یې سپین بیرغ ورکی اوزید بن حارثه رضي الله عنه ته یې وسپاری ،رسول الله ﷺ لښکر اومشرانوته یې داسي هدایت وکی لومړی به دحارث بن عمیر رضي الله عنه دشهادت ځای ته ورسی ،له هم هغه ځای به خلک اسلام ته راوبولی که یې اسلام راوړی نوښه اوکه نه نودالله په توکل سره حمله پروکړی ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : دالله په نامه سره دالله په لارکي دکفارو پرخلاف وجنګیږی ،غدر اوخیانت مه کوی عهدمه ماتوی ،کوجنیان ،ښځي سپین ږیري اوپه عبادت بوخت راهبان مه وژني درختي اوبوټي مه پرېکوی کلي اوکورنه مه نړوی .[520]

## «دلښکر سره رخصت اخستل اودعبدالله بن رواحه رضي الله عنه ژړا»

لښکر تیارسو خلک راټول سول ، درسول الله ﷺ له خواټاکل سووقومندانانوسره یې په مخه ښه وکړه ، په دې وخت کې عبدالله بن رواحه رضي الله عنه خپلي اوښکي سمبال نه کړی وی ژړل : سوال ورڅخه سو ولي ژاړی ؟عبدالله بن رواحه رضي الله عنه وویل قسم په خدای په دنیا پسې نه ژاړم ستاسي څخه دجدایي په سبب هم ژړانه کوم ،دژړا سبب

---

[518] زادالمعاد ٣/ ١٥٥.
[519] صحیح البخاری ٢/ ٦١١.
[520] رحمة للعالمین ٢/ ٢٧١.

مي دادی چي ماله رسول الله ﷺ څخه دقرآن کريم تلاوت اوربدلی دی چي په يوه آيت کي يې د دوږخ يادونه راغلی ده او داسي فرمايي :

وَإِن مِّنكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا كَانَ عَلَىٰ رَبِّكَ حَتْمًا مَّقْضِيًّا .سورة مريم آيت (٧١) **ترجمه** :ستاسي هريو به دوږخ ته داخليږي دادالله حکم او فيصله ده نه پوهيږم چي يوځل دي اور ته داخل سم بيابه څنګه ورڅخه ووزم ؟مسلمانانو ورته وويل خدای پاک مو مل سه ،الله مو ساتندوی سه ،الله ﷻ مو بيرته سالم اوغانم راوله ،په جواب کي عبدالله بن رواحه ؓ داشعروواېه :

لکننی أسأل الرحمن مغفرة ..... وضربة ذات قرع تقذف الزبدا

اوطعنة بيدی حران مجهرة ..... بجربة تنفذا الاحشاء والكبدا

حتی يقال اذامروا علی جدثي ..... ياأرشد الله من غاز وقدر شدا

**ترجمه** :خوزه له رحمن رب څخه دمغفرت سوال کوم ، ورڅخه غواړم چي هډوکي ماتونکي اوماغزه شيندونکي ګوزار مي په برخه کړی ،يادداسي نيزه باز وارغواړم چي ينه اوکولمې مي پريکړي ،ترڅ، چي خلک مي پرقبر تيريږي نووايي دادهغه غازي قبر دی چي الله هدايت ورته کړی دی اوپرنيکه لار برابرۇ ، په دې پسې لښکر روان سو رسول الله ﷺ په خپله تر وداع نومي سيمي غوښدې پوري ورسره ملګری ۇ ،هلته ودريدی اوپه مخه ښه يې ورته وويله .[521]

## «اسلامي لښکر / په مقابل کي يه دوه لکه لښکر»

درسول الله ﷺ داصحابو دالښکر روان سو دشمال په طرف ترمعان پوري مخ ته ولاړی ،دغه سيمه دشمال حجاز سره نژدی پرته ده ،هلته استخباراتو خبر ورته راوړی چې هرقل دبلقاء پرمآب نومي نطقه کي له (١٠٠٠٠٠) لښکر سره ځای پرځای سوی دی اويولک نورکسان دنورو قبايلو کله لخم ،جذام ،بلقين، بهراء اوبلی هم ورسره يو ځای سوي دی .

[521] ابن هشام ۲/ ۳۷۳.

## «په معان کې مشورتي جرګه»

مسلمانان له دومره لوی لښکر سره دمقابلې تیاري نه درلوده ،دوی ته داحالت ناڅاپه اونابېره پېښ سوی و ،مسلمانان حیران و چې دا درې زره کسیز لښکر به څه ډول پر دوه لکه لښکر حمله کوي ؟دوې ورځي په معان کې پاته سول ، مشورې یې کولې یوځل یې وویل راځی رسول الله ﷺ ته خط ولیږو ،ددښمن دلښکر په هکله خبرورکوو، هغه به یانور کسان راولیږي اویابه څه هدایت راکړي اوموږ به یې عملي کړو ، عبدالله بن رواحه رضي الله عنه ددې نظریې مخالفت وکی ،خلک یې وهڅول وی ویل اې ملګرو !تاسي چې له څه څخه بیره لري داهم هغه شهادت دی چې په لټه کې یې تردې ځایه راغلي یاست ،جنګ خودافرادو په ډیرښت اوقوت نه دی موږ خو په اسلام ورسره جنګیږو ، توکل پرخدای جل جلاله وکړی ملاوي وتړی یابه بریالي سی او یا به موشهادت په برخه سي په پای کي ټولو همدا دعبدالله بن رواحه رضي الله عنه رایه ومنله اودمقابلې پرېکړه وسوه.

## «داسلامي لښکر لطرفه پر دښمن ناتار»

اسلامي لښکر دوې ورځي په معان کې پاته سو ،وروسته یې ددښمن په طرف حرکت وکی اود بلقاء سیمي په مشارف نومي کلي کي دهرقل له سپاهیانو سره مخ سو ، دښمن مخکي راغی مسلمانان دمؤته خواته کاږه سول اوهلته یې سنګرونه ونیول ،دجنګ تیاري یې ونیوله ،دمیمنې (راسته اړخ) مشري یې قطبه بن قتاده عذري رضي الله عنه اودچپه اړخ قومنده یې عباده بن مالک انصاري رضي الله عنه ته ورکړه.

## «دجنګ پیل / شروع»

په مؤته کي دواړي لښکري سره مخامخ سوی سخت جنګ ونښتی درې زرو مسلمانانو د دوو لکو (۲۰۰۰۰۰) جنګ مارانو مقابله کوله ،عجیبه صحنه اوسخت جنګ و خودایمان قوت تاریخونه جوړوي ،بیرغ دزیدبن حارثه رضي الله عنه په لاس کي و،په ډیره میړانه جنګیدی ترهغوپوري یې پردښمن حملې کولې.ترڅو ددښمن په نیزو سوری سوری سو اودشهادت جام یې نوش کی ، په ده پسې جعفربن ابي طالب رضي الله عنه بیرغ پورته کی په بې ساري توګه وجنګیدی کله چي جنګ ډیرتوند سونوله خپل سره تورېخون اس څخه کښته سو دهغه پښې یې ووهلی جنګ ته یې ادامه

ورکړه ترڅو راسته لاس یې پرې شو ،بیرغ یې په چپه لاس کې ونیوی ترڅو چپه لاس یې هم پرې سو ،ترڅو وروسته یې بیرغ په خپلو دواړو پرې شوو لاسونو پورته نیولی ؤترڅو په شهادت ورسیدی ،په یوه روایت کې راځي چې یوه رومي داسي واري پروکی چې دوې ټوټې سو ،الله تعالی دده د دواړو لاسونو په عوض کې په جنت کې ده ته دوه زره وزرونه ورکړل چیري چې یې زړه وي هلته به الوځي ،همدا وجه ده چې په جعفر طیار یا جعفر ذی جناحین سره شهرت لري ،امام بخاري رحمه الله له نافع څخه روایت کوي چې ابن عمر رضي الله عنه ته ده ویلي دی چې د جعفر رضي الله عنه له شهادت څخه وروسته زه دده جسد ته ودرېدم ،پنځوس ټپونه یې خوړلی ؤ خویو ټپ یې هم پرشانه ؤ لګیدلی ټول زخمونه یې پرسینه خوړلي ؤ .[522]

په بل روایت کې راځي چې ابن عمر رضي الله عنه وایي چې زه په دې غزا کې حاضر وم ،د جعفر رضي الله عنه په لټون کې وم چې د شهیدانو په مینځ کې مو پیدا کی او وموليدی چې تراویا (٧٠) زیاته زخمونه یې خوړلي دي[523] او دالعمري په روایت کې داهم سته چې داټول ټپونه یې پرسینه ؤ[524] کله چې جعفر بن ابي طالب رضي الله عنه له دې بې ساري اواتلانه جنګ وروسته په شهادت ورسیدی نو بیرغ عبدالله بن رواحه رضي الله عنه پورته کی پرخپل آس سپور ؤ ،د دښمن په طرف ورغلی ،د حملې تیاري یې کوله ،په دې وخت کې څه متردد غوندي سو ،آس یې هم لږ کوم سو خوسمدستي یې داشعرونه ووایه :

أقسمت يانفس لتنزلنه ... كارهة اولتطاوعنه

ان أجلب الناس وشدا الرنة ... مالي أراك تكرهين الجنة

**ترجمه**: اې نفسه! قسم دي چې حتما به مقابلې ته ور وځغلی ،په خفګان وی که په خوشحالی دابه کیږي ،که خلکو جنګ شروع کی او نیزې یې نیولي دي تاله جنت څخه په تیښته کې وینم بیایې د مقابلې میدان ته ور ودانګلو په دې وخت کې یې داکازوی یوله غوښو ډک هډوکی ورته راوړی وی ویل : داواخله څه ناڅه ځان په

[522] صحيح البخارى ٢/ ٦١١.
[523] صحيح البخارى ٢/ ١١٦.
[524] صحيح البخارى ٢/ ١١٦

تقویه کړه داځوورځي ډیر کړېدلی یې ،ده هلوکی ورڅخه واخیستی یوکپ یې وکی نوریې وغورځوی ،توره یې پورته کړه اوپه جنګ بوخت سو ترهغو په میړانه وجنګیدی ترڅوپه شهادت ورسیدی.

## «داسلام بیرغ دسیف الله (خالدبن ولید رضی الله عنه) په لاس»

په دې وخت کي دبني عجلان یوغړی چې ثابت بن ارقم رضی الله عنه نومیدی رامخ ته سو بیرغ یې پورته کی غږ یې وکی اې مسلمانانو !یوڅوک خپل مشر وټاکی ،دوی ورته وویل هم داته مومشرې ده وویله وه زه داکار نه کوم ، بالاخره ټول پرخالد بن ولید رضی الله عنه باندې راضي سول خالد رضی الله عنه بیرغ پورته کی سخت جنګ یې وکی ، امام بخاري رحمه الله علیه روایت څني کوي او وایي چې دمؤته په ورځ زما په لاس کي دوی توري ماتي سوی ،په پای کي یوازي یوه نیمایي کوچني توره راپاته سوه [٥٢٥]، دمؤته په ورځ مخکي تردې چې څه خبر راسي رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دوحي په ذریعه خبرورکړل سو اوهغه داسي وفرمایل : دجنګ په میدان کي زید رضی الله عنه په شهادت ورسیدی بیابیرغ جعفر رضی الله عنه پورته کی هغه هم شهید سو ،بیاعبدالله بن رواحه رضی الله عنه بیرغ پورته کی هغه هم په شهادت ورسیدی ، رسول الله صلی الله علیه وسلم داخبري کولی اوله مبارکو ستر ګو یې اوښکي راوني وې ،زیاته یې کړه بیابیرغ سیف الله (خالدبن ولید رضی الله عنه) پورته کی اودهم ده په لاس دمسلمانانو بری په برخه سو. [٥٢٦]

## «دجنګ پای/ اخر»

که څه هم مسلمانان بې ساری مقاومت کوي اوپه ډیره میړانه جنګیدل خوبیاهم دا تصور کمزوری ښکاره کېدی چې بری به هم د دوی په برخه وي ځکه ددښمن په وړاندي ددوی شمیر ډیر کم اووسایل یې ډیر لږ ؤ خوخالد بن ولید رضی الله عنه خپل مهارت اوحکمت په کار واچوی او مسلمانانو ته یې نجات ورکی ، ددې جنګ دپایلي په اړه مختلف روایتونه راغلي دي ،له صحیح روایاتو څخه داڅرګندیږي چې خالد رضی الله عنه ټوله ورځ ددښمن مقابله وکړه خوایې ضروري ګڼله چې باید له یوې کامیابي استراتیژي څخه ګټه واخلي ترڅو مسلمانان نجات پیداکړي ، او کفار داسي وبیرول

---

[٥٢٥] صحیح البخاری ٢/ ١١٦.
[٥٢٦] صحیح البخاری ٢/ ١١٦.

سي چې دمسلمانانو دتعقیب جرأت هم ونه کړي ، ځکه هغه پوهیدی که چیري مسلمانان دعقب نیشیني په وخت کي د دوی تر وار لاندي راسي نوبیابه یې ژغورل ممکن نه وي ،همداوه چې دجنګ په دویمه ورځ یې جنګي استرتیژي بدله کړه ، دمقدمي (مخ) سپاهیان یې په شاکي ودرول ، دمیمني او میسري کسان یې هم سره بدل کړل کله چې ددښمن سره مخامخ سول نوکفارو فکر وکی چې داخولکه چې نوي کسان راغلي دي یوځل یې په زړونو کي بیره پیدا سوه،دښمنان د بیري اوتشویش په حالت کي وُ چې خالد رضي الله عنه د ورو وروعقب نشیني یاپرشاتګ امر وکی ، دوی داسي پرشاتګ کوي چې دلښکر په تنظیم کي هیڅ بدلون نه لیدل کېدی ، رومیان هم نه ورپسې راتلل ځکه دوی داګومان کوی چې لکه چې مسلمانان چم ورسره کوي ،غواړي رومیان دصحراپه طرف بوزي اوهلته یې حساب تصفیه کړي ،په دې ترتیب سره دښمن پرشا سو او دمسلمانانو په تعقیب پسې یې هیڅ هڅه ونه کړه او مسلمانان په دې وتوانیدل چې روغ رمټ مدینې ته بیرته راسي .[٥٢٧]

## «د مسلمانانو دشهیدانو او کفارو د مړو شمیره»

په دې جنګ کي دوولس مسلمانان په شهادت ورسیدل دکفارو دمړو شمیره پوره معلومه نه خوداسي ښکاري چې له هغو څخه به زیات کسان وژل سوي وي .

## «دجنګ اغیزي / اثرات»

که څه هم مسلمانانو له دې جنګ څخه مطلوب هدف ترلاسه نه کړ او خپل کسات یې وانه خیستی خوبیایې هم د دوی لپاره ګټور اثرات درلودل ، په دې سره ټول عرب بیري اوډار ونیول ، دمسلمانانو رعب پرولویدی،هغه وخت رومیان ستر ځواک وُ، عربو ګومان کوی چې له دوی سره ټکر یعني بربادي اودځان وژنه ده ،له دوو لکو (٢٠٠٠٠٠)عسکرو سره د درې زرو مسلمانانو مقابله یوه بې ساري مقابله وه ، چې د تاریخ له عجایبو څخه ګڼل کیږي ، دې جنګ داثابته کړه چې مسلمانان هسي نه دي لکه څرنګه چې عربانو اورومیانو تصور کوی ،له دوی سره دالله تعالی مرسته مل ده ،همداوجه وه چې تردې جنګ وروسته ډیري سرکښې قبیلې اسلام ته سلامي سوې ،بنوسلیم اشجع، غطفان ،خزاره اوذبیان قبیلې په اسلام مشرفي سوې همدغه

---

[٥٢٧] فتح الباري ٧/ ٥١٣، زادالمعاد ٢/ ١٥٦.

جنګ له بلي خوا له رومیانو سره ډلو یو خونړیو جنګو شروع وه او په پای کي د همدې
جنګ له برکته د رومیانو ډیر ښارونه فتحه سول .

## «د ذات سلاسل د سریه بیان»

کله چي رسول الله ﷺ د شام په غاړو کي د پرتو عربي قبایلو په اهدافو او درځ پوه
سو او وی ولیدل چي دغه قبیله په جنګ کي د مسلمانانو پرخلاف د رومیانو خواته
ودرېدلې نو داضروي ورته ښکاره سوه چي د رومیانو پرخلاف دومره لوی ائتلاف
جوړنه سي ، نبي کریم ﷺ د دې کار د عملي کولو لپاره عمرو بن العاص غوره کی
ځکه د ده مور له بلي قبیلې ښځه وه ، داتم هجري کال په جمادي الاخرة کي یې دوی
ته واستاوه ترڅو همکاري یې جلبه کړي ، په یوه روایت کي خولا دا راځي چي مدینې
ته خبرو رسیدی چي د قضاعه قبیلې خلک راټول سوي او د مدینې په طرف راتلل
غواړي ، نو رسول الله ﷺ عمرو رضي الله عنه ته وظیفه ورکړه چي دوی ته ورسي او خبري
ورسره وکړي ، کېدای سي هم دا دواړه سببونه سره یوځای سوي وي ، رسول الله ﷺ
حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه ته سپین بیرغ ورکی ، یوه یې بله توره هم ورکړه درې
سوه مخور مهاجرین او انصاریې د ده تر قومندې لاندي ورکړل ، له دوی سره دیرش
اسونه هم ؤ ، امریې ورته وکی چي له بلي ، عذره او بلقین قبیلې څخه مرسته و
غواړي ، عمرو رضي الله عنه روان سو ، د شپې به یې مزل کوی او د ورځي له خوا به یې یوځای
کمین نیوی او کله چي دوی ته ورنژدی سو نو خبر سو چي د دښمن شمیره ډیره زیاته ده
، رسول الله ﷺ ته یې د رافع مکیث په لاس احوال ولیږی او د نوري مرستي غوښته
یې ورڅخه وکړه ، رسول الله ﷺ په جواب کي ابو عبیده بن جراح رضي الله عنه له دوو سوو
کسانو سره د هغه مرستي ته ولیږی بیرغ یې ورکی ، په دې ډله کي مشهور اصحاب
لکه ابوبکر رضي الله عنه عمر رضي الله عنه هم شامل ؤ دوی ته یې امر وکی چي ولاړ سي او له عمرو
سره یوځای سی ، هدایت یې ورته وکی چي ټول به یو موټ او سیږی اختلاف به نه
کوی کله چي دوی هلته ورسیدل ابو عبیده رضي الله عنه اراده وکړه چي په لمانځه کي د خلکو
امامت وکړي خو عمرو رضي الله عنه ورته وویل امیر زه یم ، ته خومي مرستي ته راغلی یې
هم داوه چي ابو عبیده رضي الله عنه هم د ده خبره ومنله ، اطاعت یې وکی او عمرو رضي الله عنه به په
لمانځه کي د خلکو امامت کوي ، اسلامي لښکر د قضاعة ترسیمي پوري مخ ته

ولاړی ،د دوی د سیمي لیري لیريّ ځایونو ته ورغلل ، هلته له یو شمیر کسانو سره مخ سول ،حمله یې پر وکړه خو د دښمن ټول افراد وتښتیدل تیت اوپرک سول ،عوف بن مالک اشجعي له خپل اړخه رسول الله ﷺ ته مکمل حال ولیږی او هغه په ټول تفصیلاتو خبر کی ،ذات السلاسل دلومړي سین په پیښ یا زور سره لوستل کیږي ،دادیوې سیمي نوم دی چې دقری وادي شاته اوله مدینې څخه دلسو ورځو مزل په اندازه لیري پرته ده ، ابن اسحاق وایي چې مسلمانانو دجذام په سیمه کي له سلسل نومي چیني سره واړول اوله همدې کبله دې جنګ ته ذات السلاسل وایي .[528]

## «دابوقتاده ﷺ دسریه بیان»

دادا تم هجري کال دشعبان په میاشت کي وه ،سبب یې داؤ چې بني غطفان په خضره نومي سیمه کي چې په نجد کي پرته اوپه محارب قبیلې پوري مربوطه وه راټول سوي ؤ رسول الله ﷺ ددوی مقابلې ته ابوقتاده ﷺ له پنځلسو کسانو سره ولیږی ،دوی ولاړل له دښمن څخه یې څه کسان ووژل ،څه یې بندیان کړل ،غنیمتونه یې ترلاسه کړل دوی سفر ټول پنځلس ورځي ؤ .[529]

## «دمکې مکرمي فتحه»

ابن قیم رحمة الله علیه وایي چې دمکې فتحه هغه لویه سوبه وه چې الله تعالی دخپل دین ،رسول الله ﷺ او مؤمنو بندګانو دعزت اوله کفارو څخه یې دخپلې خوني اووطن دآزادي سبب وګرځوله ،داهغه سوبه ده چې دآسمان اوسیدونکي پرې خوښ سول ،له برکته یې ډلي ډلي خلګ په اسلام مشرف سول او دمځکي مخ یې په نور روښان اورڼا کی .[530]

## «دغزا سبب اوعلة»

مخکي موو ویل چې دحیبیې دصلح دتړون یوه ماده داوه چي عربي قبایل اجازه لري اوکولای سي چې په خپله خوښه له حضرت محمد ﷺ اویاقریشو سره تړون وکړي ،تر تړون وروسته هم داقبیله دهغه یو اړخ یا برخه بلل کیږي، اوتیري وربانديد دصلح له تړون څخه مخالفت اوپرهم هغه بله ډله تیری شمیرل کړي ،دهمدې مادې

---

[528] ابن هشام ٢/ ٦٣٢.
[529] رحمة للعالمین ٢/ ٢٢٣.
[530] زادالمعاد ٣/ ١٦٠.

پراساس خزاعه له حضرت محمد ﷺ اوبنوبکر له قریشو سره تړون لاسلیک کی ،اوپه دې ترتیب سره دا دواړې قبیلې یودبل له تیرې اوجنګ څخه په امن سول ،د دوی ترمینځ زړه دښمني وه ،داسلام له برکته د دوی ترمینځ اوربند وسو په دې وخت کې بنوبکر یوځل بیا دکسات په فکرکې سول ،داتم هجري کال دشعبان په میاشت کې نوفل بن معاویه دیلی دبنوبکر له یوشمیر کسانو سره دشپې له مخه پر خزاعه باندې شبخون وکی ،له وتیر نومې چنیې سره یې د دوی یو شمیرکسان ووژل ، دجنګ اوربل سو دجنګ په دوران کې قریشو له بنوبکر سره مرسته وکړه ، وسلې یې ورکړې ،دشپې یې څه جنګیالان هم ور ولیږل ،په نتیجه کې بنوخزاعه مجبورسول چې حرم ته پناه یوسي ،هلته خلګو نوفل ته وویل دادی موږ حرم ته داخل سوو ،زموږ اله ستاسي اله دی ،نوفل ډیره غټه اودکفر خبره وکړه وی ویل : اې دبنوبکر نن اله نسته ، خپل وار اوکسات واخلی ،قسم په خدای چې تاسي په حرم کې دننه غلا کوی ،نوخپل انتقام ولې نه اخلی ، خزاعه چې مکې ته پناه یو وړه هلته یې دبدیل بن ورقاء خزاعي او ددوی دملګري رافع کورته مخه کړه ، هلته نتوتل ،عمرو بن سالم خزاعي په ځغستا رسول الله ﷺ ته ورغی ،مدینې ته له رسیدو وروسته درسول الله ﷺ حضورته ورغی ،هغه له اصحابو سره په مسجد کې تشریف درلودی ،عمرو داشعرونه ورته وویل :

يـارب انى نـاشـد محمـدا .... حلفنـا وحلـف ابيـه الاتلـدا

قـد كنتم ولـد وكنـا والـدا .... ثـم اسـلمنا ولـم نـنـزع يـدا

فانـصر هـداك الله نـصرا أبـدا .... وادع عبـاد الله يـأتو مـددا

فـيهم رسـول الله ﷺ قـد تجردا .... أبـيض مثـل البـدر يـسمو صـعدا

ان سـيم خـسفا وجهـه تربـدا .... فى قليـق كـالبحر يجري مزيـدا

ان قريـشا اخلفـوك الموعـدا .... ونقـضوا ميثاقـك المـوكـدا

وجعلـوا لى فى كـداء رصـدا .... وزعـمـوا ان لـست ادعـو احـدا

وهـم أذل ،وأقـل عـددا .... هـم بيتونـا بـالوتير هجـدا

وقتلونا ركعا وسجدا

**ترجمه**: اې ربه! زه محمد ﷺ ته دده عهد او دده د پلار پخواني عهد وريادوم، تاسي اولادونه واست او موږ پلرونه ؤ (يعني داچي دقصي ښځه چې له بنو خزاعه قبيلې څخه وه نو بنو خزاعه دبني مطلب ماماخيل کېدل) بيا موږ ستا اطاعت وکی او هيڅ سرغړونه مونه دکړی، الله جل جلاله تاسي ته هدايت وکړی، کلک کومک يې وکړی، خلک هم کومک او مرستي ته راوغواړه دچا په مينځ کي چې وسله په لاس رسول الله ﷺ وي او ورسره د سپوږمۍ په ډول سپيني او ګلالي توري وي، که پرهغو ظلم وسي په سپکه ورته وکتل سي نو مخ به يې په خاورو سپيره سي، تاسي به په شان دسمندر شان لښکر په مينځ کي تشريف راوړی؟ په رښتيا سره چې قريشو ستاسي دعهد مخالفت کړی دی او کلک تړون يې مات کړيدی د دوی ماته په کداء کي کنده او کمين نيولی ؤ او ګمان يې کوی چې زه به څوک خبرنه کړم په داسي حال کي چې دوی ډير کم او ذليل او خواردي، دوی په وتير کي پرموږ حمله وکړه او موږ يې درکوع او سجدې په حالت کي ووژلو.

رسول الله ﷺ په جواب کي ورته وفرمايل: چې اې عمرو بن سالمه! ستاسره مرسته وسوه په دې پسې په آسمان کي يوه ټوټه وريځ راښکاره سوه، رسول الله ﷺ وفرمايل دې وريځي دبنو کعب دبري زيری راوړی، بيا بديل بن روقاء خزاعي دخپل قبيلې له څو کسانو سره ووتی روان سو او ځان يې رسول الله ﷺ ورسوی، هلته يې له حالاتو خبرکی، دا يې ورته وويل چې له دې څخه څو کسان مړه سوي او قريشو څه ډول دبنو بکر مرسته کړی دا احوال يې رسول الله ﷺ ته ورساوه او بيرته مکې ته ولاړی.

## «ابو سفيان دنوي تړون په کوښښ کي»

قريشو چې څه وکړل هغه له تړون څخه څرګنده خلاف ورزي، لوی غدر او خيانت ؤ، ددې خيانت لپاره يې هيڅ دليل او بهانه نه درلوده، همدا وه چې دوی هم په خپل غدر پوه سول، دوضعي نزاکت يې درک کړی، مشورتي شوری يې راوبلله، غونډې فيصله وکړه چې ابو سفيان مدينې ته ولاړسي او هلته له رسول الله ﷺ سره تړون

او تجديد وکړي، نبي کريم ﷺ مخکي لا خپلو اصحابو ته ويلي وُ چې قريش به له
خپل غدر او خيانت وروسته څه ډول اقدام کوي، هغه ﷺ فرمايلي وُ کېداى سي
ابوسفيان د تړون د نوي کېدو لپاره دلته راسي، ابوسفيان د قريشو د فيصلې مطابق
روان سو په عسفان سيمه کي له بديل بن ورقاء سره مخ سو هغه له مدينې څخه مکې
ته روان وُ، ورته وى ويل له کوم ځايه راغلى اې بديله! هغه ورته وويل له خزاعه سره
په دې دره او ساحل کي ګرځېدم، ابوسفيان ورته وويل د محمد رضي الله عنه حضور ته نه وى
ورغلى ده ورته وويل نه، بديل چې مکې ته ولاړى ابوسفيان وويل که مدينې ته
تللى وى نو اوښي ته به يې نوى يعني د خورماؤ د دانو کنجاره ورکړى وي، ولاړى
د بديل د اوښي ځاى يې وکتى، پچه يې را واخيستله او ماته يې کړه وى ليدل چې
د خورماؤ د دانو آثار په کښي سته، داېي چې وليدل نو وى ويل چې قسم په خداى
چې بديل د محمد ﷺ حضور ته ورغلى دى، په هرحال ابوسفيان مدينې ته
ورسيدى، د خپلي لور أم حبيبې رضي الله عنها کور ته ورغلى، هلته يې اراده وکړه چې د رسول
الله ﷺ پر فرش کښيني خو أم حبيبې رضي الله عنها هغه ورڅخه ټول کى، ده ورته وويل
لوري! دا فرش دى زما لپاره مناسب و نه باله او که دي زه ددې ور و نه بللم، چې
پر کښينم دې و فرمايل: چې دا د رسول الله ﷺ فرش دى، ته مشرک يې، ته ددې ور
نه يې چې پر کښيني ده ورته وويل لکه چې تا ته سردرد رسيدلى دى، بيا ابوسفيان
د رسول الله ﷺ حضور ته ورغى، خبري يې ورته وکړى، خو رسول الله ﷺ هيڅ
جواب ورنه کى، ورپسې ابوبکر صديق رضي الله عنه ته ورغلى هغه ته يې وويل چې رسول
الله ﷺ ته يې شفاعت وکړه، ابوبکر رضي الله عنه جواب ورنه کى، بيا حضرت عمر رضي الله عنه ته
ورغلى او هم دا غوښتنه يې ورڅخه وکړله، هغه ورته وويل زه به ستا شفاعت کوم، زه
له رسول الله ﷺ سره ستا په اړه خبري کوم خو قسم په خداى که له جوارو يا لرګي له
ټوکرو پرته بل هيڅ هم و نه لرم ستاسي سره به جهاد کوم، بيا د حضرت علي رضي الله عنه کره
ورغى هلته فاطمه رضي الله عنها هم وه، حسن رضي الله عنه کوچنى وُ او د وى په غيږ کي يې بازي
کولى، ابوسفيان وويل يا علي رضي الله عنه! ته تر نورو را باندي مهربانه يې، زه د يو ضرورت
په خاطر راغلى يم، نه غواړم تش لاس بيرته ولاړ سم، هيله ده رسول الله ﷺ ته
زما شفاعت وکړى، ده ورته وويل: افسوس ستا پر حال اې ابوسفيانه! ابوسفيان

دفاطمې رضي الله عنها خواته وکتل او ورته وی ویل کېدای سي خپل زوی حسن ته امروکړی چې هغه دخلکو په مينځ کي موږ ته دپناه راکولو بږغ وکړی ، هغه به په دې سره ترپايه دعربانو سردار وي ، فاطمې رضي الله عنها وویل زوی اوس په دې موقف کي نه دی چې چاته پناه ورکړي ، هغه به څوک وي چې درسول الله ﷺ په حضور کي چاته پناه ورکړي . ددې خبري په اورېدو سره دابوسفيان په سترګو تياره سوه ، حضرت علي رضي الله عنه ته يې په ډېره مايوسي ، ناهيلي اوخفګان کي وویل : فکر کوم چې حالات ډېر راباندي تنګ سول مشکل زيات سو ، اوس مشوره راکړه څه وکړم ، حضرت علي رضي الله عنه ورته وویل زما په فکر خو هيڅ چاره نه ده درپاته ، خوڅرنګه چې ته دبني کنانه مشرېې ، نوولاړسه دخلکو په مينځ کي پناه وغواړه اوبيا خپل کورته بيرته ولاړسه ، ابوسفيان وویل دابه مي څه په درد وخوري؟ علي رضي الله عنه ورته وویل فکر نه کوم چې ګټه درته وکړي خوبله چاره نسته ، همداؤ چې ابوسفيان مسجدته ولاړی هلته ودريدی او وی ویل اې خلګو! ماستاسي څخه پناه غوښتې ده ، داخبره يې وکړه او ولاړی پرخپل اوښ سپورسو ، هلته چې قريشو ته ورسيدی دوی ته وویل : څه دي راوړل؟ ده وویل ولاړم له محمد ﷺ سره مي خبري وکړي خوهغه هيڅ جواب رانه کی ، بيا ابوبکر رضي الله عنه ته ورغلم هغه هم خبري نه راسره کولی ، بيا حضرت عمر رضي الله عنه ته ورغلم دهغه موقف خوډېر توند ؤ ، بيا حضرت علي رضي الله عنه ته ورغلم هغه مي ترټولو نرم وليدی ، بيا يې څه مشوره راکړه هغه مي عملي کړه خونه پوهيږم چې څه ګټه به ولري او کنه ؟ دوی ورته وویل چې دڅه مشوره يې درکړه ده وویل راته وی ویل چې دخلکو په وړاندي پناه اعلان کړه ، ماهم داسي وکړل ، دوی وویل آيا محمد ﷺ ستاداپناه قبوله کړه ؟ ده وویل نه ، دوی ورته وویل چې حضرت علي رضي الله عنه خوپسخند دروهلی دی ده وویل : نه ، بله هيڅ چاره نه وه همدا یوازني لاره اوچاره وه .

## «دجنګ تياری / برابریدل»

دطبراني دروايت پراساس مځکې تردې چې رسول الله ﷺ ته دقريشو له خودتړون دماتيدو خبرراسي ده ﷺ حضرت عائشې رضي الله عنها ته امرکړی ؤ چې دسفر تياري ونيسي اوسامان يې برابرکړي، هيڅوک هم خبرنه ؤ ، ابوبکر رضي الله عنه يوورځ دحضرت عائشې رضي الله عنها کورته ورغلی ورته وویل : داڅه سامان دی تيارکړی دی ، زمالوري! دې

ورته وويل والله که خبره يم ،ابوبکر ﵁ وويل داوخت خو دروميانو سره دجنګ نه دی ،نه پوهيږم رسول الله ﷺ کومې خواته ځي؟عائشه ﵂ وويل زه هم خبره نه يم ،له همدې څخه درې ورځې وروسته سهار عمرو بن سالم خزاعي له څلوېښتو کسانو سره را ورسيدی اوهغه مخکې تيرسوي اشعارېې ورته وويل همدلته خلګ پوه سول چې قريشو عهدمات کړی دی.

په عمرو پسې بيابديل اوبيا ابوسفيان راغی ټول اصحاب پوه سول ، رسول الله ﷺ دتياري امرو کی اوخبرورکی چې دمکې په طرف روانيږي ، رسول الله ﷺ دادعاهم وکړه چې اې ربه ﷻ! ته دقريشو سترګې پټې کړی ترهغوپورې يې مه خبروی ترڅو موږ حمله نه وي پرکړی ، ددې لپاره چې خبره يې پټه ساتلې وي رسول الله ﷺ داتم هجري کال د روژې په لومړۍ نيټه دابوقتاده بن ربعي ﵁ په مشري يواته کسيزه ګروپ د اضم درې ته وليږی ،دغه سيمه له مدينې څخه شپږديرش ميله ليري دذی خشب اوذی مرة ترمنځ پرته وه ، داددې لپاره ترڅولځګ داګومان وکړي چې رسول الله ﷺ دې خواته حرکت کوي ، داګروپ ترټاکل سوي نقطې پوري ورسيدی .اوکله چې مکې ته درسول الله ﷺ په تګ خبرسول دوی هم مکې ته ورپسې ورغلل ، حاطب بن ابي بلتعه يو خط وليکی قريشو ته يې دنبي کريم ﷺ دتياري او ارادې په هکله خبر په کښي ليکلی ؤ ،يوې ښځې ته يې ورکی ترڅو داجرت عوض په بدل کی يې قريشو ته ورسوي ،نوموړې ښځې دغه خط په خپلو کوڅيو کې پټ کړی اوروانه سوه ، رسول الله ﷺ ته غيبي خبرورکړل سو چې حاطب خط ليږلی دی ،سمدستې يې علي ﵁ او مقداد ﵁ ته وظيفه ورکړه چې په دې ښځې پسې ورسی ،امريې ورته کړی ؤ چې دخاخ باغ ته ورسي هلته يوه مسافره ده اويوخط ورسره دی ،دوی په ډيرتلوار پسې ورغلل په هغه ځای کې يې هغه ښځه وليده ،ورته وی ويل :ستاسره يوخط دی ؟دې ورته وويل نه زماسره خط نسته ،دوی تلاشي کړه خوخط په لاس ورنغلی ،علي ﵁ ورته وويل قسم په خدای ﷻ رسول الله ﷺ دروغ نه وايي موږ هم دروغ نه وايو ، يابه خط راکوی اويابه دې کالي هم تلاشي کوو ،ښځې چې داحالت وليدی نو وی ويل لږ اخواته سی ،دوی بلې خواته ودريدل دې خپلې کوڅې خلاصې کړی اوخط يې ورڅخه راوکيښی دوی ته

يې ورکی ،دوی خط رسول الله ﷺ ته راوړی په دې خط کې داسې ليکل سوي ؤ د حاطب بن بلتعه رضي الله عنه له خوا قريشو ته ! وروسته ليکل سوي ؤ چې رسول الله ﷺ ستاسې پرخوا در روانيږي ،خبر اوسی ،رسول الله ﷺ حاطب را وغوښتی ورته وی ويل : داولي؟ده وويل يارسول الله ﷺ ! حوصله وکړه ،زه مسلمان يم ،مرتدسوی نه يم ،اونه مې دين بدل کړی دی ،څرنګه چې زه قريښ نه يم خو ورسره تړلی يم ،زما اولادونه اوکورنۍ هلته له دوی سره دي ،داسې اړيکې اوخپلوي هم نه ورسره لرم ، چې زما د اولادونو حمايت وکړي ،دنورو اصحابو خوهلته خپلوان سته چې دفاع يې وکړي ،په همدې خاطر ماغوښتل چې د دوی داسې ملاتړ حاصل کړم چې زما داهل او اولاد بيرته راکړي ، عمر رضي الله عنه وويل يارسول الله ﷺ اجازه راکړه چې سرېې پريکړم ، له الله جل جلاله اورسول ﷺ سره يې خيانت کړی دی ، دامنافق سوی دی،رسول الله ﷺ وفرمايل نه حاطب دبدر په غزاکې برخه اخيستی ده ،اوخبرنه يې اې عمره! چې الله تعالی دبدريانو ته خبرورکړيدی چې الله جل جلاله تاسې ته بخښنه کړيده ،هرڅه چې کوی ودې کړی الله تعالی عفوه ورته کړی ده ،ددې فرمودې په اوريدو سره دحضرت عمر رضي الله عنه له سترګو اوښکې رواني سوی او وی ويل الله جل جلاله اورسول الله ﷺ ښه پوهيږي[531] په دې ترتيب سره الله تعالی دمسلمانانو راز پټ وساتی ، دقريشو غوږونه کاڼه اوسترګې يې پټې سوی درسول الله ﷺ دجنګې تياري په هکله هيڅ خبرنه سول .

## «اسلامي لښکر دمکې پر لور»

داتم هجري کال دروژې په لسمه رسول الله ﷺ مدينه دمکې نيت ترشا پرې ښووه ، له سره لس زره اصحاب ملګري ؤ ابوذرغفاري رضي الله عنه يې دمدينې خليفه وټاکی ،اوخپله مکې ته روان سو ،دلارې په اوږدو کې په جحفه يالږ اخوا سيمه کې درسول الله ﷺ آکا حضرت عباس رضي الله عنه په مخه ورغلی هغه داسلام ترمنلو وروسته دخپل اهل اوعيال سره دهجرت لاره نيولی وه چې له رسول الله سره مخامخ سو ،رسول الله ﷺ چې ابواء ته ورسيدی د اکازوی يې ابوسفيان بن حارث اودعمه زوی يې عبدالله بن ابي اميه هم په مخه ورغلل ،رسول الله ﷺ مخ ورڅخه واړوی ځکه له

---

[531] صحيح البخاری ١/ ٤٣٣.

دوی ښځه يې ډېر تکليفونه او آذيتونه ليدلي ؤ ،أم سلمه رضي الله عنها ورته وويل دانه ښايي
چې داکازوی او دعمه زوي دي ستاپه حضورکی ترټول بدبخت وي ،حضرت علي
رضي الله عنه ابوسفيان بن حارث ته وويل چې ځان د رسول الله صلى الله عليه وسلم مخ ته ورسوه او هغه خبره
ورته وکړه کومه چې ديوسف عليه السلام ورونو يوسف عليه السلام ته کړې وه.
قَالُوا تَاللَّهِ لَقَدْ آثَرَكَ اللَّهُ عَلَيْنَا وَإِن كُنَّا لَخَاطِئِينَ سورة يوسف آيت (۹۱) **ترجمه**: قسم کوو چې
الله تاته پرموږ فضيلت درکړی دی ،تررسول الله صلى الله عليه وسلم بل څوک د ښې خبرې ښښتن نه
دی ،ابوسفيان هم داسې وکړل ،د رسول الله صلى الله عليه وسلم مخ ته ورغلی او همدا خبره يې
ورته وکړه ،په جواب کې رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل: قَالَ لَا تَثْرِيبَ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ يَغْفِرُ
اللَّهُ لَكُمْ وَهُوَ أَرْحَمُ الرَّاحِمِينَ سورة يوسف آيت (۹۲) بيا ابوسفيان دا شعرونه وويل:

لعمرک انی حين أحمل راية .... لتغلب خيل اللات خيل محمد

لک المدلج الحيران اظلم ليله .... فهذا اوانی حين اهدی فاهتدی

هانی هاد غير نفسی ودلنی .... علی الله من طردته کل مطرد

ژباړه: ستاپه عمر قسم ! هغه وخت چې ما د دې لپاره جنډه پورته کړې وه چې د لات
لښکرې به د محمد صلى الله عليه وسلم پر لښکرو غلبه پيدا کوي ،زما مثال د هغه مسافر ؤ چې
د شپې په تياره کې حيران او سرګردان وي ، خو اوس هغه وخت راغلی دی چې
د هدايت لاره پيدا کړم او پر سمه روان سم ماته يوه لارښود هدايت وکی ،همدې
هادي د الله طرف ته بوتللم ، که څه هم ما هغه ته ډېر تکليفونه رسولي او له ځانه مې
شړلی ؤ په دې سره رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه پر سينه وواهه او ورته وی فرمايل : تازه له ځان
او وطن څخه شړلی وم ،ابوسفيان ښه مسلمان سو او په خپل ژوند کې يې د حياله مخ
د رسول الله صلى الله عليه وسلم په وړاندې سرپورته نه کی ،رسول الله صلى الله عليه وسلم هم مينه ورسره درلوده ،
د جنت زيری يې ورکړی ؤ او فرمايل به يې هيله لرم د حمزه رضي الله عنه خليفه سي ،کله چې
د ابوسفيان ځنکدن ؤ خلکو پر ژړل ده وويل مه ژاړی قسم په خدای چې له اسلام څخه
وروسته مې هيڅ ګناه نه ده کړې.

## «اسلامي لښکر له مرالظهران سره او دمسلمانانو روژه»

رسول الله ﷺ روان ؤ او مسلمانانو ټولو روژه نیولې وه مخکې ولاړل ترڅو دعسفان اوقدید ترمینځ پرتې کدید نومې چینې ته ورسیدل ،هلته نبي کریم ﷺ روژه ماته کړه مسلمانانو هم دده اطاعت وکی ټولو روژه ماته کړه بیاروان سول ماښام یې په مرالظهران (وادي فاطمه) کې واړول ، اصحابو ته یې امر وکی چې اورونه بل کی هغوټولو اورونه بل کړل ،لس زره اورونه بل سول ،حضرت عمر رضي الله عنه ته یې وظیفه ورکړه چې دپیرې امورو مشري په غاړه واخلي.

## «ابوسفیان سیدالبشر ﷺ په حضور کې»

حضرت عباس رضي الله عنه درسول الله ﷺ پرسپینه قاطره (کچره) سپور سو،ولاړی ترڅو یوڅوک پیداکړي چې قریشو ته خبریوسي چې راسی اوله رسول الله ﷺ څخه دامن سوال وکړي ،دالله عزوجل په کرم سره قریش هیڅ خبرنه ؤدوی دېیرې اوخوف په حالت کې ؤ ،ابوسفیان له مکې څخه راوتلی ؤ حالات لاري یې څارلی ، له ده سره حکیم بن حرام اوبدیل بن ورقاء هم ملګري ؤ ،ټول خبرونه تعقیبول ،حضرت عباس رضي الله عنه وایي چې زه درسول الله ﷺ پرکچره سپوروم چې دابوسفیان آواز مې واوریدی له بدیل سره یې خبرې کولې ،ابوسفیان ورته وویل ما دا ډول اورونه اودمره زیات لښکرهیڅکله هم نه دی لیدلی ،بدیل ورته وایي کېدای سي دابه خزاعه قبیلې خلګ وي ،ابوسفیان ورته وایي خزاعه تردې ډیرکم اوکمزوري دي دوی دومره عسکر له کومه کړل ، چې دومره اورونه بل کړي ،عباس رضي الله عنه زیاتوي مازغ پروکی اې ابوحنظله ! ابوسفیان وپېژندلم ، وی ویل ابوالفضل یې ؟ماوویل هو، ده راته وویل مور اوپلار مې ترتا جار څه کوی ؟ماورته وویل دادی رسول الله ﷺ دخپل لښکر سره راغلی دی ،سهاردې قریشوته خیروي ،دقریشوتباهي ده ،ابوسفیان وویل چاره څه ده ؟مور اوپلار مې دې ترتا قربان وي ،ماورته وویل قسم په خدای که لاس یې درباندې برسو نوسربه دې قلم کړي ،راځه زماسره پردې کچره سپور سه ترڅو درسول الله ﷺ حضورته دې ورولم ، اوامن ځني درته وغواړم ، ابوسفیان راغلی او راسره سپور سو ،نور دوه ملګري یې بیرته ولاړل ،عباس رضي الله عنه وایي ابوسفیان مې درسول الله ﷺ حضورته وروستی ، دهرځای سره به چې تیریدی نو

ويل به يې داڅوک دى ؟خو کله به يې چي زه د رسول الله ﷺ پر کچره سپور وليدلم نو يوبل ته به يې وويل د رسول الله ﷺ اکا دى ، همداسي روان ؤ ترڅو د حضرت عمر رضي الله عنه ځای ته ورسيدو مور چې يې وليدو را ولاړ سو وى داڅوک دي ؟راغى کله چي يې ابوسفيان زما سره وليدى نو وى ويل :دادى د خداى جل جلاله دښمن ابوسفيان ،الحمد الله چي بيله کوم تړون اوعهد په لاس راغى بيا د رسول الله ﷺ په طرف روان سو ،تيز روان ؤ ،ماقاطره وړېسې وځغلوه ځني مخکي سوم ،هلته له کچري څخه کښته سوم سمدستي د رسول الله ﷺ خدمت ته ورغلم ،حضرت عمر رضي الله عنه هم راغى وى ويل يارسول الله ﷺ !ابوسفيان راغلى دى اجازه راکړه چې سريې پرېکړم ، عباس رضي الله عنه وايي ماورته وويل :يارسول الله ﷺ !ماهغه ته پناه ورکړې ده ،بيا د رسول الله ﷺ سره نژدى کښېنستم خبري مي ورسره شروع کړې ،او ويل مي چي نن شپه به له ماپرته بل څوک مجلس نه ورسره کوي ،حضرت عمر رضي الله عنه ډير اصرارکوي ماورته وويل عمره لږ حوصله وکړه ،که ابوسفيان ستاله قبيلې بني عدي بن کعب څخه واى نو بيابه دي داخبره نه واى کړې ، عمر رضي الله عنه وويل پرېږده عباسه! رضي الله عنه قسم په خداى چې ستاپه اسلام د خپل پلار خطاب تراسلام زيات خوشحاله سوم ،دا ځکه چې ستا د اسلام په راوړلو حضرت رسول الله ﷺ ډير خوشحاله سو ،په دې پسې رسول الله ﷺ وفرمايل : اې عباسه! ابوسفيان خپلې ميني ته درسره بوزه ، سهارېې راته راوله ، ايااوس هم پردې اعتراف نه کوي چې الله يودى اونه غوارې چې ووايي :لااله الاالله .ابوسفيان وويل مور اوپلار مي درتاقربان ،ته څومره مهربان ،کريم اونژدې دوست يې ،زه فکر کوم که له الله جل جلاله پرته بل خداى موجود واى نوزما کومک به يې کوى ،رسول الله ﷺ وفرمايل افسوس ستاپرحال اې ابوسفيانه! اياا وس پردې باور نه لري چې زه (محمد) دالله جل جلاله رسول يم ،ابوسفيان وويل مور اوپلار مي درتاقربان ته بې حده زيات مهربان،کريم اونژدې دوست يې ،په دې اړه ستا د رسالت مي لاتراوسه په زړه کي څه نسته . عباس رضي الله عنه ورته وويل خوارسى اسلام راواړه اوشهادت کلمه ووايه مخکي تردې چې سردي قلم سي ،ده :لااله الاالله محمد رسول الله مبارکه کلمه وويله هم هغه ؤ چې ابوسفيان داسي څوک دى چې فخر او وياړ يې ډيرخوښيږي ،ده ته يوڅه ورکړه رسول الله ﷺ

وفرمایل څوک چې دابوسفیان کورته داخل سو هغه په امن دی ،چاچې دخپل کور دروازه بنده کړه هغه هم په امن دی ،څوک چې مسجدحرام ته داخل سو هغه هم په امن دي یعني دا درې ډوله خلک پرامن دي.

## «داسلام لښکر د مرالظهران څخه دمکې پر لور»

داتم هجري کال درمضان دمیاشتې په اوولسمه دسې شنبې دورځې په سهار رسول الله ﷺ مرالظهران دمکې په نیت ترشاپرېښوو، اوحرکت يې وکی ،حضرت عباس رضي الله عنه ته يې امر وکی چې ابوسفیان د درې په تنګي دغره دڅوکې پر ودره وه ترڅودالله تعالی لښکر په خپلو سترګو ووینې ،حضرت عباس رضي الله عنه هم داسې وکړل، ددې په تنګه برخه کې يې ابوسفیان و دروی ،درسول الله ﷺ لښکر تیریدی هرې قبیلې جلاجلا بیرغ درلودی ، هر یوه چې به تیرېدله ابوسفیان به پوښتنه کوله داڅوک دي ، عباس رضي الله عنه به ورته معرفي کول ،مثلا ورته ویل به يې چې دادسلیم قبیله ده ، ابوسفیان به ویل له سملي سره زماڅه کار ترڅورسول الله ﷺ له شنه ګروپ سره راښکاره انصارو اومهاجرین ورسره ملګري ؤ،ټول وسله بند ؤ ابوسفیان چې دامؤمن لښکرولیدی پوښتنه يې وکړه سبحان الله دا څوک دی اې عباسه! رضي الله عنه عباس رضي الله عنه ورته وویل دارسول الله ﷺ دی چې دانصارو او مهاجرینو په مخ کې روان دی ،ابوسفیان وویل هیڅوک هم د دوی مقابله نه سي کولای او زیاته يې کړه ،ابوفضله! ستا د ورار ه باچاهي ډیره لویه سوه ، ابو الفضل عباس رضي الله عنه ورته وویل دانبوت دی ،زما وراره رسول دی ، ابوسفیان وویل بیشکه چې دادنبوت عظمت دی ،اوس هم داویل صحیح دي ،دانصار و بیرغ له سعد بن عباده رضي الله عنه سره ؤ .کله چې له ابوسفیا سره مخ سو ورته وی نن د جنګ ورځ ده ، نن به داحرمت له منځه ځي الله بن نن قریش خوار اوذلیل کړی ،خوکله چې ابو سفیان له رسول الله ﷺ سره مخامخ سو عرض يې وکی ،یارسول الله ﷺ دسعد خبره دي واورېدله ؟رسول الله ﷺ وفرمایل : چې څه يې وویل ؟خبره يې ورته وکړه ،په دې ترځ کې عثمان اوعبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه وویل موږ هم بیره لرو هسې نه سعد دقریشو په مینځ کې څه مرګ ژوبله ونه کړي ،رسول الله ﷺ وفرمایل نن دکعبې د درناوی اواحترام ورځ ده ، نن دقریشو دعزت اوسرلوړی ورځ ده ،بیایې له سعد

ﷺ ثخه دبيرغ اخيستلو حكم وكي اودده زوى قيس بن سعد ﷺ ته يې وركى ، يوروايت داهم دى چې وايي بيرغ له سعد څخه واخيستل سو اوپه بل روايت سره بيرغ زبير ﷺ ته وركړل سو.

## «پرقريشو ناڅاپه ژغ دشالخو اسلامي لښكر»

كله چې رسول الله ﷺ دابوسفيان د درېدو ترځاى تيرسو ، نوحضرت عباس ﷺ ورته وويل ابوسفيان !ژر كوه خپل قوم ته نجات وركړه ، دوى وژغوره ،ابوسفيان په ځغستا ځان مكې ته ورسوى اوپه لوړ آواز سره يې چيغه كړه اې قريشو! دادى محمد ﷺ را ورسيدى ،له هغه سره دومره لښكر دي چې هيڅوك يې هم مقابله نه سي كولاى ،واورى څوك چې دابوسفيان كورته داخل سو هغه په امن دى ،ددې خبري په اورېدو سره يې ښځه هنده بنت عتبه راغله اوخپل ميړه ابوسفيان يې تربرېتو ونيوى او وى ويل مړكړى داله غوړو څخه ډك ژى مړى كړى دا دنريو پنديو خاوند ،بدى دي وي خبرراوړنكى ته ،ابوسفيان ووېل افسوس ستاسي پرحال دابه هيڅ ستاسي په درد ونه خوړى ، ګوري غره نه سي له محمد ﷺ سره دومره لښكر سته چې حساب يې نسته ، څوك چې دابوسفيان كورته داخل سو هغه په امن دى ،قريشو ورته ووېل الله دي خوار كړه ، ستا كور به موږ ته څه ګټه ورسوى ، ده ورته ووېل څوك چې په خپل كور ننوزي و دروازه وربېسې وتړى هغه هم په امن دى ، هم داوه چې خلګ څوك خپلو كورونو ته اوڅوك مسجد حرام ته ولاړل اونور خپلو كورونو ته ننوتل خوځيني اوباشان يې وهڅول اودمقابلې خبره يې ورته وكړه ،ويل يې كه دوى غالب سول نو موږ به ورسره يو اوكه ووژل سول نوڅه چې غواړي هغه به وركړو ،په دې ترتيب سره يوشمير جاهل اولوېدلي خلګ له عكرمه بن ابي جهل سره راټول سول له دوى سره صفوان بن اميه اوسهيل بن عمرو هم ؤ ،په خندمه كي يې دمسلمانانو سره دمقابلې لپاره سنګر ونيوى ،په دې ډله كي دبني بكر قبيلې يوسړى چې حماس بن قيس نوميدى هم ملګرى ؤ ،ده چې كله وسلې برابرولى ښځي يې ورته ووېل : داوسلې دڅه لپاره تياروى ،ده ورته ووېل له محمد ﷺ او اصحابو سره دمقابلې لپاره ،ښځي يې ووېل :قسم په خداى چې هيڅوك دمحمد ﷺ مقابله

نه سي کولای ،ده ورته وویل زه غوارم چې دمحمد ﷺ ځیني ملګري ستا خادمان کړم بیایې داشعر ووایه :

ان يقبلوا اليوم فمالى علة .... هذا سلاح كامل والة

وذو غرار بن سريع السلة

ژباړه : که دوی نن مقابلې ته راغلل نوزه به هیڅ عذر ونه لرم ، ټوله وسله ،نیزې اودوه تیغه لرونکي توري هرڅه پوره دي ،یعني بالکل مقابلې ته تیاریم ، په خندمه نومي ځای کي مقابلې ته په راټول سوو کسانو کي هم دغه کس ؤ چې دمحمد ﷺ سره دجنګ لپاره راغلی ؤ.

## « په ذی طوی کي داسلام لښکر »

رسول الله ﷺ مخ په وړاندي ؤ ترڅو ذی طوی ته ورسیدی ،دالهي لوی نعمت یعني دمکې دفتحي دشکرانې په دود یې خپل مبارک سره دالله تعالی دعظمت اورحمت په وړاندي ټیټ نیولی ؤ ،دالله تعالی ددې لوی کرم په وړاندي یې له ډیري تواضع څخه خپل مبارک سر دومره خم کړی ؤ چې دمبارکي ږیري ویښتان یې داوښي له ځل سره لګیدل ،رسول الله ﷺ په همدې ځای کي خپل لښکر تقسیم کی ،خالدبن ولید رضي الله عنه ته یې دچپه اړخ قومنده وسپارله ، په دې طرف کي داسلم ،سلیم ،غفار ، جهینه اوځیني نوري عربي قبیلې وې دوی ته یې امروکی چې دمکې دلاندي برخي څخه داخل سی ،او ورته وی ویل : که موڅوک مخ اومقابلې ته راغلل نو له مینځه یې یوسی اوپه دې ترتیب سره به په صنعاء کي له نور لښکر سره یوځای سی ،دراسته خواقومنده دزبیربن عوام رضي الله عنه سره وه،درسول الله ﷺ بیرغ هم دده سره ؤ ،هغه یې پر دې مامور کی چې دمکې له پورتنې برخي (کداء) څخه داخل سي اوپه حجون کي دي له خپل بیرغ سره درسول الله ﷺ د ورسیدو انتظار کوي ،ابوعبیده رضي الله عنه له پیاده اوبې وسلې سپاهیانو سره ؤ هغه ته یې امروکی دمکې وسطی لار په مخکي ونیسي له هم هغي لاري څخه په مکه کي درسول الله ﷺ حضور ته حاضرسي.

## « په مکه مکرمه کي داسلام لښکر »

ټول لښکر روان سو هرګروپ پرټاکل سوي لار دمکې په طرف روان سول ،خالد رضي الله عنه له خپلو ملګرو سره مخ ته ولاړی څوک چې به یې مخ ته راتلی هغه به یې له منځه

وړي ،دده له ملګرو څخه دوه کسان(کرزبن جارفهري رضي الله عنه اوخنيس بن خالدبن ربيعه رضي الله عنه )په شهادت ورسيدل دوى دواړه له لښکر څخه جلا پربله لار روان ؤ چې دمشرکينو تربريدلاندي راغلل اوشهيدان سول ،خالد رضي الله عنه په خندمه کي دکفارو له اوباشانو سره مخ سو ، څه ښبنته وسوه چې په ترڅ کي يې دولس تنه مشرکين ووژل سول اونور وتښتيدل ،حماس نب قيس چي له ډير پخوا څخه يې مقابلې ته وسلې تيارولى هم له جنګ څخه وتښتيدى کورته ولاړى اوخپلي ښځي ته يې وويل دروازه راپسې بنده کړه ،ښځي يې ورته وويل هغه ستاغورې څه سوى ،ده په جواب کي دا شعرونه ورته وويل :

انک لوشهدت يوم الخندمه .... اذفر صفوان وفر عکرمه

واستقبلنا بالسيوف المسلمة .. يقطن کل ساعد وجمجمة

ضرباً فلايسمع الاغمغمة .... لهم نهيت خلفنا وهمهة

لم تنقطى فى اللوم ادنى کلمة

ژباړه : که تادخندمه صحنه ليدلى واى چي صفوان اوعکرمه وتښتيدل ،موږ ته په تورو سره هرکلى ووېل سوداسي توري چي سرونه اوپښې يې ريبلى ،دتوري ګوزارونه به يې کول اود زمريو په ډول آوازونه به يې کول په موږ پسې ؤ،که تاليدلى واى نودملامتيا يوه خبره به دي هم نه واى کړى ،خالد مکې ته داخل سواوځاى يې په صفاکي درسول الله صلى الله عليه وسلم حضورته ورسوى،زبير رضي الله عنه هم مخ ته ولاړى درسول الله صلى الله عليه وسلم بيرغ يې په حجون کي له فتح مسجد سره پورته کى ،اوچرم(پوست) يوه خيمه يې پر ودروله اوهم الته انتظارؤ ترڅو رسول الله تشريف راوړى .

## «رسول الله صلى الله عليه وسلم بتان ماتوي/نسکوروي»

رسول الله صلى الله عليه وسلم حرکت وکى ،مهاجرين اوانصار چارچاپير ورسره روان ؤ، مسجد حرام ته يې تشريف يووړى ،حجراسود يې مسح کى طواف يې وکى نيزه يې په لاس کي وه په دې وخت کي په بيت الله اوشاوخوا کي بتان ؤرسول الله صلى الله عليه وسلم به بنان په نيزه وهل او ويل به يې :وَقُلْ جَاءَ الْحَقُّ وَزَهَقَ الْبَاطِلُ إِنَّ الْبَاطِلَ كَانَ زَهُوقًا. سورة بني اسرائيل آيت (۸۱)

**ترجمه**: ووایه چي حق راغی اوباطل نسکور سو بیشکه چي باطل له مینځه تلونکی دی.

## «بتان ټول مات او نسکور سول»

نبي کریم ﷺ پرخپله او بنه سپور ؤ، طواف یې کوی، احرام یې هم نه ؤ تړلی، کله چي یې طواف وکی نو عثمان بن طلحه رضی الله عنه یې را وغوښتی، دکعبې کلیاني یې ورڅخه واخیستلی امر یې وکی چې دروازه دي یې خلاصه سي، دروازه خلاصه سوه، رسول الله ﷺ ور داخل سو هلته یې عکسونه ولیدل، عکسو په مینځ کي یې دابراهیم علیه السلام او اسماعیل علیه السلام عکسونه هم ولیدل چې دواړه په غشو څه سره ویشي، په دې وخت کي رسول الله ﷺ وفرمایل: الله تعالی دي مشرکان خوار اوتباه کړي، قسم په خدای که ابراهیم علیه السلام کله هم په دې غشو سره تقسیم کړی دی، هلته دلرګي څخه جوړه سوی یو کوتره هم وه هغه یې په خپل لاس مبارک ماته کړه اوامریې وفرمایه: چې دلته دي موجود ټول عکسونه له مینځه یو وړل سي.

## «په کعبه کي دسیدالبشر ﷺ خطبه قریشو ته»

رسول الله ﷺ کعبي شریفي ته له داخلیدو وروسته دروازه ورپسې بنده کړه، له ده مبارک سره اسامه رضی الله عنه اوبلال رضی الله عنه هم ؤ، د دروازې دیوال ته مخامخ ودرېدی، په داسي ځای کي ولاړ ؤ چې له دیوال څخه یې درې ګزه فاصله درلوده دوې ستني یې چپه، یوه ستنه یې راسته اړخ او درې ستني یې شاته وی، هغه وخت دکعبې شریفي چت پرشپږو ستنو (میلان) ولاړ، بیایې هلته لمونځ اداکی، په بیت الله کي وګرځیدی تکبیریې ووایه، دتوحید نعره یې پرژبه وه، دروازه یې خلاصه کړه قریش په زیات شمیر مسجد حرام ته راغلي ؤ، صفونه صفونه ناست ؤ انتظاریې کوی چې رسول الله ﷺ به څه معامله ورسره کوي؟ په داسي حال کي چې قریش ټول ناست ؤ، رسول الله ﷺ دکعبې د دروازې دواړه څنګ دري ونیولی وی فرمایل: لااله الا الله وحده لاشریک له. یعني له یوه الله جل جلاله پرته بل څوک دعبادت وړنه دی، الله یودی شریک نه لري، الله خپله وعده ریښتونې کړه له خپل بنده سره یې مرسته وکړه، ټولواحزابوته یې ماته ورکړه، واوری! دبیت الله شریفي دکلیانو له ساتني، حاجیانو ته له اوبو ورکولو پرته نوري ټولي ویاړني، کمالات، خون اومال ټول زما

ترپښنولاندي دي ،يعني دا ټول ملغي اعلانوم ، واوری ! په سهوه سره قتل عمد چي په متروکه (دره) یا ډنده سره وي په دې ډول قتل سره مغلظ یا سخت دیت لازمیږي ،ددې دیت اندازه سل اوښان دي چې څلویښت به یې حمل (بار لرونکي) اوښاني وي ،اې قریشو !الله تعالی ستاسي دجاهلیت دزمانې بې ځایه غیرت په پلار او نیکونو ویاړ له منځه یو وړه ، ټول انسان له آدم ﷺ او آدم ﷺ له خاورو څخه پیدا سوي دي ،بیایې دآیت تلاوت کی: يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَاكُم مِّن ذَكَرٍ وَأُنثَىٰ وَجَعَلْنَاكُمْ شُعُوبًا وَقَبَائِلَ لِتَعَارَفُوا إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ .سورة الحجرات آیت (١٣)

**ترجمه**: اې خلکو !تاسي موله یوه نارینه اوښځي څخه پیدا کړي یاست ،بیا مو پرڅانګو اوقبیلو ددې په خاطر سره ویشلي یاست چي یوبل سره وپیژنی، دالله په نزد ترټولو دزیات قدراو منزلت خاوندهغه دی چې دزیاتي تقوی خاوند وي،الله جل جلاله په هرڅه عالم اوخبردی.

نن پرتاسي ملامتیا نسته ، بیایې زیاته کړه اې قریشو ! څه فکر کوی زه به څه ډول معامله درسره وکړم؟دوی وویل حتما به ښه معامله راسره کوی ، ته مهربان ورور اومهربان وراره یې رسول الله ﷺ وفرمایل زه نن هغه خبره درته کوم کومه چي یوسف علیه السلام خپلو وروڼو ته کړیی وه : لَا تَثْرِيبَ عَلَيْكُمُ الْيَوْمَ .پرتاسو باندي نن ملامتیا نسته ، ورځی تاسي آزاد یاست.

## «دکعبې شریفي کلیاني دوباره خپل اولین خاوند ته»

په دې پسې رسول الله ﷺ په مسجد کي کښینستی ،حضرت علي رضي الله عنه ورته راغی دکعبې شریفي کلیاني یې په لاس کي وی وی ویل :یارسول الله ﷺ موږ ته دحاجیانو داوبو ورکولو له دندي سره دحجابت (کلیانو ساتلو)دنده هم راوسپاره ، په بل روایت کي راځي چي داخبره حضرت عباس رضي الله عنه ورته کړی وه ،رسول الله ﷺ ورته وفرمایل عثمان بن ابي طلحه رضي الله عنه چیري دی ؟هغه راوغوښتل سو ،رسول الله ﷺ ورته وفرمایل واخله عثمانه،داکلیاني بیرته واخله ،نن دوفا اونیکي ورځ ده ،ابن سعد په طبقات کي روایت کوي چې دکلیانوورکولو په وخت کي یې داسي ورته وفرمایل : چې واخلی داکلیاني واخلی ، دابه له ظالم پرته بل څوک نه درڅخه

واخلي، اې عثمانه! الله تعالی خپله خونه تاسي ته امانت درکړې ده، دالله تعالی له دې خوني څخه چې څه په لاس درځي له هغو څخه به په حلاله او شرعي توګه استفاده کوی.

## «دبلال رضی الله عنه اذان دکعبې شريفي پر بام»

دلمانځه وخت سو، رسول الله صلی الله علیه وسلم خپل مؤذن بلال رضی الله عنه ته امر وکی چې دکعبې بام ته وخيژي او آذان وکړي په دې وخت کي ابوسفيان برحرب، عتاب بن اسيد او حارث بن هشام دکعبې په صحن کي ناست ؤ، عتاب وويل: زما پلار اسيد بختور ؤ چې دا حالت يې ونه ليدی، هغه دا څه وانه وريدل، چې دغوصې سبب يې کېدی، حارث وويل: که زه په دې پوه سم چې محمد صلی الله علیه وسلم پرحق دی نو حتما به يې پيروي کوم، ابو سفيان ورته وايي زه هيڅ نه وايم ځکه که هرڅه ووايم دا شګي به شاهدي را باندي وايي دغه کاڼي به مي احوال افشا کړی، همداوه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم تشريف ورته راوړي وی فرمايل: زه پوه سم چې تاسي څه ويل، دوی چې څه ويلي ؤ هغه خبري يې ورته تکرار کړې، حارث او عتاب وويل موږ شاهدي وايو چې ته دالله جل جلاله رسول يې قسم په خدای که زموږ خبري هيڅاهم اوريدلي وي هيڅوک نه ؤ چې موږ ووايو هغه در رسولی دی.

## «دشکرانې لمونځ کول»

په همدې ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم دأم هاني بنت ابی طالب کورته تشريف يووړی، غسل يې وکی او هم الته يې اته رکعته لمونځ اداکی، دادضحی (غرمې) وخت ؤ، ځيني ګومان کوي چې دغه دڅاښت لمونځ ؤ، خو صحيح داده چې دا څاښت نه بلکه د فتحي ياشکرانی لمونځ ؤ، أم هاني رضی الله عنها په خپل کور کي خپلو دوو ليورو ته پناه ورکړه، رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمايل: چاته چې تا پناه ورکړې ده زموږ قبوله ده يا أم هاني، که څه هم حضرت علي رضی الله عنه غوښتل هغه دواړه ووژني، خو أم هاني دروازه پسې بنده کړه، اوله رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه يې دا غوښتل چې ددې پناه قبوله کړي، هغه هم داسي وکړل.

# «دغهٔو مجرمينو قتل دسيدالبشر ﷺ په حکم»

دفتحې په ورځ رسول الله ﷺ د(۹) لويو مجرمينو دقتل امرصادر کړی دوی يې
مباح الدم وبلل اوامريې وکړی چې که دکعبې ترپردو لاندې هم په لاس درسي بايد
ووژل سي ، ددغه مجرمينو نومونه داؤ: عبدالغزی بن خطل ،عبدالله بن ابی سرح
،عکرمه بن ابی جهل،حارث بن نفيل بن وهب ، مقيس بن صبابة ،هباربن اسود ،
دابن خطل دوې ډماني وې وی دوی دواړو به تل درسول الله ﷺ هجوه کوله ،سارة
چې دبني مطلب خادمه وه داهم هغه ښځه وه چې قريشو ته يې دحاطب خط راوړی
،ابن ابی سرح خونجات پيداکی ځکه عثمان رضي الله عنه درسول الله ﷺ حضور ته
وروستی ،دهغه شفاعت يې وکی همداوه چې اسلام يې ومنل سو ،اوله مرګ څخه
وژغورل سو ،هغه خوله مخکې څخه اسلام راوړی اوهجرت يې کړی ؤ ،خوبيا مرتد
سوی ؤ اومکې ته بيرته تللی ؤ، عکرمه ين ته وتښتيدی ،ښځې يې دده لپاره له
رسول الله ﷺ څخه امن وغوښت ،رسول الله ﷺ امن ورته اعلان کی ،ښځې يې
ورپسې ورغله رايې وستی په اسلام مشرف سو،اوښه مسلمان سو ،ابن خطل
دکعبې په پردو کې پټ سوی ؤ په دې وخت کې يو صحابي درسول الله ﷺ حضورته
راغی اودهغه خبرېې ورکی رسول الله ﷺ وفرمايل مړيې کی ،هغه ولاړی اوهم
التہ يې ووژي . مقيس بن صبا دنميله بن عبدالله په لاس ووژل سو مقيس مخکې
اسلام راوړی ؤ ،مدينې ته تللې اوهلته يې يوانصاري وژلې ؤبيابيرته مرتد سوی
ؤحارث چې په مکه کې به يې رسول الله ﷺ ته زيان اوضرر رسوی ،دحضرت علی
رضي الله عنه په لاس دورځ ته وليږل سو ،هباربن اسود هغه شوک ؤ چې دزينب رضي الله عنها دهجرت
په وخت کې يې دهغې اوښه ترپولی وه ، په نتيجه کې يې هغه له اوښه لويدلی
اوخپل کوچنی يې ضايع کړی ؤ ،هم دغه هبار مباح الدم اعلام سوی ؤ ،دفتحې په
ورځ وتښتدی وروسته په اسلام مشرف سو ،اوښه مسلمان ځني جوړسو ،هغه دوی
ډماني چې د وژلو امريې صادر سوی ؤيوه يې ووژل سوه اوبلې ته يې امن وغوښتل
سو، پناه ورکړل سوه په اسلام مشرفه سوه همدا راز ساره هم مسلمانه سوه اوامان
ورکړل سو ،ابن حجر رحمه الله وايي چې ابومعشر وايي دمباح الدم اعلان سوو په ډله
کې حارث خطل خزاعي هم شامل ؤ ،چې دحضرت علي رضي الله عنه په لاس ووژل سو ،حاکم

په همدې ډله کې کعب بن زهیر نوم هم راوړی دی ،دده قصه به وروسته راسي ،هغه اسلام راوړی ؤ اود رسول الله ﷺ ډیره مدحه به یې کوله ،همدا ډول حاکم په دې ډله کې دوحشي بن حرب هنده بنت عتبه چې دابو سفیان ښځه وه ،ارنب چې دابن خطل مینځه وه اوأم سعد نومونه هم راوړي دي ،له دې جملې څخه یوازې دوی وروستي (ارنب او أم سعد) ښځې وژل سوي وي ،دادابن اسحاق روایت دی اوپه دې ترتیب هغه کسان چې دوژلو حکم یې سوی ؤ ،څوارلس تنه ؤچې اته یې نارینه اوشپږ یې ښځې وي ،امکان لري چې ارنب اوأم سعد دواړه دیوې ښځې نومونه وي ،په نامه کې به یې اختلاف پیښ سوی وي اویا کېدای سي ارنب یې نوم اوأم سعد یې کنیه نوم وي.[٥٣٢]

## «دفضاله بن عمیر او صفوان بن امیه اسلام راوړل»

که څه هم نبي کریم ﷺ دصفوان دوژلو حکم نه ؤکړی اونه یې مباح الدم بللی ؤ خوځرنګه چې دقریشو دمشرانو له ډلې څخه ؤ،ویریدی اوله مکې څخه وتښتیدی عمیر بن وهب جهمي د رسول الله ﷺ څخه امن وغوښتی ،رسول الله ﷺ یې غوښتله ومنله ،امې ورکی ،خپله لنګې یې ورولیږله ،چې مکې ته ور سره راسي ، عمیر پسې ورغلی هغه په جده کې ؤ په داسې حال کې یې ونیوی چې په کښتي کې یمن ته روانیدونکی ؤ ،هغه ته یې دامن خبر ورسوی اوبیرته یې راوګرځوي ،هغه درسول الله ﷺ حضورته راغی او ورته وی ویل دوی میاشتي مهلت راکړه چې په مسئله کې ښه غور وکړم ،رسول الله ﷺ ورته وفرمایل :څلور میاشتي مهلت درکوم ، هم هغه ؤ چې وروسته صفوان په اسلام مشرف سو،ښځه یې ترده مخکې مسلمانه سوې وه ، رسول الله ﷺ په هم هغه زړه نکاح دوی ته دګډ ژوند اجازه ورکړه فضاله چې ډیر میړنی اوغیرتي سړی ؤکله چې رسول الله ﷺ طواف کوی هغه راغی نیت یې درلودی چې رسول الله ﷺ په قتل ورسوي ، خو رسول الله ﷺ هغه ته دده دبدې ارادې په هکله خبرورکی ،په دې ترتیب سره هغه په اسلام مشرف سو.

---

[٥٣٢] فتح الباری ٨/ ١١.

## «د فتحې په دويمه ورځ د سيد البشر ﷺ خطبې ته د خلکو حضور»

د فتحې په دويمه ورځ رسول الله ﷺ د خطبې لپاره پورته سو، خلک ورته ناست ؤ خطبه يې په حمد او ثناء سره پيل کړه وي فرمايل: چې اې خلکو! الله تعالی له هغې ورځې څخه چې مځکه او آسمان يې پيدا کړي دي مکې ته حرمت ورکړی دی او ترقيامته پورې د الله جل جلاله په حکم د همدې حرمت درلودونکې ده، هيڅ مؤمن ته هغه چې پر الله او آخرت ايمان لري روانه ده چې په مکه کې د چا وينه توی کړي يا د مکې کومه درخته وشکوي، که چا په مکه کې د رسول الله ﷺ پر جنګ استدلال کوی نو ورته ووايا ست چې الله جل جلاله خپل رسول الله ﷺ ته اجازه ورکړې وه خو تاسې ته يې اجازه نه ده درکړې، ما ته د ورځې يوه برخه حلاله وګرځول سوه خو نن بيرته د پرون په ډول د مکې حرمت اعاده سو، موجود کسان دې دغه لاربښوونې غائبينو ته ورسوي، په بل روايت کې راغلي د مکې اغزي پرېکول هم روا نه دي ښکارېږي له ځايه نه پورته کول کېږي، پر مځکه پراته بې مالکه شيان يې نه اخيستل کېږي، يعني چا ته روا نه ده چې پر لارو پراته شيان را پورته کړي خو هغه کسان چې دا شيان وپيژني او خپل يې وي او يا يې مالک ته ورسولای سي نو بيا ورته روا ده چې پورته يې کړي او روانه دي چې څوک د دې ځای وښه پرېکړي، حضرت عباس رضي الله عنه عرض وکی چې يا رسول الله ﷺ له اذخر (يو بوټي دی) پرته ځکه دا يې د کورنو او مينځو لپاره دی رسول الله ﷺ وفرمايل چې بيله اذخر څخه، په دې ورځ خزاعه قبيلې د بنی ليث له قبيلې څخه يوسړی د خپل مړي په بدل کې چې د جاهليت په دوران کې بني ليث وژلی ؤ ووواژه، په دې هکله رسول الله ﷺ دا سې وفرمايل: اې خزاعه والاؤ! له وژلو ډډه وکړئ، که په وژلو کې ګټه وی نو ډېر مو وژلي دي، تاسې دا سې څوک وواژه چې بايد زه يې ديت ورکړم، که چا تر دې وروسته څوک وواژه نو د مقتول کورنۍ کولای سي په خپله خوښه يا قاتل ووژني (قصاص سي) او يا دا چې د مقتول ديت ترلاسه کړي، په بل روايت کې راغلي دي، چې د يمن يو اوسيدونکی چې ابو شاه نوميدی ولاړ سو او عرض يې وکی چې يا رسول الله ﷺ! ما ته څه وليکه رسول الله ﷺ وفرمايل: او شاة ته وليکئ.

## «دانصارو فکرونه او اندیښنې»

کله چې دنبي کریم ﷺ له خوا مکه مکرمه فتحه سوه هغه مکه چې درسول الله ﷺ کور، وطن او اصلي ټاټوبی ؤ، انصارو په خپل مین ځ کي سره وویل اوس چې الله جل جلاله خپل رسول الله ﷺ دمکې په فتحي سره ونازوی او خپل ټاټوبی یې ورته فتحه کی نو فکر نه کوي چې دې به هم دلته پاته سي، داخبري یې په داسي وخت کي کولی چې نبي کریم ﷺ پرصفا ولاړ ؤ لاسونه یې ددعا لپاره پورته نیولي ؤ، کله چې له دعا څخه فارغ سو انصارو ته یې وویل څه موسره وویل؟ دوی جواب ورکی هیڅ مو هم نه دي ویلي، رسول الله ﷺ اصرار ورکی ترڅو دوی خپله خبره ورته وکړه، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: الله ته پناه وړم، مرګ به مي ستاسي سره وی او ژوند به می هم ستاسي سره وی.

## «دبیعت دپاره دخلګو راتګ»

وروسته تردې چې دالله جل جلاله په کرم سره مکه فتحه سوه، دمکې خلګو ته حقیقت څرګند سو، په حق پوه سول اوپردې باوري سول چې له اسلام پرته بله دنجات او خلاصون لاره نسته، هم دا وه چې په اسلام مشرف سول اودرسول الله ﷺ سره دبیعت لپاره راټول سول رسول الله ﷺ پرصفا ناست، خلګ ورته راتلل او بیعت یې ورسره کوی، حضرت عمر رضي الله عنه لاندي ولاړ ؤ، خلګ یې تنظیمول، خلګو ټولو پردې بیعت ورسره وکی چې دالله توان په انداره به درسول الله ﷺ امرمني اوپیروي به یې کوي، مدارک کي راځي چې وروسته له هغه چې رسول الله ﷺ دنارینه ؤ له بیعت څخه وزګار سو نوښځو بیعت ورسره شروع کی، رسول الله ﷺ هم الته په صفا کي تشریف درلودی، حضرت عمر رضي الله عنه لاندي ورته ناست، ښځي به راتللی او حضرت عمر رضي الله عنه به درسول الله ﷺ په امر بیعت ورڅخه اخیستی دښځو خبره به یې رسول الله ﷺ ته رسوله، په همدې وخت کي هنده بنت عتبه راغله ځان یې پیچلی اوپټ کړی ؤ له رسول الله ﷺ څخه بیریدله ځکه له حمزه رضي الله عنه سره یې ډیر ظلم کړی ؤ، همداوجه وه چې په داسي حالت کي بیعت ته راغله چې ځان یې ښه پیچلی ؤ، رسول الله ﷺ ښځوته وفرمایل چې په دې بیعت ورڅخه اخلم چې له الله جل جلاله سره به هیڅ شریک نه نیسي، بیارسول الله ﷺ وفرمایل چې پردې به بیعت کوي چې غلا به نه کوی، په دې وخت کي هندې وویل ابوسفیان ډیرسخت اوبخیل سړی دی که فرضا زه دهغه له مال څخه څه اندازه واخلم نو آیادا هم غلا شمیرل کیږي؟ ابوسفیان وویل څه، څه چې دي زماله مال څخه واخیستل هغه درته حلال دي،

رسول الله ﷺ وخندل ،هنده يې وپېژندله اووی فرمايل : چې ته هنده يې؟دې وويل هو،زه
هنده يم عفوه راته وکړه يانبي الله .الله تعالی دې تاته عفوه وکړي ،بيارسول الله ﷺ
وفرمايل پردې بيعت کوی چې زنابه نه کوی ،هندې وويل آيا اصليه ښځه هم
زناکوي؟رسول الله ﷺ وفرمايل دبيعت بل ټکی به داوي چې خپل اولادونه به نه وژنی
،هندې وويل موږ هغه لوی کړل خوتاسي ووژل ،ددې زوی حنظله بن ابي سفيان په بدرکي
وژل سوی ؤ ،په دې سره حضرت عمر رضي الله عنه دومره وخندل چې پرمځکه پرېوتی،رسول الله
ﷺ هم مسکې سو،رسول الله ﷺ وفرمايل پردې به بيعت کوی چې بهتان به نه کوی ،
هندې وويل بهتان ډيربد کاردی ،يارسول الله ﷺ ستاټول امرونه ډيرنيک اوغوره دی
،بيارسول الله ﷺ وفرمايل پردې به بيعت راسره کوی چې پرنيکی به سرغړونه نه کوی
،همېشه به مي امر منی ،هندې وويل دلته چې درته راغلی يو نودامو په زړه کي نسته چې
بيابه دې نافرماني کوو .

## «په مکه کي دسيدالبشر ﷺ استقامت»

نبي کريم ﷺ (١٩) ورځي په مکه مکرمه کي پاته سو ،خلک يې اسلام ته رابلل ،دهدايت
او تقوی لارښووني يې ورته کولی ، په همدې ورځوکي يې اسيد خزاعي ته وظيفه ورکړه
چې د حرم شريف پولي تازه اونوي کړي ،نوي بريدونه يې کېنوول ،رسول الله ﷺ د بلني
لپاره يوې اوبلې خواته ګروپونه وليږل ، دې ګروپونو ته يې همدارنګه امرکړی ؤ چې
دمکې په شاوخوا کي موجودبتان مات کړی ،همداوه چې ټول بتان مات سول .درسول الله
ﷺ له خوا په مکه کي اعلان وسو ،څوک چې پرالله جل جلاله اوآخرت ايمان لري بايد په خپل
کورکي بت ونه ساتي ،که دچاسره بت وي نوبايد سمدستي يې مات کړي .

## «جنګي ګروپونه اودهغوی اميران»

(١) :له فتحي وروسته چې رسول الله ﷺ داده سوداتم هجري کال درمضان په مياشت کي
يې خالد بن وليد رضي الله عنه ته وظيفه ورکړه چې دعزی نامي بت ته ورسي ، اوهغه مات کړي ،
دغه بت په (نخله ) کي ؤ ،داد قريشو اوټولو بني کنانه معبود ؤ ،منجوري يې له بني شيبان
قبيلې څخه وه ،خالد رضي الله عنه له ديرشو سپرو سره ورغی او دړې وړې يې کی ، کله چې بيرته
راغی رسول الله پوښتنه ورڅخه وکړه چې څه دې وليدل؟ده وويل هيڅ مي هم ونه ليدل ،
رسول الله ﷺ وفرمايل : نوبيادې مات کړی نه دی ،ورسه مات يې کړه خالد بيا ور روان
سوښه په غوصه توره يې په لاس کي نيولی وه که ګوري چې يوه لڅه لغړه توره ببرسری
ښځه يې مخ ته راووتله ،منجور چيغې پسې وهلی ،خوخالد رضي الله عنه دتوري په وار سره دوی

رسول الله ﷺ تو تې کړه، بيا د رسول الله ﷺ خدمت ته حاضر سو او قصه يې ورته وکړه، رسول الله ﷺ وفرمايل هو! هم دا د عزى بت ؤ هغه به نور تر قيامته دلته ونه لمانځل سي.

(۲): په همدې مياشت کې يې عمرو بن عاص رضي الله عنه ته وظيفه ورکړه چې ولاړ سي او سواع نومي بت ونړوى، دغه بت د مکې څخه درې ميله ليرې د رهاط په سيمه کې ؤ او هذيل قبيلې به يې عبادت کوى، کله چې عمرو رضي الله عنه هلته ورورسيدى منجور يې ورته وويل: څه غواړې؟ ده وويل رسول الله ﷺ امر راته کړى دى چې دغه بت ونړوم، منجور ورته وويل دا کار نه سى کولاى، ده ورته وويل چې ولې؟ هغه وويل ددې کار اجازه نه درکول کيږي، يعنى لاس به دې نيول کيږي، عمرو رضي الله عنه ورته وويل ته لاتر اوسه پر غلطه روان يې، ستا پر حال افسوس دى، آيا دغه بت څهويني يا يې اوري؟ چې ته يې په هکله د تصور لرى؟ بيا ورنژدې سو او بت يې ټوټې ټوټې کى، خپلو ملګرو ته يې امر وکى چې د بت د خزانو کوټې هم ونړوى، هغه يې ونړولې خو هيڅ يې په کښې پيدا نه کړل، بيا يې منجور ته وويل ودې ليدل څنګه سو؟ هغه وويل الله ته تسليم يم.

(۳): په همدې مياشت کې يې سعد بن زيد اشهلي ته امر وکى چې له شلو سپرو سره ولاړ سي او منات ونړوي، دغه بت په مثلل سيمه کي له قديد سره نژدى پروت ؤ، اوس خزرج او غسان قبيلو به يې عبادت کوى، کله چې سعد ورغى منجور ورته وويل: څه غواړې، ده ورته وويل منات نړوم، هغه وويل: دا ته او دا منات، سعد رضي الله عنه ورمخ ته سو دلته هم يوه توره لڅه بېر سرى ښځه راووته، ښراوى يې کولې، سينه يې ډبوله، منجور ورته وويل: اې منات! پام دا ستا څخه باغيان دي، سعد وار پر وکى او ويې وژله، بيا بت ته ورغى دړې وړې يې کى، دلته يې هم په خزانه کې هيڅ پيدا نه کړل.

(۴): خالد رضي الله عنه چې د عزى تر ماتولو وروسته بيرته راغى، رسول الله ﷺ د همدې کال د شعبان په مياشت کې بني جذيمه ته وليږى تر څو دوى اسلام ته را دعوت کړي، همداؤ چې له (۳۵۰) مهاجرو، انصارو، او بني سلمه له کسانو سره روان سو ورغى دوى يې اسلام ته را وبلل، دوى ددې پر ځاى چې اسلمنا ووايي ويل يې صبانا، صبانا، (دين موبدل کړى، دين موبدل کړل) ويل شروع کړل، په دې خبره سره خالد رضي الله عنه شروع په وکړه وژل او نيول يې دوم ره بنديان يې ونيول چې هر سړي به يو بندي را روان کړى ؤ، يوه ورځ يې بيا خپلو ملګرو ته امر وکى چې هر يو دې خپل بندي ووژني، او کله چې د رسول الله ﷺ حضور ته راغلل د قصه يې ورته وکړه، رسول الله ﷺ خپل لاسونه پورته کړل او وى فرمايل: اې ربه! زه د خالد له کړو څخه برائت اعلانوم. دا خبره يې دوه ځله تکرار کړه

د خالد له ملګرو څخه يوازي د بني سليم کسانانو خپل بنديان وژلي ؤ، مهاجرينو او انصارو دا امر نه ؤمنلی، په دې پسې رسول الله ﷺ حضرت علي رضي الله عنه ولیږی ترڅو دهغه قبيلې ديت ورکړي او د تاوان معاوضه يې اداکړي، د دې پيښې په اړه دخالد او عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه ترمينځ سخت جنجال راپيدا سوي ؤ خبره آن تر رسول الله ﷺ ته ورسيده او خالد ته يې وفرمايل صبر کوه خالده! زما له اصحابو سره غرض مه لره، قسم په خدای که داحد دغره په اندازه سره زر دخدای په لار کې خيرات کړې زما ديوه صحابي دسهار يا ماښام اجر به هم پيدا نه کړې.[534]

دا وه دمکې فتحه، همدا سره نوشت تاکونکې غزا اولويه سوبه وه، په همدې سوبې سره شرک ختم سو، په عربي جزيره کې دشکر کمبله ټوله سوه، مخکې زياترو قبيلو داسلام او کفر ترمينځ دجنګ پايلې او نتيجې ته انتظار کوی، دوی دا باور درلودی چې په حرم شريف کې به حتما دحق غلبه وي، دوی ته دا باور هغه وخت پيدا سوی ؤ چې اصحاب الفيل مات سول او وی نه سوای کړای حرم شريف ونيسي، دوی ايمان درلودی چې په حرم کې به دحق حاکميت وي، دحديبيې تړون د دې لويي فتحې سريزه او پيلامه وه، دهغه تړون له برکته خلک په امن سول يو له بل سره يې داسلام په هکله مناقشې وکړې، په مکه کې پټ مسلمانان راښکاره سول او له همدې امله ډير خلک په اسلام مشرف سول، ومولیدل چې دفتحې په ورځ داسلامي لښکر شميره لس زرو ته رسيدلې وه، دمکې په فتحې سره له ټولو حقايقو څخه پردې پورته سوې، په ټوله عربي جزيره کې داسلام او مسلمانانو سياسي او ديني حاکميت ثابت سو، په دني او دنيوي لحاظ دواړو سره مشرتابه د دوی په لاس کې ولويده، حالات د مسلمانانو په ګټه بدلون پيدا کړی، په دې پسې نور حالات له هره پلوه دمسلمانانو په ګټه څرخيدل، هرڅه د دوی په واک کې ؤ، نورو اقدامو او قبائلو بله چاره نه درلوده، مجبور ؤ ټول درسول الله ﷺ خدمت ته حاضر سي، په خپله په اسلام مشرف او نور خلک هم اسلام ته راوبولي، په دې ډول سره په دوو راتلونکو کالونو کې ټول خلک داسلامي دعوت لپاره تيار او چمتو سول.

## «دسيدالبشر ﷺ دژوندروستی دريمه مرحله»

دا مرحله درسول الله ﷺ دژوند ورستی مرحله ده، په همدې دوره کې داسلامي دعوت درختي ميوه وکړه، جهاد او کړاونو نتيجه ورکړه، عربي جزيرې درسول الله ﷺ

---

[533] صحيح البخاری ١/ ٤٥٠.
[534] ابن هشام ٢/ ٢٨٩.

اومسلمانانو نه ستړیدونکو هلوځلو ،منډو ترړو اومشکلات په نتیجه کې پخه سوې میوه وخوړه ، دمکې فتحه هغه لویه کامیابي وه چې په لاس ته راوړو سره یې دتاریخ پاڼه واړوله ،دغه سوبې سره ماضي له راتلونکي څخه بیله سوه ،دجاهلیت په زمانه کې قریش ددیني زعامت دسمبول په حیث پیژندل کېدل ، ټولو خلکو دوی ددین انصاربلل ، ټولو د دوی دیني زعامت منلی ؤ،اوس دهمدې دیني مشرانو (قریشو)تسلیمي اوداسلام پیروي په حقیقت کې په ټوله عربي جزیره کې دبت پرستي له مینځ تلو په معنی ؤ،حقیقت هم داسي ؤ،په همدې فتحې سره له جزیرې څخه دبت پرستي تغر ټول سو.

## «ددي مرحلې تقسیم دوو برخوته»

۱ : دجهاد اوقتال برخه. ۲ : اسلام ته د ولسونو اوقبایلو تسلیمي.

دا دواړې برخې یودبل سره اوبدل سوی ،تړل سوي اویوپه بل کې ننوتلی دی خوموږ کوښښ کړی چې هره برخه جلا ترنظرتیره کړو ،څرنګه چې جهاد اوقتال په مخکنۍ دورې پوري تړل دي نو ځکه مولومړی دجهاد اوقتال برخې ته ځان ورکړی دی.

«**دحنین غزا**:مکه مکرمه دناڅاپه اوسختي حملې په ترڅ کې فتحه سوه، شا وخوا پرتې قبیلې له فتحي وروسته داسي واقعیت په وړاندې ولاړی وی چې چې د بدلون اوتغیر وس یې نه درلودی ، هم دا وجه وه چې له څو زورو ،شریرو اوکبرجنو پرته نوري ټولي قبیلې په اسلام مشرفی سوی ،له دوی څخه چې کبر اوسرکښي یې وکړه دهوازن اوثقیف قبیلې وی ،دوی اسلام ونه منی ،بلکه دمقابلې لارې خپله کړه ،ورسره دقیس عیلان قبیلې ځیني کورنۍ لکه نصر،جشم ،سعدبن بکر اوبني هلا ځیني کسان هم ملګري ؤ،دوی دځای لپاره دامناسبه ونه بلله چې اسلام ته سرکښېږدي ،فیصله یې وکړه چې له رسول الله ﷺ سره به ټکر کوي ، ولاړل خپل مشر مالک بن عوف نضري ته ورغلل پرهغه راټول سول اودجنګ لپاره یې ملاوتړله.

## «په اوطاس کې ددښمن لښکر»

ددښمن دځواکونو عمومي قومندان مالک بن عوف له خپلو لښکرو سره روان سو ،دټولو سره اولادونه،ښځي اومالونه هم ؤ،مخکي تراوطاس پوري ورسیدل اوطاس حنین ته نژدې دهوازن قبیلې یوه دره وه . حنین اواوطاس دوې جلاجلا درې دي ،حنین دذی مجاز خواته پرته ده ددې ځای اوعرفات دغره ترمینځ څو میله مسافه ده.

## « كه بري ستاوي نو يوازي وسله وال كسان به دي په درد وخوري »

كله چي مالك بن عوف په اوطاس كي واړول ،دخلكو په مينځ كي دريد بن صمه هم ؤ
نوموړي ډيرزوړ خوغيرتي په جنګي اموروكي ماهراوتجربه كارسپين ږيری ؤ دريدله
خپلو ملګرو څخه پوښتنه وكړه چي اوس موږ په كومه دره كي پراته يو؟دوی ورته وويل په
اوطاس دره كي يو ،دغه زاړه تجربه كارجنګي ماهر وويل داد آسونو دجنګ لپاره ډيره
مناسبه دره نه ده ،نه ډېري په كښي سته اونه ډيره نشيبه اوځوړه ده ،آس ځغلولو ته ښه برابره
ده ،بيايې وويل : چي داڅه دي دي داوښ آواز مي ترغوږ سو ،دخرو اوپسونو آوازونه هم
اوړېدل كيږي دكوچنيانو ژړا وي هم اورم داڅه دي ؟ خلګو ورته وويل مالك بن عوف امر
كړيدی چي ټول خلك بايد دځان سره ښځي ، اولادونه اومالونه راولي ،مالك يې
راوغوښتی اوددې كار دعلت په هكله يې پوښتنه ورڅخه وكړه ،مالك ورته وويل زما
هدف دادی چې له خلګو سره مالونه او اولادونه وي نودوی به سخت جنګ وكړي ،دوی د
خپل اولاد اومال ددفاع په خاطر هرڅه كوي دريد ورته وويل چي رښتيا چي شپون يې ،
څوك چي يوځل ماته وخوري بيايې څه شي راټينګولای سي؟كه بري ستاوي نو يوازي
وسله وال كسان به دي په درد وخوري اوكه ماته دربانديٍ كړه سوه نودمال،اولاد اوښځي
تاوان به هم دراوښتی وي ،رسوا اوشرميدلی به يې بيايې دځينو سردارانو اوقبيلو په
هكله سوال ورڅخه وكی ،بيايې ورته وويل اې مالكه!تا دبني هوازن كوچنيان او ښځي
دسپرو تورزنو مقابلې ته راوستلي دي ،دادی مناسب كارنه دی كړی ،دوی محفوظو
،خوندي اودقوم هسكو مينو ته وليږه ، ددوی ترليږلو وروسته پرآسونو پښې وا ړوی اوله
بي دينانو سره وجنګيږی ، كه كامياب سواست نو وروسته پاته سوي به درسره يوځای سي
اوكه موماته وخوړه نوستاسي اولاد ،ښځي اومالونه خوبه خوندي پاته سوي وي ،مالك
ددې زاړه خبره ونه منله ،دهغه نصيحت ته يې غوږ ونه نيوی ، اووی ويل زه داسي نه سم
كولای ،ته زوړ سوی يې ،عقل دي هم زوړ سوی دی ،قسم په خدای چي هوازن به
يازما اطاعت كوي اويابه داتوره به خپل نس جګوم ترڅو د شامی ووزي ،حقيقت دادی چې
اصلا مالك نه غوښتل د دريدنوم لوړسي اوپه دې جنګ كي دده رول وي،په دې خبره سره
دهوازن خلګو وويل موږ ستاپيروي كوو، خودريد وويل په دې جنګ كي نه پوره برخه
اخلم اونه بالكل ورڅخه جلا كيږم ،اودا داسي ورځ ده چي ما هيڅكله هم نه ده ليدلی بيايې
داشعر ووايه :  يالتيني فها جذع ... اخب فيها وأضع

اقود وطفاء الدمع ... كأنها شاة مدمع

**ترجمه**: کاشکي زه په دې ورځ ځوان وای ،برید ،حمله ،منډې او تړه مي کولای ،هغه آس مي ځغلولای چې دمتوسط پسه په ډول ویښتان لري .

## «ددښمن جاسوسي کونکي»

په همدې وخت کي هغه جاسوسان هم را ورسیدل کوم چي مالک دمسلمانانو دحالاتو معلومولو په خاطر لیږلي ؤ ،دوی په ډیربدحالت کی راغلي ؤ ،ټوک ټوک ؤ ،مالک ورته وویل خوارسی داخه درسوي ودي ،دوی ورته وویل موږ ولیدل چي سپین سپین خلګ پر توربخونو آسونو سپاره ،ددې مظر په لیدو سره له واکه ووتو ، اوپه دې حالت کي ګرفتارسوو

## «درسول الله ﷺ استخباراتي اشخاص»

وروسته له هغه چي رسول الله ﷺ ددښمن دځواکونو له تحرکاتو څخه خبرسو ،اوحداد اسلمي ته یې وظیفه ورکړه چي ولاړسي دددښمن په مینځ کي ځای ونیسي ، اومکمل احوال یې ورته راوړي .

## «رسول الله ﷺ دحنین پر لور»

داتم هجري کال دشوال دمیاشتي په شپږمه دشنبې په ورځ اومکې ته درسول الله دراتګ په نولسمه ورځ اسلامي لښکر چي شمیره یې دوولس زره تنه وه له مکې څخه دحنین په طرف روان سول ، په اسلامي لښکر کي لس زره هغه مسلمانان ؤ چي دمکې په فتحه کي یې برخه درلوده اوپاته دوه زره نور دمکې خلګ ؤ چي زیات یې تازه په اسلام مشرف سوی ؤ ،رسول الله ﷺ عتاب بن اسید په مکه کي خلیفه وټاکی ،له صفوان بن امیه څخه یې چي لامشرک ؤ وسله ،زغري عارینا واخیستلې ،او روان سو ،دشپې له خوا یو سپورراغی خبر یې راوړی چي زه فلاني اوفلاني غره ته تللی وم ،ومي لیدل چي هوازن قبیله ټوله له اولادونو ،ښځو اومالونو سره راوتلې ده ،رسول الله ﷺ تبسم وکی اووی فرمایل : چې ان شاء الله سباته به دا ټول شیان دمسلمانانو په لاس نیول کیږي ، په هم هغه شپه انس بن مرثد غنوی[۵۳۵] په رضا کارانه توګه پیره کوله ،دوی دلاري په اوږدو کي یوه لویه شنه درخته ولیده چي ذات انواط ورته ویل کېده ،عربو به پرهغه درختې خپل وسلې راځړولی اوهم الته به یې ذبحه کوله اوڅه وخت به ورسره پاته کېدل ،له مسلمانانو څخه هم ځینو وویل یارسول الله ﷺ موږ ته هم لکه دمشرکینو په ډول یوه ذات انواط جوړه کړه ،رسول الله ﷺ وفرمایل چي الله اکبر ،تاسي خوداسي خبره وکړه لکه څرنګه چي دموسی علیه السلام قوم موسی

---

[۵۳۵] سنن ابی داؤد شرح عون المعبود ۲/ ۳۱۷

عليه السلام ته کړی وه، ورته ويلي يې ؤ چې موږ ته هم د دوی د خدايانو په ډول خدای جوړ کړه ، موسی عليه السلام ورته ويلي چې تاسي نه پوهيږئ ، رښتيا ده چې دا هم هغه طريقه ده تاسي به حتما د پخوانيو قومونو لاري او طريقې تعقيبوئ ، ځينو مسلمانانو چې د لښکر دا دومره زيات شمير ليدلی ؤ نو ويل يې چې نن به بالکل ماته ونه خورو ، پر رسول الله صلی الله عليه وسلم دا خبره ډيره سخته تمامه سوه .

## «پر اسلامي لښکر غلچکي بريد»

د رسول الله صلی الله عليه وسلم لښکر د چارشنبې په شپه د شوال په لسمه حنين ته ورسيدی خو مالک بن عوف تر مسلمانانو مخکي هلته رسيدلی ؤ ، خپل عسکريې د درې په مهمو ځايونو ، لارو او تنګيو کي ځای پر ځای کړه ، امريې ورته کړی ؤ چې دې ځای ته د مسلمانانو په رسيدو سره سم بايد بريد وربانديوسي ، او په غشو وويشتل سي ، رسول الله صلی الله عليه وسلم سهار وختي لښکر تيار کی ، جنډې او بيرغونه يې وتړل پر مسلمانانو يې وويشل او په دره کي مخ په وړاندي روان سول ، په همدې وخت کي په کمين کي ناست دښمن د غشو باران پر جوړ کی ، سخته حمله يې پر وکړه ، مسلمانان مجبور سول چې شاته تګ وکړي ، خو منظم شاتګ نه بلکه ماته په ګډه سوه ، هرچا خپله مخ ونيوله ، يو په بل خبر نه ؤ ، ابو سفيان چې نوی مسلمان سوی ؤ د دې حالت په ليدو سره يې وويل او س يې ثوک والله که په سره بحيره کي هم راتينګ کړل سي ، جبله يا کلده چې د جنيد زوی وويل : خبردار! دادی نن جادو او سحر باطل سو ، رسول الله صلی الله عليه وسلم راسته طرف ته مخ واړوی وی فرمايل : ای خلکو ! زما خواته راسئ :

انا النبي لا کذب ... انا ابن عبد المطلب

**ترجمه**: زه رسول يم ، زه محمد بن عبد المطلب يم ، په دې شيبو کي يوازي کم شمير مهاجرين او د رسول الله صلی الله عليه وسلم د کورنۍ غړي ورسره پاته ؤ دلته يو ځل بيا رسول الله صلی الله عليه وسلم بې مثله غيرت او ميړانه په اثبات ورسوله ، په پوره جرأت او شجاعت سره به يې مقابله کوله او فرمايل به يې زه رښتونی پيغمبر يم ، زه د عبد المطلب زوی يم ، رسول الله صلی الله عليه وسلم د غره په ډول ولاړ ، ، ابو سفيان بن حارث د کچري واګي نيولي وی ، حضرت عباس رضی الله عنه يې رکاب ته ولاړ ؤ ، د جنګ په همدې سختو شيبو کي رسول الله صلی الله عليه وسلم را کښته سو او د خپل جل جلاله څخه يې د بري سوال وکی وی فرمايل : يا ربه ! بری را کړې ، نصرت را په برخه کړې .

## «د حضرت عباس رضي الله عنه صوت د مسلمانانو بیرته راتګ»

رسول الله صلی الله علیه وسلم خپل اکا حضرت عباس رضي الله عنه ته چي ښه لوړ ږغ یې درلودی امرو کی چې خلګو ته چیغه کړي ،عباس رضي الله عنه وایي ما په لوړ آواز ږغه کړه چې چیرې دي د بیعة الرضوان یاران؟ وایي ددې آواز په اورېدو سره دوی داسې راګرځېدل او دومره په بیره راغلل لکه چې غوا په خپل خوسي ورځي ،ټول ویل لبیک لبیک ،ځینو به کوښښ کوی چې د خپل اوښ مخ را واړوي خونه به یې سوای کولای نوله اوښ څخه به راکښته کېدی ،هغه به یې پرېښووی له خپلې توري او زغري سره به د آواز په طرف راتلې، په دې ترتیب سره تقریبا سل کسان راټول سول او پر دښمن یې ور ودانګل ، بیایې انصارو ته بلنه ور کړه ، .غ یې وکی اې انصارو ! اې انصارو !بیایې یوه یوه قبیله یادوله ،په دې ترتیب سره خبره تر بني حارث بن خزرج پوري ورسیده ، مسلمانان ټول یو په بل پسې راتلل ،ټول ګروپ ګروپ بیرته د جنګ میدان ته راغلل ،سخت جنګ شروع سو ،رسول الله صلی الله علیه وسلم د جنګ حالت ولیدی وی فرمایل اوس د جنګ تنور ګرم سو ،بیایې یو موټ خاوري واخیستلې او د مشرکانو پر مخونو یې ور وشیندلې او وی فرمایل : شاهت الوجوه . یعني بد دي وي دا مخونه . دا خاوري د مشرکینو په سترګوکی ولویدی ،د ټولو سترګې ډکي سوې او په همدې ډول کرار ،کرار د کفر په لښکر ماته ګډه سوه او د مقابلې توان یې له لاسه ورکړی .

### «د دښمن شکست»

د همدې یو موټ خاورو له شیندلو وروسته په دښمنانو ماته ګډه سوه ،یوازي له ثقیف قبیلې څخه او یا (۷۰) تنه ووژل سول ،مسلمانانو د دوی مال ،وسله ،اهل او اولادونه ټول غنیمت کړل، دې حالت ته الله تعالی داسې اشاره فرمایي :

وَيَوْمَ حُنَيْنٍ إِذْ أَعْجَبَتْكُمْ كَثْرَتُكُمْ فَلَمْ تُغْنِ عَنكُمْ شَيْئًا وَضَاقَتْ عَلَيْكُمُ الْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ ثُمَّ وَلَّيْتُم مُّدْبِرِينَ (۲۵) ثُمَّ أَنزَلَ اللَّهُ سَكِينَتَهُ عَلَىٰ رَسُولِهِ وَعَلَى الْمُؤْمِنِينَ وَأَنزَلَ جُنُودًا لَّمْ تَرَوْهَا وَعَذَّبَ الَّذِينَ كَفَرُوا وَذَٰلِكَ جَزَاءُ الْكَافِرِينَ سورة توبه آیت (۲۶) **ترجمه** :الله تعالی ستاسي په ډیرو ځایونو کي مرسته کړې ده او خصوصا د حنین په ورځ چي غره کړاست تاسي ډیروالي ستاسي ، دغه ډیروالی ستاسي هیڅ درد دوانه کړه ، له بیري دا پراخه مځکه دربا ندي تنګه سوه ،بیا موشا کړه دښمن ته بیا الله تعالی جل جلاله خپل تشکین نازل کی پر رسول الله صلی الله علیه وسلم او مؤمنانو باندي او داسي لښکر یې را ولیږی چې نه وی لیدلی تاسي او کافرانو ته یې عذاب او جزا ورکړه ، د کافرانو سزا هم داده .

دښمن ماته وخوړه، ځيني طائف ته ورپې نخلې اويوه ډله يې اوطاس ته وتښتيدل، رسول الله ﷺ ابوعامر اشعري ديوه ګروپ په مشري اوطاس ته ولیږی هلته څه کم جنګ وسو، مشرکينو بيا ماته وخوړه، خوابوعامر رضي الله عنه هم په شهادت ورسيدی، دسپرو مسلمانانو يو بل ګروپ په هغه مشرکينو پسې ورغی، چي نخلې ته تښتيدلي وُ، هلته ربيعه بن رفيع هغه زوړ درید بن صمه وواژه، زيات شمير مشرکان طائف ته وتښتيدل. رسول الله ﷺ دغنيمتونو له ټولولو وروسته ورپسې ورغی.

## «د دې غزا غنيمتونه»

ددې غزا ولجې ډيرې زياتي وې په دې ولجور کی (٦٠٠٠) ښځې مينځې (٢٤٠٠٠) اوښان تر څلويښتو زرو زيات پسونه، څلور زره وقيه (دهغه وخت د زرو داندازې يو مقياس وُ) نقر (سپين زر) چي (١٦٠) زره درهمه کیدل، رسول الله ﷺ امروکی چي ټول غنيمتونه په جعرانه کی راټول سي، مسعود بن عمرو غفاري رضي الله عنه ته يې وظيفه ورکړه چي دهغه ساتنه وکړي او د طائف تر غزا مخکي يې ويشلو حکم ونه کی، دبنديانو ښځو په ډله کي (شيماء بنت حارث سعدي) چي د رسول الله ﷺ رضاعي خورهم کیدله کله چي هغه راوستل سوه، رسول الله ﷺ خپل څادر ورته هوار کی، شيماء پر کښينستله، نيکي يې ورسره وکړه او خپل قوم ته يې ولیږله.

## «د طائف غزا/ په اصل کي د حنين د غزا ادامه»

د طائف غزا په اصل کي د حنين د غزا ادامه ده ځکه د هوازن او ثقيف ماته خوړلی لښکر له خپل قوماندان مالک بن عوف نضري سره .وځای ولاړی، ټول په طائف کي ميشت سول هم الته يې په کلاګانو کي ځايونه ونيول، رسول الله ﷺ چي په جعرانه کی د ولجو له ټولولو څخه فارغ سو دهمدې اتم کال د شوال په مياشت کي د طائف په طرف روان سو، لومړی خالد رضي الله عنه له زرو مخکښانو سره طائف ته ورسيدی، رسول الله ﷺ هم ورپسې روان سو، له نخله يايماني قرن المنازل ورپسې له ليه څخه تيرسو، هلته د مالک يو کلا وه هغه يې ونړوله، مخکي ولاړه طائف ته له رسيدو سره سم يې د طائف کلا محاصره کړه، نژدې يې سنګرونه ونيول، ددغه کلابندي موده لنډه وه، مسلم له انس رضي الله عنه څخه په روايت سره داموده څلور ورځي ښوولې ده، خوسيرت ليکونکي دغه موده تر څلورو ورځو زياته ښيي، درواياتو په خلاف سره شل ورځي يا اتلس ورځي اويا پنځلس ورځي ښوول سوي دي.[1]

---

[1] فتح الباري ٨، ٤٥.

دمحاصرې په دوران کې دواړو خواوو يوپربل دغشو او ډبرو وارونه کول ،په لومړي سرکې مسلمانان دمحاصرې سوو کفارو له خوا دغشو ترسخت بريدلاندي راغلل ، يوشمير ټپيان او دوولس تنه شهيدان سول ،په پاى کي مجبور سول خپل سنګر بدل کړي او په هغه ځاى کي نوى قرارګاه جوړه کړي چې اوس دطائف مسجدپه کښې دى ،رسول الله ﷺ منجنيق ياهغه وخت توپ نصب کړى ، پرکفارو يې وارونه وکړل ،کلا درز وکى اوڅوتنو مسلمانانو دهغه وخت له ټانګ څخه په استفادې سره پرهم دې درز د ورننوتلو هڅه وکړه خو کفارو په غشو سره په شهادت ورسول ، په دې وخت کي رسول الله ﷺ له نوي جنګي تاکتيک څخه کار واخيستى ،اوداسي اقدام يې وکى چې کفار دې ته اړ باسي چې تسليم سي په دې لړکي يې د دوى دانګورو دتاکانو قطع کولو اوسوځلو امر وکى تاکونونه پرې او وسوځول سول ،همداوه چې ثقيف غوښتنه وکړه چې دخداى په خاطر اود خپلوى پرآساس دغه سلسله بنده کړى ، رسول الله ﷺ د دوى غوښتنه ومنله ،درسول الله ﷺ له خوا آواز وسو ،هرمريې چې دکلاله خوا را ووزي اوزموږ خواته راسي هغه آزاد دى ،په دې اعلان پسې (۲۳) تنه راغلل ،په دې ډله کي يوهم ابوبکر ؤ ،هغه دطائف له کلاڅخه راکښته سوى ؤ اولاندي ديوه څاه پرڅرخ ناست ؤ پښې يې ځړولى وى ،له همدې امله رسول الله ﷺ دابوبکر نوم پرکښيښووى ، داټول غلامان يې آزاد کړل ،هريو يې يوه يوه مسلمان ته وسپارل ترڅو د دوى خرڅ اوخوراک ورکي ،په دې سره کفار په غوصه سول او داډيرسخت پرتمام سو ،محاصره اوږده سوه ،دکلا فتحه کول سخت اومشکل ؤ ،دکفارو په غشو اوسرو سوو اوسپنو سره يوشمير مسلمانان زخميان اوشهيدان سول ،په کلا کي دننه له کفارو سره ديوه کال آذوقه (خوراکه) هم وه ،له دباندي خواڅخه هم لاره ورته پيداکول ګران ؤ ،رسول الله ﷺ له نوفل بن معاويه سره مشوره وکړه ،نوفل ورته وويل : چې دوى لکه ګيدړي په غارونوکي دننه دي که دلته انتظار وباسى نووبه يې نيسى او که ايله کړى نوتاوان نه سي در رسولاى ، همدا وه چې رسول الله ﷺ دمحاصرې دختمولو فيصله وکړه ، حضرت عمر رضي الله عنه ته يې امر وکى چې خلګو ته ږغ کړي چي ان شاء الله سبا به روانيږو ، دا اعلان مسلمانانو ته عجيب ښکاره سو ،ډيرسخت پرتمام سو ،وى ويل څوبه خو مخکي له دې چي داکلافتحه کړي!رسول الله ﷺ وفرمايل چې ځى ،سباهم جنګ وکړى ، مسلمانان سهار جنګ ته ولاړل ، يوشميريې ټپيان سول ،بيارسول الله ﷺ په خپله اعلان وکى چې ان شاء الله سبابه روانيږو، مسلمانان دا ځل خوشحاله سول اوټول روان

سول ،رسول الله ﷺ تبسم کوي او کله يې چې کوچ کوي امريې وکی چې داسي وايا ست
(آيبون،تائبون ، عابدون ،لربنا حامدون)

**ترجمه**:په داسي حال کي بيرته ځو چې توبه ګاريو ،عبادت کوونکی اوثناء ويونکی يو،چاعرض وکی چې يا رسول الله ﷺ ثقيف ته ښرا وکړه ،رسول الله ﷺ وفرمايل آې ربه ! ثقيف ته هدايت وکړې او دوی زما حضورته راولی .

## «په جعرانه کي دغنيمتونو تقسيمدل»

رسول الله ﷺ له طائف څخه روان سواوڅه دپاسه لس ورځي په جعرانه کي پاته سو، غنيمت سوي مالونه يې نه ويشل اوانتظاريې کوی چې کېدای سي دهوازن نمايندګان راسي اوخپل مالونه بيرته ور وسپاري ،خوڅوک معلوم نه سول ،رسول الله ﷺ دغنيمتونو ويشل شروع کړل اوهدف يې داؤ چې دمکې مشرانو دقبايلو سرداران اونورمخور خلک چې ډيرخريص ؤ په دې مالونو سره قانع کي ،لومړی يې هغوکسانو ته چې نوي مسلمانان سوی ؤاوددې ضرورت ليدل کيدی چې زړونه يې راجلب سي ،تشويق اوترغيب سي ،دې ډول خلکو ته مؤلفة القلوب ويل کيږي ،همدوی ته يې ترټولو مخکي ښه غټه برخه ورکړه، ابوسفيان ته يې څلويښت اوقيې نقره اوشل اوښان ورکړل ،له دې سره هم ابوسفيان وويل زوی مي يزيد يعني زوی ته مي هم برخه ورکړه ،رسول الله ﷺ يې زوی ته هم دومره برخه ورکړه ،ابوسفيان بيا وويل هغه بل وزی مي معاويه هغه ته هم څه ورکړه ، هغه ته يې هم دومره برخه ورکړه ،وروسته يې حکيم بن حزام ته سل اوښان ورکړل ، هغه دنوري برخي سوال وکی ،نوراوښان هم ورکړل سوه ،صفوان بن اميه ته يې درې ځله سل سل اوښان يعني درې سوه اوښان ورکړل ، په شفاء نومي کتاب کي راځي چې حارث بن کلده ته يې شل اوښان ورکړل ،همدا ډول دقريشو اونور قبايلو سردارانو ته يې سل سل اوښان ورکړل ، نورو ته يې پنځوس پنځوس اوښان وروسته څلويښت څلويښت اوښان ورکړل ، خلکوبه ويل محمد ﷺ دومره بخشش کوي لکه له فقر څخه چې بالکل بيره نه لري ،په همدې وخت کي کوچيانو يوځل چور جوړکی پررسول الله ﷺ ورټول سول ،هريوه مال ورڅخه وغوښتی،رسول الله ﷺ مجبورسوديودرختي خواته ودريدی ،څادريې په زور ځني کش سو وی فرمايل اې خلکو ! څادرمي پريږدی ،قسم په هغه ذات چې زمامرګ اوژوند يې په لاس کي دی ،که دتهامي د درختو په اندازه څخه راسره وای ټول به مي درباندې ويشلی وای ،بله داچې تاسي خوکله هم زه بخيل ،دروا غجن اوډارن نه يم ليدلی ، وروسته دخپلې اوښي خواته ودريدو له بوک څخه يې يو ويښته را وکښی په ګوتو کي يې

نیولی ؤ وی فرمایل : اې خلکو ! قسم په خدای که مې له دې غنیمتونو څخه ددې ویښته په اندازه هم څه شی اخیستی دی ،یوازې خمس زما حق ده چې هغه مې هم بیرته تاسې ته درکړی ده مؤلفة القلوب ته له دې لویو لویو برخو څخه وروسته یې زید بن ثابت رضی الله عنه ته امروکی چې غنیمتونه اوخلک راحاضر کړي ،ټول مالونه یې وویشل ،هرپیاده سړي ته څلور اوښان او څلویښت پسونه ورسیدل ، دسپرو برخه دولس اوښان او یوسل شل (۱۲۰) پسونه ؤ ،رسول الله صلی الله علیه وسلم په ډیره حکیمانه ټوګه داغنیمتونه وویشل ، ځکه ډیرداسې کسان ستة چې دنس له لارې اسلام ته اوستل کیدای سي یعني له مادي لارو څخه دحق خواته رابلل رحمه الله علیه یدای سي ،له دې ډول کسانو سره عقل او منطق کارنه کوي ،لومړی به یې نس ورډکوی بیابه یې حق ته رابولی ،داکسان هغه ښارویو ته پاته کیږي چې دښنو وښو یاشفتلې په واسطه یې پرلاره بیولای سي ، داډول کسان هم همداسې مادي تشویقونوته ضرورت لري ترڅو ورو ورو له اسلام سره الفت او مینه پیداکړي اوپرحق اعتراف وکړي ٥٣٧.

## «دسیدالبشر صلی الله علیه وسلم تقسیم اودانصارو ناراضي»

په شروع کې اصحاب درسول الله صلی الله علیه وسلم ددې حکیمانه ویش اومدبرانه سیاست په راز اوګټو پوه نه سول ، ددې ویش ترشایې پټ اهداف درک نه کړای سوای ، نوهمداوه چې ځینې اعتراضونه اوانتقادونه را ولاړ سول ، په دې ویش کی انصارو دزیات تاوان احساس کوی ،دوی ته دحنین له بخششونو څخه هیڅ ونه رسیدل ،دوی خوهغه کسان ؤ چې دسختې اوماتې په وخت کې بېغ پروسو ،دیو ډیر ژر دجنګ میدان ته راودانګل جهاد یې کوی اوله رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه یې کلکه دفاع کوله اود دوی دمقاومت له برکته ماته په کامیابي بدله سوه خواوس چې دولجو ویشلو وخت سو هم هغه فراریانو اوله جنګ څخه دپرشاسوو کسانو لاسونه ډک دي ،ډیر بخششونه ورکړل سول خودوی (انصارو) ته هیڅ هم ونه رسیدل ٥٣٨، داتصور ددې سبب سوؤ چې ناراضه سي ،ابن اسحاق وایي له ابوسعید خدري رضی الله عنه څخه روایت کوي وایي چې کله رسول الله صلی الله علیه وسلم داغنیمتونه پرقریشو اونورو عربي قبیلو وویشل ،انصارو ته یې هیڅ برخه ورنه کړه ، ذوی خفه سول په دې هکله خبرې اوپوښتنې را ولاړې سوی ،ځینو وویل اوس خو رسول الله صلی الله علیه وسلم له خپل قوم سره یوځای سو ،سعدبن عباده رضی الله عنه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ورغی عرض یې ورته وکی چې یارسول الله صلی الله علیه وسلم

---

٥٣٧ فقه السیرة ص ٢٩٨.
٥٣٨ فقه السیرة ص ٢٩٨.

ستاله دې ویش څخه انصار خفه سوي دي ،تابخششونه خپل قوم ته ورکل ،نورو عربو ته دي هم لویي ،لویي برخي ورکړی ، خوانصاروته دی هیڅ ورنه کړل ،رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : ولاړسه ،اوخپل قوم دي راغونډ کړه ،سعد رضي الله عنه ولاړی اوانصاریې په پنډ غالي کي راټول کړل ،یوشمیر مهاجرین هم راغلل، دوی ته یې اجازه ورکړه ورسره کښېنستل ،ورپسې نورراغلل ،دوی ته یې اجازه ورنه کړه ،کله چي ټول راغونډسول سعد رضي الله عنه ورغی اورسول الله ﷺ ته یې وویل چي انصار راټول سوي دي ،رسول الله ﷺ تشریف ورووړی ، حمداوثناء یې وویله بیایې وفرمایل چي :یاانصارو !ستاسي یوه برخه رارسیدلې ده، لکه چي تاسي زماڅخه خفه سوي یاست ؟ایاداسي نه ده چي تاسي ته په داسي حال کي درغلم چي تاسي ګمراهان واست ،الله تعالی هدایت درته وکی ،تاسي بې وسه واست الله تعالی وس او دا رایي درکړه ،یودبل دښمنان واست الله تعالی سره دوستان کړاست انصارو وویل هو !همداسي ده ، پرموږباندي دالله اورسول الله ﷺ زیاته مهرباني اوکرم دی اوبیایې زیاته کړه چي اې انصارو ! ولي جواب نه راکوی ؟دوی وویل دڅه جواب درکړو یارسول الله ﷺ ،پرموږ دالله جل جلاله اورسول الله ﷺ لوی فضل سوی دی ،رسول الله ﷺ وفرمایل قسم په الله جل جلاله که غواړی چي ووایی اوکه ووایي ریښتوني به هم وي ، وواياست چي یارسول الله ﷺ ته موږ ته په داسي حال کي راغلی چي خلکو درواغ درپوري تړل اوموږ دي تصدیق وکی ،چامرسته نه درسره کوله موږدی مرسته وکړه ،چاځای نه درکوی اوموږ ځای درکي،اې انصارو !دناچیزي مادی متاع په سبب زما څخه خفه نه سی ،ماغوښتل په بې ارزښته متاع سره دخلګوزړونه واخلم ترڅو اسلام راوړی ،ستاسي په اسلام ډاډځرګند سوی اې انصارو !ایاداموخوښه نه ده چي خلګ اوښانو اوپسونوسره روان وي اوتاسي له رسول الله ﷺ سره خپلي میني ته بیرته ولاړسی ،قسم په هغه ذات چي زمانفس دهغه په واک کي دی ،که هجرت نه وای نوزه به له انصارو څخه یوفرد وای ، که ټول خلګ پریوه لار روان سي اوانصار پربله ؛زه به دانصارو پرلار ځم ،اې الله ! جل جلاله ته پرانصارو رحم وکړه ،دانصارو پر زامنو رحم وکړه اودانصارو پرلمسیانورحم وکړه ،په دې خبرو سره ټولو دومره وژړل چي ږیري یې په اوښکو لندې سوې ټولو وویل چي زموږ لپاره رسول الله ﷺ کافی دی همدا عظیمه برخه مو بس ده ،بیارسول الله ﷺ تشریف یو وړی اودوی هم سره تیت سول.

## «دهوازن استازي»

وروسته ترهغه چي غنيمتونه وويشل سول دهوازن قبيلې نمايندګان په داسي حال کي درسول الله ﷺ حضورته راغلل چي په اسلام مشرف سوي ؤ،دوی څوارلس کسان ؤ مشرېې زهير بن صرد ؤ ،ابويرقان چي درسول الله ﷺ رضاعي اکاکېدی هم ورسره ؤ،دوی له رسول الله ﷺ څخه غوښتنه وکړه چي احسان ورسره وکړي ،د دوی بنديان اومالونه بيرته ورکړي ،داسي خبري يې وکړی چي دټولو زړونه پروسوځېدل ،رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : چي زما سره خودغه کسان سته چي تاسي يې وينی ،رښتيا خبري ډيري غوره ګڼم ، دا راته وواياست چي خپل اولادونه اوښځي ډير درباندي ګراني دي که مالونه ؟دوی وويل موږ هيڅ شی هم له خپل نسب ،حسب اوشرف سره نه برابره ؤ ،رسول الله ﷺ وفرمايل : کله چي مودماپښين لمونځ اداکی پورته سی وواياست چي موږرسول الله ﷺ مسلمانانو ته اومسلمانان رسول الله ﷺ ته شفيع وړاندي کوو اودخپلو بنديانو دآزادي سوال ورڅخه کوو ، دماپښين لمونځ چي وسو دوی پورته سول اوهمداخبري يې وکړی ،رسول الله ﷺ وفرمايل :کوم شی چي په مااوبني مطلب پوري اړه لري هغه ټول ستاسی دي اوستاسي لپاره له نورو خلکو څخه هم داسي غوښتنه کوم ،مهاجرينو اوانصارو وويل زموږ سره چي څه شيان سته هغه ټول درسول الله ﷺ دي ، حابس بن اقرع وويل زه او بنو تميمي دا مالونه اوشيان بيرته نه ورکوو ،عيينه بن حصن هم وويل زه اوبنوفزاره هم دا کارنه کوو،عباس بن مرداس هم همدا ډول خبره وکړه وی ويل زه اوبنوسليم هم داشيان نه مسترده ؤخوبني سليم وويل :زموږ شيان درسول الله ﷺ دي ،عباس رضي الله عنه ورته وويل تاسي زه توهين کړم،رسول الله ﷺ وفرمايل : داخلک په داسي وخت کي موږ ته راغلي دي چي اسلام يې راوړی دی ماخود دوی دبنديانو په هکله څه انتظار هم وکی ،اوس مي هم دوی ته اختيار ورکی چي مالونه غواړی اوکه اولادونه ،خودوی هيڅ شی هم دخپلو ښځو او اولادونو سره نه برابروي ،له چاسره چي د دوی بندي سته که خوښه يې وي هغه دي بيرته دوی ته ورکړي اوکه څوک غواړي چي ترخپل حق تير نه سي نوغوره ورته داده چي بندي بيرته ورکړي ،زه به ددوی دهري برخي په عوض کي له راتلونکي غنيمت څخه شپږ برخي ورکړم ، خلکو په جواب کي وويل موږ ته درسول الله ﷺ خوښه ترهرڅه غوره ده ، موږ ټول بنديان بيرته دوی ته ورکوو،رسول الله ﷺ وفرمايل تاسي ولاړسی ،زه هغه کسان چي په دې خبره راضي دي پيژنم ،اوهغه چي راضي نه دي هم راته معلوم دي ،تاسي ولاړسی ترڅو ستاسي مشران په دې هکله ماته ګزارش

راکړي ،ټولو دهوازن قبیلې بندیان ځوانان ؤ که کوچنیان اوکه ښځې ټول یې بیرته ورکړل
، یوازې عیینه چې یوه زړه ښځه یې په برخه کې رسیدلی وه نه ورکوله ،په پای کې یې تر ډېر
بحث وروسته هغه هم ورکړه ،رسول الله ﷺ هرې ښځې ته یوه یوه جوړه قبطي کالي هم
ورکړه.

## «عمره او مدینې ته تلل»

رسول الله ﷺ په جعرانه کې دغنیمتونو ترویشلو وروسته عمره اداکړه اوبیایې مدینې
منورې تشریف یووړی ،عتاب بن اسید یې په مکه کې خپل خلیفه وټاکی ،دکائناتو سردار
د هجرت داتم کال دذیالقعدی په (۲۴) بیرته مدینې ته واپس سوامام محمد غزالي
رحمه الله وایي چې له مکې څخه دهجرت اوبیرت ته مکې ته دفاتح په حیث راتګ ترمنځ
څومره اوږده فاصله وه څومره زمانه تیره سوې وه،پوره اته کاله تیرسوي ؤ رسول الله ﷺ
په داسې حال کې مدینې ته هجرت کړی ؤ چې له مکې څخه شړل سوی ترسخت تعقیب
اوڅارنې لاندې ؤ،هغه وخت هم دمدینې اوسیدونکو ښه راغلاست ورته وواېه ،دده
راتګ یې نیکمرغي وبلله ،ځای یې ورکی ،تود هرکلی یې وکړی ،دده ﷺ اطاعت یې
وکی ورته تسلیم سول مرستې یې ورسره وکړی ، له لارښوونویې ګټه واخیسته ،دده ﷺ
دحضور اوموجودیت په بدل کې یې دډېرو دښمنې ته سینه ډال کړه ،اوس چې له فتحې
وروسته بیرته هغه مدینې ته روان دی ،حالات بدل دي ،داځل په داسې حال کې مدینې ته
روان دی چې مکه یې فتحه کړه ،مکه یې ترحکم اوامرلاندې ده،له هغې ورځې څخه اته
کاله تیرسوي ،حالات دومره بدل سوي چې دکفر اوشرک زور اوبه سوی ،جاهلیت غرور
ترپښو لاندې سوی ،هم هغه جاهل اوګمراه خلګ په اسلام مشرف سوي ،اسلام ترهرڅه
ورته محترم اومقدم سوی ،همدا وجه چې مخکنې ګناوې یې ور وبخښل سوې الله جل جلاله
فرمایي :إِنَّهُ مَن يَتَّقِ وَيَصْبِرْ فَإِنَّ اللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ. سورة یوسف آیت (۹۰) **ترجمه**:چاچې
تقوی اوصبر وکی نوالله تعالی دنیک کارانو اجر نه ضایع کوي.

## «دمکې مکرمې له فتحې وروسته استازي اوسراپاوي»

له دې اوږده اوبریالې سفر څخه تر راتګ وروسته درسول الله ﷺ حضور ته ډېرپلاوي او
وفود راغلل ،داډول رسول الله ﷺ مختلفو سیموته والیان اوبلونکي ولیږل اودهغه
قوتونو پرخلاف یې عسکري اجرائات وکړل ،کوم چې اسلام ته یې خپل سرونه نه اېښوول
، کبرېې کوی اوپر واقعیت یې اعتراف نه کوی ،په لاندې لیکو کې ددې وضعې داسې
یادونه کوو.

## «دزکوة راجمع کونکي»

مخکي مووېل چي رسول الله ﷺ دتم هجري کال په وروستیو کي له مکي څخه راغی لږ موده وروسته دنهم هجري کال دمحرم میاشت رانوی سوه ،رسول الله ﷺ لاندي کسان مختلفو قبیلو ته ولیږل ترڅو له دوی څخه دزکوة مالونه راټول کړي .

۱ :عیینه بن حص رضي الله عنه بني تمیم قبیلې ته .

۲ :یزدي بن حصین رضي الله عنه ،اسلم او غفار قبیلې ته .

۳ : عباد بن بشیر اشهلی رضي الله عنه ،سلیم او مزینه قبیلې ته .

۴ : رافع بن مکیث رضي الله عنه ،جهینه قبیلې ته ،

۵ :عمرو بن العاص رضي الله عنه ،بني فزاره قبیلي ته .

۶ : ضحاک بن سفیان ،بني کلاب قبیلې ته .

۷ : بشیر بن سفیان رضي الله عنه ،بني کعب ته .

۸ : ابن لتبیه ازدی رضي الله عنه ،بني ذیبان ته . ۹ : مهاجرین ابی امیه ،صنعاء ته (نو موړي هم الته ؤ چي اسود غنسي دنبوت دعوه وکړه .)۱۰: زیاد بن لبیه رضي الله عنه ،حضرموت ته .۱۱ :عدی بن حاتم رضي الله عنه طیی او بنو اسد قبیلوته .۱۲ : مالک بن نویره رضي الله عنه بن حنظله ته .زیرقان بن بدر رضي الله عنه ،دبني سعد یوې برخي ته ۱۴ :قیس بن عاصم رضي الله عنه دبني سعد بلي برخي ته ۱۵ :علاء بن حضرمي رضي الله عنه بحرین ته .

۱۶ : علی بن ابي طالب رضي الله عنه نجران ته (دصدقې او جزیې راټولولپاره)

داکسان ټول دنهم هجري کال په محرم میاشت کې نه دي لیږل سوي بلکه ځني یې ترډي نیټې وروسته هغه وخت لیږل سوی دي چي مربوط قبایل په اسلام مشرف سوی ،خوددې عاملینو یا دزکوة راټولونکو موظفینو دلیږلو شروع دنهم کال په محرم میاشت کي ؤ ،داهم دحبیبې دترون له مثبتو نتائجو څخه دی ،اوپردې دلالت کوي چي تردې ترون وروسته اسلام او مسلمانان ډیرځواکمن سوی دي ،دمکې له فتحي څخه وروسته خو خلک ډله ډله په اسلام مشرف سول او ډیرو خلکو داسلام امرته غاړه ایښې ده .

## «سرایاوي»

رسول الله ﷺ که له یوې مختلفو قبایلو ته دزکوة راټولونکي ولیږل له بلي خوا داهم یو ضرورت ؤ چي باید دعربي جزیرې امنیت په ځانګړې توګه دلارو ساتلو ته هم پاملرنه سوی وای ،له همدې امله رسول الله ﷺ دالاندي سرایا (کوچني کوچني ګروپونه )یوې او بلي خواته ولیږل .

# «په دنهم هجري کال دعيينه بن حصن فزاري سريه»

دنهم هجري کال دمحرم په مياشت کې يې د(۵۰) سپرو په مشرۍ بني تميمي ته وليږی، په دې ډله کې له انصارو او مهاجرينو څخه هيڅوک نه ؤ، ددې سريې سبب داؤ چې دبنو تميمي ځينو کورنيو دزکوة له ورکولو څخه منع کوله او د مسلمانانو پرخلاف يې راپارولی، عيينه ورپسې ورغی، هغه به دشپې مزل کوی اود ورځې له خوابه يې کمين نيوی، ور ورسيدی په دښته کې يې حمله پروکړه، دوی وتښتيدل عيينه وتوانيدی چې يوولس سړي، يوووشت ښځې اودېرش کوچنيان دبنديانو په توګه ونيسي، دوی يې له ځان سره مدينې ته راوستل، هلته يې درمله بنت حارث په کور کې بنديان کړل، هم داوه چې د دوی لس تنه مشران مدينې ته راغلل، درسول الله ﷺ دروازې ته ودرېدل چيغې يې وهلې، اې محمد س زموږ فرياد واوره، رسول الله ﷺ تشريف ورته راوړی، دوی ترلمنې ونيوی خبرې يې ورسره شروع کړې، رسول الله ﷺ څه وخت ورسره ولاړ، بيايې تشريف يووړی، دماپښين لمونځ يې اداکی اوپه مسجد کې کښېناستی، هغه خلک راغلل خپل څه وياړونه يې يادکړل، خپل خطيب عطارد بن حاجب يې رامخ ته کی هغه څه خبرې وکړې، رسول الله ﷺ داسلام خطيب (ويناند) ثابت بن قيس شماس ته امروکی چې ددوی دويناند جواب ووايي بيا د دوی شاعرزبرقان بن بدر شعر ووايه مدح اوثناء يې وکړه خپل وياړونه يې يادکړل، په جواب کې د رسول الله ﷺ شاعر حسان بن ثابت رضي الله عنه شعر ورته ووايه: په دې پسې اقرع بن حابس وويل بيشکه چې دددوی (مسلمانانو) ويناند زموږ ترويناند غوره دی، شاعرېې زموږ ترشاعر ډيرمخکې دی، آواز يې زموږ تر آواز لوړ اوخبرې يې زموږ ترخبرو ډيرې درنې دي، دايې وويل بيا ټول په اسلام مشرف سول، رسول الله ﷺ ښې تحفې اوسوغاتونه ورکړل، د دوی ښځې او اولادونه يې ور وسپارل، سيرت ليکونکې عقيده لري چې دغه سريه دنهم هجري کال په محرم کې سوی ده خوداخبره دنقد اعتراض وړده ځکه له دې څخه داسې څرګنديږي چې اقرع بن حابس تردې تاريخ مخکې اسلام نه دی راوړی، په داسې حال کې چې هم دې اقرع دهوازن دبنديانو دبيرته ورکولو په وخت کې ويلي ؤ چې زه او بنوتميم خپل بنديان بيرته نه ورکوو، دادډې معنی لري چې بايد اقرع ترهوازن مخکې مسلمانان سوی وي.

**دقطبه بن عامر سريه:** دنهم هجري کال په صفر مياشت کې دخثعم يوې کورنۍ ته چې قربه ته نژدې تباله کې يې اړولی ؤوليږل، له قطبه سره شل کسان اولس اوښان ؤ چې په نوبت سره به پرسپريدل، ولاړل اوپر دوی يې حمله وکړه، سخت جنګ ونښتی، دواړو

خواوو ډیر تلفات ورکړل، قطبه رضي الله عنه له څو ملګرو سره یوځای په شهادت ورسیدی خوپه پای کي مسلمانان پردې بریالي سول چي له کفارو څخه څوښځي په اسارت ونیسي ،پسونه او اوښان یې غنیمت کړل.

**دضحاک بن سفیان کلابی سریه**:دنهم هجري کال دربیع الاول په میاشت کي دکلاب قبیلې په طرف رسول الله صلی الله علیه وسلم داګروپ ددې په خاطر ولیږی ترڅو کلاب قبیله اسلام ته راوبولي ،خودوی اسلام ونه مني او له مسلمانانو سره یې جنګ وکی په پای کي یې ماته وخوړه، دسر تلفات یې هم ورکړل او مسلمانان بیرته ولاړل.

**دعلقمه بن مجزر مدلجي سریه**:دنهم هجري کال په ربیع الاول میاشت کي دجدي دساحلي برخوپه طرف له علقمه سره درې سوه تنه جنګیالان ؤ،رسول الله صلی الله علیه وسلم دوی ته وظیفه ورکړه چې دحبشیانو مقابلې ته ورسی کوم چي په مکه اودجدې په شاوخوابرخوکي دي چور اوچپاول لپاره راټول سوی ؤ،علقمه مخکي ولاړی ترڅوجزیرې ته ورسیدی ،حبشیان خبرسول اوتښتیدل.[٥٣٩]

**دعلي بن ابي طالب رضي الله عنه سریه**:دنهم هجري کال په ربیع الاول میاشت کي رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه ته وظیفه ورکړه چي ولاړسي اودطیی قبیلې قلس نومي بت ونړوی ، له ده سره یونیم سل (١٥٠)تنه ملګري ؤ چي سل اوښان اوپنځوس آسان هم ورسره ؤ،دوه بیرغونه چي یوغټ اورنګ یې سپین اوبل کوچنی رنګ یې تور ؤ،دسهار په وخت کي یې دحاتم پرکلي حمله وکړه ،بت یې مات کی ،زیات شمیر پسونه او اوښان یې غنیمت کړل ،زیات کسان یې بندیان کړل ،دبندیانو په جمله کي دعدی ابن حاتم خور هم وه ،عدی په خپله شام وتښتیدی،مسلمانانو دبت په خزانو کي درې توري درې زغري اوڅه نور شیان پیداکړل ،غنیمتونه یې سره وویشل ، درسول الله صلی الله علیه وسلم برخه یې ځني جلاکړه ،دوی دحاتم کورنی ونه ویشله ،کله چي مدینې ته بیرته راغلل دحاتم لور له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه داحسان سوال وکی عرض یې وکی چي یارسول الله صلی الله علیه وسلم پلارمي مړسو وروڼه مي ورک سول ،زه یوه زړه ښځه یم دچاخدمت نه سم کولای ،احسان راسره وکړه ،رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وویل سرپرست موڅوک دی ؟دې وویل عدي بن حاتم ،رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل هغه چي له الله اورسول څخه یې فرارکړیدی ، بله ورځ یې بیاهم داسي عرض ؤ،دریمه ورځ یې بیاتکرار کړه همداوه چي رسول الله صلی الله علیه وسلم احسان پروکی ،اوهغه یې آزاده کړه ، دلته یوصحابي چي په غالب ګومان سره حضرت علي رضي الله عنه ؤ ورته وویل له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه دځان لپاره

---

[٥٣٩] فتح الباری ٥٩.

سپارلي هم وغواړه ،هغې دمرکب سوّال وکی ، رسول الله ﷺ مرکب هم ورکی ،حاتم ولاړه اوشام ته ورسیده ،هلته یې خپل ورور عدي ته وویل چي دې شخص ﷺ دومره احسان راباندي وکړی چي ستاپلار به هم نه وی راباندي کړی ،حتما به ورځی ،عدي هم بیله امانه اوبې ضمانته درسول الله ﷺ حضور ته راغی ،رسول الله ﷺ هغه خپل کورته بوتلی ،هلته یې ورته وویل چي :ولي تبنتیدلی وی ؟آیا دکلمې :لااله الا الله .څخه دي فرار کړی ؤ ،عدي وویل چي نه ،بیا څه نوري خبري وسوی ،رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : چې ایاله دې څخه تبنتی چي وویل سي :الله اکبر ایاترخدای بل ذات لوی اوغوره ګڼې ؟عدي وویل چي نه ، رسول الله ﷺ وفرمایل چي په یهودو خدای په قهر سوی اونصرانیان بې لاري سوی دي عدي وویل زه یوه ریښتونی مسلمان یم ،درسول الله ﷺ تندی مبارک له ډیري خوشحالي څخه وغوړیدی امریې وکی چي عدی ته دي دیوه انصاري په کورکي ځای ورکړل سي ،په دې ترتیب سره به عدی سهاراوماښام درسول الله ﷺ خدمت ته حاضریدی[٥٤٠] ،ابن اسحاق روایت کوي چي عدي وایي زه رسول الله ﷺ په خپل کور کي کښینولم ،راته وی فرمایل : اې عدي آیا ته رکوسي (هغه وخت دمشرکینو یومروج مذهب ؤ) نه وی ؟ماوویل هو ده وفرمایل : آیا د غنیمت څلورمه برخه په دې نه اخیستله ؟په داسي حال کي چي داکارستا په دین کي جواز هم نه درلودی ؟ماورته وویل هو ،همداسي ده ،عدي زیاتوي ،هم دلته پوه سوم چي دادالله جل جلاله رسول الله ﷺ دی ،ځکه په داسي څه معلومات لري چي ورته ویل سوي نه دي .

احمدروایت کوي وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل : چې یاعدي !مسلمان سه ترڅو په امن یې ،عدي ورته وایي زه خودین لرم ، رسول الله ﷺ وفرمایل :زه ستا ددین په هکله ترتازیات معلومات لرم ،عدي وایي چې ته زما ددین په هکله ترمازیات معلومات لری؟وی فرمایل هو ، آیا ته رکوسي نه یې؟بیایې راته وفرمایل آیادخپل قوم دغنیمت څلورمه برخه به دي نه خوړله ؟ماوویل هو ،خوړله مي ،رسول الله ﷺ وفرمایل ستاپه دین کي خوداکارجواز نه لري ،عدي وایي چې همداخبره یې وفرمایله نوورته تسلمی سوم ،امام بخاري رحمه الله هم له عدي څخه په روایت سره وایي چي کله رسول الله ﷺ سره ناست وم ،یوسړی راغی له لوږي یې شکایت وکی ،ورپسې بل څوک راغی چي له غلو څخه یې شکایت درلودی ،رسول الله ﷺ وفرمایل : اې عدي !حیره دي لیدلې ده؟که ژوندی وی وبه یې وینې ،خبره یې تکرار کړه ،بیایې وفرمایل :وبه وینې چي یوه ښځه به له حیره څخه

---

[٥٤٠] زادالمعاد ٢/ ٢٠٥.

راځي ،دکعبې طواف به کوي او له الله ﷻ پرته به بل دهیڅا بیره ورسره نه وي ،که دي عمرملګري درسره وکړه نو دکسری خزانې په فتحه کړې او که دي عمر اوږد ؤنو وبه ويني چي خلک به طلا اونقره په لاس کي ګرځوي په دې لټه کي به وي چې څوک فقیرپیدا کړي اوخیران ورکړي ،خوداسي غریب به پیدانه کړي چې دده خیرات واخلي ،داحدیث شریف ډیر اوږد دی چي په آخره برخه کي يې راځي ،عدي وایي ماپه خپلو سترګو یوه ښځه ولیدله چي له حیره څخه راغله او دکعبې طواف يې کوی او له الله پرته بل دهیچابیره ورسره نه وه ،زیاتوي ،همدارنګه زه دهغه کسانو په ډله کي وم چي دکسري بن هرمز خزانې موفتحه کړې ، که ته هم ژوندی وي حتمابه هم داسي حالت ووینې لکه څرنګه چي ابوالقاسم ﷺ فرمایل چي لاس به يې له طلا اونقرې ډک وي ،غریب به لټوي چي خیرات ورکړي خوفقیر به پیدانه کړي.[541]

## «دتبوک په غزا کي سیدالبشر ﷺ»

## «په نهم (۹) هجري کال درجب المرجب په میاشت کي»

دمکې فتحه ډیره لویه کارنامه وه ،له دې فتحي وروسته مشرکینو ته درسول الله ﷺ په رسالت کي دشک ځای نه سوپاته ،دتاریخ مسیر بدلون پیداکی ،خلک ډلي ډلي په اسلام مشرف سول ،مخکي موولیدل چي څومره وفدونه اونمایندګان د رسول الله ﷺ خدمت ته حاضر سول اودابه هم ووینو چي په حجة الوداع کی د مسلمانانوشمیره حوته رسیږي،داټول دمکې دفتحې له برکته ،په دې ترتیب سره درسول الله ﷺ دحکومت ستونزي حل سوی نور مسلمانان دافرصت درلودی چي په پوره ډاډ سره دالله ﷻ ددین تبلیغ وکړي او خلک اسلام ته راوبولي.

## «دتبوک دغزا اودهغي سبب»

مسلمانانو په جزیره کي دننه مشکلات نه درلودل کیږي،خودغه يې موجبه درومیانو له مخالفت اوتهدیدسره مخ سول ، رومیان دهغه وخت سترځواک ؤ،په تیروپاڼو کي مو وویل چي دبصرې والي ته درسول الله ﷺ قاصد حارث بن عمرو ازدي رضي الله عنه دشرحبیل بن غساني له خوا په شهادت ورسیدی ،دهمدې تیري په جواب کي رسول الله ﷺ دزید بن حارثه رضي الله عنه په مشري یولښکر ولیږی چي په مؤته کي له رومیانوسره جنګ ونښتی،سخت جنګ وسوخووی نه کی چي له خپل ظالم اوکبرجن دښمن څخه پوره انتقام واخلي،دمؤته جنګ دلیرو او نژدی عربو په زړونو کي بیره واچوله ، دروم قیصر يې هم دې ته مجبور کی.

---

[541] صحیح البخاری ۲/ ۳۳۴.

چې په دې هکله فکر وکړي ، له مسلمانانو سره دځینو عربي قبایلو توافقات او له روم څخه داستقلال هڅې دا ټول هغه شیان ؤ چې رومیان یې په تشویش کې اچولي ؤ ،قیصر داټول خطرونه درک کړي ؤ ،هغه داهم لېدل چې په شام کې دده دامپراطوري سرحدونو ته ګومره تهدید متوجه دی ،همدې ته په توجه سره هغه تصیمي ونوی چې باید مسلمانان له منځه یوسي، هغه فکر کوی چې باید مخکې له دې چې مسلمانان په نه ماتیدونکې ځواک بدل سي ، اومخکې له دې چې په عربو برخوکې پاڅونونه اوانقلابونه شروع سي باید داسلام دولت ریښې له بیخه ویستل سي ،له همدې کبله له مؤته جنګ وروسته پوره یو کال قیصر دجنګ تیاري نیوله،له رومیانو او ترخپل کنټرول لاندې عربو څخه یې لوی لښکر جوړکې اودفیصله کوونکې جنګ ټول وسایل یې برابرکړل .

## «مدینه منوره ته دررومیانو خبررارسیدل»

مدینې ته داخبرون رارسیدل چې رومیانو دمسلمانانو سره دپرېکنده جنګ تیاري نیولې ده ، په مدینه کې دننه له مسلمانانو سره تشویشونه پیداسوی ؤ ،حتی د یو بېګانه آواز په اورېدو سره ډېرو داسې تصور کوی چې ګویارومیانو پرمدینه حمله وکړه ، حضرت عمر ﵁ له هم داسې یوه حالت سره مخ سوی دی ،رسول الله ﷺ په نهم کال (۹) هجري کال کې له خپلو بیبیانوسره ایلاء وکړه ، ایلاء دې ته وایي چې ګوک قسم وکړي چې زه به دخپل ښځې سره جماع نه کوم نه به ورسره یوځای کیږم ، که داموده ترڅلورو میاشتو کمه وي پروا نه لري یعنې ترڅلورمیاشتومخکې هروخت کولای سي دخپلې ښځې سره یوځای سي خودقسم کافره به ورکوي ، اوکه څلور میاشتې تیرې سوی ښځې ته ورنژدی نه سو نو بیابه قاضي فیصله کوي چې ښځه بیادده په نکاح کړي اوکه طلاق واقع سي ، رسول الله ﷺ په همدې کال ایلاء وکړه دخپل کور په بالاخانه کې اوسیدی ،په شروع کې مسلمانان خبرنه ؤ ،په دې حکم نه پوهیدل بلکه فرک یې کوی چې رسول الله ﷺ خپلو میرمنو ته طلاق ورکړیدی ،په دې سره ټول ترحد زیات خواشیني ؤ .

## «دحضرت عمر ﵁ په قول دهمدې قصې بیان»

حضرت عمر ﵁ وایي چې زمایوانصاري ملګري ؤهغه به چې درسول الله ﷺ په مجلس کې حاضریدی اوزه به نه وم نودمجلس احوال به یې ماته راوړل اوکه به زه موجودوم اوهغه به نه ؤ نوبیابه مادمبارک مجلس ګزارش ورکوی ، موږ دواړو په یوه سیمه کې ژوند کوی ، په نوبت به درسول الله ﷺ مجلس ته حاضریدو ،دغسان قبیله دیوه باچاداخبرهم راته رسیدلې ؤ ،چې هغه پرمدینه دحملې نیت لرې ددې بریدونو تشویش راسره ؤ ،یوه ورځ

ناڅاپه زما انصاري دوست راغی ،ذروازه یې وټکوله اوډغ یې وکی خلاصه کړه ،خلاصه کړه ،حضرت عمر ﷺ وایي ماورته وویل څه قصه ده؟آیاغساني حمله کړې ده ،هغه راته وویل چي نه ،تردې هم لویه پیښه سوې ده ، رسول الله ﷺ له خپلو میرمنو څخه جلاسوی دی ،دحدیث شریف ترپایه[542] په بل روایت کي راغلی دی چي حضرت عمر ﷺ وایي چي د ورځي مااوانصاري دوست مي خبري کولې اوویل موچي غسانیان اسونه راته نعل کوي ،اودحملې لپاره تیاری نیسي ،ملګري مي دخپل نوبت پراساس درسول الله ﷺ مجلس ته تللی ؤ ،دشپې راغی دروازه یې په زوره وټکوله ډغ یې وکی چي عمر ببده دی ؟زه وبیریدم سمدستي ور ووتلم ،هغه راته وویل ډېره لویه پیښه سوې ده ماویل څه دي؟آیاغسانیان راورسیدل ؟وی ویل نه ،تردې هم لویه پیښه سوې ده ،رسول الله ﷺ خپلو میرمنوته طلاق ورکړی دی .[543] داقصه په خپله دابښیي چي مسلمانان دروميانو له طرفه څومره بیره او تشویش درلودی ،د رومیانو خطر اوله دې طرفه متوجه تهدید دومره لوی ؤ چي منافقان یوځل بیاراژوندی اوامیدوار سوی ؤ ،که څه هم دسرپه سترګو یې لیدل چي رسول الله ﷺ څومره بریالیتوبونه ترلاسه کړل ، دهغه قوت یې هم لیدی دمسلمانانو همت اوغیرت هم ورته معلوم ؤ ،خوبیاهم په دې تمه ؤ که چي کېدای سي رومیان حمله وکړي اومسلمانان نابود کړي ، دمسلمانانو کمزوري اوتباهي د دوی هیله وه ،په دې وخت کي دوی خپل شوم هدف ته نژدې لیدی اوله هم دې امله یې دشر اوتوطئو یواډه جوړه کړه ، دشر دغه اډه یې د مسجد په نامه ونوموله ، دې ته په اسلامي تاریخ کي مسجد الضرار ویل کیږي ، منافقانو هیله درلوده له همدې مرکز څخه په استفادې سره دمسلمانانو ترمینځ نفاق واچوي ، همدا به دکفر اوکفارو لپاره مرکز اواډه وي ، دوی چې دامسجد جوړکی ، له رسول الله ﷺ څخه یې وغوښتل چي تشریف ورته راوړي او لمونځ په کښي اداکړي ، له دې کار څخه د دوی هدف داؤ ترڅو مسلمانان په وغولوي اومتوجه نه سي چي دوی مطمئنه اوآرامه اډه جوړوله ، خورسول الله ﷺ دلته لمونځ کول له غزا څخه تربیرته راتګ پوري وځنډول ،ځکه په دې وخت کي غزا ته په تیاري مصروف ؤ ،په دې ترتیب سره په خپل هدف کي ناکام سول ،الله تعالی وشرمول اوکله چی رسول الله ﷺ له غزا څخه بیرته راغلی ، دهمدې مسجد دنړولو حکم یې وکی اومسجد وران سو .

## «درومیانو اوغسان قبیلي دجنګ لپاره امدګي»

---

[542] صحیح البخاری ۲/ ۷۳۰.
[543] صحیح البخاری ۲/ ۵۳۴.

داوو هغه حالات اوخبرونه چې مسلمانان ورسره مخامخ ؤ،په همدې ډول حالاتو کې نبطیونو هغه چې له شام څخه یې مدینې ته غوړي راوړل خبر راوړی چې هرقل څلویښت زره کسیزه لښکر تیارکړیدی ،مشریې یورومي مخورتاکلی دی ،دلخم ،جذام اونوري عربي قبیلې هم ورسره دی ،دهمدې لښکر لومړنی ټولګی(مقدمة الجیش) دبلقاء سیمې ته رارسیدلی ده ،په دې سره مسلمانان له لوی خطر اوتهدید سره متوجه سول ،یادونه باید وکړو چې نبطیان د اسماعیل علیه السلام دزوی نابت اولاده وه ،یووخت یې په شمالي حجاز کې ښه برم درلودی خو وروسته مخ پرځوړ(شوه) ولاړل اوعادي سوداګران سول .

## «حالات نورهم مخ پر خرابۍ روان وو»

حالات ډیرخراب اوترینګلي سول ،دسختي ګرمۍ موسم ؤ مسلمانان له نورو ستونزو علاوه د وچکالۍ ،بې وسۍ اودسپارلۍ لپاره دڅارویو له کمبود سره لاس اوګریوان ؤ ،بله داچې میوې هم پخې سوې وی ،دهرچا زړه داغوښتل چې په خپل باغ کې ترسایولاندې ناست وي ،په داسي وخت کې له کوره وتل ډیرګران ؤ ،ګرمي وه ،لاره ډیره اوږده اوسخته وه .

## «دسیدالبشر ﷺ حقانه نظر»

رسول الله ﷺ حالاتو اوشرایطو بدلون ته په ډیر دقت کتل ،دپیښنو اسباب اوعواقب یې څیړل هغه باور درلودی که په موجوده حالاتو له رومیانو سره له جنګ څخه ډډه وسي نودښمن فرصت ترلاسه کوي اوداسلامي دولت پرپولو تیری کوي اودمدینې په طرف به مخ ته راسي دابه دمسلمانانو لپاره ډیر ناوړه اغیزي ولري ، ددوی جنګي ځواک ،شهرت اوحیثیت به صدمه مومي ،تشویشونه به راولاړسي اوکېدای سي هغه مشرکان چې دحنین له غزا وروسته دبشپړې نابودې په مورګه ولاړوییرته ځانونه منظم کړي اوهڅه وکړي چې بیادځواک خاوندان سي ،بل خطرداؤ چې منافقینو هم پرمسلمانانو دتوطئ برید لپاره مناسب فرصت لټوی ، د فاسق ابوعامر له لاري یې درومیانو له باچاسره اړیکي ټینګي کړې وی ،دوی پلان جوړ کړی ؤ چې درومیانو دحملې په صورت کې به دوی له شاڅخه پرمسلمانانو د تورو وارونه کوي ،اوکه داسي سوی وای نودرسول الله ﷺ او اصحابو داوږدو او سختو هلوځلو ، جنګونو اوکوښښونو نتیجه به اوبو وړې وای ،رسول الله ﷺ داټول درک کړي ؤ ،همداوه چې دزیاتو اشکلاتو سره سره یې له رومیانو سره ددوی له پولو آخوا دجنګ اوټکر فیصله وکړه اوامریې وکړ چې باید رومیان فرصت پیدانه کړي چې داسلامي حکومت دپولو اوسرحدونو په طرف وړاندې راسي .

## «د رومیانو سره د جنګ د تصمیم اعلان»

نبي کریم ﷺ خپل تصمیم اصحابو ته ورسوی، دوی یې خبر کړل چې باید له رومیانو سره د جنګ تیاری ونیسي ، د مکې اوشاوخوا نورو سیمو قبایلو ته یې هم د تیاري فرمان صادر کړی ، د رسول الله ﷺ سنت او عادات داسي ؤ چې د جنګ په وخت کې به یې خپله لاره او هدف پټ ساتي ،له توري ځخه بې کار اخیستی ، په دې معنی که غوښتل به یې د شمال په طرف ولاړسي نو اعلان به یې داسي کوی چې جنوب ته ځي او یا برعکس ، خو دا ځل ځرنګه چې شرایط ډیر سخت ،تنګ او خطرناک ؤ په ښکاره توګه یې اعلان وکی چې له رومیانو سره یې د جنګ پریکړه کړې ده، ټول یې خبر کړل تر څو د جنګ تیاری ونیسي ،دوی یې جهاد ته تشویق کړل ، په همدې ورځو کې د سورة برائت څو آیتونه نازل سول ،رسول الله ﷺ خپلو اصحابو ته د الله ﷻ په لاره کې د مالي قرباني اهمیت هم بیان کړی او دې ته یې وهڅول چې هر یو د خدای په لاره کې خپل غوره مال په مصرف ورسوي .

## «د جهاد په تصمیم نیولو کې د اصحابو خپل مینځي سیالي»

له رومیانو سره د جنګ لپاره د رسول الله ﷺ تر فرمان وروسته مسلمانانو یو له بل سره د رسول الله ﷺ د امر په تعمیل کې سیالي کوله ، هر چا به په تلوار سره د جنګ تیاري نیوله ، مختلفي قبیلې او کورنۍ له هر طرفه د مدینې پر خوا راماتي وی ،ټول مسلمانان اماده سول ،له منافقینو پرته ټولو د جنګ اراده کړې وه ، ټول جنګ ته روان سول یوازي دري کسه ریښتوني مسلمانان پاته سول نور ټول ولاړل ، جنګ ته تر روانیدو مخکې بې وسه محتاج او فقیر مسلمانان د رسول الله ﷺ خدمت ته راتلل ،د جنګ لپاره یې د سپارلۍ او وسایلو سوال کوی خو کله به یې چې د رسول الله ﷺ د الاندنۍ جواب واوریدی نو په داسي حال کې به بیرته ورځخه تلل چې سترګي به یې له اوښکو ډکي وی .

قُلْتَ لَآ أَجِدُ مَآ أَحْمِلُكُمْ عَلَيْهِ تَوَلَّوا وَّأَعْيُنُهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ حَزَنًا أَلَّا يَجِدُوا مَا يُنفِقُونَ : توبه آیة (۹۲)

ترجمه: نو ویل تا دوی ته چې ستا سي د سپرلۍ لپاره څه نه لرم نو بیرته تلل ،دوی په داسي حال کې چې سترګي یې له اوښکو ډکي وی او په دې خفه دي چې د جهاد په لاره کې د نفقې لپاره ځ نه لرم ، مسلمانانو د الله ﷻ په لار کې د مال او دارایی په خرڅولو کې هم یو له بل سره سیالي کوله ، د هر یوه هیله دا وه چې زیات اجر وګټي ،حضرت عثمان رضي الله عنه هغه تجارتي کاروان چې د شام د تجارت لپاره یې تیار کړی ؤ، ټول رسول الله ﷺ ته ورکړل ، په دې کاروان کې دوه سوه اوښان دوه اوقې (۲۹/۵ کیلو ګرامه) نقره دا ټول یې د الله ﷻ په لار کې صدقه کړل ،دا ټول مجهز کاروان یې صدقه کی ،سل اوښان سره له ټولو لوازمو

اوزر دیناره نوري هم درسول الله ﷺ حضورته راوړل، عرض يې وکې چې داهم دالله جل جلاله په لارکي خرڅ کړي، رسول الله ﷺ په داسي حال کي چې دغه دینارونه يې په لاس کي اړول را اړول فرمایل يې له دې ورځي وروسته چې عثمان رضي الله عنه هرعمل وکی هیڅ تاوان نه ورسوي[۵۴۴]، عثمان رضي الله عنه پردې هم بسنه ونه کړه بلکه نور مالونه يې هم خیرات کړل ترڅو (۹۰۰) سوه اوښان اوسل آسونه يې صدقه کړل، البته دطلا اونقرې حساب خوېې لاجلا ؤ عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه دوه سوه اوقيې نقره راوړه، ابوبکرصدیق رضي الله عنه خپل ټول مال چې څلور زره درهمه ؤ راوړل، دخپل اولاد لپاره يې الله جل جلاله اورسول الله ﷺ کافي وبلل، حضرت عمر رضي الله عنه هم خپل نیم مال راوړی، حضرت عباس رضي الله عنه هم ډېر څه راوړل، طلحه رضي الله عنه، سعدبن عباده رضي الله عنه، محمد بن مسلمه رضي الله عنه هریوه ډېرڅه حاضر کړل، عاصم بن عدي رضي الله عنه (۹۰) وسقه خرماچې هروسق يې شپیته ساع کیږي راوړل، اصحابو يوپه بل پسې د خپل توان په اندازه مالونه راوړل، اودرسول الله ﷺ په حضور کي ایښوول، داسي کسان هم ؤ چې يوازي درې یا څلورنیم کیلو یاکمي اوزیاتي خورماوې يې راوړلی، ښځوهم چې څه درلودل هغه يې راوړل چابه مشک چاپایزیب، بنګړي، لښتي ګوتي اوټو ل يې حاضرکړل، له منافقینو پرته هیچاهم بخل ونه کی، ډیر څه جمع سول.

الَّذِينَ يَلْمِزُونَ الْمُطَّوِّعِينَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ فِي الصَّدَقَاتِ وَالَّذِينَ لَا يَجِدُونَ إِلَّا جُهْدَهُمْ فَيَسْخَرُونَ مِنْهُمْ سَخِرَ اللَّهُ مِنْهُمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ سورة توبه آیت ۷۹.

**ترجمه**: هغه منافقان چې عیب وایي پرخیرات ورکوونکو مؤمنانوباندي په ادا د صدقاتو کي اوبل دهغوبې وزلو عیب وایي چې هیڅ نه پیداکوي مګرپه اندازه دتوان اوزیارخپل نو مسخرې کوي دغه منافقان په دوی پوري.

## «داسلام زمریان دتبوک پرطرف»

اسلامي لښکر تیارسو، رسول الله ﷺ محمد بن مسلمه رضي الله عنه اوپه بل روایت سباع بن عرفطه په مدینه کي خپل خلیفه وټاکی، حضرت علي رضي الله عنه ته يې وظیفه ورکړه چې دده دکورنۍ سرپرستي وکړي کله چې رسول الله ﷺ روان سو، منافقانو داسي خبري وکړې چې حضرت علي رضي الله عنه يې تحمل نه سوای کولای، روان سوله مدینې څخه ووتی اوځان يې رسول الله ﷺ ته ورسوی خورسول الله ﷺ بیرته امر ورته وکې چې ولاړسي اودخپل کورنۍ سرپرستي وکړي او ورته وې فرمایل: چې اې علي رضي الله عنه! آیاداډي خوښه نه ده چې

---

[۵۴۴] ترمذي.

زما په وړاندي داسي مقام ولری لکه هارون ﷺ چي يې د موسی ؑ په وړاندي لري خو زما وروسته بل هيڅ پيغمبر نسته.

رسول الله ﷺ د پنجشنبې په ورځ د شمال په طرف مدينه د تبوک په نيت پرېښووه، د مجاهدينو شميره ډيره زياته وه، ديرش زره کسان جنګ ته روان ؤ که څه هم ډېرمالونه راټول سول خو بيا هم د دې دومره لوی لښکر لپاره کافي نه ؤ، لښکر د سپارلی او توښې له پلوه له مشکلاتو سره مخ ؤ، هر واتلسو کسانو ته يوه سپارلی وه په نوبت به پرسپرېدل، له ډيري لوږي يې د درختو بلګونه خوړل، داکثرو کسانو شونډي وپړسيدلی، که څه هم اوښانو ته ډيره اړتيا لېدل کېده خو بيا هم له ډيرتندي اولوږي دې ته مجبور سول چي څه اوښان حلال کړي، دومره تږي ؤ چي بايد د اوښانو دنس اوبه يې څښلي وای، څرنګه چي لښکر ډيري سختي ليدلی نو دې لښکر ته (جيش العسرة) يعني د سختيو لښکر ويل کيږي.

اسلامي لښکر دلاري په اوږدو کي د ثموديانو پر سيمي (حجر) تيرسول، ثموديانو هلته په وادي قری کي له ډبرو څخه غټي غټي خوني جوړي کړی وي، اصحابو اراده وکړه چي د دې ځای اوبه وڅښي خو رسول الله ﷺ امر وکی چي د دې ځای اوبه مه څښی او مه او د س په کوی او کوم اوړه چي موپه دې اوبو خيشته کړي دي هغه خپلو اوښانو ته ورکړی، خپله يې مه خوری او زياته يې کړه چي يوازي له هغه چينی څخه به اوبه څښی له کومي چيني څخه چي به د صالح عليه السلام اوښي اوبه څښلی، بخاري او مسلم له ابن عمر ؓ څخه روايت کوي وايي چي کله رسول الله ﷺ د حجر نومي سيمي سره تيريدی نووی فرمايل:

دهغ ظالمانو ته مه داخليږی چي پر خپلو نفسونو يې ظلم کړی دی، هسي نه چي د دوی عذاب تاسي ته هم در ورسيږي، دلته په داسي حالت کي داخل سی چي د الله له بيري ژړا کوونکي ياست، اصحاب تردې امرو روسته له وادي څخه په دومره چټکي سره تير سول چي سرونه يې د الله ﷻ له بيري کښته نيولي ؤ.

دلاري په اوږدو کي لښکر سخت تږی سو، او بو ته يې زياته اړتيا درلوده، رسول الله ﷺ ته يې شکايت وکی، چي رسو ل الله ﷺ د باران سوال وکی، يو ځل وريځ راښکاره سوه ښه باران وسو، خلګو اوبه وڅښلی او د ضرورت په اندازه يې ورسره واخيستلی، کله چي رسول الله ﷺ تبوک ته نژدې سوی فرمايل چي تاسي به سبا د تبوک چينی ته ورسيږی ان شاء الله تعالی خو ترنيمي ورځي پوري به ورونه رسيږی که ترما مخکي ور ورسيدلاست نو ترهغو اوبه مه څښي ترڅو زه درغلی نه يم، معاذ ؓ وايي چي موږ په داسي حال کی چينی ته ورسيدو چي ترموږ مخکي دوه کسان ور رسيدلی ؤ، د چينې اوبه لږ لږ روانی وی

،رسول الله ﷺ له هغودوو کسانو ته ځنځه پوښتنه وکړه چې ایا اوبه موښخبلي دي؟دوی وویل هو،رسول الله ﷺ څه ورته ونه ویل بیایې په مبارکو لاسونو اوبه رابندي کړي ترڅویوه اندازه جمع سوی ،مبارک مخ اولاسونه یې په پرېولل ،نوري یې بیرته په چینه کي واچولې ،په دې سره یوځل له چینې څخه زیاتي اوبه رواني سوی ، خلګو وڅښلې اودضرورت په اندازه یې ورسره واخیستلې ، بیارسول الله ﷺ وفرمایل :اې معاذه!که عمریاري درسره وکړه نوو به وینې چي یو وخت به داسیمه ټوله دمیوو له باغونو ډکه وي.[۵۲۵] همدا ډول رسول الله ﷺ دتبوک په لاره کي اوپه بل روایت کي تبوک ته له رسیدو وروسته وفرمایل : چي نن شپه به سخت باد وربانديي را والوزي ،هیڅوک به نه دریږي ،داوښانو خاوندان دي د دوی ګونډې وتړي ، هم هغهٔ چي دشپې سخت بادراغی ،یوسړی درسول الله ﷺ دامرپرخلاف ولاړسو ودرېدی،بادهغه پورته کی اوآن د(طی)پرغره یې وغور ځوی،همدا رنګه درسول الله ﷺ عادت داسي وُ چي دلاري په اوږدو کي به یې دماپښین اوماځیګر ، دماښام اوماختسن لمونځونه یوځای اداکول ، یابه یې دواړه دلومړني لمانځه په وخت کي کول یعني دماځیګرلمونځ به یې دماپښین دلمانځه سره یوځای اداکوی یادماختسن لمونځ به یې دماښام په وخت کي یوځای اداکوی ، چې دې ته جمع تقدیم وایي اویابه یې دماپښین لمونځ دماځیګر اودماښام لمونځ دماختسن په وخت کي یوځای اداکول چي دې ته جمع تاخیروایي.

## «داسلام عظیم الشان لښکر په تبوک کي»

اسلامي لښکر تبوک ته ورسیدی ،له دښمن سره دمقابلې پوره تیاری یې درلوده ، مرکز یې جوړ کی ،رسول الله ﷺ ډیرمهمه خطبه وویله په لنډو ټکوکي یې لوی مفاهیم اداکړل ،مسلمانان یې ددینا اوآخرت ښیګڼوته راوبلل دبدواعمالو اوشرله قواقبو څخه یې بیرول ، هم داډول دخوښي څرګندونه یې وکړه اودوی ته یې هم دخوشي اوبري زیری ورکی ،په دې ترتیب سره یې د دوی روحیات دومره لوړ کړل چي دوسایلو دکمبود اوموادو دنشتوالی جبران په وسو ، رومیانو چي درسول الله ﷺ دلښکر کشتی خبرواوریدی بیري واخیستل ،دوړاندي تګ اومقابلې جرأت یې نه سوای کولای ،له سرحدونو څخه اخوا ښارونو کي سره تیت سول ،دې کار دمسلمانانو لپاره په زړه پوري نتیجې درلودی ، اومسلمانانو داسي سیاسي بریاوي لاس ته راوړې چي دجنګ اووسلوای مبارزې په ترځ کي یې لاس ته نه سوای راوړلای ،د ایله مشریحنه بن رؤبة جرباء او اذرح خلک هم

---

[۵۲۵] صحیح مسلم ۲/ ۲۴۶.

حاضرسول ،حزیه ورکول یې ومنل ، رسول الله ﷺ دوی ته یو خط ولیکی ،دایله واکمن ته دلیکل سوي خط متن داسي ؤ .

بسم الله الرحمن الرحیم

دادمهربان الله جل جلاله اومحمد رسول الله ﷺ له خوا د یحنه بن رؤبة اود ایله دخلګو لپاره د امان خط دی ،د دوی کښتۍ اوځمکني کاروانونه ټول محفوظ اوخوندي وي ،الله اورسول الله ﷺ یې ذمه واردي ، داترون اوعهد د دوی اوټولو هغو خلګو لپاره دی چې له دوی سره همکاري لري اودوی ته یوشان نظر ولري ، که له دوی ځخه ځوک دبد او نامناسب کارمرتکب کیږي نومال یې دمجازاتو مخه نه سي نیولای اودجرم دارتکاب په صورت کي دهغه مال نورو ته روا دی چي وایي خلی ،همدا ډول دوی اجازه لري چي له هري چینې ځخه ګټه واخلي اوله هري بحري اوزمیني لاري ځخه استفاده وکړي .

رسول الله ﷺ یو (۴۲۰) کسیزه ګروپ دخالدبن ولید رضي الله عنه ترقیادت لاندي د دومة الجندل مشر اکیدر ته ولیږی ،امریې ورته وکی چي اکیدر به په داسي حال کي ووینی چي دغوبانو ښکاربه کوي ،خالد رضي الله عنه ولاړی د دوی برجونه ورته ښکاره سول ،یو نیلي رنګ غویې دقصر له دروازې سره ولیدل سو چي دقصری دروازه یې په ښکرو موښله ،اکیدر ، هم وریښي ورغی اودهغه دښکار هڅه یې کوله ،شپه وه خوسپوږمی رڼا کوله ، خالد رضي الله عنه په دې وتوانیدی چي اکیدر ونیسي اوبیایې درسول الله ﷺ حضورته راوستی ،رسول الله ﷺ هم دهغه دمرګ حکم ونه کی بلکه صلح یې ورسره وکړه هغه ومنله چي رسول الله ﷺ ته به له جریې سره سره دوه زره اوښان ،اته سوه بزې ،څلورسوه زغري اوڅلور سوه نیزې ورکوي ،اوپه دې ترتیب سره یې له هغه سره هم دتبوک ،یتماء اوایله په شان تړون وکی ، درسول الله ﷺ دبریالي سیاست په نتیجه کي هغه عربي قبایل چي درومیانو سره یې همکاري درلوده په بله واښتی پررومیانو یې باور کم سو ،دمسلمانانو خواته نژدې سول اوپه دې سره دمسلمانانو دحکومت دایره پراخه سوه اود روم تراصلي سرحدو وغځیده اودرومیانو نوکران ختم سول ،خبره مستقیما په رومیانو پوري مربوط سوه .

## « دمسلمانانو بریالی لښکر دمدینې په لور »

دمسلمانانو بریالی لښکرپه داسي حال کي مدینې ته روان سو چي الله جل جلاله ډیر بریالیتوبنه ورپه برخه کړی ؤ ،خوهیڅ جنګ او وسله واله نښته نه وه سوی ، دلاري په اوږدو کي له یوې کږلیچي سره دوولسو منافقانو درسول الله ﷺ دشهادت توطئه جوړه کړه ، قصه داسي وه چي رسول الله ﷺ له دې نقطې ځخه په داسي حال کي تیریدی چي نولښکر په

دښته کي روان ؤ له رسول الله ﷺ سره یوازي دوه کسان موجود ؤ عمار رضي الله عنه یې داوښې واکي نیولی وی او حذیفه رضي الله عنه ورپسې روان ؤ ،منافقانو په دې وخت کي هڅه وکړه چي دوی درې سره په همدې ځای کي په شهادت ورسوی ،رسول الله ﷺ پوه سو چي څوک په ځغستا پسې را روان دي وی لېدل چي څونقاب پوشان په چټکي سره ددوی په طرف را روان دي ،سمدستي حذیفه رضي الله عنه ته وظیفه ورکړه چي ددوی مخه ونیسي ، حذیفه رضي الله عنه هم دد وی پرسپرلیو دتوري وار وکی ،منافقان وبیرېدل او وتښتېدل او رسول الله ﷺ دنور لښکر سره یوځای سو ،رسول الله ﷺ دهمدې منافقانو نومونه حذیفه رضي الله عنه ته وروښوول ، خوورته وی ویل چي افشا کوه یې مه ،له همدې وجي حذیفه رضي الله عنه په (صاحب السر) یعني دراز یار بلل کیږي، یعني د رسول الله ﷺ د راز ملګري ،الله تعالی په دې هکله فرمایي :

وَهَمُّواْ بِمَا لَمْ يَنَالُواْ .سورة توبه آیت (٧٤) **ترجمه**:دوی د داسي کارهڅه وکړه چي په کښي بریالي نه سول.

یعني دوی غوښتل چي رسول الله ﷺ په شهادت ورسوي خووی نه سوای کړلای چي خپل هدف ترلاسه کړي ،کله چي مدینه راښکاره سوه ،رسول الله ﷺ وفرمایل داطابه ده ، هغه احد دی ،هغه احد چي زموږ سره مینه لري او موږ هم ورسره مینه لرو ،دمدینې اوسیدونکي چي د رسول الله ﷺ په راتګ خبر سول ښځي او کوچنیان یې مخ ته ورووتل په ډیر احترام او درناوي یې ښه راغلاست ورته وویل او داشعرونه یې ویل :

طلع البدر علینا .... من ثنیات الوداع

وجب الشکر علینا .... مادعالله داع[546]

ژباړه :دخوارلسم سپوږمۍ راوختله دداع له غونډیو یې رڼا راباندي واچوله ، ترڅو پوري چي دالله دعوت روان وي ترهغو پوري پر موږ شکر لازم دی ، رسول الله ﷺ د رجب په میاشت کي دتبوک په طرف روان سوی ؤ ،ددې غزا ټوله موده پنځوس ورځي وه ،چي دیرش ورځي یې په تبوک او نورې یې په سفر کي تیري سوی ،دتبوک غزا د رسول الله ﷺ آخرني غزاوه.

## «له غزا څخه دباقي مانده کسانو داستان»

هغه کسان چي بیله عذره له رسول الله ﷺ څخه پاته سوی ؤ ،غزاته نه ؤ تللي ،د دوی په باره خاص حکم وسو چي باید له ټولني څخه ګوښه کړل سي ترڅو توبه یې قبوله سوه

---

[546] دانظریه دابن قیم دی.

اوبيرته په اسلامي ټولنه کي ومنلّ سول ،دتبوک غزا دځانګړو شرائطو درلودونکي وه ،دمسلمانانو لپاره يې له هرپلوه دسخت امتحان حيثيت درلودی ،په همدې جنګ سره مؤمنان له نور څخه وپيژندل سول جلا سول ،الله ﷻ تل په سختيو سره ريښتوني له دروا غجنو جلا کوي ،الله ﷻ فرمايي :

مَّا كَانَ اللَّهُ لِيَذَرَ الْمُؤْمِنِينَ عَلَىٰ مَا أَنتُمْ عَلَيْهِ حَتَّىٰ يَمِيزَ الْخَبِيثَ مِنَ الطَّيِّبِ . آل عمران آيت (١٧٩)

**ترجمه**: نه دی الله ﷻ چي پريږدي مؤمنان مختلط (ګډ) ستاسي په شان، ترڅو جلا کړي ناپاکه له پاکو څخه ،کله چي رسول الله ﷺ دتبوک دغزا حکم صادر کی ، ټول مؤمنان روان سول څوک چي پاته سول مطلب يې داؤ چي په زړه کي يې نفاق دی ، رسول الله ﷺ ته به چي وويل سول چي فلانی نه دی راغلی په مدينه کي پاته سوی دی نوده به فرمايل : پريږدی که چيري يې له شره وژغورلاست . له همدې امله له ريښتنو مؤمنانو څخه هيڅاهم له دې غزا څخه سر ونه غړوی يوازي دغدر خاوندان پاته سول اوهغه منافقان ونه وتل کوم چي پر الله ﷻ اورسول الله يې ايمان نه ؤ. ځينو به د دروا غو بهانی جوړي کړی له رسول الله ﷺ څخه يې دپاته کېدو اجازه واخيستله ، لنډه داچي يوازي منافقان اوغدر خاوندان پاته سول نورټول ولاړل ، دلته دري کسان داسي هم ؤ چي له يوې خوا ريښتوني مؤمنان ؤ عذريې هم نه درلودی اوله بلي خوا دغزا څخه هم پاته سوی ؤ ،هم دغو کسانو ته پاته سوي وايي ، په همدوی الهي ازموينه راغله ترڅوبرياليٰ ورڅخه ووتل ، کله چي نبي کريم ﷺ له تبوک څخه بيرته تشريف راوړی ، لومړی مسجد ته ولاړی دوه رکعته لمونځ يې اداکی بيايې له خلګو سره خبري شروع کړی ، منافقان چي شميره يې تراتيا زياته وه راغلل ، ډول ډول عذرونه يې پيښول ،قسم يې ياداوه رسول الله ﷺ به هم ددوی عذر مانه ددوی ظاهري اعتراف به يې قبلاوه ، بيعت به يې ورڅخه اخيستی ، دمغفرت دعابه يې ورته کوله اوخدای ته به يې سپارل ،په دې ډله کي چي رسول الله ﷺ سره نه ؤ تللي دري داسي کسان هم ؤ چي دکلک ايمان خاوندان اوس يې هم دريښتيا لاره غوره کړه ،درواغ يې ونه ويل اعتراف يې وکی چي بې عذره له غزا څخه پاته سوی ؤ ،دغه دري کسان کعب بن مالک رضي الله عنه ،مراره بن ربيع رضي الله عنه اوهلال بن اميه رضي الله عنه نوميدل ، دوی ومنل چي عذر يې نه درلودی خوپه غزا کي يې ګډون ونه کی ،همداوه چي رسول الله ﷺ امروکی چي بايد له ټولني څخه ګوښه کړل سي اوخبري کول ورسره بندي سي .

دوی له ټولني څخه داسي پرې اوجلاسول چي دا دومره لويه مځکه پرتنګه سوه ،له ژوند څخه ماړه سول ،څلويښت ورځي ورووسته امر ورته وسو چي دخپلو ښځو څخه هم جلاسي

،لس ورځي نوري هم له ټولو څخه پردي ؤ ،ترڅو له پنځوسو ورځوجلا والي وروسته الله ﷻ رحم پروکی توبه یې قبوله سوه اودا آیت شریف نازل سو .

وَعَلَى الثَّلَاثَةِ الَّذِينَ خُلِّفُوا حَتَّىٰ إِذَا ضَاقَتْ عَلَيْهِمُ الْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ وَضَاقَتْ عَلَيْهِمْ أَنفُسُهُمْ وَظَنُّوا أَن لَّا مَلْجَأَ مِنَ اللَّهِ إِلَّا إِلَيْهِ ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ لِيَتُوبُوا إِنَّ اللَّهَ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ سورة توبه آیت (۱۱۸)

**ترجمه**:پرهغو دروکسانو چي بیرته پاته سوی ؤ ترهغوپوري چي تنګه سوه پردوی دا ټوله مځکه اوتنګ سول پردوی زړونه اویقین یې وکی چي نسته ځای دپناه له قهره دالله ،پناه یوازي له الله ﷻ سره ده ،بیا الله دوی ته دتوبې توفیق ورکی بیشکه چي الله ﷻ ښه توبه قبوونکی ډیر رحم والادی .

پردوی الهي رحم وسو ،مسلمانان زیات خوشحال سول دوی هم له ډیري خوشحالي څخه صدقې ورکړی اودایې دژوند ترټولو نیکمرغه ورځ وه، د هغو مؤمنانو په هکله چي عذر پر اساس یې په دې غزاکي شرکت نه وکی ،داآیاتونه نازل سول .

لَّيْسَ عَلَى الضُّعَفَاءِ وَلَا عَلَى الْمَرْضَىٰ وَلَا عَلَى الَّذِينَ لَا يَجِدُونَ مَا يُنفِقُونَ حَرَجٌ إِذَا نَصَحُوا لِلَّهِ وَرَسُولِهِ سورة توبه آیت (۹۱)ژباړه : نسته هیڅ ګناه پرکمزورو اونه پرناروغانو اونه پرهغوکسانو چي نه مومي دوی هغه مال چي وي لګوي په غزاکي کله چي اخلاص کوي له الله ﷻ اورسول الله ﷺ سره ،همدا ډول رسول الله ﷺ هم چي کله دبیرته تلو په وخت کي مدینې ته رانژدې سونو وی فرمایل چي په مدینه کی داسي کسان سته چي هلته ناست دي خوستاسي ټولوثواب یې ګټلی دی ،پرهره دښته اوهره لارچي تاسي تللی یاست دهغه ثواب دوی ته هم ور رسیدلی دی ،ځکه دوی عذر درلودی اوعذر یې ددې مانع سو چي ستاسي څخه پاته سي ،اصحابو ورته وویل چي یارسول الله ﷺ !دوی ته ثواب په مدینه کي ورکول کیږي ، ده ﷺ وفرمایل :هو، همداثواب یې په داسي حال کي په برخه دی چي دوی په مدینه کي ناست دي .

## «دتبوک غزااودهغه پایلي»

دې غزا په عربي جزیره کي دمسلمانانو دنفوذ اوپراختیا په لارکي لوی اثر درلودی ،خلکو ته ثابته سوه چي دلته یوازي اسلام هغه ځواک اوقوت دی چي دبقاء اودوام چانس لري او مسلمانان ترټولو دځواکمن اوزیات نفوذ خاوندان دي ،په دې غزاسره دمنافقانوهیلي هم له خاورو سره خاوري سوی ،دوی خوطمعه درلوده چي ګوندي رومیان به مسلمانان له منځه یوسي خوداسي ونه سول ، همداوه چي دوی هم مجبورسول ،نوري لاري پر بندي

سوي اوپر حقيقت يې اعتراف وکړ ،نو داسي دليل ورپاته نهٔ چي مسلمانان نرمي ورسره وکړي ، الله تعالی امر وکړ چي سختي دي ورسره وسي ،صدقې دي يې نه منل کيږي ،دجنازې لمونځ دي نه پر کيږي ، رسول الله ﷺ نوربايد د دوی لپاره مغفرت ونه غواړو اوپرقبرونو يې ونه دريږي امروسو چي دمسجد ضرار په نامه جوړسوی دشرمرکز دی ونړول سي ،دقرآن کريم آياتونه نازل سول ،له منافقانو څخه يې پردې پورته کړې ،ډير سپک اورسوا سول ،نور ټولو پيژندل له مخونو څخه نقاب پورته سو ، که څه هم دمکې له فتحي مخکي او وروسته دعربي قبايلو نمايندګان درسول الله ﷺ خدمت ته راتلل خوترتبوک وروسته ددې ډول وفدونو شميره زياته سوه .[٥٤٧]

## «ددې غزا په باره دقرآن کريم هدايات»

دبرائت دسورة زيات آياتونه دهمدې غزا دحالاتو او احکامو په هکله نازل سول ،په دې آياتونوکي ځيني داسي دي چي غزا ته تر روانيدو مخکی نازل سوی ،ځيني يې دسفرپه دوران کي اونور له غزا څخه دبيرته راتګ وروسته نازل سوی دي،ددې آياتونوپه ذريعه الله جل جلاله ددې غزا حالات اوشرائط بيان کړيدي ، دمنافقانو حقيقت يې په کښي ښکاره په ګوته کړی دی ،دريښتونو مجاهدينو مقام اوفضيلت ته يې اشاره کړې ده ، دهغو درو کسانو توبه په کښي قبوله سوې ده چي بغيرله عذر څخه دغزا پاته سوي ؤ اوداسي نور .

## «دهمدغه کال بعضي مهمي واقعي»

په دې کال کي ځيني داسي پيښي سوی دي چي دډيراهميت له وجي يې دلته راوړل ضروري بولو .

١ : له تبوک څخه درسول الله ﷺ له راستنيدو وروسته دعويمر عجلاني اوميرمني ترمينځ يې لعان واقع سو ،لعان يعني دښځي اوميړه له خوا يوپربل لعنت ويل ،ددې حکم تفصيل دسورة نور په نهم آيت کي راغلی دی ،چي لنډيز يې داسی دی ،کوم کسان چي خپلو ښځو ته دزنا نسبت کوي اوپه دې هکله شاهدان ونه لري نوبايد لومړی يې ميړه څلورقسم وکړي اوپه قسم سره ووايي چي په خپله خبره کي صادق دی اوپنځم ځل ووايي که دروغ يې ويلای نود خدای لعنت دي پروي ، تردې وروسته حدپرښځه راځي خوکه ښځي هم لعان ووايه يعني په څلورځله په قسم سره دميړه خبره دروغ وبلله ، اوپنځم ځل يې وويل چي درواغ وايي نو پر هغه دي دالله جل جلاله غضب وی ، په دې سره له حدڅخه

---

[٥٤٧] ابن هشام ٢/ ٥٣٧، ٥١٥، زادالمعاد٢/ ١٣، صحيح البخاری ٢/ ٢٣٧، ٢٣٣، صحيح مسلم ٤٣٤، فتح الباری ٨/ ١٢٦، ١١، مختصر سيرت الرسول ١۴، ٣٩، ٧.

خلاصون ترلاسه کولای سي خو دواړه سره جلاکول کیږي . ۲ : له غامدي قبیلې ښځه یوه ښځه راغله درسول الله ﷺ په حضور کي یې پرزنا اعتراف وکی هغه وخت یې کوچنی ماشوم درلودی خو کله چي یې ماشوم له شیدو څخه جلا سوهودی خوړل یې شروع کړل هغه ښځه سنګسارسوه .

۳ : دحبشې باچا اصحمه وفات سو اورسول الله ﷺ دهغه غائبانه دجنازې لمونځ ادا کی .

۴ : درسول الله ﷺ لور أم کلثوم رضي الله عنها چي دحضرت عثمان رضي الله عنه میرمن وه وفات سوه ، رسول الله ﷺ ډیرغمګین سو او عثمان رضي الله عنه ته یې وفرمایل که مي بله لور درلودای هغه به مي هم تاته په نکاح کړی وای . ۵ : دمنافقینو مشرعبدالله بن ابی هم مړسو ، رسول الله یې دجنازې لمونځ وکی ، اودمغفرت دعایې ورته وکړه ، حضرت عمر رضي الله عنه مخالفت کوي ، چي باید جنازه یې ونه سي ، له جنازې وروسته څوآیتونه نازل سول اودحضرت عمر رضي الله عنه دریځ اوخبره په کښې تائید سوه .

## «دحضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه ترمشری لاندي حج»

دهمدې نهم کال هجري په ذی القعده یاذی الحجه میاشت کي رسول الله ﷺ خپل یارابوبکر صدیق رضي الله عنه دحاجیانو امیروټاکی ، امریې ورته وکی چي ولاړسي اودحج په دوران کي دمسلمانانو لارښوونه وکړي ، په همدې وخت کي دبرائت سورة هغه آیاتونه نازل سول چي له مشرکینو سره دسوو تړونو ماتول یې اعلان کړل ، له همدې امله رسول الله ﷺ حضرت علي رضي الله عنه وظیفه ورکړه چي ولاړسي اوپه مکه کي درسول الله ﷺ له خوا دافرمان خلګو ته اعلان کړي ، حضرت علي رضي الله عنه روان سو اوعرج یاخجنان کي یې له ابوبکرصدیق رضي الله عنه سره لیدنه وسوه ، ابوبکرصدیق رضي الله عنه پوښتنه وکړه چي امیرېې اوکه مامور؟علي رضي الله عنه په جواب کي ورته وویل : چي نه زه ماموریم ، دواړه روان سول ، ابوبکرصدیق رضي الله عنه دحج دمناسکو مشري وکړه ، داختر په ورځ حضرت علي رضي الله عنه له جمرې سره ودریدی اوخلګوته یې درسول الله ﷺ فرمان او پیغام ولوستی ، په دې فرمان سره دټولو مشرکینو سره تړونونه مات اولغوه سول ، دوی ته یې څلورمیاشتي وخت ورکی چي له سره فکر وکړي ، له کومو مشرکینو سره چي تړونونه سوی دوی ته هم دامهلت وټاکل سو ، خوهغه مشرکین چي مسلمانانو ته یې ضرر نه سوای رسولای اودمسلمانانو پرخلاف یې دچامرسته نه وه کړې دوی ته اعلان وسو چي ددوی سره به تړون ترټاکلي مودې پوري نافذ اوعملي وي ، ابوبکر رضي الله عنه هم ځیني کسان توظیف کړل چي اعلان وکړي چي له دې کال وروسته هیڅ مشرک نه سي کولای دحج په مراسمو کي ګډون وکړي

،هیڅاته اجازه نسته چي پربربنډ حالت کي طواف وکړي ،ددې فرمان په اعلان سره په حقیقت کي له عربي جزیرې څخه دبت پرستی تغر په ګلي توګه ټول سو ،دااعلان وسو چي نور شرک ختم سو ،دبت پرستی تاریخ پای ته ورسیدی اوبیابه دلته بت پرستي مخ نه پیدا کوي.[548]

## «دسیدالبشر ﷺ وغزاګانو ته مختصره کتنه»

که دنبي کریم ﷺ غزاګانو اودده له خوا لیږل سوو جنګي ګروپونه اوهیئتونو ته وکتل سي ،دهغه په نتائجو کي غور او دقت وکوو نودا به راته په ډاګه سي چي رسول الله ﷺ دتاریخ ترټولو لوی اوبې ساري قوماندان ؤ ،په شجاعت ،حکمت ،پوهه اوتدبرکي ساری نه لري ،هغه لکه څرنګه چي دنبیانو سردار اومخکښ دی همداسي دجنګ په ډګرکي هم دباتدبیره ،زړورو او بریالیو جنګ سالارانو سردار دی ،رسول الله ﷺ بې وخته اوبې ضرورته جنګ نه دی کړی او که به دجنګ ضرورت پیښ سونو په پوره شجاعت ،تدبر او قاطعیت سره یې دجنګ امور ترتیب اوعملي کړي دي ، هیڅکله هم داسي نه ده سوی چي درسول الله ﷺ لښکردي دجنګي استراتیژي اوتګلاري له امله ماته خوړلې وي ،دمناسب ځای ټاکنه ،دلښکر تنظیم ،مناسبه استراتیژي اونورو برخو کي رسول الله ﷺ داپه اثبات رسولی ده چي هغه دنړۍ تر ټول هر جنګي قوماندان پوه اومخکي دی.

دحنین په غزاکي دمسلمانانو دماتي سبب دنویو مسلمان سوو کسانو کمزوري اویادرسول الله ﷺ له اوامرو اوقومندې څخه مخالفت ؤ ،داحد په غزا کي دمسلمانانو له ماتي وروسته درسول الله ﷺ حکمت په اثبات رسیږي ،دده له امر مخالفت دماتي سبب ګرځي ،خو ګورو چي دجنګ په ډګر کی درسول الله ﷺ استقامت اومقاومت له امله دجنګ مخه په بله اړوي ، ماته بیرته په بري بدلیږي ،همداډول دحنین په غزا کي هم په پوره حکمت اودقت سره ماتي خوړلی لښکر مقاومت ته رابولي ،دوی داسي تنظیموي چي دښمن یې په وړاندي مقاومت نه سي کولای ، ددښمن روحیات ماتوي ، حوصلې یې پرهوځي اوماتي خوري ، درسول الله ﷺ جنګي پوه اوحکمت دومره ؤ چي تاریخ یې ساری نه لري ، نبي کریم ﷺ دخپل حکیمانه جنګي تاکتیک اوبریالی استراتیژي په واسطه وکولای سوای چي په عربي جزیره کي امنیت ټینګ کړي ،داسلام اوصلحي دښمنان له مینځه یوسي ، داسلامي دعوت په وړاندي ټول خنډونه له مخ څخه لیري کړي ، هغه په خپل حکمت سره منافقان هم تجرید کړل ، ریښتوني مؤمنان له درواغجنو

---

[548] صحیح البخاری ١/ ٢٢٠، ابن هشام ٢/ ٥٤٣، ٥٤٦، زادالمعاد ٢/ ١٣.

او منافقانو څخه جلا سول ،رسول الله ﷺ نه یوازي په خپله عظیم لاربنود او قوماندان ؤ بلکه هغه ډیر نور نومیالي قوماندانان هم روزلي دی ،همدا د رسول الله ﷺ په لاس روزل سوي قوماندانان ؤ چي د خپل لاربنود له وفات وروسته یې د فارس او روم په مقابل کي جنګ وکړي ، د شام او عراق په دښتو کي یې د مقابلې په ډګر کي پر دښمن غلبه ترلاسه کړه ، خپله برلاسي یې په اثبات ورسوله ،دوی په خپل تدبیر او حکمت سره وکولای سوای دښمنان مات کړي دوخت دوې امپراطوري یې دړې وړې کړي .

دنبي کریم ﷺ د جنګ او غزاګانو ګټه دا چي د مسلمانانو لپاره کور ،مځکه او کار پیدا سو ،د بې وسه مهاجرینو مشکلات حل سول ، دوی هم جنګي وسایل او مصارف پیدا کړل ، دا ټول مشکلات په داسي حال او داسي طریقې سره حل سول چي پرهیڅا هم یوه ذره ظلم ونه سو ،نبي کریم ﷺ د جاهلیت د زماني ټول دودونه او رواجونه بدل کړل ،دهغي توري دوري د جنګ او اسباب او اهداف یې هم له منځه یووړل ،په جاهلیت کي د جنګ معنی او هدف چور ،چپاول ،ظلم ،تیری ،انتقام او د نورو حقوق تر پښو لاندي کول ،د کلیو او کورونو ورانول ،د بې ګناه خلګو بې ځایه وژل ،د ښځو پر عفت تیری ،د کوچنیانو ،ښځو زړو او بې وسو پر حقوقو تیری ،د کښتونو او درختو له مینځه وړل او په مځکه کي هر ډول فساد ؤ ،هو! جنګ دا سم او معنی دواړو له مخ بدل سو ،جنګ په جهاد بدل سو چي هدف یې مقدس او سپیڅلې ؤ ،دا داسي جنګ ؤ چي انسانیت ویاړ پرې کوي ، د دې جنګ هدف له ظلم او وحشیت څخه د انسان آزادي وه ،په دې سره بې وسو خپل حقوق ترلاسه کړل ،د طاقتورو زوراوبه سو، د زور او ظلم دوره تیره سوه ،حق او انصاف قایم سو ،د دې جهاد هدف د هغو ښځو ،کوچنیانو او زړو آزادي وه ویل به یې چي اې ربه! موږ له دې ظالمانو څخه خلاص کړې ،موږ له دې کلي څخه چي اوسیدونکي یې ظالمان دي وباسې ، ربه! زموږ چاره وکړې زموږ مرسته وکړې ،موږ ته ولي او سرپرست پیدا کړې ،د رسول الله ﷺ د جنګ هدف دا ؤ چي مځکه له فریب ،چم ،غدر ،خیانت ،تیري او فساد څخه پاکه کړي ،چي ځای یې عدل ،انصاف ،وفا او پاکي ونیسي ، رسول الله ﷺ به چي کوم صحابي د لښکر قوماندان ټاکی نو د تقوی ،عدل او انصاف توصیه به یې ورته کوله ،امر به یې ورته کوی چي له خلګو سره ښه معامله وکړي او فرمایل به یې :باسم الله فی سبیل الله :قاتلوا من کفر بالله ولاتغلو او لاتغدروا ولاتمثلوا ولاتقتلوا ولیدا. د الله په لارکي د الله په نامه وجنګیږئ ،له کافرانو سره جنګ وکړئ ،جنګ وکړئ خو خیانت ،غدر ،فریب او چم مه کوئ ،ځوک مه مثله کوئ

،کوچنیان مه وژنی ،،داډول به یې ډنرمۍ امر ورته کوی فرمایل به یې : یسروا ولاتعسروا سکنوا ولاتفرقوا .[۵۴۹] اساني کوی ،سختي پرېږدی ،خلک خپل کړی اوله ځان څخه یې مه بېزاره کوی ،رسول الله ﷺ به دشپې له خواپردښمن حمله کوله ،په اور کي دسوځیدو اجازه یې نه ورکوله ، دکوچنیانو ،ښځو اوسپین ږیرو له وژلو،چور اوچپاول څخه یې په کلکه نهي کوله ، فرمایي غلااولوټ سوی مال دمړي دغوښې په ډول مردار دی ،دکښتونو له تباه کولو اود درختو له شکولو څخه یې منع کوله ،اوله خاصوضروري شرایطو پرته یې کله هم دد رختو دپرېکولو اجازه نه ده ورکړی ،دمکې دفتحې په وخت کې یې وفرمایل : چې بندي اوزخمي مه وژنی ،اوڅوک چې درڅخه وتښتیدی په هغه پسې مه ورځی رسول الله ﷺ فرمان صادر کړی ؤ چې سفیر اوقاصد به نه وژل کیږي ، دذمي مرګ هم نه دی جائز ،رسول الله ﷺ فرمایي چې چاذمي ووژی دجنت بوی به ترلاسه نه کړي ، په داسي حال کې چې دجنت بوې دڅلویښتو کالوسفر په مسافه لیري محسوسیږي ،دا او دې ته ورته نور هغه اساسي لاربنوونې دي چې جاهلیت دزمانې جنګ یې په جهاد بدل کی .[۵۵۰]

## «خلک په جمع اوري سره اسلام راوړي»

مخکې موو ویل چې دمکې فتحه هغه لویه سوبه وه چې په واسطه یې دبت پرستي ستڼه له منځه ووته عربو حق اوباطل وپیژندل ،شک اوشبهې یې له زړونو ووتی ،ټولو دااسلام خواته رجوع وکړه ،ډلي ډلي خلک اسلام ته راتلل ،عمر بن سلمه رضي الله عنه وایي چې موږ له یوې داسي چینې سره اوسیدو چې دخلکو لاره راباندي وه ،په دې وخت کې ډیر کاروانونه زموږ سره تیرېدل ، پوښتنه به موکوله چې داڅه سوی ؟په خلکو څه سوی ؟اودامحمد ﷺ څوک اوڅه کاریې دی ؟په جواب کې به یې راته ویل محمد ﷺ وایي چې هغه دالله جل جلاله رسول دی هغه ته وحي راځي اووحي چې ورته راسي هغه داسي حفظ کوی لکه پرزړه چې یې لیکلي وي .

عرب دمکې ترفتحې پورې په انتظار کې ؤ دوی به ویل پرېږدی محمد ﷺ اوقوم یې چې سره معلومه یې کړي ،هروخت که محمد ﷺ کامیاب سو نودابه ثابته سي چې هغه پرحق دی او رېښتونی رسول دی ،کله چې مکه فتحه سوه نوهری قبیلې به هڅه کوله چې ترنورو په اسلام مخکې مشرفه سي ، عمرو زیاتوي زماپلار هم ترنورو مخکې درسول الله ﷺ خدمت ته حاضر اوپه اسلام مشرف سو،کله چې بیرته راغی موږته یې وویل چې دهغه

---

[۵۴۹] صحیح مسلم ۸۳، ۸۲.

[۵۵۰] زادالمعاد ۲/ ۶۴، ۶۸، والجهاد فی الاسلام للاستاذ المودودي ص ۲۱۶.

ريښتوني پيغمبر له طرفه تاسي ته راغلی يم چي فرمايي: دالمونځ په دې وخت اوداپه دې وخت کي اداکيږي کله چي دلمانځه وخت سي نويوسړی بايدآذان وکړي اوبياهغه څوک امامت ورکړي چي ډير قرآن کريم يې په ياد وي ،له دې حديث څخه داڅرګندېږي چي دمکې فتحي داسلام اومسلمانانو په قوت اودشرک له مينځ وړلوکي څومره اثردرلودی، له دې فتحي څخه وروسته عرب اسلام ته تسليم سول ،تاريخ شاهددی چي په نهم اولسم هجري کال مختلفي قبيلې ډلي ډلي مدينې ته راغلي اوپه اسلام مشرفي سوی دي ،دخدای بندګانو ډلي ډلي اسلام راوړي ،دمسلمانانو شميره دومره زياتيږي چي دمکې په فتح کي(۱۰۰۰۰) کسيز لښکر دتبوک په غزا کي په ديرش زره کسيز لښکر بدليږي ، په ډی لنډه موده کي دلښکر شميره دومره زياتيږي ، تردې يوکال وروسته دحجة الوداع په دوران کي له رسول الله ﷺ سره يولک وڅلويښت زره کسان برخه اخلي ،دالله ﷻ له رسول الله ﷺ سره يوځای ټول تکبير تهليل اوتلبيه وايي .

## «استاذي اونمايندګان»

هغه پلاوي چي دقومونو په نمايندګي درسول الله ﷺ خدمت ته راغلل ،اهل السير ددغه پلاؤ شميره ايا(۷۰)ښوولی ده ،دلته دټولو په اړه خبري نه سوکولای خوڅرنګه چي په قصه يې ډيري ګټي نغښتي دی په اختصار سره يې يادونه کووخوداباید په ياد ولرو چي که څه هم داکثرو قبيلوپلاوي دمکې له فتحي څخه وروسته راغلی خودمکې له فتحي څخه مخکي هم يوشمير پلاوي درسول الله ﷺ حضورته راغلي دي .

## «دعبدالقيس استازي»

دې قبيلې دوه هيئتونه ليږلی ؤ،چي لومړی يې په پنځم هجري کال ياترهغه هم وړاندي ؤ،ددې قوم يوسړی چي منقذبن حيان نوميدی هروخت به دتجارت لپاره مدينې ته راتلی ،درسول الله ﷺ ترهجرت وروسته هم مدينې ته راغی ، داسلام په هکله يې معلومات ترلاسه کړل ، اومسلمان سوبيايې درسول الله ﷺ خط اوپيغام خپل قوم ته يووړی دوی هم ټول په اسلام مشرف سول ،ورپسې يې يو ديارلس ياڅوارلس کسيزپلاوی مدينې ته وليږی ،دوی دهمدې سفر په دوران کي دهغولوښو په هکله پوښتنه وکړه کوم چي شراب يې په کښي ساتل ، ددې پلاوي مشر اشج عصري ؤ چي رسول الله ﷺ يې په هکله فرمايلي دي چي په تاکي دوه داسي صفتونه سته چي دالله ﷻ اورسول الله ﷺ خوښ دی داصفتونه يوحلم دی اوبل بردباري اودقت ،ددې قبيلې دويم هيئت له فتحي څخه وروسته په هغه کال مدينې ته راغی چي دعام الوفود په نامه يادېږي په دې پلاوي کي څلويښت

کسان راغلي ؤ له دوی سره جارو بن علاء عبدي هم ؤ ،نوو موړي تر ې مخکي مسیحي سوی ؤخو بیا په اسلام مشرف سو. ۵۵۱

## «د دوس قبیلې وفد»

په داسي وخت کي چي رسول الله ﷺ په خیبر کي تشریف درلودی ،ددې قبیلې وفد راغی په مخکنیو صفحو کي موو ویل چي طفیل بن عمروالدوسی رضي الله عنه ترهجرت وړاندي مسلمان سو هغه مکي ته راغلی ؤ او هم دلته یې د رسول الله ﷺ په لاس ایمان راوړی ؤ، بیا خپلي قبیلې ته بیرته تللی ؤ ،دوی ته یې داسلام بلنه ورکړې وه ، قوم یې مثبت جواب نه ورکوی،طفیل ځني ناهیلی سو بیرته د رسول الله ﷺ حضور ته راغی،عرض یې وکی چي یارسول الله ﷺ !دوس قبیلې ته ښراوکړه ، رسول الله ﷺ وفرمایل : اې ربه!ته دوس قبیلې ته هدایت وکړې په اووم هجري کال کي چي رسول الله په خیبر کي تشریف درلودی ،طفیل رضي الله عنه دخپل قوم اویایا اتیا کورنیو سره یوځای مدینې ته راغلل اوټول په اسلام مشرف سوی ؤ.

## «د فروه بن عمرو جذام استازی / نماینده»

فروه هغه عربي قومندان ؤ چي نوم یې د رومیانو په ډول ؤ،نوموړی له روم سره د نژدې برتو عربي قبایلو قومنده پرغاړه درلوده ، مرکز یې معان نومي سیمه وه چي اوس داردن په جنوب کي پرته ده ،فروه چي داتم هجري کال دتبوک دغزاپه ترڅ کي دمسلمانانو شجاعت،مقاومت صبر اوتدبیر ولیدی په اسلام مشرف سو اویونماینده یې د رسول الله ﷺ حضور ته ولیږی دخپل اسلام خبرې ورکی اویوه جوړه سپین کالي یاپټوې هم دتحفې په شکل ورته راولیږی ،رومیان چي دده په اسلام خبرسول بندي یې کی،ورته وی ویل یابه اسلام پرېږدی اویابه دي سرپرېکوو هغه پراسلام قائم پاته سو ،هم هغه وه چي رومیانو په فلسطین کي له غفراء نومي چینې سره په دار وځړوی اوسرېې ځني پرېکی. ۵۵۲

## «د صداء استاذي»

داپلاوی هغه وخت راغلی چي رسول الله ﷺ په اتم هجري کال کي له جعرانه څخه بیرته راغلی ،قصه داسي وه چي رسول الله ﷺ یوڅلورسوه کسیز جنګي ګروپ ته وظیفه ورکړه چي ولاړسي اودیمن په هغه سیمه کي وګرځي چیري چي دصداء قبیله میشته وه ، په دې وخت کي دوی دقناة درې په پورتني برخه کي ځای پرځای سول ،زیادبن حارث صدایي

---

۵۵۱ شرح مسلم نووي ۱/ ۳۲۳.

۵۵۲ زادالمعاد ۳/ ۴۵، تفهیم القران ۲/ ۱۶۹.

خبرسو چي درسول الله ﷺ سپاهيان د دوی سيمي ته راغلي دي ، هم هغه وه چي سيخ درسول الله ﷺ حضورته ورغلی عرض يې وکی يارسول الله ﷺ زه دخپل قوم دنماينده په صفت تاته راغلی يم ،هيله ده چي خپل لښکر ته ديرته ستنيدو امروکی ،زه دخپل قوم ضامن يم ،ضمانت يې کوم رسول الله ﷺ خپل لښکر دقناة درې څخه راوغوښتل ،زيادهم ولاړی خپل قوم يې تشويق کی چي درسول الله ﷺ حضورته ورسي په نتيجه کي پنځلس کسان درسول الله ﷺ خدمت ته راغلل ،په اسلام مشرف سول بيا بيرته ولاړل خپل قوم يې اسلام ته راوباله ،ددوی په مينځ کي اسلام خپور سواودحجة الوداع په وخت کي له همدې قبيلې څخه سل کسان درسول الله ﷺ خدمت ته راغلل .

## «کعب بن زهير بن ابی سلمی دسيدالبشر ﷺ په وړاندي»

کعب دشاعرانو په کورنۍ کي ترټولو مشهور اومعروف شاعر ؤ ده به درسول الله ﷺ هجوه هم کوله ،په اتم هجري کال کي چي رسول الله له طائف څخه راغی ،دکعب ورور کعب ته خط وليکی چي په کښي ليکلي ؤ ،رسول الله ﷺ دقريشو يوشمير هغه شاعران ووژل کوم چي دده هجوه يې کړه ،نوريې له مکې څخه تښتيدلي دي ،که خپل ژوند درباندي ګران وي نودرسول الله ﷺ خدمت ته ورسه ،ځکه که توبه وباسی اودده خدمت ته حاضرسی هغه دي نه وژني ، که دانه کوی نودخپل ژوند يو څه چاره کوه ، کعب هم خپل ورور ته جواب وليکی ،ددوی دواړو ترمينځ خطونه ردوبدل سول ،په پای کي پرکعب باندي مځکه تنګه سوه مجبورسو چي مدينې ته ولاړسي،هلته دجهينه قبيلې ديو سړي کورته ورغلی ،دسهار لمونځ يې دهغه سره اداکی بيادرسول الله ﷺ حضور ته ورغی خپل لاسونه يې دهغه مبارک پرلاسونو کيښښول رسول الله ﷺ لانه ؤ پيژندلی چي داکعب دی ،کعب وويل چي يارسول الله ﷺ !کعب اسلام راوړی دی ،ستاحضورته راتلل غواړي اوامان درڅخه غواړي که زه يې درته راولم هغه خپل حضور ته يې منی ،رسول الله ﷺ وفرمايل هو! کعب وويل زه کعب يم،يوانصاري پورته سو اجازه يې وغوښتله چي دکعب سرپرېکړي،رسول الله ﷺ وفرمايل پريږده هغه توبه ايستلې ده ،هغه اسلام راوړی دی اوتيره لاره يې بدله کړې ده ،کعب په دې وخت کي خپل مشهور قصيده وويل چي شروع يې داسي وه.

بانت سعاد فقلبی اليوم مبتـــل .... متيم اثرهـــا لم يفد مکبـــول

**ترجمه**: سعاد راځخه ليري سوې زړه مي ورپسې ناآرام دی ،زړه مي ورپسې کشال دی ،دهغه دعشق ځنځير تړل سوی دی خوهغه يې هيڅ بدل اوعوض نه دی ورکړی ،په همدې قصيده کي يې درسول الله ﷺ مدح کړی اودخپلي پخوانی خطاء څخه يې بخښنه غوښتی وايي.

نبئت ان رسول الله اوعدني .... والعفو عندرسول الله مامول

مهلا هداک الذی اعطاک نافلة ال .... قرآن فيها مواعيظ وتفصيل

لاتاخذني باقوال الوشاة ولم .... اذنب ولو کثرت فی الاقاويل

لقد اقوم مقامالويقوم به ... اری واسمع مالويسمع الفيل

لظل يرعد الاان يکون له ... من الرسول باذن الله تنويل

حتی وضعت بميني ماانازعه .... فی کف ذی نقمات قيلة الفيل

فلهو اخوف عند اذاکلمة ..... وقيل انک منسوب مسؤل

من ضيغم بضراء الارض مخدره ... فی بطن عثر غيل دونه غيل

ان الرسول لنور يستضاءبه ... مهند من سيوف الله مسلول

**ترجمه**: خبرسوم چي رسول الله ﷺ گواښ کړی دی خوعفوه درسول الله ﷺ مامول ده ،احتيا، خدای دي هدايت درته وکړي ،هغه چي قرآن کريم درته هديه کړی دی ، چي په کښي نصيحتونه اودمسايلو تفصيلات دی ،مادنورو په خبرو مه نسه ،زه بې گناه يم که څه هم په هکله مي خبري ډيري سوی ،زه په داسي ځای کي ولاړيم ،داسي څه اورم اووينم که هلته فيل ولاړوای اودايې اورېدلی وای نولړزيدلی به وای ، اوترهغوپوري به آرام نه وای ترڅوچي رسول الله ﷺ دالله جل جلاله په امر عفوه ورته کړی وای ،تردې پوري چي لاس مي بيله کوم مخالفته دهغه چاپه مبارکو لاسونو کيښوول سو چي دانتقام پوره توان لري اوخبري يې پوره مردانه اوپرځای دي ، په هغه شيبو کي چي زه ورسره خبري کوم ،هغه وخت چي راته ويل کيږي دغه اوهغه خبره دي رارسيدلی اوپه دې هکله پوښتنه درڅخه کيږي ،په همدې وخت کي هغه د عثرنومي سيمي له زمري څخه ډير بيريدونکی راته ښکاري ، په دې سيمه کي يوې خوا بلي خواته گڼي درختي دي ،بيشکه چي رسول الله ﷺ داسي نور دی چي نور گټه ورڅخه واخلي نور رڼايې ځني اخلي ، دهغه مثال لکه په تورو کي دهغه هندي توري په شان دی چي ددښمن دمقابلې لپاره تيکي څخه ايستل سوی وي.

وروسته یې د قریشو مهاجرینو صفت وکړ، ځکه چې دده د راتګ په وخت کې له دوی څخه یوه هم دده په اړه نامناسبه خبره ونه کړه، د انصارو یې هیڅ مدحه ونه ځکه له دوی څخه یوه تن دده د مرګ اجازه غوښتې وه.

یمشون مشی الجمال الزهر یعصمهم .... ضرب اذا عرد السود التنابیل

**ترجمه**: قریش لکه د ښکلو اوښانو په ډول روان وي، نوري وهونکي یې ساتنه کوي، کله چې دوی را مخ ته سي نو تور او کمزور خلک لاره پرېږدي، او تښتي، کعب له اسلام راوړلو وروسته هغه وخت چې ایمان یې ښه په زړه کې ځای ونیوی د انصارو صفت هم وکړ او د دوی په هکله یې تیره غلطي جبران کړه هغه به یوه قصیده کې وایي:

من سره کرم الحیاة فلا یزل .... فی مقنب من صالحی الانصار

ورثوا المکارم کابرا عن کابر .... ان الخیار هم بنو الاخیار

**ترجمه**: څوک چې شرافت مند او محترم ژوند غواړي هغه به د انصارو په یوه څانګه کې پیدا کیږي، انصار پشت په پشت بزرګان او قدرمند دي، دوی غوره دي د غوره بندګانو زامن دي.

## «د عذره قبیلې استازي او نمایندګان»

ددې قبیلې دولس کسیزه پلاوی د حمزه بن نعمان په ګډون د نهم هجري کال د صفر په میاشت کې حاضر سو، کله چې پوښتنه ورڅخه وسوه، تاسي له کومې قبیلې څخه یاست؟ د دوی ویاند وویل چې موږ له بنو عذره قبیلې څخه یو، موږ د قصی مادري ورونه یو موږ هغه څوک یو چې د قصی ملاتړ موکړی دی، خزاعه او بنو بکر موله مکې څخه ایستلي، مو د صله رحم او خپلوی څښتنان یو، په دې خبرو رسول الله ﷺ ډیر خوشحاله سو، نو د هر کلي یې ورته ووایه، دوی ته یې د شام د فتحې زیری ورکی، امرېې ورته وکی چې جادګرو ښځو ته دې نه ورځي، د دوی خبرې دې نه مني، د جاهلیت د زمانې قتل او قتال دې پرېږدي، د پلاوي غړي ټول په اسلام مشرف سول، څو ورځې یې په مدینه کې تیرې کړې بیا خپلې مینې ته بیرته ولاړل.

## «د بلې پلاوی او میلمه پالنه»

د غه هیئت د نهم هجري کال د ربیع الاول په میاشت کې مدینې ته راغی اسلام یې قبول کی، درې شپې یې په مدینه کې تیرې کړې، د پلاوي مشر ابو الضبیب سوال وکی چې میلمه پالنه ثواب لرې کنه؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل چې هر نیکي له غني سره وي که له فقیر سره صدقه ده. نو موړي د میلمستیا د مودې په هکله پوښتنه وکړه؟ رسول الله ﷺ

وفرمايل چې ميلمستيا درې شپې اوورځې وي ،ابوالضبيب سوال وکی چې ورک سوی پسه دچادی؟ رسول الله ﷺ وفرمايل هغه ياستادي ياستا د ورور اويا دليوره ،دورک سوي اوښه په هکله يې هم پوښتنه وکړه ، رسول الله ﷺ جواب وکی چې ته ورک سوی اوښه څه کوي خوښي يې کړه ترڅو مالک يې پيدا سي .

## «دثقيف استاذي /نمايندګان»

داپلاوی دنهم هجري کال په رمضان مياشت کي له تبوک غزا وروسته مدينې ته راغی،تر دې پلاوي مخکي دثقيف سرادار عروه بن مسعود ثقفي داتم هجري کال په ذی القعده کي درسول الله ﷺ حضورته راغلي ؤ،اسلام يې راوړی ،بيرته خپل قوم ته ولاړی ترڅودوی اسلام ته راوبولي ،ده تمه درلوده چي قوم به يې ايمان راوړي خوهغو دده دعوت په جواب کي په غشو وويشت اوپه شهادت يې ورسوی عروه دخپل قوم په مينځ کي زيات محبوبيت هم درلودی خوبياهم دا سلام په ګناه شهيد سو، له دې وروسته ثقيف قبيله څه موده هم داسي سرګردانه وه ،بالاخره يې مشورې سره وکړې اوپوه سول چي د مسلمانانو مقابله نه سي کولی تصميم يې ونوی يوکس يې درسول الله ﷺ خدمت ته وليږی ،لومړی يې عبدياليل بن عمرو غوره کي ترڅو درسول الله ﷺ خدمت ورسي ،خوهغه وبيريدی اووی ويل هسي نه له ده سره هم لکه دعروه په ډول معامله وسي ، همداؤچي دخپل قوم غوښتنه يې ونه منله ،او ورته وی ويل زه داکارهغه وخت کولای سم چي ځورنورکسان هم راسره ملګري کړی ،قوم دوه کسان له ثقيف اودرې کسان له بني مالک څخه ورسره ؤ درسول الله ﷺ حضورته ولاړل ،دوی چي مدينې ته ورسيدل ،نبي کريم ﷺ امروکی چي په مسجد کي دننه يوځای ورته جوړ سي ،تر څو هم دلته دقرآن کريم تلاوت واوري اومسلمانان دلمانځه په حالت کي ووينې ،دوی څه موده هم دلته پاته سول ، وخت ناوخت به درسول الله ﷺ زيارت ته ورتلل، هغه به اسلام ته رابلل ، په پای کي دهيئت مشرله رسول الله ﷺ څخه دامن اوصلحي دتړون سوال وکی عرض يې وکی چي يارسول الله ﷺ !موږ ته دصلحي تړون وليکه خودزنا ،شراب څښلو اوسود خوړلو اجازه هم راکړه ، دلات دبت منجوره مه وړنه ، لمونځ هم راوبخښه ،زموږ بتان به موږ په خپله مات کړو ، رسول الله ﷺ د دوی دايوه غوښتنه هم ونه منله ، دوی ولاړل مشورې سره وکړې ،بالاخره دې نتيجي ته ورسيدل چي له اسلام اورسول الله ﷺ له پيروي اواطاعت پرته بله لاره اوچاره نه لري ، هم داوه چي دنبي کريم ﷺ حضورته ورغلل ، اومسلمانان سول خويوه غوښتنه يې وکړه چي دلات بت دې رسول الله ﷺ مات کړي ،ثقيف ته دی داکارنه سپاري

، داغوښتنه يې ومنل سوه ،نبي كريم ﷺ خط ورته وليكى چې عثمان بن ابى العاص يې اميرورته وټاكى ځكه هغه تر نورو زيات له اسلام اوقرآن سره مينه درلوده،دوفد غړي به هرسهار دنبي كريم ﷺ ته راتلل اوعثمان به يې له خپل سامان سره پرېښووه ،خوكله به چې دوى درسول الله ﷺ له حضور څخه پرته راغلل دغرمي له خوابه بيده كېدل ،عثمان رضي الله عنه به درسول الله ﷺ حضورته راتلى اوورته ويل به يې دقرآن كريم تلاوت راته واوروه، ددين داحكامو په هكله يې هم سوالونه كول ، اوكه به يې رسول الله ﷺ پيدانه كړى نوبيابه دهمدې غرض لپاره دحضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه خدمت ته ورتلى داهم هغه بركتي اومؤمن شخص ؤچې دارتداد په زمانه كي دخپل قوم لپاره لوى رحمت ثابت سو ځكه هغه وخت چې دې قوم اراده وكړه چې له اسلام څخه واړوي ده ورته وويل اې دثقيف خلګو !تاسي وروسته قوم ياست چې اسلام مو راوړى اوس په كفركي ترنورومه مخته كېږى، قوم يې هم خبره ومنله اوپراسلام ثابت پاته سول ،داپلاويله دمدينې څخه واپس سو كله چې خپل قوم ته ورسيدل اسلام يې ځني پټ كى ښوورځې يې حقيقت نه ورته وايه خودوى ته يې دامشوره وركړه چې جنګ ته زړه ښه نه كړي دايې هم ورته وويل چې رسول الله ﷺ له دوى څخه داسلام راوړلو غوښتنه كړى ده او ورته ويلي يې دى چې زنا ،شراب سود اونور ناروا كارونه پرېږدى ، كه نه نو جنګ به درسره كوي ،ثقيفيان څرنګه چې ډېركبرجن خلګ ؤ درې ورځې يې انتظاروكى لومړى يې دجنګ اراد كړى وه خووروسته يې په زړونو كي بيره پيدا سوه اودپلاوي غړوته يې وويل ولاړسى اودرسول الله ﷺ دامرمطابق عمل وكړى ، هم دلته وه چې دوى حقيقت ورته بيان كى اوهغه مطالب يې ورته وويل چې له رسول الله ﷺ سره منلي ؤ ،په دې ترتيب سره ثقيف هم په اسلام مشرفه سوه ، رسول الله ﷺ خالد رضي الله عنه ته وظيفه وركړه چې ديو ګروپ په مشري ولاړسي اولات دړي وړي كړي ،مغيره بن شعبه يوغټ تبرواخيستى او خپلو ملګروته يې ووتاسي په دثقيف په باره كي خندوم ،هم هغه وه چې يوځل يې تبرپورته كى واريې وكى بيايې ځان ورغورځاوه وى ځغستل ، دطائف خلګوپه داسي حال كي چې لړزېدل وويل خداې مغيره ورک كړي ، دلات خدايانو وواژه .

مغيره رضي الله عنه راپورته سو وى ويل خوارسى !دابت خوله ختمو اوډبرو څخه جوړسوى دى ،بل څه نه دي،ورپسې يې پردروازه واروكى ماته يې كړه ، بيايې پرلوړ ديوال ورپورته سو خلګو هم شروع ورسره وكړه ديوال يې ونړوى ،تهداب يې راڅګ كى هلته چې كالي ،زيورات ؤ ټول يې راوكښل دثقيف خلګ حيران دريان ولاړ ؤ ،خالد رضي الله عنه داكالي

اوزیورات ټول د رسول الله ﷺ حضور ته راوړل ،رسول الله په هم هغه ورځ وویشل ،دالله تعالی د نعمت او نصر شکریې وواېه حمد او ثناءيې وویله.

## «دیمن دبادشاهانو لیک»

نبي کریم ﷺ چي له تبوک څخه راغی د حمیر دباچهانو خط ورته راغی ،دغه کسان چي خط یې رالیږلی ؤ عبارت ؤ له حارث بن عبد کلال ،نعیم بن عبد کلال او دذی رعین،همدان او معافر قبیلې مشر چي نعمان بن قیل نومیدی ، دوی مالک بن مره خپل نماینده وټاکی او د دې لپاره یې رسول الله ﷺ ته ولیږی ترڅو خبر ورکړي چي دوی په اسلام مشرف سوی او شرک یې پرایښي دی ،رسول الله ﷺ دوی ته اسلامي لارښووني وکړی ،مسؤلیتونه یې ورته په ګوته کړل ،یو ګروب اصحاب یې دمعاذ بن جبل رضي الله عنه په مشري د دوی د رهنمایي لپاره ولیږل.

## «دهمدان پلاوي / استاذی»

داپلاوی په نهم هجري کال کی دتبوک له غزا وروسته راورسیدی ،رسول الله ﷺ خط ورته ولیکی او څه شیان یې چي دوی غوښتي ؤ ورکړل ،مالک بن نمط یې دخپل قوم د مسلمانانو امیر وټاکی ، اودنورو لپاره یې خالد بن ولید رضي الله عنه ور ولیږی ، هغه هلته شپږ میاشتي پاته سو دوی یې اسلام ته رابلل خو دوی اسلام ونه منی ،بیا رسول الله ﷺ د خالد رضي الله عنه پرځای علي رضي الله عنه مقرر کی ،خالد رضي الله عنه بیرته راغی ،علی رضي الله عنه د همدان خلګو ته ورغلی ،د رسول الله ﷺ خط یې ورته ولوستی ، دوی یې اسلام ته رادعوت کړل ،په همدې سره دوی ټول په اسلام مشرف سول ، حضرت علي رضي الله عنه دخپلي کامیابۍ او همدا راز د قبیلي د اسلام زیری حضور ﷺ ته ولیږی ، رسول الله ﷺ ته چي دا خط ورسیدی له خوشحالی څخه پر سجده پرېوتی او کله چي یې مبارک سره له سجدې څخه راپورته کی نو وی فرمایل :همدان دې سلامت وی.

## «دبني فزاره استاذې او نمایندګان»

دغه پلاوی چي د نبي کریم ﷺ خدمت حاضر سو ،په اسلام یې اعتراف وکی او دخپلي بدي ورځي ،قحطي او وچکالی څخه یې شکایتونه وکړ ل، رسول الله ﷺ منبر ته پورته سو او دباران دعایې وکړه ، اووی فرمایل : چې اې خدایه! خپل ښارونه او چارپایان سیراب کړه ، رحمتونه دې نازل کړه ،دامړ وچ ملک بیرته راژوندی کړه ،خدایه داسي باران راباندې وکړه چي درد مو دوا کړي ،آرامي راته راوړي ، ګټه را ورسوی ، ډیر پراخ وي

ژروي وروسته نه ،کمزوروي ،تاوان نه لري ، لويه خدايه! درحمت باران غواړو ، نه دعذاب باران ،داسي باران غواړو چي نړوونکی ،ډوبونکی اوله مینځ وړونکی نه وي ،لويه خدايه!پرموږ باران وکړی اوپردښمن برلاسی اونصرت راپه برخه کړی .

## «دنجران استاذي»

نجران دمکې جنوب يمن طرف ته پروت لوی ښار دی ،نجران (۷۳) کلي درلودل ،سپورپه تیر رفتار سره په یوه ورځ کی ور رسیدلای سوای ، دلته يولک مسیحي جنګیالان هم وُ ،دنجران هیئت په نهم هجري کال کي مديني ته راغی ، په دې پلاوي کی شپیته کسان وُ چي (۲۴) يې سرداران وُ مشريې دروکسانو په غاړه درلوده .

(الف) : عاقب چي نوم يې عبد المسیح وُ نوموړي دحکومت مشري په غاړه درلوده

(ب) :اسيد چي نوم يې ايهم ياشرحبيل وُ ،ده دسیاسي اوفرهنګي چارومسؤلیت درلودی.(ج) : اسقف چي نوم يې ابو حارثه بن علقمه وُ ،ددیني چارو رياست له ده سره وُ ،دغه نماينده ګان چي مديني ته راغلل ،له رسول الله ﷺ سره يې وليدل ،يوله بل سره يې پوښتني وکړی ، رسول الله ﷺ اسلام ته راولل ، قرآن کريم يې ورته تلاوت کی ،دوی داسلام له منلو څخه معذرت وغوښتی ،دعيسی عليه السلام په هکله يې دده نظر وغوښتی ،رسول الله ﷺ ددې جواب ورنه کی ترڅو دامبارک آيتونه نازل سول .إِنَّ مَثَلَ عِيسَىٰ عِندَ اللَّهِ كَمَثَلِ آدَمَ خَلَقَهُ مِن تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَهُ كُن فَيَكُونُ ٥٩ الْحَقُّ مِن رَّبِّكَ فَلَا تَكُن مِّنَ الْمُمْتَرِينَ ٦٠ فَمَنْ حَاجَّكَ فِيهِ مِن بَعْدِ مَا جَاءَكَ مِنَ الْعِلْمِ فَقُلْ تَعَالَوْا نَدْعُ أَبْنَاءَنَا وَأَبْنَاءَكُمْ وَنِسَاءَنَا وَنِسَاءَكُمْ وَأَنفُسَنَا وَأَنفُسَكُمْ ثُمَّ نَبْتَهِلْ فَنَجْعَل لَّعْنَتَ اللَّهِ عَلَى الْكَاذِبِينَ .سورة آل عمران **ترجمه** :بیشکه صفت دعيسی عليه السلام په نزد دالله عزوجل دآدم عليه السلام دصفت اومثال په ډول دی ،الله جل جلاله پيدا کی آدم عليه السلام له خاورو څخه بيايې وويل ده ته بشرسه ،بس بشرسو ، حق هغه دی چي راغلی دی له جانبه د رب ستا ، نومه کیږي له شک کوونکو څخه ، نوهرڅوک چي جنګ اومناقشه کوي ستاسره په باره کي دعيسی عليه السلام کي وروسته له هغه چي حاصل سوتاته صحيح عمل دعيسی عليه السلام په بندګي اونبوت کي ،نوووايه اې محمده ﷺ !راځي چي راوبولو زامن زموږ اوزامن ستاسي اوښځي زموږ اوښځي ستاسي اوځانونه خپل ستاسي بيابه التجاوکړو په دعا کي نوويه ګرځوو موږ(وبه وايو)لعنت دالله پردروغجنانو باندي ،چي

سهارسو رسول الله ﷺ دهمدې آياتونو په رڼاکي دعيسى عليه السلام په هکله خپل نظر وړاندى کی دوی ته يې وخت ورکی چي فکر اوغور وکړي وروسته دې کسانو دعيسى عليه السلام په هکله درسول الله ﷺ رأيه اونظر ونه منى ، اسلام يې هم رانه وړی ،رسول الله ﷺ په داسي حال کی چي حسن رضي الله عنه اوحسين رضي الله عنه هم ورسره ؤ،فاطمه رضي الله عنها شاته ورپسې راوانه وه ،راغی اوله دې نصرانيانو څخه يې وغوښتل چي راځي اوس به مباهله وکړو ،دوی چي درسول الله ﷺ جديت وليدی ،سره کوښه سول خبري يې سره وکړی ،عاقب اواسيد ورته وويل چي مباهله نه کوو ځکه که داکار موو کی اوهغه ريښتونی رسول وي نوبيابه نه موږ خير ووينو اونه به يې زموږ آئنده نسلونه ، ټول به هلاک سو،هيڅ به راپاته نه سي ،بالاخره يې داخبره سره غوټه کړه چي رسول الله ﷺ به حکم کرځوي ،راغلل اورسول الله ﷺ ته يې عرض وکی چي ته څه وايې هم هغه درکوو، رسول الله ﷺ جزيه پرورټاکله ،جزيه دوه زره حله (جامې اوکالي) ؤ چي زر به يې په رجب او زر نوري به يې په صفر مياشت کي ورکولی ، داشرط يې هم پرکښيښنووی چي له هرودوو کالو سره به يوه اوقيه (۱۵۲گرامه) سپين زر هم اداکوی ،ددې جزيې په مقابل کي به دوی ته پوره ديني آزادي وي ،دالله جل جلاله اورسول الله ﷺ له طرفه ضمانت ورکړل سو،خط يې ورولیکی دې نمايندګانو غوښتنه وکړه چي يوامين سړی ددوی سره وليږي ،همدا وه چي رسول الله ﷺ ددې امت امين يعني ابوعبيده بن جراح رضي الله عنه ورلوېږی ترڅو جزيه ورڅخه راوړي .وروسته بيادا اسلام نورپه نجران کي هم خپور سو،اهل السير وايي چي عاقب اواسيد هم نجران ته له رسيدو وروسته په اسلام مشرف سول ، رسول الله ﷺ دويم ځل علي رضي الله عنه ته وظيفه ورکړه چي له دوی څخه صدقې اوجزيه راوړي ،څرګنده دې وي چي صدقه له مسلمانانو څخه اخيستل کيږي .

## «دبنی حنيفه قبيلې استاذي»

دا اوولس کيسزپلاوی چي مسيلمة الكذاب بن ثمامة بن كبير بن حبيب بن الحارث هم ورسره ؤ،په نهم هجري کال کي مدينې ته راغلل، دپلاوي غړي ديوه انصار کورته ورغلل ، بيا د رسول الله ﷺ خدمت حاضر سول ،اوپه اسلام او محمد ﷺ يې ايمان راوړی ،دمسيلمة الكذاب دااسلام په هکله مختلف روايتونه راغلي دي

،خوکه دقت وسي داڅرګنديږي چي نوموړي دتکبر،غرور ،سرغړوني اوقدرت غوښتني څرګندونه کړی وه ، اودهيڅ له نورو غړو سره درسول الله ﷺ خدمت حاضر سوی نه ؤ، رسول الله ﷺ په لومړي سرکي هڅه وکړه چي په قولي اوفعلي نيکي اوشفقت سره هغه راجلب کړي ،خوکله يې چي وليدل چي نيکي اثر نه پرکوی نودشر اثرات نښاني يې په کښي وليدی .

تردې مخکي رسول الله ﷺ خوب ليدلی ؤ چي دمځکي ټولي خزانې دده حضورته راوړل سي له دې څخه دوې کړی دده په مبارک لاس کي ولويږي ،په دې سره رسول الله ﷺ ډير خفه سو اوداډيري ګراني پرتمامي سوی ،په دې وخت کي وحي ورته وسوی چي پُف يې کړه ،کله چي پُف کړی دواړه ورکي اوليري سي ، رسول الله ﷺ ددې خوب تعبير داسي وکی چي د دواړي کړی بنګړي به دوه درواغجن وي چي ترده وروسته به ظهور کوي اولکه چي مسيلمة داتکبر اوانکار وکی اووی ويل چي که محمد ﷺ ترده وروسته واک ماته سپاري نوپيروي به يې وکړم ، په دې وخت کي نبي کريم ﷺ په داسي حال کي هتله تشريف يو وړی چي دخورما ددختي يوشاخ يې په لاس کي ؤ،شاعر يا خطيب يې ثابت بن قيس بن شماس هم ورسره ورغلی اوله مسيلمة الکذاب اوملګرو سره يې ودرېدی خبري يې ورته وکړی ، په جواب کي مسيلمة ورته وويل که دي خوښه وي اوس به اختيار تاته پريږدو ، خوپه دې شرط چي ترتا وروسته به واک زموږ وي ،نبي کريم ﷺ وفرمايل : چي که دغه څانګه راڅخه وغواړي هم به يې درنه کړم ،ته دخپل ځان په هکله دالله تعالی امرنه سي بدلولای ،که دې شا واړوله اوانکار دي وکی نوالله تعالی به دي مات کړي ،قسم په خدای چي زه تا هغه شخص ګڼم دکوم په اړه چي ماخوب ليدلی دی ، داثابت به ماپه عوض ستا پوښتني جوابوي ،داخبره مي وفرمايله :او ورڅخه ولاړی [٥٥٣]، په پای کي هم هغه څه وسول کوم چي نبي کريم ﷺ يې وړاندوينه کړی وه ، مسيلمة چي بيرته يمامه ته ولاړی ،سوچونه يې کول اوبالاخره يې دعوه وکړه ، څه سجع ويل يې پيل کړل ، دخپل قوم لپاره يې دشرابو اوزنا جواز ورکی ، له دې شر سره به يې داشاهدي هم ويله چي محمد ﷺ دالله رسول دی ، دبني حنيفه ځيني

---

[٥٥٣] صحيح البخاري باب وفدبني حنيفه ٢/ ٦٢٧، ٦٢٨.

خلک پروغولیدل ددې درواغجن اطاعت یې وکی ،ورسره روان سول خبره یې لوید سوه ، تردې حده یې چې دیمامه په رحمان مشهور سو ،مسیلمه لږمود وروسته نبي کریم ﷺ ته خط راولیږی چې په کښې لیکلي یې ؤ چې زه ستا سره په نبوت کې شریک کړل سوی یم ،نیم واک زموږ لپاره دی اوپاته نیم دقریشو لپاره ،رسول الله ﷺ یې په جواب کې ولیکل ځمکه دالله تعالی ده چاته چې یې زړه وي هغه ته یې ورکوي ،عاقبت دمتقیانو دی.[554]

له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دی چې ابن نواحه اوابن اثال دمسیلمة الکذاب دقاصدانو په توګه درسول الله ﷺ حضورته راغلل ،رسول الله ورته وفرمایل : چې آیا پردې شاهدي وایاست اوایمان لرئ چې زه دالله جل جلاله رسول یم ، دوی وویل موږشاهدي وایو چې مسیلمة دالله رسول دی ،رسول الله ﷺ وفرمایل په الله اورسول موایمان راوړی ، که قاصدان اونمایندګان مي وژلای نوتاسي به مي حتما وژلی وای [555]،مسیلمة الکذاب دهجرت په لسم کال دنبوت دعوه وکړه اوپه دوولسم هجري کال دربیع الاول په میاشت کې دابوبکرصدیق رضي الله عنه دخلافت په دوران کې دیمامه په مشهور جنګ کې ووژل سو ،مسیلمة الکذاب دحضرت حمزه رضي الله عنه دقاتل وحشي په لاس ووژل سو ، دویم درواغجن اودنبوت مدعي اوسدغسي ؤ هغه په یمن کې پیدا سواودفیروز له لاسه ووژل سو ،فیروز درسول الله ﷺ تروفات یوشپه اوورځ مخکې داسود سرپریکی ،رسول الله ﷺ ته دوحي په ذریعه خبرراغی اوهغه خپلو اصحابوته داسود دمرګ خبرواوروی اوبیاله یمن څخه دابوبکر رضي الله عنه دخلافت په دوران کې راورسیدی.

## «دبني عامربن صعصعه ډله»

په دې ډله کې دخدای دښمن عامر بن طفیل اربد بن قیس دلبید میرمني ورورکېدی ، خالد بن جعفر،جباربن اسلم اونورشیطانان شامل ؤ عامر هغه وحشي ظالم ؤ چې بئرمعونه له اصحابو سره یې غدر اوخیانت کړی ؤ او اویاکسان یې په شهادت رسولی ؤ،کله چې دې هیئت مدینې ته دتګ اراده وکړه،لوی شیطان عامربن طفیل

---

[554] زادالمعاد ٢/ ٣٤، ٣٢، ٣١.

[555] امام احمد مشکوة المصابیح ٢/ ٣٤٧.

اواربد توطئه جوړه کړه اوپردې سره متفق سول چي په چم اوفريب سره به رسول الله
په قتل رسوي ، مدينې ته چي راورسيدل عامر له رسول الله ﷺ سره خبري شروع
کړې ،اربد د شادطرفه پرراوګرځيدی اودنبي کريم ﷺ شاته ودريدی ، توره يې له
تيکي راايستله ،لږ يې راويستله نوريې لاس وچ سو نه يې سوای کولای چي را
وباسي ، اوپه دې ترتيب سره الله جل جلاله خپل رسول ﷺ وساتی،رسول الله دواړو ته
ښرا وکړه ،کله چي بيرته ولاړل الله جل جلاله پراربد او اوښ باندي يې تندر رانازل کړه
دواړه يې وسوځل ،عامر ديوې سلولي ښځي کره ورغلی هلته يې په ستوني کي يوه
غده راپيدا سوه ، ده به ويل داخولکه داوښ داسي غده ده آيادهمدې سلولی ښځي
په کورکي به مرم .

بخاري شريف روايت دی چي عامردرسول الله ﷺ حضورته راغی وی ويل د درو
شيانو وړانديز درته کوم ستاخوښه ده هريو چي غوره کوی لومړی داچي ددښتي
خلګ به ستا اودا ښارونه به زما وی ،ياداچي ستاوروسته به واک زما وي اوکه نه نو
دغطفان لښکر چي زرآسونه اوزر آسپي به وي درباندي راولم ، له دې وروسته
دهغي ښځي په کورکي دطاعون په مرض اخته سو اوهلته به يې ويل داغده خولکه
داوښ دغدې په ډول ده ، اوس به دهمدې ښځي په کور کي مرم آس مي راولی ،آس
يې راغی پرسپور سو اودآس پرشايې ساه ورکړه .

## «دتجيب وفدد يارلسو کسانو مرکب»

داوفد چي ديارلس کسان په کښي ؤ دخپل قوم له صدقو سره يوځای راغی ، دوی
دقرآن کريم اواحاديثو زده کړه کوله ، له رسول الله ﷺ څخه يې ډيرشيان وغوښتل
اوډيري پوښتني يې ورڅخه وکړې ،رسول الله ﷺ هغه ټول ورته وليکل ډيرپاته نه
سول کله چي سامان سره پرې ايښي ؤ ،ځوان راغی عرض يې وکی چي يارسول الله
ﷺ يواځي ددې لپاره راغلی يم چي له الله جل جلاله څخه مغفرت اورحمت راته وغواړې
، دادعارته وکړې چي الله دزړه غناء راکړي ، رسول الله ﷺ همدادعا ورته وکړه
:تردې وروسته داځوان بې حده زيات دعناعت خاوند ؤ ، دارتداد په وخت کي
پراسلام ثابت اوقائم پاته سو ،خپل قوم ته يې لارښوون کوله دوی هم پراسلام ثابت

پاته سول ،ددې پلاوي غړي دحجة الوداع په وخت کي هم له نبي کريم ﷺ سره مخامخ او په زيارت يې مشرف سول.

## «دطئ وفداو پکي زيدالخيل»

داپلاوی چي زيد الخيل هم په کښي ؤ درسول الله ﷺ خدمت ته راغلل اسلام يې ومنی رسول الله ﷺ دزيد په هکله فرمايي چي ماته تراوسه دعربانو دکوم شخص شيګڼي يادي سوی ليدلي مي دي چي په هغه کي بيادومره شيګڼي نه وی لکه څومره چي مااوريدلی وی ،يوازي زيد داسي شخصيت دی چي ښيګڼي يې زياتي دي اوټولي ماته نه دي بيان سوی ، له همدې امله يې دزيد الخير نوم پرکښيښوی ،په دې ترتيب سره په نهم اولسم هجري کال زيات وفدونه اونمايندګان مدينې ته راغلل ،تاريخ اوسيرت ليکوونکمي په دې لړکي ديمن،ازد، د قضاعةله بني سعد نه هذيم ،بني عامر بن قيس ،بني اسد ،بهرا ،مزينه ،مراد ،زبيد ،کنده، ذی مرة غسان، بني عيش، نخع چي ترټولو وروستی هيئت ؤ يادکړی دی ، دنخع پلاوی د يوولسم هجري کال دمحرم په مياشت کي راغلی ؤ ،نور زياتره هيئتونه په دوولسم کال کي راغلي ؤ ددې هيئتونو مسلسل راتلل پردې دلالت کوي چي اسلامي دعوت پرعربي جزيره تسلط پيدا کړی ،دجزيرې ټولواوسيدونکو مسلمانانو ته دقدر او احترام په سترګه کتل ، دوی په دې واقعيت باوري سوی ؤ چي داسلام به اطاعت پ ته بله لاره په مخکي نه لري ، مدينه منوره دعربي جزيرې په پايتخت اومرکز بد سوی وه ،خوداهم نه سويلای چي اسلام په حقيقي معنی سره ددې ټولو خلکو پ ړونو کي ځای نيولی ؤ ،ډيرداسي کسان ؤ چي له خپلو مشرانو څخه دپيروي پ ساس يې اسلام منلی ؤ،زوړنه يې دجاهليت ،قتل اوغارت له ميکروبونو څخه بالکل صفاسوی ،په بشپړه توګه داسلام په قالب کي نه ؤجوړسوي

قرآن کريم دې مطلب ته داسي اشاره فرمايي: الْأَعْرَابُ أَشَدُّ كُفْرًا وَنِفَاقًا وَأَجْدَرُ أَلَّا يَعْلَمُوا حُدُودَ مَا أَنزَلَ اللَّهُ عَلَىٰ رَسُولِهِ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ وَمِنَ الْأَعْرَابِ مَن يَتَّخِذُ مَا يُنفِقُ مَغْرَمًا وَيَتَرَبَّصُ بِكُمُ الدَّوَائِرَ عَلَيْهِمْ دَائِرَةُ السَّوْءِ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ سورة توبه **ترجمه:** دغه صحرايان په کفر اونفاق کي ډيرکلک دي اودوی په هکله د ددې خبري امکانات زيات دي چي

دهغه دین له حدودو بې خبره پاته سي چي الله جل جلاله په خپل رسول الله ﷺ نازل کړی دی، په دې صحراياانو کي داسي کسان سته چي دخدای په لارکي چي څه لګوي نوهغه پرخپل ځان باندي د زور کلنګ ګڼي، اوستاسي په باب دزمانې دڅرخ انتظار باسي، په داسي حال کي چي دبدي څرخ په خپله پردوی مسلط دي، الله اورېدونکی او عالم دی. بل ځای بیادنورو مدح اوتوصیف کوي اوفرمايي:

وَمِنَ الْأَعْرَابِ مَن يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَيَتَّخِذُ مَا يُنفِقُ قُرُبَاتٍ عِندَ اللَّهِ وَصَلَوَاتِ الرَّسُولِ أَلَا إِنَّهَا قُرْبَةٌ لَّهُمْ سَيُدْخِلُهُمُ اللَّهُ فِي رَحْمَتِهِ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ سورة توبه آيت(٩٩)

**ترجمه**: اوله همدې اعرابو څخه ځيني داسي کسان دي چي پرالله اوورځ دآخرت ايمان لري، او څه چي لګوي هغه الله ته دنږدې کېدو اوله رسول الله ﷺ څخه درحمت ددعاګانو اخيستلو سوله ګرځوي، هو! هغه دهغو لپاره دنږدېوالي وسله ده الله دوی په رحمت کي داخل کړي، الله غفور اورحم کوونکی دی، خوهغه کسان چي په مدينه، مکه، ثقيف اوداډول زيات شمير چي په يمن اوبحرين کي ؤ د دوی ايمان قوي ؤ، دهم دوی له ډلي څخه دمسلمانانو سرداران، مشران اولوی اصحاب دي.

## «داسلامي دعوت کاميابي اوهم اغيزي»

مخکي له دې چي دنبي کريم ﷺ دژوند وروستيو ورځو ته يوګام نورهم ورنږدې سوغواړو چي پرهغه وياړمني، عظيمي اوبې ساري کارنامي څه ناڅه رڼا واچوو کومه چي درسول الله ﷺ په لاس هغه عظيمي کارنامې په وجه الله تعالی د دواړو کونينو سرداربللی اودلومړنيو او ورستنيو دسيادت تاج يې ورپه سرکړی دی، رسول الله ﷺ ته دالله جل جلاله له طرفه امروسو. يَا أَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ قُمِ اللَّيْلَ إِلَّا قَلِيلًا نِصْفَهُ أَوِ انقُصْ مِنْهُ قَلِيلًا **ترجمه**: اې نغښتونکيه! دځان په جامه کي، ودرېږه لمانځه ته په شپه کي خوپه لږه شپه کي. يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ قُمْ فَأَنذِرْ **ترجمه**: اې په جامه کي نغښتونکيه! ودرېږه پورته سه اووېروه. دهمدې الهي حکم دتعميل لپاره رسول الله ﷺ کلکه ملا وتړله اوترشلو کالوزياتو موده يې دمځکي پرمخ ددې عظيم امانت د ادا په لاره کي نه ستړي کېدونکي هلي ځلي وکړی، درسول الله ﷺ په غاړه دټول بشريت مسؤليت پروت ؤ، هغه دعقيدې اوپه بيلابيلو ډګرونو کي دجهاد دروند مسؤليت

درلودی ،نبي کریم ﷺ وظیفه درلوده ،دهغه بیده ضمیرونو پرخلاف جهاد وکي، چي دجاهلیت په خرافاتو اوتصوراتو کي ډوب سوی ؤ ،دمادي شهواتو هوسونو اوغوښتنو په ځنځیرونو تړل سوي ؤ ،رسول الله ﷺ چي په دې وتوانیدی دښو غوره اشخاصو ضمیرونه دجاهلیت له ډنډ اوځنځیرونو څخه آزاد کړي ، په خپل صف کي یې ودروی اوداصحابو مقام ته یې ورسوی ، نودبل ډول جهاد ډګر ته داخل سو ، دا داسي جهادؤ چي یوپه بل پسې مختلفي مرحلي درلودی داجهاد دبې شمیره او سوګند خوړلو دښمنانو پرخلاف جهاد اومبارزه وه ،هغه دښمنان چي په پوره توان سره یې ددې هڅه کوله دخیر ،راحت هدایت اوبرکت دغه نوی درخته له بیخه وباسي اوپرې نه ږدي په ځمکه کي ریښي وغځوی اوسایه یې هري خواته خپره سي ، رسول الله ﷺ په عربي جزیره کي له جنګ څخه بې غمه سوی ؤچي رومیانو یې پرخلاف دجنګ اور تازه کی اودمقابلې لپاره یې تیاري ونیوله ، دا باید له یاده ونه باسو چي دجهاد اومبارزې په دې ټولو مراحلو کي دبیده ضمیر پرخلاف جنګ روان ؤ ،له بیده ضمیر سره جنګ پای نه لري ،داطولاني اوهمېشني جنګ دی ځکه ددې جنګ مقابل طرف شیطان دی ،شیطان هیڅلکه هم له اغوا اومنحرف کولو څخه لاس نه اخلي هغه تهل هڅه کوي چي پرانساني ضمیر خپل واک قایم وساتي ،رسول الله ﷺ دالهي دعوت په میدان کي دغره په ډول ولاړ ؤ ،دجهاد اومقاومت لاره یې نیولې وه ،دژوند سختیو ته یې اوږه ورکړې وه ، دمادي امکاناتو دشتون اوموجودیت په صورت کي یې هم دزهد اوتقوی لاره خپله کړې وه ،رسول الله ﷺ پرخپلو اصحابو اونور انسانو درحمت،امن،برکت او سکون سایه غوړولې وه ،دنبي کریم ﷺ لاره دزحمت ،کړاو ،تکلیف،صبر اومقاومت لاره وه ،هغه به دشپې دخپل رب عبادت کوی ، دقرآن کریم تلاوت به یې کوی اودخپل رب په وړاندي به یې دعجز اوتسلیمې سرپه سجده اېښووی.[556]

په دې ترتیب سره رسول الله ﷺ ترشلو کالوزیاته موده جهاد وکی ،هیڅ ډول خنډ مخ یې ډوب نه کی ،په پای کي دعوت بریالی سو ،دایوبې ساری بریالیتوب ؤ خلک ورته حیران سول ،ټول عربي جزیره دمحمد ﷺ تراواک لاندي راغله ، دجاهلیت

[556] داسیدقطب دی ظلال القرآن ۲/ ۱۹۴، ۸۱۴.

ریښې له بیخه ووتې ،رنځور عقلونه روغ سول ، دبتانو عبادت یې پرېښوو ی ،هرې خواته دتوحید نورخپور سو ،په هرسیمه اوپه هردښت کي دتوحید اوآذان انګازې پورته سوې ، دقرآن داعیان اوقاریان شمال اوجنوب ته ولاړل ،هرځای دتوحید مدرسې جوړې سوې ،بیلابیلي اوګډې وډې قبیلې سره یوسوې ، انسان دانسان له بندګي خلاص سو،ټول دالله بندګان وګرځېدل ، طبقاتي نظام ختم سو ، هلته نوربادار اوغلام ،ظالم اومظلوم ،حاکم اومحکوم نه ؤ،ټول خلګ برابر اودیوه الله جل جلاله بندګان ؤ ،ټول سره وروڼه ؤ ،دجاهلیت ټولي نښانې له منځه ولاړې ، داسې یوه ټولنه جوړه سوه چي په کښې عربي پرعجمي ،عجمي پرعربي ،تور پرسره ،سورپر تور بهتري نه درلوده ، دبهتري معیارتقوی اودینداري وه .

داسلامي دعوت له برکته بې ساري عربي اوانساني یووالي مینځ ته راغلی، اجتماعي عدالت حاکم سو، بشریت نیکمرغه اوسوکاله سو،دتاریخ مسیربدل سو، دمځکي مخ بدلون ترلاسه کړی ،فکر اوافکار نوي سول ، داسلامي دعوت له پل مخکي هرچیري جاهلیت ؤ،ضمیرونه بیده ؤ،آرزوګاني ملوثي سوي وې ،معیارونه لوېدلي ؤ،دظلم اوجبربازار ګرم ؤ په ځیني ځایونو کي به عیاشي اواسراف ؤ،بل ځای به خلګ له محرومیت ،فقر اولوږي څخه ځورېدل ،دکفر ،طاغوت،ګمراهي باچایي وه ،که څه هم دآسماني ادیانو ځیني نښاني وې خوهرڅه تحریف سوي ؤ،اودینداري ډیره کمزوري اوله زړونو وتلې وه،کله چي داسلامي بلني رول پلی سو،بشریت اوبشري دماغ له وهم خرافاتو،بندګي ،غلامي، فساد، انحلال، ګمراهي اوبې لاري څخه پاک سو ،ظلم، سرکښي،بې نظمي، استبداد اوطبقاتي نظام ختم سو،دعفت ،پاکي ،آزادی،ابتکار، نوښت ،پوهي ،یقین ،باور ،اعتماد، عدالت ،کرامت دائمي اومخلصانه کار دترقي او ایمان نوي دنیا ودانه سوه.[٥٥٧]

دهمدې لوي او ژور بدلون له برکته په عربي جزیره کی دتاریخ اوانساني ژوندنوی باب خلاص سو،اوداد جزیرې په تاریخ کي بې ساری تاریخي اوطلائي باب ؤ .

## «حجة الوداع»

---

[٥٥٧] داهم دسید قطب خبرې دي

**دسيدالبشر ﷺ اخرني حج**: داسلامي بلني کارونه پای ته ورسيدل ،رسالت اداسو ،دالهي دين پراساس اودقرآن کريم د هداياتو په رڼاکي نوی ټولنه جوړه سوه ، په عملي توګه عبادت يوازي دالله جل جلاله حق جوړسو د دروا غجنو اوبې وسه ،بې روحه خدايانو باچايې ړنګه سوه،اسلامي حاکميت پيداکي ، رسول الله ﷺ لکه چي نورپه دنيا کي دده ﷺ وخت مخ په پوره کيدو دی ،په لسم کال يې چي معاذ رضي الله عنه يمن ته ليږی ورته وی فرمايل اې معاذه ! رضي الله عنه کيدای سي راتلونکی کال ماونه وينی ،ښايي ته به راتلونکی کال زماپرمسجد اوزماپرقبر تيرسی ،ددې خبرې په اوريدو سره دمعاذ رضي الله عنه له سترګو اوښکي روانی سوی اودرسول الله ﷺ په فراق کي يې په زور زور وژړل دالله تعالی اراده داسي وه چي نبي کريم ﷺ دخپل (٢٣) کلن دعوت،نه ستړي کيدونکو هلو ځلو ،کړاوونواوزحمتونو ميوه وخوري ،هغه وني بار راوړي چي ترشلو کالوزياته موده په وينو،اوښکو اوخولو خړوبه کيده ،رسول الله ﷺ خپل هدف ته ورسيدی ، دمکې په څنډو کي دعربي قبايلو له نمايندګانو اومشرانو سره ګوري ،دوی ټول ورته راغله ،الهي احکام او لارښووني ورڅخه زده کوي،په مقابل کي رسول الله ﷺ له دوی څخه دااعتراف اخلي چي دده دين اورسالت ورته رسولی ، الهي امانت يې په مکمله توګه دوی ته ورکړی دی ،هو! خلګو ته دوروسته هدايت په هيله اوله دوی څخه دامانت د ادا داعتراف په خاطر رسول الله ﷺ دحج اراده وفرمايله ، اعلان وسو، بې شميره خلک مدينې ته راغلل ، ټولو داتمه درلوده چي په رسول الله ﷺ پسې اقتداء وکړي اويوځای حج ورسره اداکړي[558] ،هم داؤ دشنبې په ورځ چي دذی القعدې مياشي څلور ورځي لاپاته وی رسول الله ﷺ دسفرتياري اعلان کړه .[559]

خپل مبارک ويښتان يې ږمونځ کړل ،تيل يې ووهل ،لنګ اوڅادرېې واغوستی ،دقرباني څاروي ته يې قلاده واچوی ،اوترماپښين وروسته يې حرکت وکی اوترماځيګر مخکي ذی الحليفه ته ورسيدی ، هلته يې دماځيګر لمونځ قصر دوه رکعته وکړه ، شپه يې هم دلته تيره کړه سهارېې اصحابو ته وفرمايل چي دشپې دالله

---

[558] صحيح مسلم ١/ ٣٩٤.
[559] فتح الباری ٨/ ١٠٤.

ﷻ له طرف خبر راته راغی او راته وویل سول چي په دې مبارکه دره کي لمونځ وکړه او ووایه حج او عمره : ٥٦٠

رسول الله ﷺ ترماپښین مخکي غسل وکی ،بیا حضرت عائشې په خپل لاس خوشبو یې پر ووهله ،په مبارک بدن او سرېې داسي خوشبویي ور ووهله چي ذریره او مشک په کډ ؤ، په مبارکه ږیره یې دخوشبو یي اثار له ورایه معلومیدل ،هغه بیا ونه مینځل ، بیایې خپل لنګ او څادر واغوستی ، بیایې دماپښین لمونځ وکی ، ورپسې دلمانځه پرځای دحج او عمرې دواړو په نیت احرام وتړی ،تلبیه یې وویله ، بیادباندي ووتی پرقصوا نومي اوښي سپور سو ،تلبیه یې وویله ، روان سو، چي آزاد میدان ته ورسیدی هلته یې هم تلبیه وویله .

روان ؤ ترڅو مکې ته ورنژدې سو ،شپه یې په ذی طوای کی وکړه ، دسهار ترلمانځه وروسته مکې ته داخل سو ،دلسم کال ذی الحجې په څلورمه دیکشنبې په ورځ یې غسل وکی ،په لارو کي یې اته ورځي تیري سوی وی ،کله چي مسجد حرام ته داخل سو دبیت الله شریفي طواف یې وکی ،دصفا او مروه ترمینځ یې سعی وکړه ، احرام یې خلاص نه کی ځکه دحج قران نیت یې کړی ؤ ،له سعي وروسته یې دمکې په پورتني سیمه حجون کي واړول او بیادحج ترطواف پوري دبیت الله طواف ته رانه غلی ، او له کومو کسانو سره چي دقرباني څاروي نه ؤ امریې ورته وکی چي لومړني احرام یوازي دعمرې لپاره وګرځوي ، ځانونه له احرامه وباسي ، خو څرنګه چي رسول الله ﷺ خپله احرام نه ؤ خلاص کړی نو اصحاب په شک کي ولوېدل ،متردد سول ،رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : که زه دخپلي معاملې په رابطه په هغه څه چي اوس پوه یم مخکي سوی وم نو دقرباني څاروی به مي نه وای راسره راوستلای ،که داڅاروی نه وای راسره نو له احرام څخه به مي ځان حلال کړی وای په همدې امرسره هغه اصحابو چي دقرباني څاروي ورسره نه ؤ ټولو احرامونه خلاص کړل ، دترویه یعني دذي الحجې په اتمه رسول الله ﷺ دمنی پرطرف روان سوڼ هلته یې دماپښین ماځیګر ،ماښام ماخستن لمونځونه اداکړل ، دسهار ترلمانځه وروسته یې لږځنډوکی ترڅو لمر څرک وواهه ، بیادعرفات په طرف روان سو هلته په غره کي

---

٥٦٠ صحیح البخاري ١/ ٢٠٧.

خیمه ورته وهل سوی وه هم الته یې تشریف یووړی ترڅو زوال سو امریې وفرمایه چې اوښه دی یې اماده کړل سي ، دمیدان مینځ ته راغی ،شاوخوا یې یولک څلویښت زره خلګ راټول سوی ؤ،نبي کریم ﷺ په دې وخت کې داخطبه وویله :

اې خلګو ! زماخبره واوری نه پوهیږم ښایي له سږکال وروسته تاسي په دې ځای کې بالکل ونه وینم ،ستاسي ویني اومالونه پرتاسي باندی ستاسي په دې ښارکې تاسي ددې میاشتي ددې ورځي دحرمت په ډول حرام دي ، خبراوسی چې دجاهلیت ټول امور او شیان زما ترپښو لاندي ایښوول سوي دي ، دجاهلیت دزمانې ویني هدر اولغوه دي ،لومړنۍ ویني چې زه یې له خپلو وینو څخه هدر اعلانوم .هغه دابن ربیعه بن حارث ویني دي (ابن ربیعه په بني سعد قبیله کې وی دایې ته دشیدو خوړلو لپاره ورکول سوی ؤ اودهذیل قبیلې له لاسه په قتل رسیدلی ؤ )

دجاهلیت دزمانې دسود معاملې هم لغو ه دي اولومړې دسودمعامله چې زه یې ملغی اعلانوم هغه دعباس بن عبدالمطلب سود دی ،هغه معامله ټوله لغوه اوبې اعتباره ده،دښځو په حق کې له الله جل جلاله څخه ویریږی،ځکه تاسي دوی دالهي امانت پراساس خپل کړي دي اودخدای په امر او کلمې سره مو دجنسي استفادرې لپاره حلالي ګرځولي دي ،پردوی ستاسي حق دادی چې ستاسي په کوز اوفرش کې داسي چاته اجازه ورنه کړي چې ستاسي نه خوښیږی که داکارېې وکی نوتادیبا یې ووهی ، داسي وهل چې کلک اوډیر دردوونکي نه وي ،د دوی پرتاسي باندي حق دادی چې په ښه اومناسبه طریقه ورته خوراک اولباس برابرکړی ، ماتاسي ته داسي څه پرې ایښي دي چې کله لاس وربادي ونیسی نوهیڅ کله به هم ګمراه اوبې لاري نه سی اوهغه قرآن مجید دی.[٥٦١] یاایها الناس ان لانبی بعدی ولاامم بعدکم الافاعبدوا ربکم وصلوا خمسکم وصوموا اشهرکم وادوزکوة اموالکم طیبة بها انفسکم وتحجون بیت ربکم واطیعوا اولاة امرکم تدخلوا جنة ربکم **ترجمه**:اې خلګو ! زما وروسته بل نبي نسته اوستاسي وروسته بل امت نسته ،خبردار اوسی دخپل رب عبادت کوی ،پنځه وخته لمونځ اداکوی ،درمضان روژې نیسی ، په خپله خوښه دخپلو مالونو زکوة

---

[٥٦١] صحیح مسلم ١/٣٩٧

ورکوي ، دبيت الله حج کوي ، دخپل اميرانو اطاعت کوي ،دخپل رب جنت ته به داخل سي .[٥٦٢]

ستاسي څخه زما په هکله پوښتنه کيږي ،تاسي به څه وايياست ، حاضرينو وويل موږ شاهدي وايو چي تا دالله جل جلاله دين موږ ته رارسولی دی ، خپل رسالت دي اداکړی دی ،نصيحت دی کړی اوخبردي غوښتی دی ،بيارسول الله صلی الله عليه وسلم خپل بټه يعنی دشهادت ګوته چي دآسمان طرف ته يې نيولی وه اودخلکو خواته يې کړوله اشاره وکړه اووی فرمايل : چې اې خدايه! شاهد اوسه اې خدايه !ګواه اوسه ،اې خدايه !شاهد اوسه[٥٦٣] کله چي رسول الله صلی الله عليه وسلم داخبري کولی نوربيعه بن اميه بن خلف هغه په لوړآواز خلګوته رسولی[٥٦٤] دالله رسول صلی الله عليه وسلم خطبه ووېله داآيت شريف نازل سو اَلۡيَوۡمَ أَكۡمَلۡتُ لَكُمۡ دِينَكُمۡ وَأَتۡمَمۡتُ عَلَيۡكُمۡ نِعۡمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ ٱلۡإِسۡلَٰمَ دِينٗاۚ سورة المائدہ آيت (٣)

**ترجمه**:نن ورځ ماخپل دين ستاسي لپاره بشپړ کي اوخپل نعمت مي وربانديتمام کی او اسلام مي ددين په حيث درته غوره کی ،حضرت عمر رضی الله عنه چې داآيت واوريدی وی ژړل چا پوښتنه ورڅخه وکړه چي ولي ژاړی ؟ده وويل : له کمال وروسته حتما نقصان راځي په کمال پسې نقصان دی .[٥٦٥]

له خطبې وروسته حضرت بلال رضی الله عنه آذان او اقامت وکی ،درسول الله صلی الله عليه وسلم په امامت پسې دماپښين لمونځ اداسو، ورپسې اقامت وويل سو،دماځيګر لمونځ اداسو ،ددې دواړو لمونځونو ترمينځ يې بل لمونځ ونه کی ،بيارسول الله صلی الله عليه وسلم پرخپله اوښه سپور سو اوموقف يعنی عرفات ته راغی ،اوداوښې قصواء خيټه يې دبور خواته کړه . جبل مشاه (دپياده ؤ لاره) ته مخامخ داسي ودريدی چي مخ يې قبلې ته ؤ اوترلمر لويدو پوري لاس په دعاؤ ،له لمر لويدو وروسته دمزدلفې په طرف روان سو،اسامه رضی الله عنه يې له ځان سره سپور کړی ؤ،په مزدلفه کي يې دماښام اوماخستن لمونځونه په يوه آذان اودوو اقامتونو اداکړل ،ددواړو ترمينځ يې بل لمونځ ونه کی بيايې استراحت وکی اوترسهار بيده ؤ ،دسهار لمونځ يې په ښه رڼا کي وکی بيا پر

---

[٥٦٢] معدن الاعمال رواه ابن ماجه وصحيح مسلم وابن عساکر ورحمة للعالمين ١/ ٢٩٣.

[٥٦٣] صحيح مسلم ١/ ٣٩٧.

[٥٦٤] ابن هشام ٢/ ٦٠٥.

[٥٦٥] صحيح البخاری ١/ ٢٦٥.

خپله اوښه سپور سو او مشعر الحرام ته يې تشريف يووړی ، هلته مخ په قبله و دريدی دالله ذکر يې کوی :الله اکبر ،لااله الا الله وحده لاشريک له . کلمه يې ويله تر څوښه رڼا سوه ، بيايې ترلمر ختو مخکي دمنی پر طرف حرکت وکی ،فضل بن عباس رضي الله عنه يې له ځای سره پر اوښه سپور کړی ؤ ،دمحسر درې ته ورسيدل ، له لږ مخکي تګ وروسته يې دلويې جمرې په طرف تللې لاره ونيوله او جمره اولی يا جمرة العقبة ته ورسيدی ، هغه يې په اوو شګو وويشتله ،هرځل به يې تکبير وايه او داسی به يې ويشتله لکه څرنګه چي نښه ولي ، بيا دذبحي ځای ته راغی (٦٣) اوښان يې په خپل مبارک لاس ذبحه کړل ،نوريې حضرت علي رضي الله عنه ته وسپارل چي دده په نمايندګي يې ذبحه کړي ،په دې ترتيب سره حضرت علي رضي الله عنه (٣٧) اوښان حلال کړل او ټول سل اوښان برابرسول ،رسول الله صلى الله عليه وسلم په خپله قرباني کي حضرت علي رضي الله عنه هم ورسره شريک کی بيايې امر وکی چي له هر اوښ څخه يوه يوه ټوټه غوښه واخيستل سي يوځای پخه سي ،همداسي وسول غوښه پخه سول ،رسول الله صلى الله عليه وسلم او حضرت علي رضي الله عنه غوښه وخوړله او ښوروايې وڅښله ،وروسته رسول الله صلى الله عليه وسلم پر خپله اوښه سپور سو او دطواف افاضه يعنی دحج اخري طواف په خاطر مکې ته روان سو ،دبيت الله شريفي طواف يې وکی ، دماپښين لمونځ يې وکی ، بيا دزمزم اوبوته ورغلی هلته يې وليدل چي دعبد المطلب اولاده خلکوته اوبه ورکوي ،ده ورته وفرمايل : چې اې دعبد المطلب زامنو او اولادې! اوبه راکاږی که ددې بيره نه وی چي خلک به رادېرسي ټول به اوبه راوباسي نوما به هم اوبه درسره راايستلی ،يعني که زه اوبه راايستل شروع کړم نو اصحاب به ټول همدې کارته را وړاندي سي ،بنو عبد المطلب به نظم ونه سي ساتلای او حاجيانو ته داوبو ورکولو په شرف ګټولو کي به خلل واقع سي دوی يوه ډولچه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته هم ورکړه اوبه يې ورڅخه وڅښلی .[٥٦٦]

رسول الله صلى الله عليه وسلم دعيد يعني دذي القعدې په لسمه ورځ ترلمر ختلو وروسته په داسي حال چي پر خپله شهباء کچره سپور خطبه وويله ،حضرت علي رضي الله عنه خبري په لوړ آواز خلکوته رسولی ، خلک څوک ناست او څوک ولاړ ؤ ،[٥٦٧] په دې خطبه کي يې هم

---

[٥٦٦] صحيح مسلم ١/ ٣٩٧.
[٥٦٧] ابوداوٗد ١/ ٣٧٠.

دعرفات دخطبې ځيني مطالب بيان كړل ،صحيح بخاري اومسلم له حضرت ابوبكر ﷛ څخه روايت كوي وايي چي رسول الله ﷺ داخترپه خطبه كي داسي وفرمايل : چي زمانه خپل لومړی شكل ته اوښتی ده ،دهغه ورځي په دول ده په كومه ورځ چي آسمانونه اوځمكه پيدا سول ،كال ددولس مياشتي دی څلور مياشتي يې حرامي دي داڅلور حرامي مياشتي درې مسلسلي يوپه بل پسې دي اوهغه ذی القعده ،ذی الحجه او محرم دي ،څلورمه يې درجب مياشت ده چي دجمادي اوشعبان ترمينځ ده ،بيايې وفرمايل داكومه مياشت ده؟ ابوبكرصديق ﷛ وايي موږ وويل الله اورسول ﷺ ښه پوهيږي ،رسول الله ﷺ هم چوپ پاته سو ،موږ ګمان وكی لكه چي دامياشت په بل نامه نوموي ، وی فرمايل : آيا دادذی الحجې مياشت نه ده ؟موږ وويل بلی! هو دادذي الحجې مياشت ده ، وی فرمايل داكوم ښار دی موږ عرض وكی الله اورسول ﷺ ښه پوهيږي،رسول الله ﷺ چوپ سو،موږ ګمان وكی چي ګويا بل نوم پرايږدي ،بيايې وفرمايل آيادامكه نه ده ؟موږ وويل هو ، همدامكه ده ،بيايې وفرمايل چي نن كومه ورځ ده؟ موږ عرض وكی الله اورسول ﷺ ښه عالم دي ،ده وويل چي رسول الله ﷺ چوپ سو،موږ ګومان كوی چي بل نوم ورته لټوي ،بيايې وفرمايل : چي آيادادنحرد قرباني ورځ نه ده ؟موږ وويل هو همدادقرباني ورځ ده بيايې وفرمايل خبراوسی !چي ستاسيويني ،مالونه،عزت او ابرو پرتاسي باندي په دې ښار كي ددې مياشتي ددې ورځي دحرمت په دول حرام دي ، تاسي به له خپل رب سره مخامخ كيږی ،هغه ستاسي دعملونو پوښتنه كوي خبراوسی! زما وروسته بې لاري نه سی ،داسي نه سی چي يودبل غاړي پرېكوی ،خبراوسی!آياما خپل امانت اداكی خبره مي ورسوله ؟دوی وويل چي هو! تاتبليغ اودعوت وكی ، وی فرمايل :اې الله ﷻ ته شاهد اوسه حاضرين دي داخبره غائبينوته ورسوي ،ډيرهغه كسان چي تبليغ ورته كيږي تراوريدونكوپوه اوځيرك دي .[٥٦٨]

په بل روايت كي راځي چي نبي كريم ﷺ په دې خطبه كي وفرمايل چي خبردار جاني مجرم يوازي دخپل ځان په حق كي جنايت كوي يعني سزا دهغه چالپاره ده چي جرم اوګناه وكړي ، خبراوسی چي نه ښايي جنايت كاران پرخپل زوی تجاوز اوتيری

---

[٥٦٨] صحيح البخاری ١/ ٣٦٤.

وکړي او نه ښايي زوی پر پلار ظلم او تيری وکړي ، ددې مطلب دادی چې زوی د پلار او پلار د زوی په ګناه نه مجازات کيږي ، خبراوسی! شيطان له دې څخه بالکل نااميده سوی دی چې بيا به يې په دې ښار کې عبادت وسي خو په هغو کارونو او امورو کې به چې تاسې يې کوچني او بې ارزښته بولی د شيطان پروي کيږي او هغه به په دې هم خوشحاله وي .[569]

رسول الله ﷺ دتشريق ورځې په منی کې تيرې کړی ،خپل مناسک يې اداکړل ، خلګو ته يې دحج احکام وښوول ،تل به يې دالله ﷻ ذکر کوی،دابراهيم عليه السلام سنت يې راژوندی کی ،په ځينو روايتونو کې يې خطبې هم وويلی ،ابوداود له سراء بنت نبهان څخه روايت کوي وايي چې رسول الله ﷺ دذی القعدې په يوولسم خطبه وويله اووی فرمايل : چې آيا داد تشريق دورځو منځنۍ ورځ نه ده[570] دغه خطبه هم لکه داختر دورځې دخطبې په دول وه ، اووايې دسورة نصر ترنازليدو وروسته وويله ، داختر په څلورمه يعني دذی الحجې په ديارلسمه رسول الله ﷺ له منی څخه روا ن سو له ابطح لاندې راکښته سو او دبني کنانه په خيف کې يې واړول ، دورځې پاته برخه او شپه يې هم دلته تيره کړه ، دماپښين ،ماځيګر اوماخستن لمونځونه يې هم دلته اداکړل ، بيالږ بيده سو بيا پر اوښه سپور سو مکې ته راغی دبيت الله طواف ياطواف وداع يې وکی ، اصحابو ته يې هم ددې طواف امر وکی ، دحج له مناسکو وروسته يې خپلو سپور يارانو ته دتګ حکم وکی اودوی يې دمدينې په طرف تګ ته تشويق کړل ترڅو هلته ولاړسي ،اودالله ﷻ په لارکې دجهاد اومبارزې لړۍ جاري اودوام داره وساتي .

## «آخرنی فوځي حرکت»

درومیانو طاغوت هم داسي دناروا لاره نيولې وه ،حق ته يې غاړه نه ايښووله ،دومره په باطل روان ؤ چې څوک به په اسلام مشرف کيدل هغه به يې وژل ،فروه بن عمر والجدامي چې درومیانو له دمعان والي ؤداسلام په ګناه درومیانو له خوا ووژل سو، درومیانو دکبر اوغرور دماتولو په نيت رسول الله ﷺ ديوولسم

---

[569] جامع الترمذي ٢/ ٣٨.
[570] ابوداؤد ١/ ٢٦٩.

هجري کال په صفر میاشت کې یولوی لښکر تیار کی ،اسمامه بن زید بن حارثه رضی الله عنه یې دلښکر قومندان وټاکی ،امریې ورته وکی چې دفلسطین د اروم اوبلقاء سیموته به ځي ترڅو رومیان ویروي اوهلته  په پولو کې پراته عربان  جرأت پیداکړي ،دالښکر بایدداسي وښیي اوثابته کړي چې دکلیسادواکدارانو مقابله ممکنه  ده اوله خلګو سره داتصور پیدانه سي چې اسلام یعني مرګ اوځان وژنه یعني داچې مسلمانان ځان په خطر کې ونه شمیري بلکه مطمئن سي چې ددوی ددفاع لپاره اقدمات کیږي  اصحابو داسامه رضی الله عنه دقیادت په هکله څه خبري وکړی ځکه هغه ډیرکشر ؤ ،خبره څه ناڅه وځنډیده خورسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل تاسي که اوس دده دامارت په هکله اعتراض کوی له دې څخه مخکي مو دده دپلار دامارت په هکله هم نیوکي درلودی، په داسي حال کې چې قسم په خدای هغه دقیادت اهلیت درلودی اوزما ډیرخوږ دوست ؤ ترټولو راته ګران ؤ،اوس همدا اسامه تر ټولوراته ګران اونژدې دی[571] ،همداوه چې خلګ ټول راضي سول پراسامه رضی الله عنه راچاپیره سول ،په لښکر کې یې راټول سول ترڅوجرف نومي سیمي ته ورسیدل دغه ځای درې میله د مدینې څخه لیري ؤ ،هلته یې واړول ، خوځرنګه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ناروغ ؤ، د دوی زړونه دهغه خواته کشال ؤ،له ډیره غمه مخکي نه سوای تلای ،هم الته یې انتظار کوی نیاد الله اراده داسي وه چې همدالښکر دابوبکرصدیق رضی الله عنه دخلافت لومړی لښکرسو چې دباندی ولیږل سو ..

## «له دې فاني دنیاڅخه دسیدالبشر صلی الله علیه وسلم اخري سفر»

کله چې دعوت بشپړ سو ،اسلام حاکم اومسلط سو ،درسول الله صلی الله علیه وسلم په زړه کې له ژوند اوفاني دنیا څخه درحلت آثار اواحساس پیداسو ،دغه احساس دده مبارک په قول اوعمل  کې ښه څرګند ؤ ،دلسم هجري کال درمضان په میاشت کې یې شل ورځي په اعتکاف کې تیري کړی ،په داسي حال کې چې نورکلونه به یې یوازي لس ورځي اعتکاف کوی ،په همدې کال اوهمدې میاشتي کی جبرئیل علیه السلام ځله قرآن کریم ورته تکرار کړی اودحجة الوداع په مراسمو کې یې ورته وفرمایل :ښایي له سږکال وروسته تاسي په دې ځای کې ونه ونیم ، له جمرة العقبه سره یې هم

---

[571] صحیح البخاری ۲/ ۶۱۲.

وفرمايل :چي دحج مناسک زما څخه زده کړی شايي زه بياکله هم حج ونه کړم ، دتشريق په ورځو کي سورة النصر پرنازل سو ، دهمدې سورة له نازليدو څخه هغه پوه سو چي ژونديې پای ته رسيدلی دی ،ديوولسم هجري کال په صفرمياشت کي رسول الله ﷺ احد ته تشريف يووړی ،شهيدانو ته يې داسي دعا وکړه :

السلام عليکم يااهل المقابر اليهن لک مااصبحتم فيه اقبلت التن کقطع الليل المظلم يتبعها اخبرها اولهاالاخرة شرمن الاولی .

لکه دژونديو اومړو څخه چي جلاکيدونکی اوتلونکی وي ،بياخپل منبر ته راغی وی فرمايل :انی فرطکم وانی شهيد عليکم وانی والله لانظر الی حوضی الان انی اعطيت مفاتيح خزائن الارض اومفاتيح الارض وانی والله مااخاف ان تشرکو بعدی وکن اخاف عليکم ان تنافسو فيها .**ترجمه**:زه ستاسي دکاروان امير اوپرتاسی شاهد يم ،قسم په خدای چي زه همدا اوس خپل حوض ته ګورم ، ماته ددنيا دټولوخزانو کلياني راکړل سوي دي ،اويادمځکي کلياني راکړل سوي دي ،زه له دې څخه بيره نه لرم چي تاسي به زما وروسته مشرکان سی زمابيره له دې څخه چي تاسي به په دنياکي يوله بل سره په سيالي اومقابله اخته سی .

## «دمرض شروع»

ديوولسم هجري کال دصفر دمياشتي په نهم ويشتمه ددوشنبې په ورځ رسول الله ﷺ په بقيع کي په يوه جنازه کي برخه درلوده ،کورته دتلو په لار کي يې پر سر مبارک دردسو ،سختي تبي واخيستی ،دومره توسوی ، چي دلمدې سوي پټي پرسر به يې هم حرارت محسوسيدی ، رسول الله ﷺ يوولس ورځي دناروغی په حالت کي خلکو ته لمونځ ورکوی ،دناروغی ټوله موده ديارلس ياڅوارلس ورځي وه .

## «دسيدالبشر ﷺ دمرض په حال کي دخپلو بيبيانو څخه پوښتنه»

درسول الله ﷺ مرض زيات سو زيات په تکليف سو ، له خپلو ميرمنو څخه به يې پوښتنه کوله چي سبايې له چاسره نوبت دی؟زه سباله چاسره يم ؟درنی ميرمنی يې په هدف پوه سوی اجازه يې ورکړه ،هرچيري چي يې زړه وي هم الته پاته سي ،رسول الله ﷺ په داسي حال کي چي د فضل بن عباس رضي الله عنه پر اوږو يې تکيه کړی وه

دعائشي ﷞ کورته ورغلی، مبارک سرېې ترلی ؤ او دعائشي ﷞ کورته ننوتی، هلته يې دمبارک ژوند وروستی هفته تېره کړه، حضرت عائشه ﷞ به معوذتين پروايه او په هغه دعاګانو به يې دماوه کومي يې چي له رسول الله ﷺ به يې چف کول اودبرکت په نيت به يې مبارک بدن دده په خپل مبارک لاس مسح کوی.

## «تر رحلت پنځه ورځي وړاندي»

له وفات څخه پنځه ورځي مخکي دچارشنبې په ورځ درسول الله ﷺ پربدن سخت دردونه راغلل، مرض يې دومره ډېرسو چي دالله عزوجل حبيب ﷺ بې هوښه سو، وی فرمايل: چي اوبه را باندي واچوی، دجلا، جلا څاګانو اوبه راباندي توی کړی ترڅو وکړل سم چي وصيت درته وکړم، دهمدې امر په اساس په يوه لګن کي کښېنول سو اوبه پرواچول سوی ترڅو په هوښ کي راغی وی فرمايل: چي بس دی، بس دی، په دې سر لږ آرامي وسوه، مرض يې کم سو، مسجدته يې په داسي حال کي تشريف يو وړی چي سرېې ترلی ؤ، په منبر کښېنستی، خلګو ته يې خطبه وويله، خلګ ټول ورته راټول سوی ؤ، وی فرمايل: چي پريهودو او نصراؤ دي دالله جل جلاله لعنت وي، دوی دخپلو پيغمبرانو له قبرونو څخه مسجدونه جوړکړی دي، په بل روايت کي راځي چي وی فرمايل: چي الله جل جلاله دي يهودا و نصارا هلاک کړي، دوی دخپلو رسولانو له قبرونو څخه مسجدونه جوړکړی دي، بيايې زياته کړه چي زماله قبر څخه بت مه جوړی چي عبادت يې وسي، يعني زما دقبر عبادت ونه کړی، بيايې خپل مبارک نفس دمحاکمې اوانتقام لپاره وړاندي کی او وی فرمايل: که څوک مي پر شا وهلی وي، دازما شا ده، زه حاضريم انتقام دي واخلي، که چاته مي بده خبره کړی وي، دهغه آبرومي توی کړی وي دادی زه حاضريم زما څخه دي خپل وار واخلي، بياله منبر څخه راکښته سو دماپښين لمونځ يې وکی، بيابيرته منبر ته پورته سو، کښېنستی اوخپله خبره يې تکرار کړه، ددښمني اونورو په هکله يې خبره وکړه، په دې وخت کي يوه سړي وويل زما پرتاباندي درې درهمه باندي دي رسول الله ﷺ و فرمايل اې فضل! درې درهمه ورکړه، بيايې دانصارو په هکله وصيت وکی او وی فرمايل: اوصيکم بالانصار فانهم کرشی وعيبتی وقدقضوالذی عليهم وبقی الذی فهم فاقبلوا

من محسنهم وتجاوزا عن مسينهم وفى رواية انه قال: ان الناس يكثرون وتقل الانصار حتى يكونوا كالملح فى الطعام فمن ولى منكم امرا يضر فيه احدا اوينفعه فليقبل من محسنهم ويتجاوز عن مسنهم **ترجمه**: زه تاسي ته دانصارو په هکله وصيت کوم ،دوی زما زړه اوځيګردي ،دوی خپل مسؤليت اداکړی دی ددوی حقوق پاته دی ،ددوی دنيکو کارونو نيکي ومنی اودګناهکارنو ترګناه تيرسی په بل روايت کي راځي چي وی فرمايل چي دخلګو شميره زياتيږي ،خوانصار کميږي ،بالاخره به دومره کم سي لکه په ډودی کي مالګه ،که ستاسي څخه چاته داسي کار وسپارل سو چي ګټه ياتاوان يې درلودی نودانصارو نيکي دي ومني اودمقصروينو ترګناه دي تيرسي.[٥٧٢]

بيايې وفرمايل: چي: ان عبدا خيره الله ان يؤتيه الله من زهرة الدنيا ماشاء.

الله تعالی خپل يو بنده ته اختيارورکړی دی چي خوښه يې وي ددنيا له شان ،شوکت،زيب او زينت څخه چی غواړي واخلي ،اوکه هغه څه اخلي چي له الله سره دي ،همدابنده ددنيا په مقابل کي هغه څه خوښ کړی دي کوم چي دالله تعالی سردی ابوسعيد خدري ﷺ وايي ددې خبري په اوريدوسره ابوبکر صديق ﷺ په ژړا سو وی ويل يارسول الله ﷺ !زموږ مور اوپلار دي ترتاقربان وي ،راوي وايي موږ دابوبکر ﷺ ژړاته حيران سو ،ځينو وويل دې شيخ ته وګوری ،رسول الله ﷺ دهغه بنده په هکله خبري کوي چي الله تعالی ددنيا اوآخرت په مينځ کي اختيار کړي دي ابوبکر ﷺ ته وايي مور اوپلار مي دي ترتاقربان وي ،ابوسعيد ﷺ وايي موږ هغه وخت نه ؤ پوه سوی ،وروسته پوه سو چي همدا اختيار من بنده په خپله رسول الله ﷺ ؤ ،ابوبکر& ترموږ ډير پوهيدی.[٥٧٣] بيارسول الله ﷺ وفرمايل چي: ان من امن الناس على فى صحبته وماله ابوبکر ولوکنت متخذاخليلاغير ربي لاتخذت ابابکر خليلا ولکن اخوة الاسلام ومودته لايبقين فى المسجد الاباب ابى بکر .زماسره دملګرتيا اومالي همکاري له وجي ترټولو زيات احسان ابوبکر صديق ﷺ کړی دی که له الله ﷻ پرته مي خپل خليل (دوست) نيولای نوابوبکر ﷺ به مي خليل وای ، خوله هغه سره مي د

---

[٥٧٢] صحيح البخارى ١/ ٥٣٦.
[٥٧٣] صحيح البخارى ١/ ٢، ٩٤٤، ٤٢٩، ٢٢، ٦٣٨.

حال راغی ویی فرمایل آیا خلګو لمونځ کړی دی ورته وموویل : چې نه یارسول الله ﷺ !دوی ستاپه انتظار ناست دي ، ده به غسل وکی هڅه به یې وکړه چې ولاړسي خوبې هوښي به پرراغله، دریم ځل یې هم غسل وکی اوبې هوښه سو، بالاخره یې ابوبکر رضي الله عنه ته خبرولیږی چې هغه امامت ورکړي ، درسول الله ﷺ دمریضی په ورځو کي حضرت ابوبکر رضي الله عنه داوولسو لمونځونو امامت وکی.[577]

عائشه رضي الله عنها څوځله درسو ل الله ﷺ حضور ته عرض وکړ چي امامت له ابوبکر رضي الله عنه څخه واخلي ځکه هغه بیریدی هسي نه خلک هغه په بدفالي اوبدشګوني ونیسي ، خورسول الله ﷺ به فرمایل تاسي دیوسف عليه السلام یاران یاست ، یعني په زړه کي مویوڅه دي اوپه خوله بل څه وایاست ، عائشي رضي الله عنها په خوله عرض وکی یارسول الله ﷺ ابوبکر رضي الله عنه چي ستا پرځای ودریږي له ډیري ژړا څخه خلګو ته قرآن کریم نه سي اوروِلای ،داپې دخولې خبره وه خوپه زړه کي یې هم داوه چي که رسول الله ﷺ له دې مرض څخه وفات سي هسي نه چي خلک دابوبکر رضي الله عنهما امامت په بدفالي ونیسي اوهمداعقیده یې په زړه کي پخه سي ،خورسول الله ﷺ امر وکی ،ابوبکر رضي الله عنه ته ووایاست چي دخلګو امامت وکړي .[578]

## «له رحلت څخه یوه یادوی ورځې وړاندي»

دشنبې یایکشنبې په ورځ درسول الله ﷺ صحت څه ناڅه ښه سو،ددوکسانو په مرسته یې مسجد ته تشریف یووړی ، په دې وخت کي ابوبکرش خلګوته لمونځ ورکوی خوکله چي ابوبکر رضي الله عنه ولیدل چي رسول الله ﷺ تشریف راوړی ،کوښښ یې وکی چي پرشاسي ،خو رسول الله ﷺ اشاره ورته وکړه چي پرشانه سي اووی فرمایل:چي مادابوبکر رضي الله عنه چپې خواته کښینوی ،هم هغه وه چي دابوبکر رضي الله عنه چپې خواته کښېنول سو ،ابوبکر رضي الله عنه په رسول الله ﷺ پسې اقتدا وکړه ، اودده مبارک تکبیرونه به یې تکرارول اوخلګو ته به یې رسول.

---

[577] صحیح البخاری ۱/ ۹۹.
[578] صحیح البخاری ۱/ ۹۸.

## «د رحلت څخه يوه ورځ وړاندې»

دشنبې په ورځ يعني د رحلت څخه يوه ورځ مخکې رسول الله ﷺ خپل ټول غلامان آزاد کړل، اووه دينا ره يې درلودل هغه يې صدقه کړل، خپله وسله يې هم مسلمانانو ته ورکړه، دشپې لخوا حضرت عائشې رضي الله عنها دڅراغ تيل له کومه همسايه څخه واخيستل اوپه همدې وخت کې د رسول الله ﷺ زغره (۳۰) صاعه تقريبا (۷۵) کيلو ګرامه وربشو په بدل کې له يوه يهودي سره ګرو وه.

## «دسيدالبشر ﷺ دمبارک ژوند آخره ورځ»

انس بن مالک رضي الله عنه روايت کوي چې ددوشنبې په سهار ابوبکر رضي الله عنه خلکو ته لمونځ ورکوي چې رسول الله ﷺ دحضرت عائشې رضي الله عنها دخونې پرده پورته کړه اودوی ته ګوري، دوی پر لمانځه ولاړ ؤ، رسول الله ﷺ ددې حالت په ليدو سره تبسم وکی، ابوبکر رضي الله عنه فکر وکی چې رسول الله ﷺ تشريف راوړي نوله خپل ځای څخه پر شا سو، اوصف ته ورسيدی، انس رضي الله عنه وايي د رسول الله په ليدو سره مسلمانان دومره خوشحاله سول چې نژدې وه لمونځ پريږدي او د رسول الله ﷺ خدمت اوپوښتنې ته ورسي، خو رسول الله ﷺ په خپل مبارک لاس اشاره وفرمايله چې خپل لمونځ پوره کړه، اوبيايې خپلې حجرې ته تشريف يووړی اوپرده يې کښته کړه.[579]

تردې وروسته پر رسول الله ﷺ دبل لمانځه وخت رانه غی، چې غرمه سوه رسول الله ﷺ خپله ګرانه لور فاطمه رضي الله عنها راوغوښتله، پټ يې په غوږ کی څه ورته وويل فاطمه رضي الله عنها په ژړا سوه بيايې بله خبره پټه ورته وکړه په هغې سره فاطمه رضي الله عنها په خنداسوه، حضرت عائشه رضي الله عنها وايي وروسته مې له فاطمې رضي الله عنها څخه ددې موضوع په اړه پوښتنه وکړه، هغې راته وويل رسول الله ﷺ پټ راته وويل چې زه نن رحلت کوم، له همدې مرض څخه وفات کيږم، ماددې خبرې په اوريدو سره وژړل، بيايې راته وويل چې ته به زما په کورنۍ کې لومړنۍ شخص يې چې په ماپسې به راځې، زه په دې سره خوشحاله سوم او ومې خندل.[580]

همدا راز رسول الله ﷺ فاطمې ته زيری ورکی چې ته دددنيا دښځو سرداره يې.

---

[579] صحيح البخاری ۲/ ۶۴۰.
[580] صحيح البخاری ۲/ ۶۳۸.

حضرت فاطمي رضي الله عنها به دخپل محبوب پلار مرض وليدی ،چيغه به يې کړه ،وای په پلار مي څه حال دی ،رسول الله ﷺ به فرمايل ستا پلار به له نن وروسته هيڅ غم اودرد ونه ويني [581] بيا يې حسن رضي الله عنه اوحسين رضي الله عنه راوغوښتل دواړه يې مچ کړل اود دوی په هکله يې دنيکي وصيت وکی ،بيايې خپلې ميرمني راوغوښتلی ،ټولوته يې وعظ اونصيحت وکی ، هم هغه وه چې درد اومرض يې زيات سو ،په بدن کې يې دهغه زهرو اثرښکاره سو چې په خيبر کې يې خوړلي ؤ ،فرمايل به يې اې عائشې دهغه طعام درد احساسوم کوم مي چې په خيبر کې خوړلی ؤ ،فکر کوم چې دملا رګ مي له زهرو څخه پرې سوی دی [582] خلګوته يې امر کوی دلمانځه ،اوهغه مريانو خيال وساتی چې ښايې ترلاس لاندې دي .الصلوة الصلوة وماملکت ايمانکم. هم دا فرموده يې دځکندن په وخت کې څوځله تکرار کړه.

## «دځکندن حالت»

درسول الله ﷺ ځکندن لنډ سو، پرعائشې رضي الله عنها تکيه کړی وه ،عائشې رضي الله عنها به همېشه ويل چې پرما باندې دالله جل جلاله له رحمتونو اونعمتونو څخه يو دادی چې رسول الله ﷺ زما په کورکې زما دنوبت په ورځ اوزما دغاړې اولمني ترمينځ وفات سو، او الله تعالی دده دوفات پروخت زما دخولې ناړې دهغه له مبارکو ناړو سره ګډې کړې ،عبدالرحمن بن ابي بکر رضي الله عنه زما کورته راغی ،په لاس کې يې مسواک ؤ ،رسول الله ﷺ پرماتيکه کړی وه ، متوجه سوم چې رسول الله ﷺ دهغه دمسواک په طرف ګوري ، پوه سوم چې مسواک غواړي ،عرض مي وکی چې مسواک درته واخلم ، ده په اشاره سره زه پوه کړم چې هو، ماهغه مسواک ورڅخه واخيستی ،درسول الله ﷺ لپاره کلک ؤ ،عرض مي وکړی درته نرم يې کړم ، په مبارک سره يې اشاره وکړه هو !ماورته نرم کی اوورمي کړی هغه ډېر ښه استعمال کی ،په يوه روايت کې داهم راغلي دي چې رسول الله ﷺ په ډېره ښه طريقه مسواک وواهه ،نژدې داوبو منګې ورته پروت ؤ ،دواړه لاسونه يې په کښې غوټه کړل او پرمبارک مخ يې راکش کړل اوفرمايل به يې لااله الا الله ان للموت سکرات. **ترجمه**:له يوه الله

---

[581] صحيح البخاری ۲/ ۶۴۱.
[582] صحيح البخاری ۲/ ۶۴۱.

جل جلاله پرته بل د عبادت لائق نسته، بيشکه چي مرګ سختي لري [٥٨٣]، کله چي رسول الله ﷺ مسواک استعمال کی، مبارک لاس ياګوتي يې پورته کړی، سترګي يې چت يابام ته ونيولی، مبارکي شونډي يې وښورېدلی، عائشې رضي الله عنها غوږ ورته ونيوی اووايي اورېدل يې چي فرمايي:

مع الذين انعمت عليهم من النبيين والصديقين والشهداء والصالحين وحسن اولئک رفيقا، اللهم اغفرلي وراحمني والحقنی بالرفيق الاعلی. اللهم الرفيق الاعلی.

**ترجمه:** له هغو کسانو سره چي نعمت دي ورکی له انبياؤ عليهم السلام، صديقان، شهيدانو او صالحينو څخه دوی ډېر غوره ملګري دي، اې خدايه رفيق اعلی در څخه غواړم، داوروستي کلمه يې درې ځله تکرار کړه، مبارک لاس يې پرا ځ ولويدی اوله رفيق اعلی سره يوځای سو انالله اوانااليه راجعون. دغه د دوشنبې ورځ غرمه مهال دسختي ګرمي وخت ؤ، دهجرت يوولسم کال دربيع الاول دوولسمه نيټه وه، درسول الله ﷺ عمر مبارک درو شپيته کاله او څلور ورځي ؤ.

## «پر اصحابو دغمونو بارانونه»

درسول الله ﷺ درحلت خبرخبور سو، دمدينې په اوسيدونکو قيامت جوړ سو، پرسترګو يې توره تياره سوه، انس رضي الله عنه وايي چي مامدينې ته درسول الله ﷺ دراتګ تر ورځي بله ورځ زياته روښانه اونيکمرغه نه ده ليدلی اودرسول الله ﷺ دفات ترورځي مي بله ورځ زياته تياره او درد وونکي نه ده ليدلی، کله چي رسول الله ﷺ رحلت وکی فاطمې رضي الله عنها وويل واي باباجانه! دخپل رب بلنه دي ومنله، واي پلارجانه جنت فردوس دي ځای دی اې پلارجانه ستاغم جبرئيل عليه السلام ته ژاړو. [٥٨٤]

## «دحضرت عمر رضي الله عنه دغم اندازه»

حضرت عمر فاروق رضي الله عنه درسول الله ﷺ دوفات خبر نه سوای منلی، حيران ؤ، دهشت اخيستی ؤ، ويل به يې ځيني منافقان ګمان کوي چي رسول الله ﷺ رحلت کړی دی، رسول الله ﷺ رحلت نه دی کړی بلکه لکه موسی عليه السلام خپل رب ته ورغلی

---

[٥٨٣] صحيح البخاری ٢/ ٦٤٠.

[٥٨٤] صحيح البخاری ٢/ ٦٤١.

دی او څلويښت ورځې له خپل قوم څخه غائب سوی دی ، خوکله چې ورته وويل سول چې رسول الله ﷺ وفات سوی دی ،راغی وی ويل قسم په خدای چې رسول الله ﷺ بيرته راځي ، که څوک وايي چې هغه ﷺ وفات سوی دی لاس او پښې به يې پرې سي.[٥٨٥]

## «د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه حالت»

ابوبکر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ د رحلت وخت کې له مدينې څخه د باندې د سنح نومې کلې کې ؤ پر آس سپور راغی مسجد ته داخل سو ،د چا سره يې خبرې نه کولې ،د عائشې رضي الله عنها کور ته ورغلی او د رسول الله ﷺ له مبارک سر سره ودرېدی ،پر هغه مبارک يمني ليکه دار څادر غوړول سوی ؤ ،څادر يې له مبارک مخ څخه پورته کی ، مبارک مخ يې مچ کړ ،وی ژړل او وی ويل: مور او پلار مې تر تا قربان ،الله عزوجل تا ته دوه ځله مرګ نه درکوی، کوم مرګ چې يې درته تا کلی ؤ هغه درته راغی ،بيا د باندې راووتی، هلته حضرت عمر رضي الله عنه له خلکو سره په مناقشه بوخت ؤ ،ابوبکر رضي الله عنه وويل اې عمره! کښينه ،حضرت عمر رضي الله عنه نه کښېنستی ، خلک ټول له حضرت عمر رضي الله عنه څخه ابوبکر رضي الله عنه ته ورغلل،ابوبکر رضي الله عنه وويل :امابعد چا چې د محمد ﷺ عبادت کوی هغه دې پوه سي چې محمد ﷺ وفات سو ،او څوک چې د الله عزوجل عبادت کوې هغه دې پوه سي چې الله جل جلاله د محمد ﷺ خدای هم دی او الله عزوجل تل ژوندی دی مرګ نه لري الله عزوجل فرمايي :

وَمَا مُحَمَّدٌ إِلَّا رَسُولٌ قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِهِ الرُّسُلُ أَفَإِن مَّاتَ أَوْ قُتِلَ انقَلَبْتُمْ عَلَىٰ أَعْقَابِكُمْ وَمَن يَنقَلِبْ عَلَىٰ عَقِبَيْهِ فَلَن يَضُرَّ اللَّهَ شَيْئًا وَسَيَجْزِي اللَّهُ الشَّاكِرِينَ. سورة آل عمران آيت (١٤٤)

**ترجمه**: نه دی محمد ﷺ مګر يو رسول د الله جل جلاله ،په تحقيق سره له ده څخه مخکې ډېر رسولان تير سوی دي،آيا نو که مړ سي محمد ﷺ يا شهيد کړل سي نو بيرته به وګرځي تاسې په پوندو خپلو (کفر ته) او هر څوک چې بيرته وګرځيدی په پوندو خلکو نو الله جل جلاله ته به هيڅ تاوان ونه رسوي ، او ژر به جزاء ورکړي ، الله جل جلاله شکر ګزاروته . ابن عباس رضي الله عنه وايي کله چې ابوبکر رضي الله عنه دا آيت تلاوت کی خلک داسې

---

[٥٨٥] ابن هشام ٦٥٥.

سول لکه چي دا آيت هم دا اوس نازل سوی وي ، او په دې سره ټولو هم دا آيت شريف تلاوت کوی ، ابن مسيب رضي الله عنه وايي عمر رضي الله عنه وويل چي په خدای قسم کله چي ابو بکر رضي الله عنه دا آيت تلاوت کی بالکل بې حسه سوم ، پر لاره نه سوای تلای ، دا آيت مي چي ولوستی پر مځکه ولويدم ، او پوه سوم چي رسول الله ﷺ وفات سوی دی. [586]

## دسيدالبشر ﷺ تجهيز ، تکفين ، تدفين ، او له مبارک جسد سره رخصت

د رسول الله ﷺ د تجهير او تکفين څخه مخکي د خلافت په اړه مخالفت پيدا سو ، د انصارو او مهاجرينو ترمينځ بحث او مناقشه پيدا سوه ، دوی په سقيفه بني ساعده کي راټول سوی ؤ او د خلافت په هکله يې ډير بحث وکی ، په پای کي يې په اتفاق سره ابوبکر صديق رضي الله عنه د رسول الله ﷺ خليفه وټاکی ، د خلافت په هکله دا بحث او مناقشه د دوشنبې تر ماښام پوري جاري وه ، په دې شپه هم د رسول الله ﷺ تجهيز او تدفين ونه سو ، سهار سو پر رسول الله ﷺ باندي هم هغه يمني څادر غوړېدلی ؤ ، کورني يې دروازې پسې بندي کړی وی ، د سې شنبې په ورځ يې رسول الله ﷺ ته غسل ورکی خو کالي يې همداسي په تن ؤ.

عباس رضي الله عنه ، علي رضي الله عنه ، فضل رضي الله عنه او قثم بن عباس رضي الله عنه رسول الله ﷺ ته غسل ورکی ، له دوی سره شقران چي د رسول الله ﷺ آزاد سوی مريي ؤ اسامه بن زيد رضي الله عنه اوس بن خولی رضي الله عنه هم ملګري ؤ ، عباس رضي الله عنه قثم رضي الله عنه او فضل رضي الله عنه به پريوه اړخ او بل اړخ اړاوه ، اسامه او شقران او به وربا ندي اچولی ، او حضرت علی رضي الله عنه به غسل ورکاوه ، اوس بن خولی رضي الله عنه د رسول الله ﷺ مبارک جسد پر خپله سينه تکيه کړی ؤ بيايې رسول الله ﷺ په دروېمني جامو کي ونغښتی په دې کي قميص او عمامة نه وه [587] ، دا جامې يې کفن وی ، بيا د رسول الله ﷺ د ښخولو په اړه سره مخالف سول ، ترڅو ابوبکر رضي الله عنه وويل ماله رسول الله ﷺ څخه اورېدلي چي هر پيغمبر په هغه ځای کي ښخيږي چيري چي وفات سوی وي ، پر همدې اساس ابو طلحه انصاري رضي الله عنه د رسول الله ﷺ هغه بستره چي پر وفات سوی ؤ پورته کړه او لاندي ځای يې

---

[586] صحيح البخاری ۲/ ٦٤٠.
[587] صحيح البخاری ۲/ ١٦٩. صحيح المسلم ١/ ٣٦.

وکیندل سو او قبر ورته جوړ سو، قبرېې هم لحد ؤ خلک به لس لس کسان راتلل او په رسول الله ﷺ به یې لمونځ کوی، دلمانځه امام یې نه ؤ لومړی د رسول الله ﷺ کورنۍ او خپلوانو لمونځ پرو کی، وروسته مهاجرینو بیا انصارو تر نارینه ؤ وروسته ښځو او بیا کوچنیانو په رسول الله ﷺ لمونځ اداکی، په دې ډول دسې شنبې ورځ هم تیره سوه او د چارشنبې شپه را داخله سوه.

عائشه رضي الله عنها وايي مو ترهغو پوري د رسول الله ﷺ له ښخولو خبرنه ؤ ترڅو مو د چارشنبې په نیمایي شپه کي د بیلچو آواز واوریدی.[588]

## «دسیدالبشر ﷺ مبارکه کورنۍ»

١: ترهجرت مخکي په مکه کي نبوي کورنۍ عبارت وه له رسول الله ﷺ او خدیجه رضي الله عنها د واده په وخت کي رسول الله ﷺ پنځه ویشت کلن او خدیجه رضي الله عنها څلویښت کلنه وه، له خدیجې د رسول الله ﷺ زامن پیدا سول خو یو هم ژوندی پاته نه سو، او لوڼي یې عبارت وی له زینب رضي الله عنها رقیه رضي الله عنها، ام کلثوم رضي الله عنها، چي دا دواړي یې یو په بل پسې حضرت عثمان رضي الله عنه ته په نکاح ورکړی وی، فاطمه رضي الله عنها چي له حضرت علي رضي الله عنه سره یې د بدر او احد په مینځ کي واده کړی وه، د فاطمې رضي الله عنها اولادونه حسن رضي الله عنه ،حسین رضي الله عنه ،زینب او ام کلثوم ؤ، رسول الله ﷺ د خپل امت په نسبت له نورو امتیازاتو او ځانګړتیاؤ علاوه یو امتیاز دا درلودی چي تر څلورو ښځه له زیاتو ښځو سره یې نکاح کړی وه، د دې امر تر شا ډیر حکمتونه او رازونه پټ ؤ رسول الله ﷺ له یوولسو ښځو سره نکاح کړی وه، د رحلت په وخت کي یې (٩) میرمني ژوندی وی، دوې دده مبارک په ژوند کي وفات سوی وی چي یوه یې خدیجة رضي الله عنها او بله یې ام المؤمنین زینب بنت خزیمه رضي الله عنها وه او دوې په میرمني یې داسي وی چي ورسره یوځای سوی نه وی.

دلته د رسول الله ﷺ د بیبیانو نوموونه او ژوند په لاندي ډول وړاندي کوو.

**٢ سوده بنت زمعه** رضي الله عنها: رسول الله ﷺ د بعثت په لسم کال د خدیجې رضي الله عنها له وفات څخه څو ورځي وروسته واده ورسره کړی ؤ، سوده مخکي د خپل اکا د زوی

---

[588] مختصر سیرت الرسول ﷺ رحمة للعالمین ٢٨٦، ٢٧٧.

سکران سره واده کړې ؤ،وروسته هغه وفات سو،کونډه سوه اوبیایې درسول الله ﷺ سره دګډ ژوند شرف ترلاسه کی.

**۳ عائشه رضی الله عنها بنت ابی بکر رضی الله عنه**:درسول الله ﷺ دبعثت په یوولسم کال له سوده رضی الله عنها سره له واده یو کال وروسته نکاح ورسره کړې وه د دغه نکاح له هجرت څخه دوه کاله اوپنځه میاشتي مخکي ترسره سوې وه ،بیاله هجرت څخه وروسته کله چي درسول الله ﷺ عمر (۵۶) کاله ؤ په مدینه کی دشوال په میاشت کي واده وکی ،عائشه رضی الله عنها دواده په وخت کي نهه کلنه وه ، عائشه رضی الله عنها یوازنی پیغله ده چي رسول الله ﷺ واده ورسره وکی ، نوري میرمني یې تولي کونډي وی ،رسول الله ﷺ له عائشي رضی الله عنها سره ډیره مینه درلوده ،عائشه ترنورو ډیره هوښیاره اوفقیه او عالمه وه.

**۴ حفصه بنت عمر رضی الله عنه**:دنوموړي میړه خنیس بن حذافه سهمي دبدر اواحد ترمینځ مړسو وورسته په دریم هجري کال کي یې درسول الله ﷺ سره دنکاح شرف په برخه سو.

**۵:زینب بنت خزیمه رضی الله عنها**:دغه بي بي له هلال بن عامر بن صعصعه له کورنۍ څخه وه له فقیرانو اوبې وزلانو سره یې ډیره همدردي درلوده ، نیکي به یې ورسره کوله ،اوله همدې کبله په أم المساکین مشهوره وه ، اودهجرت په څلورم کال رسول الله ﷺ نکاح ورسره وکړه خودرسول الله سره تر واده دوې یادرې میاشتي وروسته وفات سوه.

**۶ :ام سلمله بنت ابي امیه رضی الله عنها**:لومړی میړه یې ابوسلمه رضی الله عنه ؤ،هغه دڅلورم هجري کال په جمادي الاخر کي وفات سو،رسول الله دهمدې کال دشوال په میاشت کي واده ورسره وکی.

**۷زینب بنت جحش رضی الله عنها**:دبني اسد بن خزیمه قبیلې څخه وه ،درسول الله ﷺ دعمه لور هم کېدله ، لومړی یې له زید بن حارثه رضی الله عنه سره واده وکی ،وروسته زید طلاقه کړه اولله تعالی رسول الله ته داسي حکم وکی :

فَلَمَّا قَضَىٰ زَيْدٌ مِّنْهَا وَطَرًا زَوَّجْنَاكَهَا .سورة الاحزاب

**ترجمه**: وروسته له دې چې زيد ورسره يوځای سو موږ هغه تاته په نکاح درکړه، په دې هکله سورة الاحزاب نازل سو، په دې آيتونو کي دنسبتي زوی مسئله ښه توضيح سوی ده، چي وروسته به اشاره ورته وکړو. رسول الله ﷺ دپنځم هجري کال په ذی القعده کي له زينب رضي الله عنها سره واده وکی.

**۸: جويره بنت حارث** رضي الله عنها: حارث دبني مصطلق دکورنۍ سردار ؤ، جويريه رضي الله عنها له غزا وروسته بندي سوه. لومړی دثابت بن قيس بن شماس رضي الله عنه په برخه ورسيده، هغه مکاتبه ورسره وکړه بيا وروسته رسول الله ﷺ پيسې ورکړی او د شپږم هجري کال په شعبان مياشت کي يې واده ورسره وکی.

**۹: أم حبيبه رمله بنت ابي سفيان** رضي الله عنها: نوموړی دعبيدالله بنت جحش ښځه وه، دواړو حبشې ته هجرت وکی خو ميړه يې هلته مرتد سو يعني مسيحي سو او هم الته مړسو، أم حبيبه پرخپل دين قائمه پاته وه، رسول الله ﷺ په اووم هجري کال کي نجاشي ته ليک وليږی او أم حبيبه رضي الله عنها يې ورځخه وغوښتله هغه يې هم الته دنکاح عقد وتاړه او له شرحبيل بن حسنه سره يې ورته راوليږله.

**۱۰: صفيه بنت حيی بن اخطب** رضي الله عنها: صفيه رضي الله عنها په خيبر کي دمسلمانانو په اسارت کي ولويده رسول الله ﷺ هغه دځان لپاره غوره کړه، آزاد يې کړه او په اووم هجري کال کي نکاح ورسره وکړه.

**۱۱: ميمونه بنت حارث** رضي الله عنها: دادحضرت عباس دښځي أم الفضل لبابه بنت حارث خور وه رسول الله ﷺ په عمرة القضاء کي يعني داووم هجري کال په ذی القعده مياشت کي نکاح ورسره وکړه.

خديجة رضي الله عنها أم المساکين رضي الله عنها درسول الله ﷺ په ژوند کي وفات سوی، خونهه نوري درسول الله ﷺ درحلت په وخت کي ژوندی وی، دوې ښځي داسي وی چي رسول الله ﷺ دنکاح عقدورسره تړلی ؤ خو واده يې ورسره ونه سو، هغه يوه له بني کلاب او بله له کنده کورنۍ ځخه وه چي په جوينه سره يې شهرت درلودی، په دې هکله درواياتونو ترمينځ ځه اختلاف سته چي دتفصيلاتو بيانول يې ضروري نه ګڼو دمينځو په هکله ويلای سو چي رسول الله ﷺ له خپلي مينځي ماريه قبطې چي دمصر مقوقس په تحفه کي ورکړی وه ځخه يوزوی درلودی چي نوم يې ابراهيم رضي الله عنه

ؤ ابراهيم کوچنی ؤ چي وفات سو ،دوفات نېټه يې دلسم هجري کال دشوال اته ويشت يانهه ويشت تاريخ وه چي د(٦٢٢م) کال دجنوري له اته ويشتم تاريخ سره سمون خوري ،بله مينځه يې ريحانه بنت زيد نصري ياقرظي وه چي دبني قريظه په غزا کي په اسارت ونيول سوه رسول الله ﷺ هغه دځان لپاره غوره کړه ،ځيني روايتونه وايي چي ريحانه درسول الله ﷺ ته ترجيح ورکوي ،ابوعبيده دوی نوري ميرمني هم درسول الله ﷺ دميرمنو په ډله کي شاملوی ، چي يوه يې جميله وه چي په اسارت نيول سوی وه اوبله هغه مينځه وه چي زينب بنت جحش رضي الله عنها رسول الله ﷺ ته ورکړی وه.[589]

که درسول الله ﷺ ژوند ته په ځير وکتل سي نو دابه له ورايه ښکاره سي چي له دې دومره ودونو څخه درسول الله ﷺ هدف دجنسي غريزي اشباع کول نه ؤ ،ځکه رسول الله ﷺ دځواني لومړنی ديرش کاله له يوڅلويښت کلني ښځي خديجه رضي الله عنها اوبياسوده رضي الله عنها سره تير کړي دي ،دځوانی عمر يې له دوی سره تيرسوی دی ، بلکه له دې ودونو څخه درسول الله ﷺ اهداف ډير لوړ اوعظيم ؤ ، رسول الله ﷺ په خپلو څلورو يارانو چي دالله جل جلاله اسلام په لار کي يې ډير مشکلات ګاللي ؤ ،په آزموينه کي بريالي وتلي ؤ ډير عنايت او شفقت کړی ،له دوی سره يې خپل اړيکي ډيري ټينګي ساتلی اودهمدې اړيکو دلازيات ټينګيدو په خاطر يې له عائشه بنت ابي بکر رضي الله عنها اوحفصه بنت عمر رضي الله عنه سره واده وکی ،رقيه رضي الله عنها اورپسې أم کلثوم رضي الله عنها يې عثمان رضي الله عنه اوفاطمه رضي الله عنها يې حضرت علي رضي الله عنه ته په نکاح ورکړی وی ، هغه وخت عربان خپلوي اودوستي ډيره ساتله .خپلوانو ته يې زيات احترام درلودی، په دوستي سره د قبائلو ترمينځ اړيکي مضبوطيدلی ،دښمني اوجنګونه پای ته به رسيدل اوله خپلوانو سره دښمني اوجنګ دشرم اوبې ننګې خبره وه ، له همدې امله رسول الله ﷺ غوښتل دخپلوی او ودونو له لاري ځيني قبيلې دځان کړي له همدې لاري له اسلام سره د دوی دښمني اوعداوت ختم کړي ، أم سلمه رضي الله عنها له بني مخزوم قبيلې څخه وه ،ابوجهل اوخالد هم له همدې قبيلې څخه ؤ ،له ام سلمه رضي الله عنها سره ترواده وروسته خالد رضي الله عنه درسول الله ﷺ پرخلاف داحد دغزا په ډول سخته دښمني

---

[589] زادالمعاد ١/ ٣٩.

اوکلک دریغ نه درلودی ، بلکه څه وخت وروسته په خپله خوښه مسلمان سو، همداډول ابو سفیان له هغه وروسته چي رسول الله ﷺ یې لور ام حبیبه په نکاح کړه دمسلمانانو پرخلاف جنګ ونه کی ،له جویریه رضي الله عنها وصفیه رضي الله عنها سره له واده وروسته دیهودو دوې قبیلې بني مصطلق اوبنی نضیر هم په داسي عمل لاس نه دی پوري کړی چي پردښمني دلالت وکړي ، جویریه رضي الله عنها دخپل قوم لپاره ترټولو زیاته برکتي ښځه وه ځکه له دې واده وروسته اصحابو درسول الله ﷺ دخپلوی ددرناوي په خاطر دهغې دقوم سل کورنۍ آزادي کړی اوټولو ویل دوی درسول الله ﷺ خپلوان دي ،باید آزاد سي ،څرګنده ده چي دې احسان اونیکي د دوی په زړونو کي ډېر مثبت اثر درلودی.

داسلام اومسلمانانو پرخلاف ددښمني کمولو اوله مختلفو قبایلو سره ددوستي له ټینګولو پرته درسول الله ﷺ د ودونو هدف داؤ چي رسول الله ﷺ غوښتل له خپلو میرمنو څخه د داعیانو اومعلمانو کار واخلي ،ځکه هغه ﷺ په دې مکلف ؤ چي داله تمدن، فرهنګ اوثقافت څخه لیري اوپردې قوم داسي وروزي چي دژوند په ټولو آدابو اواخلاقو سمبال وي، هغه ﷺ نوې ټولنه جوړوله ، دنوي ټولني اصولو دااجازه نه ورکوله ، چي نارینه اوښځینه دي سره ګډ وي اوداممکنه نه وه چي دعربي جاهلي ټولني ښځي دي خپل ونوی اسلامي فرهنګ اوثقافت له نارینه ؤ څخه زده کړي ، ښځي دټولني یوه مهمه برخه وه اود دوی پوهه روزنه اوښوونه لکه دنارینه ؤ په ډول لازمي ضروري ؤ ،بناء رسول الله ﷺ مجبور ؤ ددې لوی عمل دادا په خاطر یعني دښځي د روزني اوښووني په خاطر له مختلف عمر لرونکو ښځو څخه کارو اخلي ، دمختلف عمر اومختلفو صلاحیتونو خاوندانې ښځي خپلي کړي ، دوی په اسلام اواسلامي اخلاقو وروزي ، ددین احکام ورزده کړي ،اوداسي معلماني ورڅخه جوړي کړي چي وکولای سي په بریالیتوب سره ښاري اوبانډه والي میرمني وروزي ، دوی ته داسلام پیغام ورسوي ، زوړو اوځوانو ښځو ته اسلامي آداب اواخلاق په عملي توګه ورزده کړي ،درسول الله ﷺ قدرمنو میرمنو داسلام دمبلغانو رول اداکړي دوی په ډېره ښه توګه درسول الله ﷺ دکور اوژوندنی حالت ښځوته انتقالو ل ، دوی به په ټولو امورو کي له رسول الله ﷺ

ثخه زده کړه کوله اوبیابه یې نورو ښځوته وربښوول ،دادنده هغه بیبیانو ډیره ښه ادا کړه چې ډیروخت ژوندۍ وی لکه عائشه ﷺ نومورې درسول الله ﷺ زیات شمیر مبارک اقوال اوسپیځلي اعمال نوروته رسولي دي.

درسول الله ﷺ یو واده داسي ؤ چي په هغه سره دجاهلي دورې یو عادت اورواج مات سو ، په عربو کي زوی نیول یعني یوپردې هلک یاسړی په خپل اولاد سره نیول ، رواج درلودی دغه زوی نیول به داصلي اونسبي زوی په ډول ټول حقوق درلودل ، اوپه هرڅه کي دنسبي زوی په ډول معامله ورسره کېدله ، دا رواج دومره خپور سوی ؤ چي له وړل یې له مینځه اسان اوساده کارنه ؤ ،ځرګنده ده چي دارواج دطلاق ، نکاح،میراث اونورمعاملاتو په برخه کي له اسلامي احکامو سره تعارض درلودی ،په دې عادت اورواج کي ډیرداسي مفاسد اوفتنې پټې وی چي اسلام دهغو له منځه وړلو لپاره راغلی ؤ ،دهمدې جاهلي عادت دابطال اوله منځه وړلو لپاره الله عزوجل خپل رسو ل ﷺ ته امر وکی چي له زینب بنت جحش رضي الله عنها سره نکاح وکړي ، زینب رضي الله عنها دزید بن حارثه رضي الله عنه ښځه وه،زید رضي الله عنه درسول الله پسرخوانډ ؤ یعني هغه یې په فرزندي یازوی توب نیولی ؤ ،زید رضي الله عنه چي له زینب سره واده وکی له واده څخه وروسته د دواړو ترمینځ دګډ ژوند شرایط برابر نه ؤ،دواړو اختلاف سره درلودل ، زید رضي الله عنه اراده وکړه چي هغه طلاقه کړي ، داداسي وخت ؤ چي کافران له هري خوا څخه پرمسلمانانو دحملې په حال کي ؤ ،رسول الله ﷺ دمشرکانو یهودو اومنافقانو له تبلیغاتو څخه بیریدی اودا تشویش یې درلودی چي هسي نه دښمنان له دې څخه هم دده پرخلاف دیوې تبلیغاتي وسیلې په توګه کار واخلي ،نوخوښه یې نه وه چي زید خپله ښځه زینب رضي الله عنها طلاقه کړي ،الله جل جلاله په دې مسئله کي قاطع امرورته وکی اووی فرمایل :

وَإِذْ تَقُولُ لِلَّذِي أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِ وَأَنْعَمْتَ عَلَيْهِ أَمْسِكْ عَلَيْكَ زَوْجَكَ وَاتَّقِ اللَّهَ وَتُخْفِي فِي نَفْسِكَ مَا اللَّهُ مُبْدِيهِ وَتَخْشَى النَّاسَ وَاللَّهُ أَحَقُّ أَن تَخْشَاهُ سورة الاحزاب آیت (٣٧)

**ترجمه:** اوکله چي تاوویل هغه(زید) ته چي انعام کړی ؤ الله پرهغه اوانعام کړی ؤ تاپرهغه (په ازادولو سره) چي په خپله ښځه وساته او وبیریږه له الله جل جلاله څخه حال

داچي پټوله تاپه زړه کي هغه خبره چي الله يې ښکاره کوونکې ؤ اوته وېريدی له خلګو څخه او الله جل جلاله ډېرلائق دی چي بيره ورڅخه وکړی.

په پای کي زيد رضي الله عنه هغه طلاقه کړه اوترعدت وروسته رسول الله صلی الله علیه وسلم واده ورسره وکړی دا نکاح هغه وخت وسوه چي بني قريظه محاصره سوی ؤ،دانکاح دالله جل جلاله په امر وسوه، داپرواجب سوه،رسول الله صلی الله علیه وسلم په دې هکله هيڅ بل خيال او اختيارنه درلودی، الله عزوجل فرمايي:

فَلَمَّا قَضَىٰ زَيْدٌ مِّنْهَا وَطَرًا زَوَّجْنَاكَهَا لِكَيْ لَا يَكُونَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ حَرَجٌ فِي أَزْوَاجِ أَدْعِيَائِهِمْ إِذَا قَضَوْا مِنْهُنَّ وَطَرًا. سورة الاحزاب آيت (٣٧)

**ترجمه**: کله چي پوره کي زيد له هغي (زينب) څخه خپل غرض (اوطلاقه يې کړه اوعدت يې پوره سو) نوپه نکاح درکړه موږ تاته دغه(زينب) لپاره ددې چي نه وي پرمؤمنانو سختي اوبال په نکاح کولو دښځو دادعا يوو کله چي تمام کړی دوی خپل غرض ورڅخه،ددې حکم ترشا داحکمت پروت ؤ ترڅو په دې سره دفرزندي اوپسرخواندګي په نامه مشهورسوی جاهلي رسم له مينځه يوسي، الله تعالی دې ته داسي اشاره فرمايي:

ادْعُوهُمْ لِآبَائِهِمْ هُوَ أَقْسَطُ عِندَ اللَّهِ سورة الاحزاب آيت (٥)

ژباړه: وبولی تاسي دغه ادعياء (پسرخوانده ګان) پلرونو د دوی ته دغه ډېره غوره دی په نزد دالله جل جلاله.

مَّا كَانَ مُحَمَّدٌ أَبَا أَحَدٍ مِّن رِّجَالِكُمْ وَلَٰكِن رَّسُولَ اللَّهِ وَخَاتَمَ النَّبِيِّينَ وَكَانَ اللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا سورة الاحزاب آيت (٤٠)

**ترجمه**: نه دی محمد صلی الله علیه وسلم حقيقي پلار دهيڅ يوتن له خلګو څخه، مګر رسول الله صلی الله علیه وسلم دالله جل جلاله اوخاتم درسولانو دی، ډېر عادتونه او رواجونه داسي وي چي په تشه خبره اوقول سره نه پرېښوول کيږي بلکه دهغه له منځه وړل له قول سره عمل مثال ته هم ضرورت لري.

همدې ته ورته يوه پيښه دعمرة القضاء په وخت کي هم وسوه، هغه مسلمانان او اصحاب چي درسول الله صلی الله علیه وسلم دېزې اوبه هم مځکي ته نه پرېږدي بلکه دعروة

مسعود ثقفي په خوهغه راخلي اوپربدن يې موږي ،د رسول الله ﷺ داوداسه اوبه
په راخيستلو کي يو له بل سره مقابله کوله ، همدوى ؤ چي له خپل ګران رهبر سره يې
د مرګ بيعت کړى ؤ ،په همدې ډله کي ابوبکر رضي الله عنه ،عمر رضي الله عنه اونوريارانؤ ،همدغه
اصحابو ته چي له تړون څخه وروسته امر کيږي چي ولاړسى ، د قرباني څاروي حلال
کړي ،ځانونه له احرام څخه خلاص کړى ،وينو چي په قولي امرسره يوهم د حکم
تعميل نه کوي ،رسول الله ﷺ د دې صحنې ليدو سره غمګين اوخوابدى کيږي ،
خوکله چي أم سلمه رضي الله عنها مشوره ورکړه چي لومړى خپله قرباني ذبحه کړه له هيچا
سره خبري ونه کړى ، نوبيابه ټول هم داکار عملي کوي ، همداسي وسول ،رسول الله
ﷺ چي خپله قرباني حلاله کړه اصحاب ټول ولاړسول د رسول الله ﷺ متابعت يې
وکړى دهمدې مثال په رڼاکي دقولي اوعملي حکم ترمينځ توپير معلوم مولاى سو
اووينو چي عملي حکم څه ډول اثر اغيزه لري ،له زينب بنت جحش رضي الله عنها سره د رسول
الله ﷺ له نکاح وروسته منافقانو ډير زهرجن تبليغات وکړل ، ديري شبهې يې را
ولاړي کړى ،تردې حده چي ځيني کمزوري مسلمانان ځنى متاثر سول ،په دې وخت
کي يو بل مشکل داؤ چي له زينب رضي الله عنها سره واده د رسول الله ﷺ پنځه واده کېدى
اومسلمانانو ته خوترڅلورو زياتو ودنو اجازه نه وه ،دلته دوه مشکله ؤ ،لومړى
داچي دادرسول الله ﷺ پنځم واده کېدى اودادويم داچي زيد د رسول الله ﷺ
پسرخوانده ؤچي دعادت مطابق دهغه له طلاقي سوي ښځي سره هم واده نه ؤ جائز،
دهمدې مشکلاتو دحل لپاره الله تعالى دسورة الاحزاب څوآياتونو نازل کړل دا
موضوع ګاني يې ښې وڅيړلى اومسلمانانو ته يې وښوولى چي پسر خواندګي په
اسلام کى اصل نه لري اوبله داچي الله جل جلاله خپل رسول الله ﷺ ته د ودنو په هکله
امتياز ورکړى دى چي بل چاته نسته ، دده لپاره ترڅلورو زيات ودونه روا دى ،
اودلوړو اهدافو په خاطر الله جل جلاله خپل رسول ﷺ ته داځانګړتيا ورکړى ده ، رسول
الله ﷺ له امهات المؤمنين سره ډير دشرف ،عزت ،اطمينان ،احسان او نيکي ژوند
وکړى ،ټولي بيبياني دشرف ،قناعت صبر ، تواضح ، خدمت اوحق پيژندني نمونې
وى ، که څه هم رسول الله ﷺ ډير دمحروميت ژوند تيروى .

انس رضی الله عنه وايي چي فکر نه کوم چي رسول الله ﷺ به تروفاته نرمه ډوډۍ خوړلی وی او يادي يې په خپلو سترګو کباب سوی پسه ليدلی وي ،عائشه رضي الله عنها وايي ډير ځله داسي کېدله چي دوې مياشتي مسلسل او دريمي تر رانوي کېدو پوري به د رسول الله ﷺ په کورکي اور نه بليدی، عروه ورته وويل ژوند مو په څه شي تيروی؟عائشي رضي الله عنها وفرمايل : په اوبو او خورماؤ سره، له دې اقتصادي مشکلاتو سره سره د رسول الله ﷺ ميرمنو هيڅ اعتراض نه درلودی ، قانع وايي يوازي يوځل يې له خپل ژوند او سخت حالت څخه شکايت وکی خوپه دې کي هم لوی حکمت پروت ؤ او په همدې سبب دا آيات شريف نازل سو :

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُل لِّأَزْوَاجِكَ إِن كُنتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا وَزِينَتَهَا فَتَعَالَيْنَ أُمَتِّعْكُنَّ وَأُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا جَمِيلاً ٢٨ وَإِن كُنتُنَّ تُرِدْنَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَالدَّارَ الْآخِرَةَ فَإِنَّ اللَّهَ أَعَدَّ لِلْمُحْسِنَاتِ مِنكُنَّ أَجْرًا عَظِيمًا ٢٩ سورة الاحزاب

**ترجمه**: اې نبي ﷺ ووايه ته ښځوخپلو ته که چيري تاسي غواړی هم دغه ژوندون د دنيا او ښايست ددې بې ارزښته ژوندن ،نوراسي چي فايده درورسوم ، اوخوشي کړم تاسي په نيکي سره او که اراده لری دالله جل جلاله اورسول الله ﷺ او دآخرت نو بيشکه الله تيار کړی دی دصالحنو ستاسي لپاره ډير لوی اجر،ددې عظيمو ميرمنو دشرف او عزت په حکم دوی ټولو بيادنياته شاکړه ، رسول الله ﷺ يې ترهرڅه غوره وباله ، يوې هم دانه غوښتل چي ددنيامال اومتاع دي وغواړي ددې ميرمنو ترمينځ هغه څه هم نه دي پيښ سوي کوم چي معمولاد بنو ترمينځ پيښيږي ، کله ناکله خوانساني کمزوري حتما پيښه سوی ده . خوکله هم چي څه غلطي ورڅخه سوی الله تعالی عتاب ورته کړی .فرمايي :

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكَ . سورة التحريم آيت (١)

**ترجمه** : اې رسوله ولي حراموی هغه څه چي الله جل جلاله درته حلال کړي دي ،په پای کي وايم چي درسول الله ﷺ دميرمنو دتعداد په هکله بحث ته ضرورت نسته ، دښځو دتعدد زيات مخالفين هغه کسان دی چي دغربي تمدن نمايندګي کوي خوکه اروپا او غربي نړۍ ژوند ته وګورو ،ددوی مشکلات اوستونزي ترنظر تيري

کړو هلته کېدونکي جرايم او جنايات وويني نو بيا ددې ضرورت نه پاته کېږي چې ددوی د نظر دابطال په هکله نور استدلال وسي، د اروپايانو او ټول غربيانو عملي ژوند ددې لپاره ښه دليل دی چې تعدد مشکل او نقص نه بلکه ضرورت او حل دی.

## «د رسول الله ﷺ صفتونه او اخلاق»

رسول الله ﷺ د داسي جسماني او اخلاقي، جمال او ښکلا څښتن ؤ چې په ژبه يې صفت نه سي بيان کېدای، زړونه دده په محبت او دوستي ودان ؤ، هره سينه دده په قدر او درناوي ډکه وه، خلکو دده پر عظمت او کرم ځانونه قربانول، د رسول الله ﷺ په ډول قدر او منزلت د هچا نه ؤ او نه دی او نه به په راتلونکي کي سي. چا چي ژوند ورسره کړی دده د ميني او محبت بنديوان سوی دی، اصحابو دومره مينه ورسره درلوده چي په خپله يې مرګ قبلوی خو دا يې نه غوښتل چي د رسول الله ﷺ يو نوک خوږ سي، له رسول الله ﷺ سره د خلکو د ميني او محبت يو علت دا ؤ چي هغه د دومره کمال څښتن ؤ چي هر څوک يې خپلوای سوای، په راتلونکو ليکوکي به په مختصره توګه د رسول الله ﷺ د جمال او کمال په هکله را نقل سوی روايات تر نظر تير کړو، خو مخکي له دې چي ددې عظيم لاربښوونه د مال او ښکلا په هکله څه وواياو پردې اعتراف کوو چي موږ په هيڅ صورت هم د هغه ﷺ حق په قلم او ژبه سره نه سوادا کولای.

## د سيد البشر ﷺ اخلاقي کمال او شمايل

کله چي نبي کريم ﷺ د هجرت په سفر کي د ام معبد خزاعي له خيمې سره تير سو، له ام معبد سره يې ملاقات وسو، نو موږي خپل ميړه ته دده په هکله داسي وويل چي ما يو سړی وليدی چي:

ظاهر الوضياة ... وفي عنقه سطح

**ترجمه:** په ظاهره يې ډيره او بږده غاړه وه، ډير ښکلی او باوقار ؤ.

ابلج الوجه احور ... حسن الخلق لم تعبه تجة أكحل

**ترجمه:** ځليدونکی مخ او سپيني او توري سترګي د ډيرو ښو اخلاقو خاوند چي مريضي يې نه درلوده توري ورځی او سترګی.

ولم تضر به صلعة ازج ... في عينيه دعج شديد سواد الشعر

**ترجمه**: او اندامونه يې بې تناسبه نه زليدونکي تور وريښته باريک ، اوږدو بڼو سره يې توري ورځې هم درلودې او تور زليدونکي ويښته يې هم ؤ .

وفي اشعاره وطف اذا صمت اعلاه الوقار

**ترجمه**: چې ډير چوپ به ؤ، ځانګړې وقاريې درلودې او چې خبرې به يې کولې نو عظمت او لوړوالی به يې له ورايه معلوميده .

وفي صوته صحل وان تکلم علامة البهاء

**ترجمه**: درووند اوازو والاؤ په خبروکې يې لوړه مرتبه ښکاره کيده .

اجمل الناس وابهاهم من بعيد ... واذا امر تبادروا الى امره

**ترجمه**: دټولو خلکو شخه ښائسته او دبهادري سره دهيبت سره معلوميدی او چې کله به يې حکم کوی نو خلکو به دمنلو لپاره ځغستا کوله .

واحسنه واحلاه من قريب محفود

**ترجمه**: دټولو شخه دښو او خوږو اخلاقو خاوند ؤ او خلکو ته خوښ او دهغه وينا خلکو دروح په بدل اخيسته .

فصل لاعابس ولامفند

**ترجمه**: خبرې يې مختصرې او ډيرې ښه وی او نه تريومخ او نه ظالم ؤ

لانذر ولاهذر ﷺ

**ترجمه**: نه کمی او نه زياتي وی

کان منطقة خزرات نظمن يتحدرن ربعة

**ترجمه**: خبرې يې داسې وی کله دمزی شخه چې ملغرې توی سي ،اودمتوسط قدشښتن ؤ .

لاتقتحمه عين من قصر ولاتنشؤه من طول

**ترجمه**: نه دچا په سترګو لنډ او نه اوږ معلوميدی

عصن بين عصنين .... فهو انظر الثلاث منظرا

**ترجمه:** د داسي يو ځانګړي په ډول ؤ که د دوو ځانګو ترمينځ واقع سوی وای نو تر دواړو وتلي او غوره ؤ.

واحسنهم قدرا ... له رفقاء يحفون به

**ترجمه:** او د ټولو څخه په اندازه کي ښائسته ؤ، ملګری يې درلودل چي ورباندي چاپيره ؤ.

اذا قال استمعوا القوله

**ترجمه:** چي کله به يې خبري کولی نو دوی به ورته غوږ اېښوی.

ملګري به يې چوپ ؤ، امر به يې چي وکی ټول به يې تعميل ته ولاړېدل، امريې ميل کېدی، علي بن ابي طالب ﷺ د رسول الله ﷺ په وصف کي وايي: چي نه ډېر جګ او نه ډېر ټيټ ؤ، متوسط ونه يې درلوده، ښه چار شانه ؤ، ويښتان يې نه ډېر نرم او نه تاو، تاو ؤ، مبارک مخ يې غوښن نه ؤ، ګردی او سور رنګه ؤ، سترګي يې غټي بادامي بانه يې اوږده اوګڼ، اوږی يې پلني، له ځيګر څخه ترنس بوري يې نري ويښتان ؤ، نور بدن يې ويښتان نه درلودل، د لاسونو او پښو ګوتي يې غوښني وې، د تګ په وخت کي به د مخ خواته مايل ؤ، تا به ويل چي پر کښته روان دی، چا ته به يې چي التفات او توجه کوله نو په ټول بند سره به ورته ملتف کېدی.

د دواړو اوږو ترمينځ يې د نبوت مهر ؤ، تر ټولو زيات مهربان او بخښونکی ؤ، د زياتي حوصلې درلودونکی ؤ، چا به چي ژوند ورسره تير کی، معرفت به يې ورسره حاصل سو نو ډيره مينه به يې ورسره پيدا کېدله، چا به يې چي صفت کوی ويل به يې د ده په ډول شخص مي نه وړاندي او نه وروسته ليدلی دی [590]، په بل روايت کي له حضرت علي ﷺ څخه را نقل سوی دی چي وايي د رسول الله ﷺ مبارک سر لوی او په غوښو ډک ؤ، له ځيګر څخه تر نامه پوري يې ويښتان ؤ، د تګ په وخت کي به د مخ خواته مائل ؤ ته وايې لکه پر کښته چي روان دی [591]، جابر بن سمره ﷺ وايي چي د رسول الله ﷺ مبارکه خوله لويه وه، په سترګو کي يې لږ څخه سور والی

---

[590] ابن هشام ۱/۴۰۱.

[591] شرح جامع الترمذي ۴/۳۳۰.

ؤ، پوندي یې د نکري اوبې غوښې وی، [592] ابو طفیل رضی الله عنه وایي رسول الله صلی الله علیه وسلم سپین نمکین ښکلی او د متوسط قامت خاوند ؤ [593]، انس بن مالک رضی الله عنه وایي د رسول الله صلی الله علیه وسلم لاسونه غټ او پلن ؤ، رنګ یې ښکلی ؤ، نه ډیر بې نمکه سپین او نه ډیر غنمي ؤ، په داسي حال کي وفات سو چي پر سر او ږیره یې تر شلو زیات سپین ویښتان ؤ [594]، انس رضی الله عنه زیاتوي په دواړو شقیقو کي یې څه سپین والی ؤ او په بل روایت کي راځي چي په سر کي یې څو تاره سپین ویښتان ؤ [595]، ابو جحیفه رضی الله عنه وایي مایې ترزني لاندي سپین والی لیدلی [596]، عبدالله بن بسر رضی الله عنه وایي پر مبارکه زنه یې څو تاره سپین ویښتان ؤ، [597] براء رضی الله عنه وایي رسول الله صلی الله علیه وسلم چارشانه ؤ، اوږې یې پلني ویښتان یې د غوږو ترنرمو پوري اوږده ؤ، ماهغه په سرو جامو کي لیدلی، ما دده صلی الله علیه وسلم ښایست په ډول ښایست نه دی لیدلی [598]، رسول الله صلی الله علیه وسلم په شروع کي له اهل کتابو سره د موفقت په خاطر خپل ویښتان له مخ څخه شاته ږمنځول، خو وروسته پردوو برخو وویشل، [599] براء رضی الله عنه وایي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم تر ټولو زیات خوښ اخلاقه او ښکلی ؤ [600]، پوښتنه وسوه چي آیا مخ یې لکه د توري په ډول داسي پرېښیدی؟ وی ویل چي نه، د توري په ډول نه بلکه مخ یې لکه د سپوږمۍ په ډول ځلیدی، په بل روایت کي راځي چي مخ یې ګردی ؤ، ربیع بن معوذ رضی الله عنه وایي چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم ته به دي چي وکتل تا به ویل لمرته ګورم، بیا مي سپوږمۍ ته وکتل رسول الله صلی الله علیه وسلم سره کالي اغوستی وه، ومي لیدل چي رسول الله مي په سترګو کي تر سپوږمۍ زیات ښکلی او ځلیدونکی ښکاره سو [601]، ابو هریره رضی الله عنه وایي تر رسول

---

٥٩٢ صحیح مسلم ٢/٢٨٥.

٥٩٣ صحیح مسلم.

٥٩٤ صحیح البخاری ١/٥٠٣.

٥٩٥ بخاری مسلم.

٥٩٦ صحیح البخاری ١/٥٠١.

٥٩٧ صحیح البخاری ٢/٥٠٢.

٥٩٨ صحیح البخاری ٢/٥٠١.

٥٩٩ صحیح البخاری ٢/٥٠١.

٦٠٠ نفس المصدر.

٦٠١ صحیح البخاری ٢/٥٠٢، صحیح مسلم ٢/٢٥٩.

الله ﷺ زيات ښائسته شي مه نه دی ليدلی ، تا به ويل لمريې په مخ کې شعلې وهی ، ځوک مې هم په تګ کې تر رسول الله ﷺ تيز نه دی ليدلی ، داسې به روان ؤ تا به ويل لکه چې مځکه يې ترپښو لاندې ځغلی ،موږ به پسې ستړی سو خو هغه ﷺ به نه ستړی کېدی.[٦٠٢]

کعب بن مالک رضي الله عنه وايي چې د خوشحالۍ په وخت کې به د رسول الله ﷺ مخ داسې شعلې وهلې تا به ويل چې سپوږمۍ ده [٦٠٣]،يو ځل عائشې رضي الله عنها په وړاندې ځولی سو مخ مبارک يې داسې په ځلاسو چې عائشه رضي الله عنها يې په هکله دابو کبير هذيلي دا شعر ووايه :

واذانظرت الى أسرة وجهه ... برقت كبرق العارض المتهلل [٦٠٤]

**ترجمه**:چې د مخ ليکوته يې وګوری نو داسې ځليږي لکه ځليدونکی وريځ د آسمان په څنډو کې ځليږی ، ابوبکر رضي الله عنه به چې رسول الله ﷺ ته وکتل نو ويل به يې

امين مصطفى بالخير يدعو .... كضوء البدر زايله الظلام [٦٠٥]

**ترجمه**:امين دي مصطفی (غوره سوی) دنيکي طرف ته بلنه کوي لکه د څوارلسم سپوږمۍ داسې ځليږي چې هيڅ تياره په کښې نسته ، حضرت عمر رضي الله عنه به د مثال په توګه دزهير هغه شعر وايه چې دهرم بن سنان په هکله يې ويلی ؤ .

لوكنت من شى سوى البشر ... كنت المضى لليلة البدر

ژباړه : که ته له بشر پرته بل څه وای نو حتما به دې په خپل رڼا د څوارلسم سپوږمۍ رڼا کوله بيا يې وويل رسول الله ﷺ همداسې ؤ ،رسول الله ﷺ به چې په قهر سو مخ به يې رنګين سو تا به ويل په مخ کې يې دانار دانې دی ،جابر بن سمرة رضي الله عنه وايي چې پونډۍ يې نرۍ وی ، تر تبسم لوړه خندا يې نه کوله ،ورته کتل به مو چې ګمان به موکوی چې سترګې به يې په رنجو توري کړې دی ، په داسې حال کې چې په حقيقت کې به يې رانجه استعمال کړی نه ؤ،ابن عباس رضي الله عنه وايي چې د مخ د دواړو غاښو ترمينځ يې کمه فاصله وه ،خبري به يې چې کولې نو دغه فاصله به لکه نور

---

[٦٠٢] صحيح البخاري ٢/ ٥٠٢، صحيح مسلم ٢/ ٢٥٩.
[٦٠٣] جامع الترمذي.
[٦٠٤] رحمة للعالمين.
[٦٠٥] خلاصة السيرص ٣٠.

داسي ړنا کوله او ځلیدلهبه ، ښکلي غاړه یې درلوده ،تابه ویل ښکلي تکه نقاشي سوی ده ،داسي سپین ځلیدی لکه سپین زر ،ګن بانه او ګڼه ږیره یې درلوده ، تندی یې پراخ ؤ،ورځې یې سره وصل وی ،له ځیګر څخه ترنامه پوري یې ویښتان ؤ ،داویښتان دیو ښانګي په ډول ؤ ،پربدن یې نور ویښتان نه ؤ ،یوازي متې او وږی یې له ویښتانو ډکي وی ،سینه انس یې برابر ؤ، پراخه سینه ،غټ غټ بندونه او پلن لاسونه یې درلودل ، مناسب قد یې درلودی ، نس یې له لوړي څخه ډیر کوچني ؤ پښې یې له مځکی لوړي وی (موزه پای ؤ) اندامونه یې موزون او قوی ؤ ،په ډیر تواضع او وقار به روان ؤ [٦٠٦] انس ﷺ وایي داسي ابریښمي او وریښمه ټوټه مي نه ده لیدلی چي درسول الله ترلاسونه زیاته نرمه وي اونه مي دده ﷺ دمبارک بوی په ډول بله خوشبو یې لیدلی ده،په بل روایت کي راځي چي داسي مشک او عنبر مي نه دی بوی کړی چي درسول الله ﷺ تربوی زیاته خوشبو یي ولری [٦٠٧] ، ابو جحیفه ﷺ وایي چي درسول الله ﷺ دواړه لاسونه مي ونیول پرخپل مخ مي کښېښوول ومي لیدل چي تر واوري یخ او ترمشکو زیات خوشبو یه ؤ. [٦٠٨]

جابربن سمرة ﷺ وایي چي درسول الله ﷺ خولی ترټولو عطرونو زیاتي خوشبویه وی ، جابر ﷺ وایي زه کوچنی وم رسول الله ﷺ مي غومبوري ته لاسه راووړی، شصت لاس یې پرراتیره وه ،ومي لیدل چي مبارک لاسونه یې یخ او داسي خوشبویه ؤ تابه ویل همدا اوس یې دعطار کڅوړنه خلاصه کړی ده [٦٠٩] ،أم سلیم ﷺ وایي چي اصحاب به پرهغه لاره تلل پرکومه به چي رسول الله ﷺ تللی ؤ، دوی به دده په خوشبویي به ددوی دلاري راهنمایي وه [٦١٠] ، درسول الله ﷺ د دواړو اوږو ترمینځ دکوتري دهګۍ په اندازه دنبوت مهرلګیدلی ؤ ،رنګ یې دمبارک بدن درنګ په ډول ؤ ،دغه یې دچپی اوږې خواته په دې هډوکي کي ؤ. [٦١١]

---

[٦٠٦] خلاصة السير ٢٠/ ١٩.
[٦٠٧] صحيح البخارى ٥٠٣.
[٦٠٨] صحيح البخارى ١/ ٥٢٠.
[٦٠٩] مسلم ١/ ٢٥٦.
[٦١٠] نفس المصدر.
[٦١١] صحيح مسلم ٢/ ٢٥٩.

## «غوره خوېيونه او روحاني کمال»

رسول الله ﷺ د بې ساري فصاحت او بلاغت څښتن ؤ، سليسي، رواني، لنډي، معنی داره او بې تکلفه خبري د ده ځانګړتياوه. رسول الله ﷺ ته جوامع الکلم والحکم ورکړل سوي ؤ، يعني د داسي کمال درلودونکی ؤ چي زيات مفاهيم به يې په ډېرو لنډو ټکو کي بيانول او ډېر زيات حکمت او کمال خاوند ؤ، د عربو په مختلفو لهجو ښه پوهيدی، او د هري قبيلې سره به يې د هم هغه قبيلې په لهجه خبري کولی، په حاضر جوابي کي لکه د کوچيانو په ډول ؤ، د کلماتو په نظم او کم استعمال کی لکه د ښار او سيدونکي داسي ؤ، په الهي مرسته سره چي د دوحي په صورت کي ورته راتله، د زيات حلک حوصلې، مهرباني او بخښني خاوند، د قدرت په وخت کي عفوع، د مشکلاتو په وړاندي صبر او مقاومت هغه صفتونه ؤ چي الله تعالی پر ده باندي لورولی ؤ.

انسان که هر څومره حليم او برد باره سي خو بيا هم کله نا کله له سختي څخه کار اخلي، خو رسول الله ﷺ داسي حليم ؤ، چي که هر څومره اذيت او زيان په ور واوښت هغه به د صبر او حوصلې لمن نه پرېښووه د هر جاهل په وړاندي هغه له حلم څخه کار اخيستی، حضرت عائشه( چي وايي رسول الله ﷺ به چي د دوو کارونو ترمينځ د اختيار او واک حق درلودی نو هغه کار به يې غوره کوی چي آسانه به ؤ، خو دا په هغه صورت کي چي آسانه کار به ګناه نه وه، ځکه هغه ﷺ له ګناه څخه ترټولو زيات پاک اوليري ؤ، رسول الله ﷺ کله هم خپل انتقام د چا څخه نه دی اخيستی خو د شريعت مخالفت يې نه سوای زغملای او په دې صورت کي به يې د الله جل جلاله لپاره انتقام اخيستی[٦١٢]، هغه له قهر څخه ډېر ليري رضا او نرمي ته ډېر نژدی ؤ، رسول الله ﷺ ترټولو زيات سخي او کريم ؤ، داسي بخششونه به يې ورکول تا به ويل لکه چي له فقر څخه بالکل بيره نه لري، د روژې په مياشتي کي به هر شپه جبرائيل عليه السلام قران کريم ورته تلاوت کوی، رسول الله ﷺ د خير او نيکي په کارونو کي د سهار ترنسيم زيات مهربانه، لطيف او خوځنده وه.

---

٦١٢ صحيح البخاری ١/ ٥٠٢.

جابر ﵁ وايي رسول الله ﷺ هيڅکله هم د چا د سوال په جوابکي (نه) نه دي ويلي [۶۱۳] شجاعت له نورو سره مرسته ،همکاري او تعاون کي يې ساری نه درلودی ، دعمل په ډګر کي يې په اثبات رسولی چي ترهرچا زيات دغيرت او شجاعت خاوند دی ،په داسي مواقعو کي يې مقاومت کړی چي بل چا هلته د مقاومت وس نه درلودی ، په ډير سختو حالاتو او شيبو کي به دغره په ډول ولاړ ؤ، نه يوازي پرشاتګ به نه کوی بلکه مخ په وړاندي به روان ؤ ،داسي قهرمان او پهلوان به نه وي چي يو او يا څو ځله يې له ميدان څخه عقب نشني نه وي کړی ،خو رسول الله ﷺ په خپل ژوند کي عقب نشيني او پرشاتګ يې نه دی کړی ، حضرت علي ﵁ وايي چي کله به جنګ ښه ګرم سو ،سترګي به سری سوی ،موږ به د رسول الله ﷺ خواته ورتلو او دده په حمايت کي به موځانونه ساتل هيڅوک به هم تر رسول الله ﷺ د ښمن ته ورنژدی نه ؤ. [۶۱۴]

انس ﵁ وايي چي يوه شپه د مدينې خلګو دخطر احساس کوی ،بږغ ترغوږو سو، يوه ډله خلګ په بږغ پسې ووتل دلاري په اوږدو کي يې رسول الله ﷺ وليدی چي مخکي په هغه بږغ پسې ور وتلی توره يې په غاړه کي پرته وه او فرمايل يې : مه بيريږی ،مه بيريږی [۶۱۵] ، په حيا او چشم پوشي کي تر ټولو لوړ او مخکي ؤ ،ابو سعيد خدری ﵁ وايي رسول الله ﷺ تر مستوره پيغلي زياته حيا درلوده ، دکوم شي څخه به يې چي نفرت کېدی او بد به يې ورڅخه راتلل نو دکراهت نښاني به يې په مخ کی ښکاره کېدلی [۶۱۶] ، چاته به يې مخامخ ډير نه کتل بلکه مبارکي سترګي به يې يوې او بلي خواته اړولی ،مځکي ته به يې تر آسمان ډير کتل ،ډير غور، تدبر او تفکر به يې کوی ، کوم څه چي به د چا نه خوښېدل هغه به يې نه يادول ،چاته به يې چي نصيحت کوی او يا به يې چي د چا عيب بيانوی نو نوم به يې نه اخيستی بلکه ويل به يې د هغه چا حال به څه وي چي داسي کارونه کوي ،فرزدق ډير ښه وايي :

يغضي حياء ويغضى من مهابته ... فلا يكلم الاحين يبتسم

---

[۶۱۳] صحيح البخاری ۱/ ۵۰۲.
[۶۱۴] شفاء ۱/ ۴۸۹.
[۶۱۵] صحيح مسلم ۲/ ۲۵۴.
[۶۱۶] صحيح البخاری ۱/ ۵۰۴.

**ترجمه**: خپلي سترګي له حيا نه پټوي په داسي حال کي چي دنورو سترګي يې له هيبته پټيږي ، يوازي هغه وخت خبري ورسره کيږي ، چي پرشونډو يې تبسم وی ، رسول الله ﷺ دزيات عدل ،عفت، صدق، امانت اواستقامت درلودونکی ؤ،دښمنان يې تردوستانو مخکي دده پر امانت ،صداقت اوعفت اعتراف کوی ،تراسلام مخکي په امين مشهور سوی ؤ اوټولو به خپل امانتونه ده ته ايښوول.

امام ترمذي رحمه الله روايت کوي چي ابوجهل رسول الله ﷺ ته وويل موږ تا دروا غجن نه بولو بلکه داخه دي چي راوړي هغه درواغ بولو ،همداؤ چي الله تعالی داآيت نازل کی :[617]

فَإِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُونَكَ وَلَٰكِنَّ الظَّالِمِينَ بِآيَاتِ اللَّهِ يَجْحَدُونَ .سورة الانعام آيت (۳۳)

**ترجمه**: دوی تا درواغجن نه ګڼي بلکه داظالمان دالله جل جلاله آيتونه نه مني ،هرقل له ابوسفيان څخه پوښتنه وکړه چي : مخکي له دې چي دنبوت دعوه وکړي تاسي له هغه څخه درواغ.اوريدلي دي ؟ابوسفيان جواب ورکی چي نه ،رسول الله ﷺ ډيرمتواضع اوبې کبره شخص ؤ دايې نه خوښيدل چي خلګ لکه دشاهانو په ډول معامله ورسره وکړي ، دفقيرانو پوښتنه به يې کوله ،مرسته به يې ورسره کوله ، دغلامانو دعوت اوبلنه به يې قبلوله ، اوداصحابو په مينځ کي به دعادي شخص په توګه ناست ؤ ،حضرت عائشه رضي الله عنها وايي چي رسول الله عليه السلام به خپل بوټونه په خپله ګنډل ، کالي به يې هم ګنډل اوپيوند کول ،په کور کي به يې په خپل لاس کارکوی هغه لکه دنورو انسانانو په ډول يوانسان ؤ ،کالي به يې ګنډل ،ميږي به يې لوشلی ، اوخپل خدمت به يې کوی[618] رسول الله ﷺ ډير باوفاء دزيات وصله رحمي خاوند ،مشفق ، مهربان اورحيم انسان ؤ ،ترهرچاپه غوره اخلاقو کي مخ ته ؤ، بده خبره يې نه ده کړی ،پرچا يې لعنت نه دی ويلی ، په بازار کي يې غالمغال نه دی جوړکړی ،په هرنيکي کي دکمال درجې ته رسيدلی ؤ ،دبدو جواب به يې په بدو نه وايه ، تل به يې نورو ته بخښنه کوله ،دايې هم خوښ نه ؤ چي نورخلګ دي شاته

---

[617] مشكوة المصابيح ۲/ ۵۳۱.
[618] مشكوة المصابيح ۲، ۵۳۰.

وریسې روان وي ،په خوراک ،جامه اوپوښاک کي به یې دخپل ځان اوغلامانو ترمینځ فرق نه کوی.
دمریي اوخادم کارونه به یې هم په خپله کول ، کله یې هم مریې اوخادم ته سخته خبره ده کړی اونه پرغوصه سوی دی ، دهغه تقصیر په بدل کي یې رټلی نه دی ، مسکینان یې خوښیدل ، له دوی سره به یې ناسته ولاړه درلوده ، ددوی جنازې ته به حاضریدی ، فقیرانو ته یې په کمه سترګه نه کتل ، یوځل رسول الله ﷺ دیوسفر په دوران کي امر وکی چي یوپسه دي حلال اوپوخ سي ، یوسړي پسه راونیوی ذبحه کوی یې ،بل دپخولو بندوبست وکی ، رسول الله ﷺ وفرمایل زه به لرګی اوخاشاکي راټول کړم ،اصحابو ورته وویل مونږ یې ستاپرځای راټولوو ،دوی ته ورته وویل زه پوهیږم چي تاسي زما په عوض داکار کوی خوزه دانه خوښوم چي ځان ته داامتیاز ورکړم ، ځکه دالله تعالی دانه خوښیږي چي یوبنده دي دنورو په مینځ کي ده امتیاز خاوند وي ، دایې وفرمایل ولاړسو اولرګي یې راټول کړل .[619]
غوره به وي دلته دهندې بنت ابي هاله چي درسول الله ﷺ دمیرمني خور وه له خولی څخه د رسول الله ﷺ صفت واوروی هغی به ویل چي رسول الله ﷺ به همیشه غمګین معلومیدی ، ډیر فکر اوتدبر به یې کوی ، څه خاص آسایش اوسهولیات یې نه درلودل ، بې ضرورته به یې خبري نه کولی ،زیات وخت به چوپ ؤ ،خبره به یې چي شروع کړه پای ته به یې رسوله ، بې تکلفه خبري به یې کولی ، خوله به یې دې خوا آخوا نه کوله ، زیات مفاهیم به یې په لنډو ټکو کی بیانول ، خبره به مي مکمله اوبشپړه وه ، ډیر نرم اوشرین ؤ ،بدخویه اوسختي معاملې والا نه ؤ ،نعمت به که هرڅومره کوچنی ؤ لوی به یې باله .
دهیڅ شي خوارک یې بند نه ګڼی ، څه به یې چي خوړل نه به یې ستایل اونه به یې بدي بیانوله که به حق تربښولاندي سو ،دومره به په غوصه سو چي هیڅوک یې مخ ته نه سوای دریدلای ، دحق لپاره به یې انتقام اخیستی ، دخپل ځان لپاره نه په غوصه کیدی اونه یې شخصي وار اخیستی ، اشاره به یې چي کوله نوپه ټول لاس سره به یې کوله ، دتعجب په وخت کي به یې مخ بلي خواته اړوی ، که به خوشحاله ؤ سترګي به

[619] خلاصة السیرص ۲۲.

يې كښېنته ،خندا يې يوازې تبسم وه ، اوغاښونه به يې لكه ملغلري داسې ځليدل ، يوازې هغه خبرې به يې كولې چې ضروري به وې ، اصحاب به يې سره يو كول ،نه داچې دوى ره جلا اوپاشلي وى ، دهرقوم مشرته به يې دمشر په سترګه كتل اوهغه به يې دخپل قوم مسؤل ټاكى ، ځان به يې دنورو له شر څخه محفوظ ساتى ،دخپلو اصحابو خوښه به يې مراعاتوله ،دخلكو دحالاتو په هكله به يې پوښتني كولې ،احوال به يې اخيستى ، نيكې به يې تائيدوله اوبدى به يې له منځه وړله ، همېشه يې له اعتدال څخه كار اخيستى ، اواختلاف يې نه كوى ، ددې امله چې نور څوك غفلت ونه كړي ،دهيڅ غفلت اجازه يې نه وركوله ، دهرډول حالاتو دمقابلې لپاره پورته تيارؤ، دحق په لاركې يې هيڅ كوتاهي نه كوله اودنورو پرحق يې تجاوز نه دى كړى ،ښه ملګري يې هغه ؤ چې خير غوښتونكى به ؤ ، د نورو غمخور اومرستندوى دده په وړاندې ډېر محترم اودلوړ مقام خاوندؤ، همېشه به كښېنستى چيرې چې به ځاى خالى ؤ اوهمدا يې امر هم ؤ ، ټولو ته يې په يوه سترګه كتل ، د هرچادحقوقو رعايت يې كوى ، چابه چې دضرورت په وخت كې كښېنوى اويابه يې دروى نو ترهغوپورې به ورسره ولاړ ياناست ؤ ،ترڅوبه دهغه ضرورت رفع كېدى ،دهغه سوال ته به يې په پوره صبر غوږ نيوى ، اوپه ډېره ښه طريقه به يې جواب وركوى . اصحاب دده په وړاندې برابر ؤ ،هغه ډېر ورته نژدى ؤ چې دزياتې تقوى در لودونكى به ؤ ،مجلس يې دحلم ،صبر، حياء ،امانت اوصداقت مجلس ؤ ،هلته به غالمغال نه ؤ ،يوله بل سره همكاري اونرمي كېدله دلوى اومشردرناوى به كېدى اوپرفقيرانو اومحتاجو به رحم كېدى ،دبې وسه لاس نيوى به كېدى ، تل خوښ ،خوش اخلاقه اومهربانه ؤ ،هيڅ بدخويه ،بدګفتاره ،سخت زړه اوغالمغالي نه ؤ ،له دروشيانو څخه يې ځان پاك ساتلى ؤ يوله ريابل له زيات خوراك اودريم دبې هدفه كار څخه ، دچابدې يې نه بيانول ، بدېې نه ورته ويل ،عيبونه يې نه پسې راپلټل ، بې ثوابه خبره يې نه كوله ، خبرې به يې چې كولې دمجلس ملګرې به يې ټول ورته متوجه كېدل اوغوږ به يې ورته نيوى ، خبره به يې نه سره اخلالوله (ګډوله) بل چابه جيرخبره ورته كوله غوږ به يې ورته نيوى اوترهغوپورې به چوپ ؤ ترڅوبه دهغه خبره خلاصه سوه ،دخندا پرخبره يې خندل ،دتعجب په وخت كې به يې تعجب كوى ،

دنورو دنامناسبي خبري په مقابل کي به يې له زغم اوصبر څخه کار اخيستی ، فرمايل به يې دحاجتمند حاجت پوره کړی دنيکي په بدل کي به يې له چا څخه د شکرانی تمه نه درلوده .[٦٢٠]

خارجه بن زيد رضي الله عنه وايي چي رسول الله ﷺ ترټول دزيات وقار درلودونکی ؤ،په آساني اوبې ضرورته خبره به يې نه کوله زيات وخت به چوپ ؤ ،دنامناسبي خبري په اورېدو سره به يې مخ کرځوی ،خندايې دتبسم ترحده وه ، خبري يې پراندازه برابري وي ،نه به يې زياتي کولی اونه به يې ترحد کمي ،دده په وړاندي به اصحابو هم يوازي تبسم کوي ،په زور يې نه خندل ،لنډه داچي رسول الله ﷺ هغه کامل انسان ؤ، چي مثال نه لري ، الله جل جلاله هغه ته ادب ورکړی ؤ، او الله تعالی دهغه دغوره اخلاقو په هکله فرمايي : —

وَاِنَّكَ لَعَلٰى خُلُقٍ عَظِيْمٍ .

**ترجمه**: ته دلويو اخلاقو څښتن يې

همدادکمال صفاتو ځانګړتياوي وی ، چي خلک يې له رسول الله ﷺ سره نژدی کړی ؤ ، دهمدې صفاتو له برکته هغه دهرچاپه زړه کي ځای اولوړمقام درلودی ،دهمدې غوره اخلاقو په وجه هغه داسي يورهبرؤ چي زړونه پوري تړلي ؤ ،دهمدې کمالاتو په سبب هغه خپل مغرور خودمخواه اوسرکښ قوم ته دځان کړی اوهم هغه جاهل خلک داسي سول چي ډله ډله دالله جل جلاله په دين کي شامليدل اواسلام ته يې غاړه اېښووله ،داصفتونه مو چي يادکړل دادرسول الله ﷺ دکمالاتو اوغوره اخلاقو يوه ډيره کوچني نمونه وه ،دنبي کريم ﷺ په عظمت اوحقيقت پوهنه او د هغه بيانول يوناشوني کاردی ،دداسي انسان صفت به څوک وکړي چي اخلاق يې قرآن کريم وي ،بيشکه چي درسول الله ﷺ دعظمت حقيقت بيانول دچادوس خبره نه ده.

ستاسو د دعا په هيله احقرابوقدرت مولوي عبدالديان (حليم)

واخردعوناان الحمد لله رب العالمين

---

[٦٢٠] شفاء ١/ ١٢١.

# فهرست مضامین سیرة النبي ﷺ الرحیق المختوم

ستاسو دليكنو اوكتابتونو دپاره زموږ حليمي اداره په ښه كتابت اوښه سمون اوترتيب سره دكتابونو دپاره په ښه سيز كي ليكلو ته ستركي په لاره : ۰۳۴۴۸۰۱۹۷۸۷

كاتب ابوقدرت مولوي عبدالديان (حليم)



درسول الله صلی الله علیه وسلم پگړی مبارکه



درسول الله صلی الله علیه وسلم پل مبارک



موی مبارک



دنبي صلی الله علیه وسلم څپلی مبارکه



دمسجد الحرام تاریخي منظر



دحلیمې (رض) قبرمبارک



په منی کې دشیطانانو دویشتلو ځلي



دنبي کریم صلی الله علیه وسلم دهجرت لاره